# تسهیلات

## پښتو شرح

# مشکوٰة

تالیف:- مولانا شاه فیصل فاضل دار العلوم اسلامیه چارسده

دریم جلد (۳)

د شلو (۲۰) خصوصیاتو سره چې لس (۱۰) په کښې دا دی

① پیښوري پښتو سره بین القوسین د قندهاري پښتو د ګرانو ټکو اضافه

② د مشکاة د عربي او اردو متداولو ټولو شروحاتو مجموعه

③ په ترجمه کښې بین القوسین د مرقاة المفاتیح داضافي قیوداتو ترجمه

④ دحدیث هرې جملې ته اود هغې ترجمې د آسانتیا دپاره نمبرې ورکول

④ په فقهي اختلافي مسئلو کښې مدلل او آسان مباحث

⑤ د اوږدو احادیثو د متن او ترجمې تقسیم

⑥ دهرحدیث د صحاح سته وغیره څخه تخریج

⑦ د حل اللغات په عنوان سره د مرقاة المفاتیح څخه د مشکلو لغات حل

⑧ دقوله په عنوان سره دحدیث د هرې مشکلې جملې تشریح

⑨ دهرباب په اول کښې دهغې د احادیثو خلاصه

⑩ د کتاب په اول کښې د علوم الحدیث مفیده مقدمه

خورنکي

فیصل کتب خانه محله جنګي پیښور

موبائل ۰۳۱۵-۹۵۹۵۷۱۷

دکتاب نوم : تسهيلات شرح مشكواة
شارح: مولانا پروفيسر شاه فيصل
فاضل وفاق المدارس، امدادالعلوم، جامعه اسلاميه چارسده
معاون مترجم:: عبدالكريم صديقي

د ملاوید پتې

جدید اسلامی کتب خانه خوست
المصباح کتب خانه کابل
روغانیوال کتب خانه جلال آباد
رحیمی کتب خانه خوست
حرم کتب خانه کابل
دیلی کتب خانه تیمرگره
تاج کتب خانه صوابی
مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
مکتبه دارالاخلاص کابل
مکتبه رحمانیه قندهار
مکتبه رحمانیه کوئټه
الوری کتب خانه قندهار
نعمت کتب خانه کابل
مکتبه علمیه اکوړه ختک
حقانیه کتب خانه گردیز
وطن دوست کتب خانه گردیز
اقرأ کتب خانه جلال آباد
مکتبه معروفیه کوئټه
مکتبه عمریه چمن
مکتبه عباسیه تیمرگره
مکتبه امیر حمزه قندهار

# اجمالی فہرست

| شمار | مضمون | صفحہ |
| --- | --- | --- |

| شمار | مضمون | صفحہ |
|---|---|---|

# د احادیثو د عنواناتو فهرست

# فهرست اختلاف مذاهب

# [۹/۲۶]بَابُ السُّتْرَةِ

## دَ ستره بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثمانية عشر حديثاً مشتملة على ست مسائل:**

① ما يصلح أن يكون سترة : ۱، ۲، ۳، ۴، ۷، ۱۰.

② وبال المرور بين يدي المصلي: ۵، ۱۷.

③ الأمر بدفع المار۶، ۱۴.

④ حكم مرورالمرأة والكلب والحمار بين يدى المصلي : ۷، ۸، ۹، ۱۳، ۱۵، ۱۸.

⑤ استحباب القرب إلى السترة : ۱۱،

⑥ عد الاستقبال إلى السترة محاذياً: ۱۲.

**دسترې لغوي معنى:** "سترة" په سين باندې ضمه اوتاساكنه ده په لغت كښې دَ پردې اوبنديز په معنى كښې دې

**د سترې اصطلاحي تعريف:** دَ ستره اصطلاحي مفهوم دادې چه ستره دَهرهغه څيز نوم دې چه دَ مونځ گذار مخې ته اودرولې شى دې دَپاره چه په دې دَ مونځ گذار دَ سجدې دَ ځائى پته اولگى او تيريدونكې گناهگارنه شى. په ستره كښې ديوال لرگې اوستن وغيره استعمالولې شى يعنى هر هغه څيزچه تيريدونكى ته دَ لرې نه په نظر راځى.

**د سترې اوږدوالې او پلنوالې:** دَ سترې دَپاره ضرورى ده چه دَدې كم نه كم اوږدوالې دَ يوذراع وى اودَ زيات هيڅ اندازه نشته دغه شان دَ پلنوالى هم څه اندازه نشته كه اودرول ممكن نه وى نوبيا په پلنوالى باندې كيخودل هم جائزدى په دې شرط چه ستره لويه وى. شوافع دوه ثلث ذراع په اوږدوالى كښې جائز گڼى. دَ سترې پيړوالې كم نه كم دَ يوې گوتې برابركيدل پكاردى دې دَپاره چه ښكارى.

**د صفونو په مينځ كښې په اوږدوالى دتيريدو حكم:** كه يوسرې په اوږدوالى كښې دَ صفونوپه مينځ كښې وړاندې راځى يا بهرځى هغه هم دَاحاديثودَ وعيدنه خالى دې اگرچه بغيردَ ضرورت نه داسې كول مناسب نه دى مگر اصل وعيد په پلنوالى كښې تيريدودَپاره دې.

**دامام ستره د مقتديانو ستره:** دَامام ستره دَمقتديانودَپاره كافى ده دَ جدا جدا سترې ضرورت نشته. لهذا كه يوسرې دَمقتديانودَ صفونو په مينځ كښې تيريږى نوهغه به په دغه وعيد كښې نه راځى كوم چه په احاديثوكښې ذكردې. ځكه چه دَامام ستره دَ مقتديانودَپاره كافى ده.

**د سترې دپاره د کوښې راښکل:** کـه چرې د سـترې دپـاره لرګـي وغـيـره نـه وی نـو بيـا د یو محرابی شکل کرښه د سترې جوړول هم جائزدی. په حديث کښې دَدې ذکرراغلې دې. اګرچه فقهاء د احنافو په مثل د هدايه د کرښې حيثيت به په ستره کښې نه شی شميرلې. د امام مالك رحمه الله يوقول داهم دې چه دامام ستره صرف د امام دپاره ده اود مقتديانودپاره دامام وجود پخپله ستره ده.

**په لوئې جامع مسجد کښې د سترې حکم:** دغه شان که چرې يوجمات د شپيتوقدمونونه زيات ارت وی نوپه هغې کښې دمصلې مخې ته به دې حد کښې تيريدل جائزدی چرته چه د مونځ ګذار نظرنه پريوځی کله چه هغه خپل د سجدې ځائی ته ګوری. که چرې جمات ددې نه کم وی نوبيامخې ته مطلقًا تيريدل منع دی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## ۷۷۲–په صحرا کښې د سترې لګول

۷۷۲–()[۱] ① عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: ② «كَانَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَغْدُو إِلَى الْمُصَلَّى ③ وَالْعَنَزَةُ بَيْنَ يَدَيْهِ تُحْمَلُ، ④ وَتُنْصَبُ بِالْمُصَلَّى بَيْنَ يَدَيْهِ ⑤ فَيُصَلِّي إِلَيْهَا» رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت ابن عمر رضی الله عنهما فرمايي ② چې رسـول الله ﷺ بـه د سحر پـه وخت کې د عيـدګاه طـرف تـه تـشريف وړو ③ او د حـضور ﷺ مخکـي مخکـي بـه يـوه نيـزه (هم) وړل کيده ④ چې په عيدګاه کې به د حضور ﷺ مخې ته ودرول شوه ⑤ او حضور ﷺ بـه هغـه طرف ته مخ کولو سره مونځ کولو. (بخاري.)

**حل اللغات:** ① يَغْدُو: سحر وختی تلو ته وائی. ② الْعَنَزَةُ: نيزه، وَهُوَ أَطْوَلُ مِنَ الْعَصَا وَأَقْصَرُ مِنَ الرُّمْحِ: عنزه داسې نيزې ته وائی چه دهمسا نـه اوږده وی مګـر د اوږدې نيزې نـه وړه وی. ③ تُحْمَلُ: پورتـه کولې به شوه يعنی اوړلې به شوه. ④ تُنْصَبُ: أَيْ تُغْرَزُ: ښخولې به شوه.

**تسهيلات:**

**قوله: يَغْدُو إِلَى الْمُصَلَّى وَالْعَنَزَةُ بَيْنَ يَدَيْهِ تُحْمَلُ:**

**د سترې تاريخی اهميت:** واقعـه داسـې ده چـه پـه جنـګ بدر کـښې حـضرت زبيـر رضی الله عنه پـه يوکافرباندې حمله اوکړه دکوم نوم چه عبيده بن سعيدوو چه په وسله کښې ډوب وو صرف سترګې ښکاريدې. حضرت زبيرپه شيش کښې په هغه باندې حمله اوکړه اوخپله نيـزه ئـی د هغه په سترګه کښې ورخښه کړه کـافرراپريوتلو مردارشو. مګر حضرت زبيـر رضی الله عنه لـه خپلـه نيزه راويستل مشکل شو هغوی په دې باندې پوره زور اولګولو راويستله پـه کـوم سـره چـه

[۱] اخرجه البخاری كتاب الجمعة باب حمل العنزة أو الحربة بين يدى الإمام يوم العيد (رقم-۹۷۳) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة/باب ما جاء فى توطين المكان فى المسجد يصلى فيه (رقم-۱۴۳۲)

هغه ګکه شوه. حضورپاك دغه تاریخ ژوندي ساتلو دپاره دغه نیزه په ستره کښې استعمال کړه بیا صدیق اکبر رضي الله عنه بیا حضرت عمر رضي الله عنه او بیا حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه دَ دور خلافت پورې دغه تاریخی نیزه خلفاء راشدینو رضي الله عنهم استعمالوله. حضورپاك به دَدې نیزې نه دَستري کارهم اخستلو اوبه دې سره زمکه نزمول یا دَ لوټو راویستلودپاره هم استعمالولو او دَ جنګ بدر تاریخی فتح یاد ساتلوطرف ته به ئې اشاره هم فرمانیله.

## ۷۷۳-دَستري مخې ته دَ تیریدو حکم

۷۷۳-(۱) [۲] ۱ وَعَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ۲ «رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِمَكَّةَ وَهُوَ بِالْأَبْطَحِ فِي قُبَّةٍ حَمْرَاءَ مِنْ أَدَمٍ، ۳ وَرَأَيْتُ بِلَالًا أَخَذَ وَضُوءَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۴ وَرَأَيْتُ النَّاسَ يَبْتَدِرُونَ ذَلِكَ الْوَضُوءَ ۵ فَمَنْ أَصَابَ مِنْهُ شَيْئًا تَمَسَّحَ بِهِ، ۶ وَمَنْ لَمْ يُصِبْ مِنْهُ أَخَذَ مِنْ بَلَلِ يَدِ صَاحِبِهِ،

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابو جحیفه رضي الله عنه فرمایي ۲ چه ما په مکه کې د ابطح په مقام رسول الله ﷺ د سري څرمنې په یوه خیمه کې ولیدلو ۳ او حضرت بلال مې رضي الله عنه د حضور ﷺ د اودس څخه پاتې شوې اوبو اخستو باندې ولیدلو ۴ او نور خلق مې هم ولیدل چې هغوئ د اوبو په حاصلولو کښې ډیره تلوار کوله ۵ کوم سړي ته چې به د هغه اوبو څخه حاصلې شوې هغه به (د برکت حاصلولو د پاره) هغه په خپل بدن او مخ باندې مښلې ۶ او چا ته به چې هیڅ حاصل نه شو نو هغه به د ملګري د لاس تري (لوندوالي) اخستو سره مښله

**حل اللغات:** ① الْأَبْطَحِ: دَمکې نه منیٰ ته تلوسره نیزدې واقع دَ یوې کولاؤ نالې نوم دې کوته چه "المحصب" هم وائی. چونکه په دې ځائی کښې ډیر قوت کانړی (باجری) دی په دې وجه دې نه ابطح اومحصب وائی کوم چه دَ قوت کانړو په معنی کښې دې. ② قُبَّةٍ: خیمه، ③ أَدَمٍ: أَيْ: جِلْدٍ: أَدَم دَ ادیم جمع ده، دَ څرمن په معنی کښې دې. ④ وَضُوءَ: أَيْ: بَقِيَّةَ الْمَاءِ: د اودس نه پاتې شوې اوبه، ⑤ يَبْتَدِرُونَ: أَيْ: يَتَسَابَقُونَ: ډیره جلتې ئې کوله او د یوبل نه مخکښې کیدل. ⑥ أَصَابَ: أَيْ: أَخَذَ: حاصلې ئې کړې، واخلې، ⑦ بَلَل: لوندوالې. ⑧ عَنَزَةً: نیزه، وَهُوَ أَطْوَلُ مِنَ الْعَصَا وَأَقْصَرُ مِنَ الرُّمْحِ: عنزه داسې نیزې ته وائی چه دَهمسا نه اوږده وی مګر دَ اوږدې نیزې نه وره وی.

۱ ثُمَّ رَأَيْتُ بِلَالًا أَخَذَ عَنَزَةً فَرَكَزَهَا ۲ وَخَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ فِي حُلَّةٍ حَمْرَاءَ. مُشَمِّرًا ۳ صَلَّى إِلَى الْعَنَزَةِ بِالنَّاسِ رَكْعَتَيْنِ، ۴ وَرَأَيْتُ النَّاسَ وَالدَّوَابَّ يَمُرُّونَ بَيْنَ يَدَيِ الْعَنَزَةِ»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ بیا ما بلال رضي الله عنه ولیدلو چې هغه نیزه ئې واخسته او هغه یې ښخه کړه ۲ حضور ﷺ سره کربنیزه جوړه اغوستې وه او لمن ئې رانغښتې اوچته کړې وه (یعنی په جلتې سره د خیمې څخه) راووتلو ۳ او د نیزې طرف ته ودریدو سره نورو صحابۀ ﷺ ته یې دوه رکعاته مونځ ورکړو ۴ او ما کتل چې سړي او څاروي به د نیزې مخې ته تلل راتلل. (بخاري، مسلم.)

(۱) اخرجه البخاری کتاب الصلوة باب الصلاة فی الثوب الأحمر (رقم-۳۷٦) ومسلم باب سترة المصلی (رقم-۲۵۰ - (۵۰۳))

**حل اللغات:** ⑨ فَرَكَزَهَا: أَيْ: غَرَزَهَا: ښخه ئې كړه. ⑩ حُلَّةٍ حَمْرَاءَ: يعنى داسې جوړه وه په كومه كښې چه سرې كربښې وې خالص سره نه وه ځكه چه دغه دَ سړو دَپاره جائز نه ده. ⑪ مُشَمِّرًا: أَيْ: مُسْرِعًا: تشمير كپړې راغونډولوسره په تادئى تلو ته وائى. ⑫ يَمُرُّونَ: مرور دَ تيريدو په معنى كښې دې

**تسهيلات:**

**قوله:** وَرَأَيْتُ النَّاسَ يَبْتَدِرُونَ ذٰلِكَ الْوَضُوءَ:

**د نبى كريم د اودس نه پاتې شوو اوبو باندې بركت حاصلول:** دَ واؤ فتحه سره هغه اوبوته وئيلى شى چه دَ اودس جوړولونه پس باقى پاتې كيږى اوهغه اوبوته هم وائى چه اندامونه منفصل كيدوسره ځاځى. صحابه كرامو دغه اوبه دَ تبرك په توګه استعمال كړى دى اودا اوبه دَ تبرك قابلې هم وې. كومې چه دَنبى آخرزمان ﷺ دَ مباركو اندامونو او عبادت كښې استعماليدونكې مباركې اوبه وې.

**قوله:** "يَمُرُّونَ"

**د ذوالعقولو په غيرذوالعقولو تغليب:** په دې كښې "تغليب العقلاء على غيرالعقلاء" دې يعنى صيغه دَ مذكرعاقل ده مګر مراد صرف عاقلان نه دى بلكه ځناور هم مراد دى. ښكاره خبره داده چه خلق دَ سترې په مخكښې تيريدل او دَ بيانولونه مقصود هم دغه دې چه ستره كافى ده كله چه ستره وى نو په وړاندې تيريدو كښې ګناه نشته بلكه جائز دى.

٧٧٣- د سوارلى ځخه ستره جوړول

٧٧٣-()[٣] ① وَعَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، ② «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَعْرِضُ رَاحِلَتَهُ فَيُصَلِّي إِلَيْهَا»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ، ③ وَزَادَ الْبُخَارِيُّ، قُلْتُ: «أَفَرَأَيْتَ إِذَا هَبَّتِ الرِّكَابُ ④ قَالَ: كَانَ يَأْخُذُ الرَّحْلَ فَيُعَدِّلُهُ، فَيُصَلِّي إِلَى آخِرَتِهِ».

**ترجمه:** ① او نافع د حضرت ابن عمر رضي الله عنه ځخه روايت كوي ② چې رسول الله ﷺ به د خپلې سورلۍ اوښ مخې ته كينولو او د هغې طرف ته به يې مونځ كولو ، (بخاري،مسلم) ③ او بخاري دا مزيد نقل كړي دي چې نافع وايي چې ما د حضرت ابن عمر رضي الله عنه ځخه پوښتنه وكړه چې كله به اوښان ځريدلو او اوبو ځښلو لره لاړل نو حضور ﷺ به ځه كول (يعني په داسې صورت كې به ستره حضور ﷺ كوم شي ګرځوله) ؟ ④ ابن عمر رضي الله عنه وفرمايل په داسې موقع به يې كجاوه برابرولو سره مخې ته ايښودله او د هغې د وروستنې لرګي طرف ته (چې د بلند كيدو په وجه به يې د ستره كار وركولو) مونځ كولو.

---

[١] اخرجه البخاري كتاب الصلوة باب الصلاة إلى الراحلة، والبعير والشجر والرحل(رقم-٥٠٧) ومسلم باب الصلاة إلى الحربة والعنزة (رقم-٢٤٧ - (٥٠٢)

**حل اللغات:** ① يُعَرِّضُ: أَيْ يُنِيْخُهَا بِالْعَرْضِ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ: صيغه دَ باب ضرب نه ده يوخناور په پلنوالی کښې کينول مراد دی دې دَ پاره چه دَ مونځ ګذار او قبلې په مينځ کښې ستره جوړشی. دَ باب تفعيل نه هم دغه مراد کيدې شی ② رَاحِلَتَهُ: سورلی، ③ هَبَّتْ: أَيْ: قَامَتْ لِلسَّيْرِ: چه سورلی به دتلو دپاره پاسيده، هبوب دَخوب نه بيداريدو يا دَ يوخناور دکيناستونه پس پاسيدو ته ونيلی شی. ④ الرِّكَابُ: أَيْ: الْإِبِلُ يَسِيْرُ عَلَيْهَا الرَّاكِبُ: هغه اوښ چه سورلی پرې کولې شی. ⑤ فَيُعَدِّلُهُ: دَتعديل نه دې برابرول او نيغولو په معنی کښې دې.

**تسهيلات:**

**قوله: أَفَرَأَيْتَ إِذَا هَبَّتِ الرِّكَابُ:**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه توجيهات:** شيخ عبدالحق رحمه الله فرمائی چه هبوب لفظ دَتلو دَپاره په توګه دَ مجاز استعمال کړې شوې دې يعنی چه کله خناور موجود نه وی بلکه دَ څرن يا اوبو څکلو دَپاره تلې وی بيا به ستره په کوم څيزسره کيدله.

① که خناور دَ څرن دَپاره تلې وې اودَ سترې دَپاره يوخناور نه ملاويدلو نوحضورپاك به څه کول نو ابن عمر رضی الله عنه جواب ورکړو چه حضورپاك به بيا کجاوه دَسترې دَپاره استعمالوله. دا مطلب دَ سياق او سباق نه ډير لرې دې ځکه چه دَ سترې جوړولودَپاره خناور متعين نه وو ستره خودَ هرڅيز نه جوړولې شوه. بيا دَدې سوال اوجواب ضرورت څه وو؟ "الرکاب" دې نه مراد اوښ دې دَدې مفرد راحله دې اودَدې جمع رُکُبٌ دَ کُتُبٌ په شان هم راځی او رکابات اوکائب هم راځی. (کذا فی المعات)

② ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی "اذاهبت" ای قامت للسير، دَدې کلام نه اندازه کيږی چه که خناور په مونځ کښې پاسی لاړشی نوبيابه څه کيږی. نوحضرت ابن عمر رضی الله عنه نافع ته جواب ورکړو بيا به حضورپاك کجاوه ټيك کولوسره هغه ستره جوړوله.

**قوله: "إِلَى آخِرَتِهِ"**

**د مذکوره جملې مفهوم:** کجاوې سره دوو طرفوته لرګی لګيدلې وی يو دَدې په وړاندې حصه کښې کوم چه سور په لاس سره نيسی او يولرګې دَدې په آخری حصه کښې وی کوم سره چه سور ډډه اوتکيه لګوی. آخرة هم دَدغه آخری لرګی نوم دې. دې ته مؤخره الرحل هم وائی. په راتلونکی حديث کښې دې په دې حديث کښې دَ خناور ذکر دې. فقهاؤ ليکلی دی که يو انسان دَ يومونځ کونکی مخې ته ناست وی نودَ هغه شا ستره جوړولې شی او مخ ئی مخامخ کيدل نه دی پکار.

## ۷۷۵-د ستري مخې ته تيريدل

۷۷۵-( )[۳] ① وَعَنْ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "② «إِذَا وَضَعَ أَحَدُكُمْ بَيْنَ يَدَيْهِ مِثْلَ مُؤْخِرَةِ الرَّحْلِ فَلْيُصَلِّ، ③ وَلَا يُبَالِ مَنْ مَرَّ وَرَاءَ ذٰلِكَ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت طلحه بن عبيد الله رضي الله عنه راوي دي چې حضور ﷺ وفرمايل ② هر كله چې په تاسو كې څوك د كجاوې د وروستني لرگي پشان (څه شي) ستره جوړولو سره كيږدي نو هغه ته پكار دي چې مونځ وكړي ③ او د هغه ستري مخې ته كه څوك تيريږي نو د هغې پروا دي نه كوي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① مُؤْخِرَةِ الرَّحْلِ: الْخَشَبَةُ الَّتِي يَسْتَنِدُ إِلَيْهَا الرَّاكِبُ: د كجاوې شاته لرگي كومې ته چه ډډه لگولې شي.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَا يُبَالِ:

**د مذكوره جملې په مفهوم كښې دوه احتمالات:** ① چې دَ لايبال تعلق تيريدونكى سره وى مطلب دا چه كله ستره موجود وى نو دَ مونځ گذار مخې ته تيريدونكې دې دا پرواه نه كوى چه زه دَ مونځ گذار مخې ته تيريږم بلكه بې خطرې او بې ويرې دې تيرشى ځكه چه دَ ستره په موجودگئى كښې تيريدل جائزدى دَ هيڅ قسم غم ضرورت نشته.

② يعنى دَ ستره نه پس مونځ گذار دې دَدې پرواه نه كوى چه څوك دَهغه مخې ته تيريږى ځكه چه دَ ستره په موجودگئى دَ چاپه تيريدو سره دَ مونځ گذار په خشوع اوخضوع باندې څه اثر نه پريوځى په تسلئى سره دې مونځ كوى. په دې صورت كښې به دَلايبال تعلق مونځ گذارسره وى [اشعة المعات: ۳۷۶]

## ۷۷۶-د مونځ كونكي مخې ته د تيريدل گناه

۷۷۶-( )[۵] ① عَنْ أَبِي جُهَيْمٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②: " «لَوْ يَعْلَمُ الْمَارُّ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّي مَاذَا عَلَيْهِ، ③ لَكَانَ أَنْ يَقِفَ أَرْبَعِينَ خَيْرًا لَهُ مِنْ أَنْ يَمُرَّ بَيْنَ يَدَيْهِ " ④ قَالَ أَبُو النَّضْرِ: لَا أَدْرِي قَالَ " أَرْبَعِينَ يَوْمًا، أَوْ شَهْرًا، أَوْ سَنَةً» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

[1] اخرجه مسلم كتاب الصلوة باب سترة المصلى (رقم)-۲٤۱ - (٤۹۹) وابوداود كتاب الصلاة،باب ما يستر المصلى (رقم ۶۸۵) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى سترة المصلى (رقم-۳۳۵)

[2] اخرجه البخارى باب سترة المصلى (رقم-۲۵۰ - (۵۰۳))باب إثم المار بين يدى المصلى (رقم-۵۱۰) ومسلم فى كتاب الصلوة باب منع المار بين يدى المصلى (رقم-۲۶۱ - (۵۰۷) وابوداود كتاب الصلاة،باب ما ينهى عنه من المرور بين يدى المصلى (رقم-۷۰۱) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، باب المرور بين يدى المصلى (رقم-۹٤۵) كتاب قصر الصلاة فى السفر . باب التشديد فى أن يمر أحد بين يدى المصلى (رقم-۳٤) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية المرور بين يدى المصلى (رقم-۳۳۶)

**ترجمه:** ① او ابوجهيم رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل② د لمانځه کونکي مخې ته تيريدونکي که په دې پوهه شي چې. د دې څه سزا ده③ نو هغه به د لمانځه کونکي د مخې څخه د تيريدو په ځاې تر څلويښتو پورې ولاړ ودريدل بهتر وګڼي ④ (د دې حديث يو راوي) ابو نضر وايي چې د دې ماته علم نشته چې څلويښت ورځې يا څلويښت مياشتې يا څلويښت کاله ويل شوې دي، (بخاري،مسلم.)

**حل اللغات:** ① الْمَارُّ: تيريدونکي.

**تسهيلات:**

**قوله:** "مَاذَا عَلَيْهِ" يعنى دَمونځ ګذار مخې ته تيريدونکی ته که چرته په عين القين سره معلومه شي چه دَدې تيريدو سزا څومره سخته ده نوهغه به څلويښته کاله انتظار کولو اودَ مونځ ګذار مخې ته به نه تيريدو. سړې په پنځه مينټه انتظار کولوسره څومره ستړې کيږی نودَ څلويښتو کالو په انتظار کول اودريدل به څومره مشکل وی. ليکن دَ مونځ ګذار مخې ته دَ تيريدو دَ سخت عذاب دَ وجې نه که چرته څلويښت کاله حصاريدل هم وی نوبيا هم کم دی څکه چه مخې ته دَ تيريدو عذاب ډير زيات دې.[اشعة المعات: ۳۷۶]

**قوله:** أَرْبَعِينَ "

**د اربعين په تميز کښې سنة ته ترجيح ورکول:** په دې لفظ کښې شك پيدا شو چه دَ اربعين تميز څه دې آيا څلويښت ورځې يا څلويښت مياشتې او يا څلويښت کاله دی. دَحضرت ابوهريره رضي الله عنه يو روايت کوم چه امام طحاوی رحمه الله په مشکل الآثار کښې بيان کړې دې په کوم کښې چه دَ سلو کالوحصاريدو ذکردې. په دې سره امام طحاوی رحمه الله دا ثابت کړی دی چه زير نظرحديث کښې څلويښتونه څلويښت کاله مراد دی. بعضې رواياتو کښې "اربعين خريفاً اي سَنَةً".

**د مذکوره وعيد محمل:** علماؤ ليکلی دی دا وعيد دَهغه تيريدونکی باره کښې دې چه دَ مونځ ګذار مخې ته په پلنوالی تيريږی. بل دا په هغه صورت کښې دی کله چه تيريدونکې مونځ ګذار دَ سجدې دَ ځائی مخې ته تيريږی. بعضې فقهاؤ دَ مونځ ګذار بدن سره دَ لګيدلو قيد هم لګولې دې. بهرحال وعيد سخت دې. علماؤ دَ مجبورئی دَ وجې نه حرمين شريفين دَدې نه مستثنی ساتلی دی ګنی هلته به بياتوله ورځ څوك يوطرف ته هم لاړنه شي. ابن حجر رحمه الله کعبه دَ خلقو دَپاره ستره ګرځولې ده. (کذافی المرقات).

## ۷۷۷-د ستره او مولځگذار په مينځ کښې تيريدونکي لره دفع کول

۷۷۷-()[۲] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] "«إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ إِلَى شَيْءٍ يَسْتُرُهُ مِنَ النَّاسِ، [۳] فَأَرَادَ أَحَدٌ أَنْ يَجْتَازَ بَيْنَ يَدَيْهِ، فَلْيَدْفَعْهُ، [۴] فَإِنْ أَبَى فَلْيُقَاتِلْهُ، فَإِنَّمَا هُوَ شَيْطَانٌ» "، هَذَا لَفْظُ الْبُخَارِيِّ، وَلِمُسْلِمٍ مَعْنَاهُ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو سعيد ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هر کله چې په تاسو کې يو سړي داسې شي (يعني د سترې) طرف ته مونځ کوي چې د هغه او د خلقو په مينځ کې حائل وي [۳] او يو سړي د هغه مخې ته (يعني د لمانځه کونکي او د ستره په مينځ کښې) څخه د تيريدو اراده وکړي نو هغه منع کول پکار دي [۴] که هغه ونه مني نو هغه قتلول پکار دي ځکه چې هغه (په داسې صورت کې) شيطان دي د حديث الفاظ د بخاري دي او مسلم دا روايت بالمعني نقل کړي دي.

**حل اللغات:** ① يَسْتُرُهُ: چه پټ کړي ده لره، يعنی ستره دې اولګوی. ② يَجْتَازَ: تيريږی، تجاوز کوی، ③ فَلْيَدْفَعْهُ: منع دې کړی، ④ أَبَى: انکارئي اوکړو يعنی منع نه شو، ⑤ فَلْيُقَاتِلْهُ: أَيْ: فَلْيَدْفَعْهُ بِالْقَهْرِ: منع دې کړی په زورسره، ⑥ هُوَشَيْطَانٌ: أَي مِنْ شَيَاطِينِ الْإِنْسِ أَوِ الْجِنِّ أَوْفِعْلُهُ فِعْلُ شَيْطَانٍ: يعنی دا انسی شيطان دې يا جنی دې يا دا کار ئې د شيطانانو دې.

**تسهيلات:**

**قوله: "فَلْيَدْفَعْهُ"**

**په مانځه کښې د تيريدونکې منع کولو حکم:** په عمل کثيرسره دفع کول اجماعاً دَ مونځ دپاره مفسد دی بل دَ دفاع دا حق دَ سترې ساتلونه پس دې. که يومونځ ګذار ستره نه ده کيخودې نوجرم پخپله دَمونځ ګذاردې. باقی پاتې شوه دامسئله چه دفاع کول اولی او بهتر دی که غيراولی دی. نو په دې کښې تفصيل دې چه نفس دفاع خو مباح ده مګر دفاع کول دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزاولی دې. دَ جمهور فقهاؤ په نيزهم دفاع کول څه وجوبی حکم نه دې. په کومو احاديثو کښې چه دَ دفاع حکم راغلې دې هغه دَ بيان رخصت دپاره دې يا په شروع کښې وجوب وو بيا منسوخ شو. (کذافی الزيلعی)

**قوله: "فَلْيُقَاتِلْهُ"**

**د قتال نه مراد:** دادَ جنګيدو په معنی کښې دې دَقتل کولوپه معنی کښې نه دې. ځکه چه

---

[۱] اخرجه البخاری کتاب الصلوة باب: يرد المصلی من مر بين يديه (رقم-۵۰۹) ومسلم فی کتاب الصلوة باب منع المار بين يدی المصلی (رقم-۲۵۹ - (۵۰۵) وابوداود کتاب الصلاة،باب ما يؤمر المصلی أن يدرأ عن المر بين يديه (رقم-۷۰۰) وابن ما جة کتاب إقامة الصلاة، باب ادرأ ما استطعت (رقم -۹۵۴) ومالک فی الموطا کتاب قصر الصلاة فی السفر ، باب التشديد فی أن يمر أحد بين يدی المصلی (رقم-۳۳) والنسائی کتاب القبلة/باب التشديد فی المرور بين يدی المصلی وبين سترته (رقم) ۷۵۷

دَ قتال مفهوم دَ قتل دَ مفهوم نه جدا دي مگر بعضي رواياتو کښې "فليقتله" الفاظ راغلي دي دکوم نه چه په ظاهره باندې قتل کول مراد دي.

**د حديث په ظاهر عمل کولکي باندې عدم قصاص:** اوس که چا ظاهري حديث ته او کتل اودفاع ئې اوکړه او په دې سره هغه سړې واقعي مړشو نوقاضي عياض رحمه الله فرمائي چه دَ دفاع دَ حده پورې دفاع کولوسره که څوك مړشي. نودَ علماؤ په دې باندې اتفاق دې چه په دې کښې قصاص نشته دې. البته په ديت کښې اختلاف دې. بعضو ديت واجب کړې دې بعضي نه دې واجب کړې. "فانه شيطان" يعني اوس دا سړې دَ شيطان والا کار کوي. دَ شيطان په شان سرکشي باندې راغلي دي. نودې دَ شيطان په شان شو. اوکه څوك مونځ گذار دَ لارې په مينځ کښې اودريدو نو گناه به په هغه وي.

**۷۷۸-په سترې سره د مونځ محافظت**

٧٧٨ (١)[٧] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② "«تَقْطَعُ الصَّلَاةَ الْمَرْأَةُ وَالْحِمَارُ وَالْكَلْبُ، ③ وَيَقِي ذَلِكَ مِثْلُ مُؤْخِرَةِ الرَّحْلِ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل② ښځه، خر او سپي (د لمانځه کونکي مخې ته د تيريدو په صورت کې) مونځ باطلوي③ او د کجاوې د وروستني لرگي په شان څه شي (د لمانځه کونکي مخې ته ستره جوړولو سره) اينبودل مونځ د باطل کولو څخه محفوظه کوي. (مسلم.)

**حل اللغات:** ① مُؤْخِرَةِ الرَّحْلِ: الْخَشَبَةُ الَّتِي يَسْتَنِدُ إِلَيْهَا الرَّاكِبُ: د کجاوې شاته لرگې کومې ته چه ډډه لگولې شي.

**تسهيلات:**

**قوله: تَقْطَعُ الصَّلَاةَ:**

**د مونځگذار مخې ته د ښځې د تيريدو حکم:** دَدې حديث ظاهري الفاظ په دې باندې دلالت کوي که دَ يومونځ گذار مخې ته خر، ښځه او سپې تيرشو نودَهغه مونځ باطل شو لکه چه دې دريواړو څيزونو دَدغه سړي مونځ باطل کړو. اوس سوال دادې چه داحديث هم دغه شان په ظاهرباندې دې يادَ نورو احاديثو دَ وجې نه دَ دې ظاهر مؤول بتاويل دې په دې کښې دَ فقهاء کرامو اختلاف دې.

**د مونځگذار مخې ته د ښځې خر او سپي په تيريدو سره د مونځ په فساد کښې مذاهب:**

① دَامام احمد بن حنبل رحمه الله او اهل ظواهر په نيز دَښځې خر اوسپي د مونځگذار مخې ته

(١) اخرجه مسلم كتاب الصلوة باب قدر ما يستر المصلى (رقم-٢٦٦ - (٥١١) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، باب ما يقطع الصلاة (رقم-٩٥٠)

په تيريدو سره مونځ فاسد کيږي. امام احمد رحمه الله د نورو احاديثو د وجې نه د ښځې اوخر د تيريدو باره کښې په شك کښې پريوتلو اودا فتوئ ورکړه چه صرف د سپي په تيريدو سره مونځ ماتيږي. بيائي په سپي کښې هم بعض رواياتو کښې د تور قيد لګولې وو نوهغوی تور سپي د مونځ ماتونکي اوګرځولو باقي هيڅ څيز نه.

⑦ د ريواړه ائمه امام مالك، امام ابوحنيفه او امام شافعي رحمهم الله په نيزباندې ښځه، خر او سپي يا د دې نه علاوه څه بل څه انسان اوحيوان که د مونځ ګذار مخې ته تيرشي نو په دې سره مونځ نه باطل کيږي.

**د اول فريق دليل:** زيربحث حديث د حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت د دوی مستدل دې په کوم کښې چه په واضحه توګه درې څيزونه قاطع صلوة ګرځولې شوی دی. په ابوداؤد شريف کښې دا الفاظ راغلي دي "قال يقطع الصلوة المرأة الحائض والكلب" (ص ۱۰۳)

**د اول فريق د دليل جوابونه:** ① د قطع الصلوة نه مراد خشوع اوخضوع اوتعلق د الله تعالى خاص رابطه ده اوهغه کټ کيږي ځکه چه د دغه څيزونونه سپي اوخر مضرالجسم دی او ښځه مضر بالميل والحسن ده ځکه چه دا دريواړه انواع وسواس د شيطان مراکز دې د کوم په ذريعه چه شيطان د مونځ ګذار نورانيت اوالله تعالى سره رابطه او توجو اوتسلسل کټ کوی نو مونځ نه ماتيږي علاقه کټ کيږي دغه شان به په ټولو رواياتو کښې تطبيق راشي.

⑦ د دې دريواړو څيزونو په فساد کښې د مبالغه طرف ته اشاره کړې شوې ده چه د دې فتنه ډيره سخته ده په مانځه کښې د دې نه بچ شئ لکه چه دا د احتياط او احتراز طرف ته توجو راګرځول دی.

⑦ دا روايت په وړاندې روايتونو باندې منسوخ دې. پخپله حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دې څيزونو سره د مونځ ماتيدو اول قائل وو او د دې رواياتو راوی وو مګر روستو بيا هغوی د عدم قطع فتوئ ورکوله دا د نسخ دليل دې.

**د دويم فريق دلائل:** ① د حضرت عائشه حديث نمبر (۷۸۰) کوم چه د مشکوة په صفحه ۷۴ باندې موجود دې د هغې نه هم

⑦ د حضرت ابوسعيد خدری رضي الله عنه روايت د دوی مستدل دې. حديث نمبر (۷۸۵) چه مشکوة ص ۷۴ باندې موجود دې د کوم الفاظ چه دا دی: "لايقطع الصلوة شئ وادرؤا ما استطعتم. (رواه ابوداؤد)

عدم قطع الصلاة معلوميږي.

⑦ د حضرت فضل بن عباس رضي الله عنهما حديث نمبر (۷۸۳) هم د دوی مستدل دې. چه د مشکوة ص ۷۴ باندې موجود دې.

⑥ دَحضرت ابن عباس حدیث نمبر (۷۸) هم د دوی مستدل دې. کوم چه دَ مشکوة ص۷۴ باندې هغې نه هم
عدم قطع الصلاة معلومیږي. غرض دا چې دَدې ټولو احادیثونه معلومیږي چه ښځه خر او سپې قاطع الصلوة نه دی. حضرت عائشه رضی الله عنها په زوردار انداز سره دَدې تردید کړې او فرمائي: "شبهتمونا بالحمر والکلاب" (بخاري صفحه ۷۳)

**۷۷۹–د مونځ ګذار مخې ته د ښځې تیریدو سره د مونځ نه ماتیدل**

۷۷۹–()[۸][۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲]«كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ وَأَنَا مُعْتَرِضَةٌ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ [۳] كَاعْتِرَاضِ الْجَنَازَةِ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمایي [۲] چې رسول الله ﷺ به د شپې مونځ کولو او زه به د حضور ﷺ او قبلې په مینځ کې (یعني د حضور ﷺ مخې ته) داسې پرته وم [۳] څنګه چې جنازه د مونځ کونکي مخې ته پرته وي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① مُعْتَرِضَةٌ: أي مُضْطَجِعَةٌ: اعتراض د دوه څیزونو په مینځ کښې حائل جوړیدو ته وائي خو دلته ترې څملاستل مراد دی.

**تسهیلات:**

**قوله:** كَاعْتِرَاضِ الْجَنَازَةِ

**د ښځې په مس کولو د عدم نقض وضوء دلیل:** ددې حدیث پاك نه معلومه شوه که د مونځګزار مخې ته ښځه تیره شی نو دې سره مونځ نه ماتیږي. دا حدیث زمونږ دلیل دې چې مس امراة یعنی که سړې ښځه مس کړي نو دې سره اودس نه ماتیږي. او حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها چې څنګه ملاسته وه، ددې وجه صرف دا وه چې حجره مبارکه وړه وه او نفلو دپاره جدا ځائې نه وو.

**۷۸۰–د مونځ ګذار مخې ته د خر وغیره تیریدو سره د مونځ نه ماتیدل**

۷۸۰–()[۹][۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [۲]«أَقْبَلْتُ رَاكِبًا عَلَى أَتَانٍ، [۳] وَأَنَا يَوْمَئِذٍ قَدْ نَاهَزْتُ الِاحْتِلَامَ، [۴] وَرَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُصَلِّي بِالنَّاسِ بِمِنًى إِلَى غَيْرِ جِدَارٍ، [۵] فَمَرَرْتُ بَيْنَ يَدَيْ بَعْضِ الصَّفِّ، [۶] فَنَزَلْتُ وَأَرْسَلْتُ الْأَتَانَ تَرْتَعُ، [۷] وَدَخَلْتُ فِي الصَّفِّ، فَلَمْ يُنْكِرْ ذَلِكَ أَحَدٌ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

(۱) اخرجه البخاری کتاب الصلوة باب الصلاة علی الفراش (رقم-۳۸۳) مسلم فی کتاب الصلوة باب الاعتراض بین یدی المصلی رقم-۲۶۸ - (۵۱۲) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، باب من صلی وبینه وبین القبلة شیء (رقم-۹۵۶)

(۲) اخرجه البخاری کتاب الصلوة باب سترة الإمام سترة من خلفه (رقم-۴۹۳) مسلم فی کتاب الصلوة باب سترة المصلی (رقم) ۲۵۴ - (۵۰۴) وابوداو د کتاب الصلاة، باب من قال: الحمار لا یقطع الصلاة (رقم-۷۱۵) کتاب قصر الصلاة فی السفر، باب الرخصة فی المرور بین یدی المصلی (رقم-۳۸)

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي② چې زه يوه ورځ په خره سور راغلم③ او زه بالغيدو ته نزدې وم④ او حضور ﷺ په منئ کې د خلقو سره مونځ کولو او د حضور ﷺ مخې ته څه ديوال نه وو (يعني څه ستره يې نه وه او درولې⑤ زه د بعضې صف مخکې تير شوم⑥ بيا د خرې څخه بنکته کيدو سره هغه مې پريښودله هغه څريدله⑦ او زه په صف کې داخل شوم او مانه چا هيڅ ونه ويل. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① أَتَانٍ: يَعْنِي الْحِمَارَ الْأُنْثٰى: خره (مونث). ② نَاهَزْتُ: أَيْ: قَارَبْتُ: نزدې ووم، ③ الإِحْتِلَامَ: أَيِ: الْبُلُوغَ: بالغ کيدو ته وائى. ④ أَرْسَلْتُ: پريمې خودله، پرانستې مې پريخوده. ⑤ تَرْتَعُ: أَيْ: تَأْكُلُ الْحَشِيشَ: چه وابنه وغيره اوخوری، اوڅريږی.

**تسهيلات:**

**قوله: نَاهَزْتُ الإِحْتِلَامَ**

**د ناهزت قيد فائده:** ددې حديث مبارك حاصل دادې چې ابن عباس ﷺ فرمائى چې زه په خرۀ باندې سور راغلم ، او بلوغ ته نزدې ووم. دا خبره ئې څکه اوکړه چې هسې نه څوك تپوس اوکړي چې تا ولې مونځ اوکړو ، ته لابالغ هم نه وې. او په هغه وخت نبی کريم ﷺ منى کښې خلقو ته مونځ ورکولو.

**قوله: إِلٰى غَيْرِ جِدَارٍ**

**په غير کښې دوه احتمالات**

① که غير صفتيه وى نو په دې صورت کښې به معنى دا وى چې لاشئ مغاير للجدار، يعنى نبى کريم ﷺ جدار نه علاوه بل څيز ستره جوړه کړې وه. جدار ستره نه وه.

② که غير د ، ،دون، ، په معنى کښې وى ، نو ددې معنى به دا شى چې د جدار نه سوا بل طرفته ، يعنى ستره بالکل نه وه ، بغير سترې نه ئې مونځ ورکولو،

ځينې علماء کرامو په دې وجه په دې باندې يو مستقبل باب د باب صلوة بدون السترة په نوم سره قائم کړې دې،

**د خرې په مرور د مونځ عدم فساد:** دې خائې کښې اتان تير شو ، وائى چې د ځينو صفونو په مينځ کښې تير شو ، او زه د خرې نه راکوز شوم ، او هغه مې هغه شان پريښودله ، او صف کښې داخل شوم ، او په دې باندې چا بد اونه ګڼړل، مخکښې به خره څريده او ګرزيده ، معلومه شوه چې د هغوئ مرور قاطع للصلوة نه وو.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## ۷۸۱–همسا د سترې په ځاې استعمالول

۷۸۱–()[۱۰] ۱ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ " «إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ فَلْيَجْعَلْ تِلْقَاءَ وَجْهِهِ شَيْئًا، ۳ فَإِنْ لَمْ يَجِدْ، فَلْيَنْصِبْ عَصَاهُ ۴ فَإِنْ لَمْ يَكُنْ مَعَهُ عَصًى فَلْيَخْطُطْ خَطًّا، ۵ ثُمَّ لَا يَضُرُّهُ مَا مَرَّ أَمَامَهُ» "، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوهریره ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ هر کله چې په تاسو کې یو سړي مونځ کول غواړي نو خپل مخې ته دې څه شي (مَثَلًا دیوال، ستن وغیره) وګرځوي ۳ او که څه موجود نه وي نو خپله لکړه (همسا) دې ودروي ۴ او که د هغه سره همسا هم نه وي نو یوه کرښه دې وکاږي ۵ بیا که د هغه په مخکې څوك تیر شي نو څه حرج نشته (یعني په خشوع اوخضوع کې خلل نه پریوځي) (ابوداؤد، ابن ماجه.)

**حل اللغات:** ① فَلْيَنْصِبْ: نیغه دې اودروی، نیغه دې ښخه کړی، ② عَصَى: امسا، کوتې، ③ فَلْيَخْطُطْ: خط یعنی کرښه دې راکاږی.

**تسهیلات:**

**قوله: فَلْيَنْصِبْ عَصَاهُ:**

**مونځ ګزار دپاره د سترې په باره کښې څه سهولیات:** په دې حدیث کښې مونځ ته دَ ستره په معامله کښې څه آسانتیٰ ورکړی دی.

① که چاسره دَ ستره دَ پاره هیڅ هم نه وی نوهغه دې همسا د ستره په توګه مخې ته ښنبولو سره استعمالولې شی

② که زمکه سخته وی او دَ ښنبولوصورت نه شی جوړیدې نوبیا به په اوږدوالی باندې همسا مخې ته کیخودل هم کافی شی

**همسا په اوږدو باندې کیخود سره د سترې حکم اختلاف کښې اختلاف:** ① (شرح منیة المصلی) کښې لیکلی دی که څوك خپله همسا په ځائی دَ ښنبولوصرف په اوږدو مخې ته کیږدی نو دَ بعض علماء په نیز داسې کولوسره به دَ ستره عمل پوره شی.

② دَ بعض علماؤ په نیز دغه شان کیخودو سره دا ستره نه کافی کیږی. په کفایه کښې لیکلی دی که یوسړې همسا په ځائی دَښنبولو مخې ته کیخودل غواړی نودا په پلنوالی نه دی کیخودل پکار بلکه په اوږدوالی باندې کیخودل پکاردی.

③ که چاسره دَ ستره دَ پاره یوڅیزهم نه وی په لاس کښې همسا هم نه وی نوهغه دې خپلې

[۱] ) ماخرجه ابوداود فی کتاب الصلوة/ باب الخط اذا لم یجد عصا... رقم الحدیث ۶۸۹

مخې ته کربنه راکاږي او مونځ دې اوکړي دَهغه دَ ستره دَپاره دا کافي دی. په دې سره دَ مونځ ګذار دَ زړه شك شبه او دَ وسوسې نه تسلي حاصليدې شي.

**دَ کرښې راښکله د کفايت کښې دوه مذاهب:**

① دَ امام شافعي رحمه الله قول قديم او دَ امام احمد بن حنبل رحمه الله هم دغه مسلك دې چه کربنه راښکل دَ ستره دَپاره کافي کيږي. دَ احنافو متاخرينو علماؤ هم دا قول اختيارکړې دې.

② دَ احنافو اکثر علماء او دَ امام مالك په نيز کربنه راښکل دَستره دَپاره کافي نه دی په دې سره امتياز نه حاصليږي. دَا مام شافعي رحمه الله جديد قول هم دغه دې. صاحب دَهدايه هم دغه قول اخستې دې چه کربنې اعتبار نشته، بهرحال که په حديث اضطراب هم وی مګر دَ کربنې ذکر اودې ثبوت په حديث کښې موجود دې.

**دکربنې راښکلو په طريقه کښې څلور اقوال:**

بياعلماؤ دکربنې راښکلو په طريقه کښې مختلف دی

① بعضو دَ محرابي شکل دَ کربنې خبره کړې ده

② بعضو دَ اوږدوالي اړخ باندې ترجيح ورکړې ده

③ بعضو دَ پلنوالي کربنه خوښه کړې ده محرابي شکل ډير تسلئي سبب دې

④ دَ عامو احنافو په نيزد کربنې اعتبار دې دَ صاحب هدايه قول معتبر نه دې. محقق ابن همام رحمه الله او امام ابويوسف رحمه الله کربنه راښکل راجح ګرځوی.

**۷۸۲–دسترې نزدې اودرول**

۷۸۲–()[۱] ① وَعَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ② "«إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ إِلَى سُتْرَةٍ، فَلْيَدْنُ مِنْهَا، ③ لَا يَقْطَعِ الشَّيْطَانُ عَلَيْهِ صَلَاتَهُ»"، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① سهل ابن ابي حثمه رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هر کله چې په تاسو کې يو سړي د سترې طرف ته مونځ کوي نو هغه ته پکار دي چې سترې ته نزدې وي ③ چې شيطان د هغه مونځ مات نه کړي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① سُتْرَةٍ: په لغت کښې دَ پردې اوبنديز په معنی کښې دې دَ دې اصطلاحي مفهوم دادې چه ستره دَهرهغه څيز نوم دې چه دَ مونځ ګذار مخې ته اودرولې شی دې دَپاره چه په دې دَ مونځ ګذار دَ سجدې دَ ځائي پته اولګی او تيريدونکې ګناهګارنه شی. ② فَلْيَدْنُ: أَيْ: فَلْيَقْرَبْ: نزدې دې اودريږی.

---

[۱] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب الدنو من السترة (رقم–۶۹۵)

**تسهيلات:**

**قوله: فَلْيَدْنُ مِنْهَا**

(ستره ته دنژدي كيدو مطلب دا دي چې ستره دومره نژدي ودرول شي چې سجده هغه سره نژدي وشي چې شيطان د هغه په لمانځه كې خلل وانه چوي ځكه چې كه مونځ كونكي د ستره څخه لري ودريږي نو د هغه و مخ ته د چا د تيريدو احتمال به وي شيطان په داسې صورت كې د هغه په زړه كې د وسوسو او شبهاتو تخم كري چې په هغه سره حضوري قلب كې فرق راځي او په هر لمانځه كې د قلب د حضوري دولت نه حاصليږي نو لكه چې د هغه مونځ مات شو د دې وجهې چې د لمانځه كمال او ثواب بغير حضوري قلب نه حاصليږي نو ستره ته د نژدې د ودريدو په وجه به د دې آفت څخه ورته حفاظت حاصل وي.

**سترې ته د نزديكت په فاصله كښې دوه اقوال:**

① مونځگذار دې درې لاسه يعني د يو نيم گز په فاصله كښې ولاړ وي.

② دسجدې د مقدار مطابق به ستره لرې ساتي.

**۷۸۳-ستره بيخي د تندى مخې ته د اودرولو مما نعت**

۷۸۳-()[۱۲] [۱] وَعَنِ الْمِقْدَادِ بْنِ الْأَسْوَدِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [۲] «مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ يُصَلِّي إِلَى عُودٍ، وَلَا عَمُودٍ وَلَا شَجَرَةٍ [۳] إِلَّا جَعَلَهُ عَلَى حَاجِبِهِ الْأَيْمَنِ أَوِ الْأَيْسَرِ [۴] وَلَا يَصْمُدُ لَهُ صَمْدًا»، رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ

**ترجمه:** [۱] او حضرت مقداد بن اسود رضي الله عنه فرمايي [۲] چې ما رسول الله ﷺ هيڅ كله نه دي ليدلي چې د لرگي، ستن يا وُني طرف ته (مخ كولو سره) مونځ كوي او دا څيزونه بالكل د حضور ﷺ مخې ته ولاړ وي [۳] بلكه هغه به د حضور ﷺ د ښي يا گس وروځو (ابرو) مخې ته وو [۴] او حضور ﷺ به د هغې د سيده (بالكل دنيغ) قصد نه كولو. (ابوداؤد.)

**حل اللغات:** ① عُودٍ: نيغ لرگي، امسا، ② عَمُودٍ: كَالْأُسْطُوَانَةِ: ستن، ③ حَاجِبِهِ: أَيْ: جَانِبِهِ: طرف، ④ لَايَصْمُدُ: أَيْ: لَايَقْصِدُ: قصد به ئې نه كولو. ⑤ صَمْدًا: بالكل مخامخ به ورته د اودريدو قصد نه كولو.

**تسهيلات:**

**قوله: وَلَا يَصْمُدُ:**

**په جنازه كښې د ركوع او سجدې نه كولو حكمت:** اى لا يقصد قصداً يعنى بالكل دَ تندى او ستركو په وړاندې به ئې اراده نه فرمائيله بلكه ستره به ښى اوگس طرف ستركې مخې ته كيخودله دې دَپاره چه بت پرستو سره مشابهت پيدانه شى ځكه چه اسلام دَ توحيد علمبردار مذهب دې په دې كښې دَهغې لړ شك هم نه دې پكار چه څوك كتونكې دا خيال اوكړى چه دا سړې دَ دغه ستن وغيره عبادت كوى. په دې وجه به حضورپاك ستره بالكل

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب إذا صلى إلى سارية أو نحوها أين يجعلها منه (رقم-۶۹۳)

نيغه مخې ته دَ كيخودلو اراده نه كوله بلكه ښى طرف يا كس طرف اوريخې مخې ته به نى ستره كيخودله. اسلام دَ جنازې مونځ كښې ركوع اوسجده هم په دې وجه جائزنه ده كرځولې دې دپاره چه څوك مشرك دَ شرك په شك كښې پرينوځى.

**۷۸۳-د مونځ ځكذار مخې ته د سپى تيريدو سره د مونځ نه ماتيدل**

٧٨٣-()[۱۳] [۱] وَعَنِ الْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [۲] «أَتَانَا رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَنَحْنُ فِي بَادِيَةٍ لَنَا، وَمَعَهُ عَبَّاسٌ، [۳] فَصَلَّى فِي صَحْرَاءَ لَيْسَ بَيْنَ يَدَيْهِ سُتْرَةٌ، [۴] وَحِمَارَةٌ لَنَا وَكَلْبَةٌ تَعْبَثَانِ بَيْنَ يَدَيْهِ، [۵] فَمَا بَالَى بِذَلِكَ»، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَلِلنَّسَائِيِّ نَحْوُهُ

**ترجمه:** [۱] او فضل ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ يو ورځ مونږ ته تشريف راوړو او مونږ په ځنګل کې (خيمه زن) وو حضرت عباس رضي الله عنه هم ورسره وو [۳] حضور ﷺ په ځنګل کې مونځ (درسې) وکړو چې هيڅ ستره يې مخې ته نه وه [۴] زمونږ خرې او سپې به د حضور ﷺ مخې ته لوبې کولې [۵] خو حضور ﷺ د دې څه پرواه ونه کړله. (ابوداؤد، نسايي)

**حل اللغات:** ① بَادِيَة: بانده، صحرا، ځنګل، ② تَعْبَثَانِ: أَيْ تَلْعَبَانِ: لوبې به نې کولې. ③ فَمَا بَالَى: أَيْ: مَا الْتَفَتَ إِلَيْهِ: يعنى هيڅ پرواه ئې پرې اونکړه. ④ حمارة: دادَ حمار ښځې خرې ته وائى دا دَ اتان په نامه هم ياديږي.

**تسهيلات:**

**قوله: وَنَحْنُ فِي بَادِيَةٍ لَنَا:**

**د باديه تعارف:** دَ اهل عربو دستور وو چه هغوى به دَ موسم په اعتبارسره بعض ورځو کښې صحرا ته تلل اوخيمې به نى لګولې. دَدې مقصد دَ پاره دَهغوى خپلې خپلې علاقې خاص وې دغه علاقې به نى دَ باديه په نوم سره يادولې. يعنى ځنګلى دَ ځرن ځايونه، ځنګلى دَ ځرن دَ ځايو تذکرې عربو په خپل اشعاروکښې هم کړى دى اوداً دَهغوى دَ ژوند تيرولو يوه طريقه وه. اکثر به جګړې هم په دغه دَ ځرن په ځايونوکښې کيدلې. دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما هم يوځنګلى صحرائى علاقه وه فضل بن عباس رضي الله عنه هم دَدې ذکر کوى چه اباجان سره نبى اکرم ﷺ زمونږ دَ ځرن ځائى ته تشريف راوړو او په کولاؤ ميدان کښې نى مونځ ورکړو مخې ته ستره نه وه. خرې او سپئى خپل مينځ کښې لوبې کولې په لوبوکښې مشغول وو او رسول الله ﷺ دَهغوى هيڅ پرواه اونه کړه.

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة، باب من قال: الكلب لا يقطع الصلاة (رقم-۷۱۸) والنسائى كتاب القبلة/باب ذكر ما يقطع الصلاة وما لا يقطع إذا لم يكن بين يدى المصلى سترة رقم(۷۵۳)

**قوله:** وَكَلْبَةٌ:

**د حمارة او کلبة په تیریدو سره د مونځ عدم فساد:** دَ کلب مادې سپۍ ته وائي. خره او سپۍ دواړه ځیزونه چونکه دَ شیطان دَ ناستې مراکز دي په دې وجه دَدوی په خپل مینځ کښې ژورتعلق وی. دَدې حدیث نه چه یوطرف ته داخبره معلومیږي چه دَ خرو او سپو مخې ته تیریدوسره مونځ نه باطل کیږی نوبل طرف ته داخبر هم معلومیږی چه په صحراء کښې دَ سترې نه بغیرمونځ کړې شوې دې په دې وجه ستره واجب نه بلکه مستحب ده.

**۷۸۵-د مونځ ګذار مخې ته د چا په تیریدوسره د مونځ نه ماتیدل**

۷۸۵-()[۱۴][۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «لَا يَقْطَعُ الصَّلَاةَ شَيْءٌ، [۳] وَادْرَءُوا مَا اسْتَطَعْتُمْ، فَإِنَّمَا هُوَ شَيْطَانٌ» " رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ

**ترجمه:** [۱] ابو سعید رضی الله عنه راوي دي چه رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د لمانځه کونکي مخې ته تیریدونکي هیڅ شي هم مونځ نه ماتوي [۳] بیا هم [که څوك د لمانځه کونکي مخې ته تیر شی نو په لمانځه کې د خشوع او خضوع برقرار ساتلو په خاطر] تاسو حتی الامکان هغه منع کوي ځکه چې هغه تیریدونکي شیطان دي. (ابو داؤد.)

**حل اللغات:** ① وَادْرَءُوا: أي: ادْفَعُوا الْمَارَّ: منع کړئ (تیریدونکي).

**تسهیلات:**

د دې حدیث شرح په ۷۷۷ حدیث کښې تیره شوې ده

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

**۷۸۶-ښځې ته مخامخ د مونځ کولو جواز**

۷۸۶-()[۱۵][۱] عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] «كُنْتُ أَنَامُ بَيْنَ يَدَيْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَرِجْلَايَ فِي قِبْلَتِهِ، [۳] فَإِذَا سَجَدَ غَمَزَنِي، فَقَبَضْتُ رِجْلَيَّ، [۴] وَإِذَا قَامَ بَسَطْتُهُمَا [۵] قَالَتْ: وَالْبُيُوتُ يَوْمَئِذٍ لَيْسَ فِيهَا مَصَابِيحُ»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمايي [۲] چه زه به د رسول الله ﷺ مخې ته (داسې اوده ووم چې) زما دواړې پښې به د حضور ﷺ د قبلې طرف ته (یعنې د حضور ﷺ د سجدې په ځای) وې [۳] کله چې به حضور ﷺ سجده کوله نو زه به یې (یعنې زما پښې به یې) کښې ګاړلې نو ما به پښې راټولې کړلې [۴] او څه وخت چې به حضور ﷺ ودریدلو نو

---

[۱] اخرجه ابوداود کتاب الصلاة،باب من قال: لا يقطع الصلاة شيء (رقم-۷۱۹)

[۲] اخرجه البخاری کتاب الصلوة باب التطوع خلف المرأة (رقم-۵۱۳) ومسلم باب الاعتراض بين يدى المصلى (رقم)۲۷۲ - (۵۱۲) وابوداود کتاب الصلاة،باب من قال المرأة لا تقطع الصلاة (رقم -۷۱۲) وامالک فی الموطا کتاب صلاة الليل باب ما جاء فی صلاة الليل (رقم-۲) والنسائی کتاب الطهارة/ترک الوضوء من مس الرجل امرأته من غير شهوة (رقم)۱۶۸

ما به بيا ښني وغزولي ۵ او په هغه ورځو کې به په کورونوکي چراغونه (ډيوې) نه وې. (بخاري، مسلم.)

**حل اللغات:** ① غَمَزَنِي: اوبه ئې سکونډلم. ② قَبَضْتُ: نو مابه راټولې کړې. ③ مَصَابِيحُ: د مصباح جمع ده، ډيوې ته وائي.

**تسهيلات: قوله: "غَمَزَنِي"**

**د حديث نه معلومې شوې مسئلې:** ① دَ ښځې مخامخ کيدوسره مونځ نه باطل کيږي.

② ښځې له لاس اوړلوسره اودس نه ماتيږي.

③ هغه وخت به کورونه ډير واړه وو اودَ رڼړا انتظام نه وو. حضرت عائشه رضي الله عنها پخپله خپل عذر داسې بيانوي.

④ عمل قليل په مونځ کښې جائز دې.

⑤ که چرته يو سړې په تهجد کښې مشغول دې نوبل ته دَ سملاستو اجازت دې.

## ۷۸۲-د مونځ ګذار مخې ته د تيريدو ګناه

۷۸۲-(۱)[۱۹] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ «لَوْ يَعْلَمُ أَحَدُكُمْ مَا لَهُ فِي أَنْ يَمُرَّ بَيْنَ يَدَيْ أَخِيهِ مُعْتَرِضًا فِي الصَّلَاةِ، ۳ كَانَ لَأَنْ يُقِيمَ مِائَةَ عَامٍ خَيْرٌ لَهُ مِنَ الْخُطْوَةِ الَّتِي خَطَا» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ ابوهريره رضي الله عنه راوي دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ که په تاسو کې څوك په دې پوهه شي چې د خپل مسلمان ورور د مخې ته هر کله چې هغه مونځ کوي عرضاً تيريدل څومره لويه ګناه ده ۳ نو هغه ته به د سلو کلو پورې ودريدل د يو قدم مخکې تلو څخه بهتر معلوم شي. (ابن ماجه.)

**حل اللغات:** ① مُعْتَرِضًا: اعتراض د دوه څيزونو په مينځ کښې حائل جوړيدو ته وائي دلته ترې په پلنوالي مخې ته تيريدل مراد دی. ② الْخُطْوَةُ: يعنی قدم اخستل.

**تسهيلات:**

**قوله: لَأَنْ يُقِيمَ مِائَةَ عَامٍ**

**اشکال:** ماقبل حديث کښې صرف داربعين د لفظ ذکردې. دلته د مائة ذکر عام دې. دواړو احاديثو کښې تعارض دې.

**د اشکال دوه جوابونه:** ① اول به د مائة علم ورکړې شوې وی او بياد اربعين،

② عدد اقل د عدد اکثر منافی نه دې.

(۱) اخرجه ابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، باب المرور بين يدى المصلى (رقم-۹۴۶)

**۷۸۸- د مونځ كوونكي مخې ته د تيريدو د سزا په مقابله كښې په زمكه ښخيدل خوښول**

۷۸۸- (۱) [۱۷] ۱ وَعَنْ كَعْبِ الْأَحْبَارِ، قَالَ: ۲ «لَوْيَعْلَمُ الْمَارُّ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّي مَاذَا عَلَيْهِ ۳ لَكَانَ أَنْ يُخْسَفَ بِهِ خَيْرًا مِنْ أَنْ يَمُرَّ بَيْنَ يَدَيْهِ» ۴ وَفِي رِوَايَةٍ: أَهْوَنَ عَلَيْهِ» ، رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** ۱ كعب احبار رضي الله عنه فرمايي ۲ چه د لمانځه كونكي مخې ته تيريدونكي كه په دې پوهه شي چې (د هغه د دې جرم) سزا څه ده ؟ ۳ نو هغه ته به په زمكه كې خپل غرقيدل د لمانځه كونكي مخې ته د تيريدو څخه زيات بهتر معلوم شي ۴ او په يو روايت كې په خاى د بهتر زيات اسان لفظ دي، مالك.

**حل اللغات:** ① الْمَارُّ: تيريدونكي، ② يُخْسَفَ: چه زمكه كښې غرق او ښخ كړې شي.

**تسهيلات: قوله:** لَكَانَ أَنْ يُخْسَفَ بِهِ

**د دواړو احاديثو مطلب:** ① امام طيبي رحمة الله عليه د دواړو احاديثو دا مطلب بيانوى :لو يعلم المار ما عليهمن الاثم لا قام مائة عام وكانت الاقامة خيرا: يعنى كه تيريدونكى ته ددې علم اوشي نو يوې صدى پورې به ولاړ وى ، او هغه دپاره به دومره مقدار ولاړه بهتر وى.

② دې حديث پاك كښې به د خيرا مطلب دا وى ((لويعلم ماذا عليه من الاثم لتمنى الخسف وكان الخسف خيراله)) يعنى كه ددې ګناه علم ورته اوشي نو هغه به دمخكښې تيريدو په ځائې په زمكه كښې د ښخيدو خواهش اوكړى ، اوښخيدل ددې ګناه نه بهتر دى.

**قوله:** خَيْرًا

**د خيرپه اعراب كښې دوه اقوال:** ① ځيني حضراتو اول حديث مبارك كښې « خيرا» نصب سره لوستې دې. او دې حديث مبارك كښې يې «خيرا» مرفوع لوستلې دې.

**۷۸۹- د مونځ كوونكي مخې ته د تيريدل دپاره د مسافت ساتلو مقدار**

۷۸۹- (۲) [۱۸] ۱ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ۲ "«إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ إِلَى غَيْرِ السُّتْرَةِ، ۳ فَإِنَّهُ يَقْطَعُ صَلَاتَهُ الْحِمَارُ، وَالْخِنْزِيرُ، وَالْيَهُودِيُّ، وَالْمَجُوسِيُّ، وَالْمَرْأَةُ، ۴ وَتُجْزِءُ عَنْهُ إِذَا مَرُّوا بَيْنَ يَدَيْهِ عَلَى قَذْفَةٍ بِحَجَرٍ» "، رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ

**ترجمه:** ۱ ابن عباس رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ په تاسو كې چې كوم سړي بغير د ستري مونځ كوي ۳ د هغه مونځ د هغه مخې ته خر، خنزير، يهودي، مجوسي (اتش پرست) او د ښځې په تيريدو سره ماتيږي ۴ البته كه د يوكاڼي ويشتو د مسافت په فاصله تير شي نو څه حرج نشته. (ابوداؤد.)

**حل اللغات:** ① قَذْفَةٍ: أي: رَمْيَةٍ: ويشتل، لرې غورځول.

---

(۱) اخرجه مالک فی الموطا کتاب قصر الصلاة فی السفر، باب التشديد فی أن يمر أحد بين يدى المصلى (رقم-۳۵)

(۲) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة، باب ما يقطع الصلاة (رقم-۷۰٤)

**تسهیلات:**

**قوله: وَالْيَهُودِيُّ، وَالْمَجُوسِيُّ:**

**د مذکوره کسانو په تیریدو سره په مونځ کښې د نقصان وجه:** یهودیان مجوسیان او خنزیر هم دَ خرو اوسپو په شان دَ شیطانانو مراکز دی لهذا دَ هغې مخې ته تیریدو سره هم دَمونځ گذار دَالله تعالی خاص رابطه خشوع اوخضوع خاص کیفیت متاثر کیدې شی. فصل اول کښې حدیث نمبر(۷۷۸) توضیح اوتشریح اودَدې حدیث توضیح یوشان ده هم هلته ئې اوگورئې.

**اشکال:** دَدې حدیث روایت پخپله حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په کوم کښې چه دَ مونځ باطل کیدو حکم ذکردې اوهم دغه حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په حدیث نمبر(۷۸۰) کښې بیان فرمائې چه خره دَ مونځ گذارو مخې ته څریدله او چاپه دې باندې نکیراونه کړو.

**داشکال جواب:** دَدې نه معلومه شوه چه هم پخپله حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دَخپل روایت نه رجوع اوکړه دادَدې روایت منسوخ کیدو دلیل دې یا هم هغه توجیه اوتطبیق دې کوم چه دَ حدیث نمبر(۷۷۷)په تشریح کښې ذکردې.

**قوله: قَذْفَةٍ بِحَجَرٍ:**

**د مذکوره جملې مطلب:** حجر کانړی ته وائی اوقذفة دَ غورزولو په معنی کښې دې. وړوکی کانړی سرې په گوتو کښې نیولو سره غورزه وی دې ته قذف وائی. دلته شاید هغه فاصله مراد ده چه په منی کښې جمرات په کانړو باندې ویشتلې شی هغه فاصله درې لاسه پورې وی نودَدې حدیث مطلب داشو چه کله دا څیزونه دَ مونځ گذاردَمخې نه په درې لاسه فاصله باندې تیرشی نودَ مونځ گذار به هیڅ نقصان نه وی اودَتیریدونکی دَپاره هم څه حرج نشته.

**د مونځگذار مخې ته د تیریدو د جواز دپاره د فاصلې په تعین کښې اقوال:**

① بعض فقهاء دَ پنځو ذراع دننه تیریدل منع کړی دی بعضو څلویښت ذراع فاصله کښې دننه تیریدل منع کړی دی.

② بعض فقهاء درې ذراع یعنی درې لاسه قول کړې دې. لکه څنگه چه په دې حدیث کښې دې طرف ته اشاره کړې ده. لیکن دریو ذراع په فاصله کښې دننه تیریدل منع دی دې نه پس جائزدی.

③ بعض فقهاؤ وئیلی دی چه دَ سجدې په حدود کښې تیریدل منع دی بعضو دوه یا دریو صفونو فاصله کښې دننه تیریدل منع کړی دی.

④ شیخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې لیکلی دی چه صحیح خبره داده چه کله دَ خشوع خضوع والا مونځ گذار مونځ کوی اود قیام په حالت کښې نظر بښکته کولو سره خپل دَ

سجدې ځائی ته ګوری نودکوم ځائی چه تیریدونکی په نظر نه راځی دهغه ځائی پورې تیریدل جائزنه دی. اودَ کوم ځائی نه چه هغه په نظر نه راځی دَ هغه ځائی نه تیریدل جائزدی ځکه چه مونځ ګذار دَخپل قیام په حالت کښې خپل دَ سجدې ځائی ته ګوری. په رکوع کښې خپلو قدمونوته ګوری او په سجده کښې دَ خپلې پوزې سپیږموته ګوری په قعده کښې خپلې غیږ ته ګوری اودَ سلام په وخت خپلو اوګوته ګوری. [اشعة المعات: ۳۷۹]

**د سجدې په ځائې کښې د تیریدو حکم:** قاضی خان اوصاحب دَهدایه دَ سجدې ځائی کښې دننه تیریدل منع لیکلی دی چه دَ حدیث دا سخت وعید دَهغه سړی دَپاره دې ځوک چه دَ مونځ ګذار دَ سجدې په ځائی کښې تیریږی دا آسان اوواضح دې.

**په ورګوټی جمات یا ځائې کښې د مونځګذار مخې ته د تیریدو حکم:** بیا دامسئله هغه وخت ده کله چه په صحرا یا کولاؤ میدان کښې یا شپیته ګزه لوئی جمات کښې دَ سړی تیریدل وی. که جمات وړوکې وی نودَ مونځ ګذار مخې ته په یوځائی کښې هم نه شی تیریدلې ځکه چه پوره جمات واحد موضع وی. بهرحال مونځ ګذارله هم پکاردی چه هغه دې اخوا دیخوا نه ګوری بلکه الله تعالی طرف ته دې داسې متوجه شی چه دَ یوتیریدونکی هغه ته هډو احساس هم نه وی آخردَ خپل رب په وړاندې ولاړ دې.

**د مجنون واقعه:** وائی چه یوځل مجنون یوځائی کښې دَ لیلی په غم کښې سروالې بروالې روان وو چه دَهغه تیریدل دَ یو مونځ ګذارمخې ته اوشو. مونځ ګذار هغه ډیر اورټلو چه زه مونځ کوم ته زما مخې ته تیریږې شرم اوکړه. مجنون تپوس اوکړو چه تادَ څا دَپاره مونځ کولو، مونځ ګذار اووئیل دَ خپل رب په وړاندې ولاړ ووم دَهغه دَپاره مې مونځ کولو. مجنون ورته اووئیل شرم اوکړه چرته په چونګ اوبوکښې ډوب شه مړه شه زه دَ لیلی په محبت کښې روان ووم ته مې اونه لیدلې ته دَ الله تعالی په وړاندې ولاړوې زه دې څنګه اولیدلم؟

# [۱۰/۲۷]بَابُ صِفَةِ الصَّلَاةِ]

## دَ مانځه ادا کولو طریقه

**خلاصة الباب:**

**فیه اثنان وعشرون حدیثاً تشتمل علی اثنی عشر مسئلة:**

① حکم تعدیل الأرکان فی الصلوة: ۱، ۲، ۱۲، ۱۵، ۲۲۔

② کیفیة صلوة النبی ﷺ إجمالاً وتفصیلاً: ۲، ۳، ۴، ، ۶، ۷، ۸، ۱۲۔

③ إثبات رفع الیدین فی الخفض والرفع في الصلاة: ۴، ۵، ۶، ۸، ۱۲۔

④ حد رفع الیدین في الصلاة : ۳، ۴، ۶، ۱۲، ۱۳۔

⑤ کیفیة القیام إلی الرکعة الثالثة: ۱، ۷۔

⑥ کیفیة وضع الیدین فی القیام: ۹، ۱۴۔

⑦ حکم التکبیرات الانتقالیة والجهربها: ۸، ۱۰، ۱۲ ،۱۷، ۱۸، ۱۹،

⑧ فضیلة طول القیام بالقراءة: ۱۱۔

⑨ کیفیة القعدة : ۲، ۳، ۱۲۔

⑩ الخضوع والتشهد فی کل رکعتین:۲، ۱۶۔

⑪ عدم رفع الیدین : ۲۰۔

⑫ استقبال القبلة وقت رفع الیدین: ۲۱۔

**ماقبل سره ربط:** تراوسه پورې د مونځ د وسائلو او مقدماتو بیان وو.اوس ددے ځائې نه د مقصود یعنی مونځ ذکر کوی.

**د وصف او صفت په مینځ کښې فرق:** داهل لغت په نیز وصف او صفت دواړه مترادف دی.او دواړه مصدر دی.لکه ،،وعد،، او ،،دعوة،، او په متکلمینو کښې زمونږ د عالمانو ﷺ په نیز وصف د واصف کلام دې.او صفت هغه معنی ده.کومه چه موصوف سره قائمه وی.نو،،زید عالم،، د زید وصف دې. صفت ئې نه دې.او دده علم کوم چه ده سره قائم دې.صفت دې. صف نه دې.

**د صفت نه په مراد کښې درې اقوال:** باقی پاتې شوه دا خبره چه دلته د ،،صفت،، نه څه مراد دی.نو په دے باره کښې اختلاف دې.

① دلته مضاف محذوف دې.تقدیری عبارت دا دې. «باب صفة اجزاء الصلاة»په دے صورت کښې د صفت نه مراد کیفیت دې.یعنی دا باب د مونځ د اجزاؤ د کیفیت،وجوب ،اوفرضیت وغیره په بیان کښے دې.

③ د صفت نه مراد هغه امور دي.كوم چه په دے باب كښې مذكور دي.يعنې واجبات، فرائض، سنن او مندوبات نو په دے صورت كښې د صفت اضافت ،،صلاة،، ته د ،،اضافت جزء الى الكل،، د قبيلے څخه دي. ځكه چه په صفات مذكورو كښې هر يوصفت د مانځه جزء دي.

④صاحب د ،،عنايه،، فرمائي.چه ظاهره دا ده.چه د صفت نه مراد د مانځه هغه هيئت دي.كوم چه ددے د اركانو او عوارضو نه حاصل وي

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### [٧٩٠]د مانځه كولو صحيح طريقه

٧٩٠-()[١]①«عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-②أَنَّ رَجُلًا دَخَلَ الْمَسْجِدَ وَرَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-جَالِسٌ فِي نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ، فَصَلَّى،③ ثُمَّ جَاءَ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "وَعَلَيْكَ السَّلَامُ،④ ارْجِعْ فَصَلِّ، فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ "⑤فَرَجَعَ فَصَلَّى، ثُمَّ جَاءَ، فَسَلَّمَ،⑥فَقَالَ: "وَعَلَيْكَ السَّلَامُ، ارْجِعْ فَصَلِّ، فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ "،

**ترجمه:** ① حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمايي② چه رسول الله ﷺ د مسجد په يو كونج كې تشريف فرما وو چې يو سړي په مسجد كې داخل شو ‹روميې› هغه مونځ وكړو [داسې چې د تعديل اركان او قومه او جلسه رعايت يې ونه اوكړو]③ بيا د حضور ﷺ په خدمت كې حاضر شو او سلام يې عرض كړو حضور ﷺ د سلام جواب وركړو [او ورته يې وفرمايل] ④لاړ شه بيا مونځ اوكړه ځكه چې تا مونځ نه دي كړي⑤ هغه پاځيدو او د مخكې په شان يې بيا مونځ وكړو او د حضور ﷺ په خدمت كې راغې سلام يې عرض كړو ⑥حضور ﷺ د سلام جواب وركړو ورته وي فرمايل چې لاړ شه بيا مونځ اوكړه ځكه چې تا مونځ نه دي كړي ‹دا رنګه درې خله وشو›

①فَقَالَ فِي الثَّالِثَةِ-أَوْ فِي الَّتِي بَعْدَهَا-: عَلِّمْنِي يَا رَسُولَ اللَّهِ②فَقَالَ: "إِذَا قُمْتَ إِلَى الصَّلَاةِ فَأَسْبِغِ الْوُضُوءَ،③ ثُمَّ اسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ فَكَبِّرْ،④ ثُمَّ اقْرَأْ بِمَا تَيَسَّرَ مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ،⑤ ثُمَّ ارْكَعْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ رَاكِعًا،⑥ ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَسْتَوِيَ قَائِمًا،⑦ ثُمَّ اسْجُدْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا،⑧ ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ جَالِسًا،⑨ ثُمَّ اسْجُدْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا،⑩ ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ جَالِسًا⑪وَفِي رِوَايَةٍ: "ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَسْتَوِيَ قَائِمًا،⑫ثُمَّ افْعَلْ ذَلِكَ فِي صَلَاتِكَ كُلِّهَا»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

[١] اخرجه البخاري كتاب الاذان باب وجوب القراءة للإمام والمأموم في الصلوات كلها، في الحضر والسفر، وما يجهر فيها وما يخافت(رقم-٧٥٧) ومسلم كتاب الصلوة باب: اقرأ ما تيسر معک من القرآن(رقم) ٤٥ - (٣٩٧) وابوداود كتاب الصلاة،باب صلاة من لا يقيم صلبه في الركوع والسجود(رقم-٨٥٦) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، باب إتمام الصلاة (رقم-١٠٦٠) والترمذي كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في وصف الصلاة (رقم-٣٠٣)

**ترجمه:** [۱] دریم یا څلورم ځل هغه سړي عرض وکړو چې یا رسول الله ﷺ ماته يې راوښايه (چې زه څنګه مونځ وکړم) [۲] حضور ﷺ ورته وفرمايل هر کله چې ته د لمانځه کولو اراده وکړې نو (مخکې) په ښه شان اودس اوکړه [۳] بيا قبلې طرف ته مخ کړه او ودريږه او تکبير اووايه [۴] بيا د قرآن يوسورت وغيره کوم چې تا ته اسان معلوم وي هغه اووايه [۵] بيا په اطمينان سره رکوع وکړه [۶] بيا سر اوچت کړه تر دې چې نيغ ودريږې [۷] او بيا په اطمينان سره سجده وکړه [۸] بيا سر اوچت کړه او په اطمينان سره کينه [۹] او بيا په اطمينان سره (دويمه) سجده وکړه [۱۰] بيا سر اوچت کړه او په اطمينان سره کينه [۱۱] په يو روايت کې دا الفاظ هم دي چې بيا سر اوچت کړه او سيده ودريږه (په دې روايت کې د جلسهٔ استراحت ذکر نشته) [۱۲] بيا خپل ټول مونځ دغسې ادا کړه. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① نَاحِيَةِ: أَيْ: فِي جَانِبٍ: طرف او ګوټ ته وائی. ② فَأَسْبِغِ: أَيْ: أَتِمَّهُ يَعْنِي تَوَضَّأْ وُضُوءًا تَامًّا: کامل يعنی په صحيح طريقه اودس اوکړه.

**قوله: "أَنَّ رَجُلًا"**

**د رجل مصداق:** دَ دې سړی نوم خلادبن رافع انصاری رضي الله عنه دې. دا بدری صحابی دې اوهم په بدر کښې شهيدشوې دې. لهذا دا قصه دَ جنګ بدر نه دَمخکښې وخت ده. دې حديث ته دَ "حديث المسئ للصلوة" نوم ورکړې شوې دې.

**قوله: فَصَلَّى،"**

**د صلاة نه مراد:** دې مونځ نه تحية المسجد مونځ مراد دې اوهغه وخت به صحابه کرام دَتحية المسجد مونځ کولو نه پس په ادب سره راتلل حضورپاك سره به ئې مصافحه کوله.

"فانك لم تصل"

**د مونځ راګرځولو حکم کولو وجه:** حضورپاك خلاد بن رافع انصاری رضي الله عنه ته دَ مونځ راګرځولو حکم ځکه ورکړو چه هغه رکوع سجده جلسه اوقومه کښې تعديل دَ ارکان نه وو کړې.

**په حديث د تقرير على الخطا اشکال -** دَ حضورپاك په وړاندې خلاد بن رافع رضي الله عنه مونځ کولوکښې غلطی کوله حضورپاك هغه ته دَهغه غلطی اونه خودله بلکه دغه شان ئی ورته دَمونځ بار بار کولوحکم ورکړو دا تقريرعلی الخطاء دې حالانکه دَ حضورپاك دَ طرف نه تقريرعلی الخطاء محال ده داسې ولې اوشو؟

**دااشکال جواب:** حضوراکرم ﷺ بار بار هغه ته حکم ورکړو چه ستا مونځ ټيك ادانه شو لاړشه بيا صحيح مونځ اوکړه. دَ مونځ دَ راګرځولوداحکم تقريرعلی الخطاء نه دې بلکه تنبيه علی الخطاء ده.

**درې ځله د مونځ په راګرځولو کښې حکمت:** ① کيدې شی حضورپاك دا اکتل غوښتل چه

آیا داسې داغلطی دَ علم دَنشتوالی دَ وجې نه کوی یا دَغفلت دَ وجې نه داسې کوی. کله چه ښه معلومه شوه چه داغلطی دَعدم علم دَ وجې نه ده نوبیا حضورپاك هغه پوهه کړو اوصحیح طریقه ئې ورته اوخودله.

② بار باردَمونځ راګرځولو حکم په دې وجه ورکړې شو چه بار بار غلطی کولونه پس چه کله صحیح طریقه باندې هغه پوهه کړې شي نوهغه به واقع فی النفس وی اوهغه به ئې زده کړی اوبیابه داسې غلطی نه کوی. حضورپاك دَ خلاد بن رافع رضی الله عنه په مطالبه باندې هغه ته نه صرف مونځ بلکه دَ اودس نه واخله تر دَ مونځ دَ ټولو ارکانو تفصیل اوخودلو اودَ امت مخې ته دَ صحیح مونځ کولو پوره طریقه راغله.

**قوله: "ثُمَّ اقْرَأْ"**

**د قراءت فرضیت ته اشاره:** یعنی دَ تکبیر تحریمه نه پس قرآن وایه کومه حصه دَ قرآن چه تاته آسانه ښکاری هم هغه وایه. دا دَ قرأت فرض کیدو طرف ته اشاره ده اودَ الفاظو انداز داسې دې چه مطلق قرأت فرض دې دَ فاتحه ذکرنشته دې. اګرچه مسند احمد ، سنن بیهقی او ابن حبان کښې "ثم اقراء بأم القرآن" لفاظ راغلی دی هغه اختلاف روستو راځی.

**قوله: حَتّٰى تَطْمَئِنَّ رَاكِعًا"**

**د ارکانو په ادا کولو کښې د اطمینان مفهوم:** دَ مانځه هریورکن دَ هغې په خپل ځائې اداکول او په هررکن کښې په دومره اندازه باندې حصاریدل چه دَ بدن هریوجوړ په خپل ځائې نیغ شی دې ته تعدیل وائی.

**د تعدیل ارکان په حکم کښې مذاهب:**

په دې دَ ټولو فقهاؤ کرام اتفاق دې چه رکوع او سجده، قومخه او جلسه کښې تعدیل کول پکاردی او په مزه مزه هریورکن اداکول پکاردی. خواختلاف په دې کښې پیدا شوې دې چه دَدې تعدیل څه حیثیت دې. ① امام شافعی رحمه الله امام احمدبن حنبل رحمه الله اوامام ابویوسف رحمه الله په نیز تعدیل دَ ارکانو فرض دې. امام شافعی رحمه الله او قاضی ابویوسف رحمه الله دَ یوځل سبحان الله په اندازه پورې حصاریدلوته فرض وائی. او امام احمد رحمه الله درې ځل سبحان الله په اندازه باندې حصاریدل فرض ګڼری. دَ امام مالك رحمه الله مسلك دلته واضح نه دې.

② دَ امام ابوحنیفه رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نیز تعدیل دَ ارکان فرض نه بلکه واجب دې.

**داول فریق دلائل:** دَ حضرت خلاد بن رافع انصاری رضی الله عنه زیر بحث حدیث د دوی مستدل دې. په دې حدیث کښې دَ مونځ دَ راګرځولوحکم دې کوم چه دَ فرضیت دلیل دې بل په دې کښې "فانك لم تصل" کښې بالکل دَمونځ نفی اوکړه. داهم دَ فرضیت دلیل دې. دغه شان په دې حدیث کښې دَ طمانیت حکم اوامر کړې دې اومطلق امر دَ فرضیت دَپاره وی.

**داول فريق د دليل جواب:** ① ترمذي كښې دَخلاد بن رافع ﷺ دَ روايت په آخره كښې د حضورپاك دا ارشاد هم موجود دې «اذا فعلت ذلك فقد تمت صلوتك وان انتقصت منه شيأ انتقصت من صلوتك» په دې عبارت باندې راوي داسې تبصره كوي "وكان هذا اهون عليهم من الاولى، انه من انتقض من ذلك شيئا انتقص من صلوته ولم تذهب كلها".

دَدې حاصل دا شو چه اول صحابه كرامو ته دَ حضورپاك په ارشاد "انك لم تصل" سره پريشاني پيدا شوه چه تعديل نه كولوسره مونځ فوت كيږي ليكن چه كله حضورپاك په آخره كښې وضاحت اوكړو نوصحابه كرامو ته تسلي اوشوه چه ټول مونځ نه ځي بلكه ناقص كيږي دې سره فرضيت نه ثابتيږي.

② دا نفي دكمال ده دَ اصل مونځ نفي مراد نه ده.

③ دا اختلاف په حقيقت كښې دَ اعتقاد اختلاف دې چه هغوي ورته فرض وائي اومونږ ورته واجب وايو ګني دَ عمل په اعتبارسره هيڅ اختلاف نشته دې ځكه چه په ترك واجب سره دَ احنافو په نيز هم مونځ راګرځول لازم دي.

**داول فريق دويم دليل:** ② دغه شان دَترمذي يو روايت دې دكوم الفاظ چه داسې دي «لاتجزئي صلوة لايقيم الرجل فيها يعني صلبه في الركوع والسجود» په دې سره جمهورو دَ تعديل فرض كيدو باندې استدلال كړې دې.

**داول فريق د دويم دليل جواب:** دَ قرآن كريم دَ آيت ﴿وَارْكَعُوْاوَاسْجُدُوْا﴾ نه استدلال كړې دې طرز دَ استدلال داسې دې چه "سجده وضع الجبهة على الارض" نوم دې اوركوع مطلق انحناء ته وائي اوس په دې باندې دَتعديل اركان اضافه خبر واحدسره په آيت باندې اضافه ده كوم چه مناسب نه ده. لهذا مطلق ركوع اوسجده فرض ده او تعديل دَ اركان په وجه دَ حديث واجب دي.

**د دويم فريق دلائل:** ① د اول فريق د دليل جواب كوم چې پورته ذكرشو هغه د دويم فريق دليل هم دې.نوهغه په دلائلو كښې شمار كړه.بل دَ فرض دَ ثبوت دَپاره نص قطعي الثبوت والدلالة ضرورت دې اودلته حديث قطعي الثبوت نشته اګرچه قطعي الدلالة دې نوظني الثبوت قطعي الدلالة نص سره فرض نه بلكه واجب ثابتيږي.

② دَ مسند احمد اوطبراني هغه د دوي مستدل دې. په كوم كښې چه دَ مانځه نه دَ غلا كولو بيان دې الفاظ دادي: «ان اسوء السرقة من يسرق من صلوته قالوا كيف يسرق من صلوته قال لايتم ركوعها ولا سجودها»

په دې حديث كښې تعديل اركان نه كونكې سړي ته دَ مونځ غل وئيلې شوې دې ليكن دَ هغه مونځ ته باطل نه دې وئيلى شوى دادَ وجوب دليل دې ځكه چه چرې تعديل فرض وې نودَ فرض پاتې كيدوسره به مونځ باطل كيدو حالانكه دَ بطلان حكم نه دې لګولې شوې.

**۵ اختلاف بنیاد:** دَاختلاف اصل بنیاد په دې باندې دې چه احناف دَ دلائلو دَ تفاوت دَ وجې نه په فرض او واجب کښې تفاوت کوی اودَ نورو ائمه حضراتو په نیز دَ واجب درجه زیاته واضحه نه ده. بهرحال دَ احتیاط په اعتبارسره دَ جمهورو مسلك بهتر دې احنافو تعدیل ته فرض نه دی وئیلی نودَ احنافو عوامو ګڼړلی چه تعدیل خوهډو څه څیز نه دې. بیا هغوی تعدیل بې اعتدالی شروع کړو. چنانچه دَ افغانستان بلوچستان او سرحد مونځ ګذار په تعدیل ارکان کښې ډیر زیات نقصان کوی.

**د تعدیل ارکان درې درجات:** حضرت شاه انور شاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه دَتعدیل ارکان په مسئله کښې کوم اختلاف مشهور دې دا اختلاف حقیقی نه دې بلکه لفظی دې په دې وجه دَتعدیل ارکان درې درجې دی:

① اول درجه دا چه په یورکن کښې دومره وقفه کول چه دَ بدنی اندامونو حرکت انتقالیه بندشی او هریو اندام په آرام شی. دَتعدیل ارکان اوتمانیت دا درجه په اتفاقی توګه باندې فرض ده.

② دویمه درجه دا چه په یورکن کښې دومره حصاریدل چه یو ځل سبحان الله اووئیلې شی دا درجه دَ ټولو په نیز واجب ده.

③ دریمه درجه دا چه سړې درې ځل سبحان الله وئیلو په اندازه باندې توقف اوکړی دادَ سنت درجه کیدل پکاردی. دَ دې دریو درجو نتیجه دا راؤوتله چه کومو حضراتو تعدیل ارکان ته فرض وئیلی دی هغوی اول درجه مراد اخستې ده اوکومو حضراتو چه تعدیل ته واجب وئیلی دی هغوی دویمه درجه مراد اخستې ده. او کومو حضراتو چه ورته سنت وئیلی دی هغوی دریمه درجه مراد اخستې ده. لهذا اوس هیڅ حقیقی اختلاف پاتې نه شو بلکه صرف لفظی او تعبیری اختلاف پاتې شو.

**[۷۹۱] د نبی علیه السلام د مانځه طریقه**

۷۹۱ — (۱) [۲] ① وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ: ② «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَسْتَفْتِحُ الصَّلَاةَ بِالتَّكْبِيرِ ③ وَالْقِرَاءَةِ بِـ (الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ) ، ④ وَكَانَ إِذَا رَكَعَ لَمْ يُشْخِصْ رَأْسَهُ، ⑤ وَلَمْ يُصَوِّبْهُ، وَلَكِنْ بَيْنَ ذٰلِكَ، ⑥ وَكَانَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ لَمْ يَسْجُدْ حَتّٰى يَسْتَوِيَ قَائِمًا،

**ترجمه:** ① بي بي عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمایي ② چې رسول الله ﷺ به مونځ شروع کولو په تکبیر سره ③ او قراءت په الحمد لله رب العٰلمین سره ④ او کله چې به یي رکوع کوله نو خپل سر مبارك به یي نه خو ډیر زیات پورته کولو ⑤ او نه ډیر زیات ښکته بلکه په مینځ

(۱) اخرجه مسلم باب ما یجمع صفة الصلاة وما یفتتح به ویختم به، وصفة الرکوع والاعتدال منه، والسجود والاعتدال منه، والتشهد بعد کل رکعتین من الرباعیة، وصفة الجلوس بین السجدتین، وفی التشهد الأول (رقم) ۲۴۰ - (۴۹۸) وابوداو د کتاب الصلاة، باب من لم یر الجهر ب «بسم الله الرحمن الرحیم» (رقم-۷۸۳)

مينځ کې به يې ساتلې (يعني شا او څټ به يې برابر ساتلو)٦ او کله چې به يې د رکوع څخه سر پورته کولو نو بغير د سيده ودريدلو به سجدې ته نه تلو

**حل اللغات:** ① يَسْتَفْتِحُ: أَيْ يَبْتَدِئُهَا: شروع کولو به ئې (مونځ). ② لَمْ يُشْخِصْ: أَيْ لَمْ يَرْفَعْ رَأْسَهُ: سر به نې ډيرنه اوچتولو (دلته د سر نه مراد څټ دې). ③ لَمْ يُصَوِّبْهُ: أَيْ: وَلَمْ يُنْزِلْهُ: نه به نې ښکته کولو (سر)، (تصويب د پورته نه ښکته راتلو ته وائي).

① وَكَانَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السَّجْدَةِ لَمْ يَسْجُدْ حَتَّى يَسْتَوِيَ جَالِسًا، ② وَكَانَ يَقُولُ فِي كُلِّ رَكْعَتَيْنِ التَّحِيَّةَ، ③ وَكَانَ يَفْرِشُ رِجْلَهُ الْيُسْرَى، وَيَنْصِبُ رِجْلَهُ الْيُمْنَى ④ وَكَانَ يَنْهَى عَنْ عُقْبَةِ الشَّيْطَانِ، ⑤ وَيَنْهَى أَنْ يَفْتَرِشَ الرَّجُلُ ذِرَاعَيْهِ افْتِرَاشَ السَّبُعِ، ⑥ وَكَانَ يَخْتِمُ الصَّلَاةَ بِالتَّسْلِيمِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او کله چې به يې د سجدې څخه سر اوچتولو نو بغير د سيده ناستې څخه به دويمې سجدې ته نه تلو② او د هر دوه رکعاتو څخه وروسته به يې التحيات ويل③ او (د ناستې د پاره به يې) خپله ګسه خپه غوړوله اوښي پښه به يې ولاړه ساتله④ او حضور ﷺ به د عقبه شيطان (يعني د شيطان د ناستې څخه) منع فرمايله⑤ او سړي به يې ددواړه لاسونو په سجده کې داسې غوړولو څخه منع کولو څنګه چې درنده يې غوړوي⑥ او حضور ﷺ به مونځ په سلام ختمولو. (مسلم.)

**حل اللغات:** ③ يَفْرِشُ: خورله (غوړوله) به ئې، ⑤ يَنْصِبُ: أَيْ: يَضَعُ أَصَابِعَهَا عَلَى الْأَرْضِ وَيَرْفَعُ عَقِبَهَا: نصب اودرولو ته وائي يعنى د ښې خپې ګوتې به ئې په زمکه کيخودې او پونده به نې پورته کړه. ⑥ عُقْبَةِ: چه سړې دَخپلو خپو په ګيتو باندې مقعد کيخودو سره کينى دې ته عقبه يا اقعاء وائى. ⑦ السَّبُعِ: درنده، شلونکى ځناور.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَالْقِرَاءَةِ بِـ (الْحَمْدُ لِلّٰهِ): يعنى حضورپاك چه به کله په مانځه کښې قراءت شروع کولو نود الحمدلله نه به ئى شروع کولو.

**د بسم الله په جهر او اخفاء کښې اختلاف:** دَدې جملې نه داخبره واضحه شوه چه حضورپاك به په مانځه کښې بسم الله په مزه لوستله اوکله چه به ئى قراءت شروع کولو نو په جهرسره به ئى الحمدلله نه لوستل شروع کولو. دَبسم الله په مزه لوستل يا په جهرسره لوستلو کښې دَعلماء اختلاف دې ليکن دا اختلاف په حقيقت کښې په دې متفرع دې چه آيا بسم الله دَ قرآن جز دې که نه، که چرې دَ قرآن جز دې نو دَ هرسورت جز دې که نه په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې لهذا اول دا بيانولې شي.

**د بسم الله په جزئيت کښې مذاهب:**

جمهور امت په دې متفق دې چه بسم الله دَ قرآن جز دې اودا يوآيت دې. صرف دَ امام مالك

رحمه الله طرف ته دا منسوب کولې شي چه د سورت نمل نه علاوه بسم الله د قرآن کريم جزنه دې.
دا اختلاف د سورت نمل د بسم الله نه علاوه کښې دې. د سورت نمل جزکيدل او د قرآن جزکيدل اتفاقي امردې. اوس د جمهورو په خپل مينځ کښې اختلاف اوشو چه آيا بسم الله د هرسورت جز دې يا دا صرف د بين السورتين د فصل د پاره ده.

① د فقهاؤ اختلاف. د حضرت امام شافعي رحمه الله په نيز بسم الله د هر سورت هم دغه شان جزدې څنګه چه د سورت نمل جزدې.

② د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز بسم الله د هرسورت جزنه دې بلکه دا د سورت په شروع کښې صرف فصل بين السورتين د پاره هوی لهذا دا هم يوآيت دې چه د دې مقصد د پاره ډيرو ځايونو کښې سردوباره کړې شوې دې. او د شوافع په نيز دا ډير آياتونه دی يو آيت نه دې. د بسم الله سره متعلق د حنابله حضراتو اقوال مختلف دی په دې وجه د هغې د ذکر کولو ضرورت نشته. دومره پوهه شئی چه هغوی په دې مسئله کښې احنافو سره نيزدې دی.

**داول فريق اول دليل:** ① د حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت د دوی مستدل دې. د کوم الفاظ چه دا دی. عن ابي هريرة رضي الله عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم انه كان يقول الحمد لله رب العالمين سبع آيات احداهن بسم الله الرحمن الرحيم (تعليق الفصيح)

**دوه جوابونه:** ① د دې حديث په سند کښې اضطراب دې ځکه چه بعض محدثينو په دې سند کښې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نوم ذکر کولو کښې شك کړې دې. بل د دې حديث په مرفوع کيدو او موقوف کيدو کښې هم د محدثينو اختلاف دې د دې دواړو وجوهاتو نه دا حديث په هرحال کښې ضعيف دې.

② دا حديث خبرواحد دې او خبرواحد نه قطعي علم نه شي حاصليدلې او بسم الله د فاتحه يا بل سورت جز ګرځولو د پاره قطعي علم ضرورت دې کوم چه په عقل سره نه بلکه نقل نه ثابتول پکاردی حالانکه د دې روايت په مقابله کښې نور روايات ډيرقوی دی د کوم نه چه معلوميږی بسم الله د فاتحه جزنه دې لکه څنګه چه هم د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه حديث قدسي روايت دې.

**داول فريق دويم دليل:** د حضرت ام سلمه رضي الله عنها يوروايت هم د دوی مستدل دې. د کوم الفاظ چه دا دی: عن ام سلمة انه قرأ الفاتحة وعد بسم الله الرحمن الرحيم والحمد لله رب العالمين. (آية)

**جواب:** د حضرت ابوهريره رضي الله عنه او حضرت ام سلمه رضي الله عنها په روايتونو کښې تعارض دې. د ام سلمه رضي الله عنها په روايت کښې بسم الله الحمد لله رب العالمين سره ملاويدونکې يوآيت دې او د حضرت ابوهريره رضي الله عنه په روايت کښې بسم الله مستقل آيت دې واذا تعارضا تساقطا.

**داول فریق دریم دلیل:** ③ دَ ابوداؤد شریف روایت هم د دوی مستدل دی. دَ هغې الفاظ دادی: عن انس بن مالك قال رسول الله ﷺ انزلت علی آنفاسورت فقرا بسم الله الرحمن الرحیم انا اعطینك الكوثر حتی ختمها.

**د اول فریق څلورم دلیل:** ④ بسم الله دَ هرسورت په شروع کښې قلم وحی سره بالالتزام داسې لیکلې شوې ده چه دَ چاګمان هم نه شی کیدلې چه بسم الله دَ سورت جزنه دې. کله چه بسم الله دَهرسورت جزدې نودا دَ فاتحه هم جزدې اوچه کله فاتحه په مانځه کښې لوستلې شی نو بسم الله به هم په جهری مونځونوکښې په جهرسره لوستلې شی دې دَپاره چه دَ فاتحه څه جز پاتې نه شی.

**جواب:** دَدې دلیل نه دا ثابتیږی چه بسم الله دَقرآن جز دې چه دَ دوو سورتونو په مینځ کښې فصل او جدائیی دَپاره دې دې نه دا نه ثابتیږی چه بسم الله دَهرسورت یا فاتحه جز دې. (تعلیق الفصیح)

**د دویم فریق دلائل:** ① دَحضرت ابوهریره رضی الله عنه په روایت کښې دی کوم چه حدیث قدسی دې دَ مشکوة شریف په صفحه ۷۸ باندې ذکردې الفاظ دادی: قال الله تعالی قسمت الصلوة بینی وبین عبدی نصفین ولعبدی ماسأل فاذاقال العبد الحمدلله رب العالمین قال الله تعالی حمدنی عبدی. په دې حدیث شریف کښې دَ فاتحه یویو آیت جداجدا بیان کړې شوې دې مګر په دې کښې دَ بسم الله ذکرنشته دې معلومه شوه چه بسم الله دَ یوسورت جزنه دې نودَ فاتحه جز هم نه دې.

② دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه هغه روایت د دوی مستدل دې په کوم کښې چه حضوریاك دَ سورت الملك دیرش آیاتونه ګرځولی دی الفاظ دادی: عن ابی هریرة انه علیه السلام قال سورت فی القرآن ثلاثون آیة شفعت لصاحبه حتی غفرله، تبارك الذی بیده الملك. که چرې بسم الله دَ سورت جز اومنلې شی نو سورت ملك دَ دیرش په ځائی یودیرش آیاتونووالاسورت جوړیږی حالانکه په حدیث کښې دَ دیرش ذکردې.

③ دَحضرت ابن عباس رضی الله عنهما دَ مشهور روایت د دوی مستدل دې. په کوم کښې چه حضرت ابن عباس رضی الله عنهما صفا خودلی دی چه بسم الله په دوو سورتونو کښې دَ جدائیی اوفصل دَپاره نازل کړې شوې ده الفاظ دادی: عن ابن عباس کان النبی ﷺ لایعرف السورت حتی ینزل علیه بسم الله الرحمن الرحیم. (ابوداؤد)

④ د ټولو قراء او ټولو فقهاء اوټولو علماؤ په نیز په دې خبره باندې اتفاق دې چه سورت کوثر په دریو آیاتونوباندې مشتمل دې او سورت اخلاص پنځه آیاتونو باندې مشتمل دې که بسم الله دَ هرسورت جز اومنلې شی نو سورت کوثر به څلور او سورت اخلاص پنځه

ایاتونه جوړیږی حالانکه دا دَ اجماع امت خلاف دي. دَ دغه شان دَ قرآن کریم په تولو ایاتونو کښې به اختلاف راؤچت شی او فاتحه به هم دَ اووه په ځائې اته آیاتونه ونیلی شی.

**په مانځه کښې د بسم الله په جهراً او سراً لوستلو کښې مذاهب:**

دَ بسم الله دَ هر سورت جز کیدو اوه کیدو اختلاف باندي دَ فقهاء کرامو یو بل اختلاف متفرع دې هغه دا چه جهری مونځ کښې دَ فاتحه نه وړاندې به بسم الله په جهراً لوستلې شی که سراً؟

① دَ امام مالك رحمه الله مسلك خو دا دې چه دَ فاتحه نه وړاندې بسم الله دې بالکل نه وائی نه سراً او نه جهراً یعنی دَ بسم الله لوستل مسنون نه دی.

② دَ امام شافعی رحمه الله په نیز په جهری مونځ کښې بسم الله په اوچت آواز سره لوستل سنت دی.

③ دَ جمهور فقهاء په نیز بسم الله په مزه آواز سره لوستل سنت دی.

**داول فریق دلائل:** ① دَ حضرت انس رضی الله عنه روایت د دوی مستدل دې. دکوم الفاظ چې دا دی: عن انس قال صليت خلف النبي صلى الله عليه وسلم وابي بكر و عمر و عثمان وعلى فلم اسمع احدا منهم يقرأ بسم الله الرحمن الرحيم. (رواه مسلم)

② دَ حضرت عبد الله بن مغفل رضی الله عنه روایت هم د دوی مستدل دې. کوم چه دَ احنافو دَ دلائلو په ضمن کښې را روان دې.

③ زیربحث حدیث هم د دوی مستدل دې. چه حضور پاك به دَ الحمدلله رب العالمين نه قرات شروع کولو لهذا دَ بسم الله لوستل مسنون نه دی.

**داول فریق د دلائلو ځځه مجموعی جواب:** دوی چې دَ کومو احادیثونه استدلال کړې دې په هغې کښې "جهربالبسملة" نفی ده یعنی دَ بسم الله په اوچت آواز سره لوستلو نفی ده دَ بسم الله دَ بالکل نه لوستلو نفی نه ده. هم دغه وجه ده چه احناف هم دَدې روایاتونه بسم الله په مزه آواز سره لوستلو باندې استدلال کړې دې.

**د دویم فریق دلائل:** ① دَ حضرت نعیم بن مجمر رضی الله عنه روایت د دوی مستدل دې دَ کوم الفاظ چه دا دی: صليت وراء ابي هريرة فقرأ بسم الله الرحمن الرحيم ثم قرأ بام القرآن الخ. (رواه ابن خزيمه وابن حبان والنسائی)

**د دویم فریق د اول دلیل درې جوابونه:** ① په دې سره دَ جهر بسلمه باندې استدلال یقینی نه دې ځکه چه بعض وخت لوستونکې کله په مزه لولی مګر هغه په دې انداز سره وی چه نیزدې سړی ئې اوری دلته هم دغه احتمال دې او کله چه احتمال راځی نو استدلال باطل کیږی.

② دویم جواب دا دې ممکن دی چه حضرت ابوهریره رضی الله عنه دَ تعلیم دَپاره داسې کړې وی ځکه چه موقع دَ تعلیم وه ځ او دَ تعلیم دَپاره په اوچت آواز سره رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ ماسپښین

په مونځ کښې قراءت هم لوستلې دې.

③ دَ جهر والاروایات معلل بالشذوذ دی ځکه چه داسې عام مسئله کښې دَ یو یا دوو راویانو بیانول دَ علت سبب دې یا جواب دا چه دَ جهروالاروایات دَدې روایاتو په مقابله کښې کمزورې دی کوم کښې چه په مزه لوستلو تذکره ده.

**د دویم فریق دویم دلیل:** دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما روایت هم د دوی مستدل دې کوم چه دَ مشکوٰة شریف صفحه ۸۰ باندې فصل ثانی رومبې حدیث دې. عن ابن عباس رضی الله عنهما قال کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یفتتح صلوته بسم الله الرحمن الرحیم.

**د دویم فریق د دویم دلیل جواب:** صاحب ترمذی دَدې دَنقل کولو نه پس فرمائیلی "هذا حدیث لیس اسناده بذالك" یعنی دَ دې حدیث سند قوی نه دې.

**د دویم فریق دریم دلیل:** دَ صحابه اوتابعینو څه آثار هم د دوی مستدل دې کوم چه طحاوی نقل کړی دی.

**د دویم فریق د دریم دلیل جواب:** دَدې ټولو آثارو په باره کښې پخپله دارقطنی داسې لیکلی دی: " وعن الدارقطنی انه قال لم یصح عن النبی صلی الله علیه وسلم فی الجهر حدیث" (کذافی اللمعات)

هم دَ دارقطنی متعلق راغلی دی چه هغه په مصر کښې "جهر بالبسملة" یو کتاب لیکلې دې دَ کتاب تیاریدو نه پس یو مالکی عالم هغه ته قسم ورکړې دې چه ماته په دې کتاب کښې یوهم صحیح حدیث اوښایه کوم چه "جهر بالبسملة" باندې دلالت کوی. هغوی په جواب کښې اوفرمائیل چه دَ جهرباره کښې یوحدیث هم صحیح نه دې ملاؤ شوې.(کذافی اللمعات)[اشعة المعات:۳۸۱]

حازمی رحمه الله فرمائی چه "جهر بالبسملة" احادیث سره دَدې چه صحابه کرامو نه نقل دی لیکن دَ دې اکثر حصه دَ ضعف نه خالی نه ده. بهر حال خلاصه دا چه دَ جهر روایات یا ضعیف ناقابل استدلال دی اوې جهر دَتعلیم امت دَپاره دَ یو وخت اوعارضی وو.

**د دریم فریق دلائل:** ① زیربحث صحیح صریح حدیث د دوی مستدل دې.کوم چط په ترك الجهر بالتسمیه باندې دلالت کوی.

② دَ مشکوٰة شریف ص ۷۹ باندې دَ حضرت انس رضی الله عنه روایت هم د دوی مستدل دې. دَ کوم الفاظ چه اوس دَ مالیکه دَ دلائلو په ضمن کښې نقل کړې شو.

③ دَمشکوٰة ص ۷۸ باندې دَحضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت هم د دوی مستدل دې په کوم کښې چه الفاظ راغلی دی: استفتح القرأة بالحمدلله رب العالمین. (رواه مسلم)

④ امام ترمذی رحمه الله دَ ترك الجهر بالبسملة دَپاره یوباب قائم کړې دې او په هغې کښې ئې هغه روایت نقل کړې دې چه دَ حضرت یزید بن عبدالله رضی الله عنه دَخپل والد عبدالله بن مغفل نه

داشان روایت کړې دې. عن ابن عبدالله بن مغفل قال سمعني ابي وانا في الصلوة اقول بسم الله الرحمن الرحيم فقال لي اي بني محدث اياك والحدث الخ. (ترمذی ص ۵۷)
دَدې روایت نه احنافو استدلال کړې دې اوونیلی دی چه دا صحابي جهري بسم الله بدعت ګرځوی لهذا دَدې په مقابله کښې دَ استحباب وغیره هیڅ یوروایت نه شی اخستې ځکه چه دا دَ مبیح او محرم مسئله ده.

⑤ دَمسنداحمد یوروایت دې کوم چه دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دې چه صحابه کرامو به بسم الله الرحمن الرحيم په اوچت آواز سره نه لوستله. هم دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما امام طحاوی رحمه الله نقل کړې دی چه هغوی فرمائیلی نبی کریم صلی الله علیه وسلم تروفات پورې بسم الله په اوچت آواز سره نه ده لوستلې.
دَابن ماجه په روایت کښې حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه ما بسم الله په اوچت آواز سره نه ده لوستلې. هم دَ ابن ماجه په روایت کښې ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه ما حضورپاك صلی الله علیه وسلم حضرت ابوبکر رضي الله عنه حضرت عمر رضي الله عنه پسې مونځ کړې دې تولو حضراتو به بسم الله په مزه لوستله. امام طحاوی رحمه الله هم دَ ابن عباس رضي الله عنهما یوروایت نقل کړې دې چه عکرمه فرمائی دَ ابن عباس رضي الله عنهما نه چه کله دَ بسم الله په اوچت آواز سره لوستلو متعلق معلومه کړې شوه نوهغوی اوفرمائیل "ذلك فعل الاعراب" یعنی بسم الله په زوره آواز سره لوستل دَ بې علم او شاړو خلقو کاردې. دَدې ټولو روایاتونه ائمه احناف دَ بسم الله په رو آواز سره په لوستلواستدلال کړې دې.

**قوله: وَكَانَ يَفْرِشُ رِجْلَهُ الْيُسْرَى:**

**په قعده کښې د ناستې په طریقه کښې مذاهب:**

په دې حدیث کښې دَ رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په قعده کښې دَ کیناستو طریقه بیان کړې شوې ده یعنی حضورپاك چه به کله په قعده کښې کیناستو نوګسه خپه به ئی خوروله او ښې خپه به ئی اودروله. اوس په دې کښې دَ فقهاء اختلاف دې چه آیا افضل طریقه هم دغه ده کومه چه په دې حدیث کښې ذکرده یا په کوناټو باندې کیناستوسره "تورك" طریقه ډیره غوره ده کومه چه په راتلونکی حدیث کښې بیان شوې ده.

① دَامام شافعی رحمه الله مسلك دادې چه په ړومبې قعده کښې افتراش افضل دې او په دویمه قعده کښې تورك کول بهتردی. ځکه چه دویمه قعده کښې ډیرساعت کیناستل وی او دَ تورك په طریقه باندې کیناستو کښې سهولت او آسانی وی.

② دَحضرت امام مالك رحمه الله په نیز په دواړو قعدوکښې هم تورك افضل دې. امام احمدبن حنبل رحمه الله

③ مسلك دادې كه چرې مونځ دَ دووقعدووالاوی نو په آخری قعده کښې تورك كول پكاردی خوكه مونځ صرف دَ يوقعدې او يوتشهدوالاوی نوپه هغې کښې دَتورك په ځائې افتراش كول پكاردی.

④ دَامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دواړو قعدوکښې افتراش كول پكاردی تورك صرف دَمجبورئی په صورت کښې دې.

**د تورک د افضلیت دلائل:** ① دَحضرت ابوحميد ساعدی رضی الله عنه [اشعة المعات: ۳۸۱] روايت د دوی مستدل دې. تورك داسې وی چه سړې په قعده کښې کينې دواړه خپې ښی طرف ته اوباسی او په خپل "ورك" يعنی كوناټوباندې كينی. ابوحميد ساعدی رضی الله عنه [اشعة المعات: ۳۸۱] په روايت کښې په دويمه قعده کښې دَتورك حكم بالكل صريح توګه باندې ذكردې.

**د تورک د افضلیت د دلائلو اجمالی جواب:** د تورک احاديث په بوډاوالی او دَ كمزورئی په حالت حمل كړې دې.

**د څلورم فريق دلائل:** زيربحث د حضرت عائشه رضی الله عنها دَ مسلم شريف روايت د دوی مستدل دې. په كوم کښې چه دَ اولې يا دويمې قعدې څه قيدنشته دې بلكه دا مذكوردی چه دَ رسول الله ﷺ معمول په مانځه کښې دا وو چه ښې خپه به ئې اودروله او ګسه به ئې خوروله.

**نوټ:** يادساتئی چه دا اختلاف دَ افضل دې دَ جواز اوعدم جواز نه دې دواړه طريقې جائزدی. البته احنافو افتراش له په دې وجه ترجيح وركړې ده چه په دې کښې مشقت وی او عبادت هم هغه افضل وی په كوم کښې چه مشقت وی. "وكان افضل الاعمال احمزها ای اشدها" [اشعة المعات: ۳۸۱]

**قوله:** عَنْ عُقْبَةِ الشَّيْطَانِ:

**په قاعده کښې د شیطان پشان د ناستې ممانعت:** دويم حديث کښې "اقعاء الكلب" لفظ راغلې دې دَ دواړو مطلب هم يودې. دَ عقبة الشيطان او اقعاء الكلب يوصورت دادې چه سړې خپې او زنګونونه اودروی او په مقعدباندې كينی دواړه لاسونه په زمكه باندې كيږدی لكه چه سپې كينی په مانځه کښې داسې كيناستل دَ ټولو فقهاؤ په نيزمكروه دی اوكه سړې معذوره وی نو هغه جداخبره ده. علامه طيبی رحمه الله دَ اقعاء دا صورت بيان كړې دې چه سړې دَخپلو خپو په ګيټو باندې مقعد كيخودو سره كينی. دَ لغت په اعتبارسره دَ عقبه دا صورت ډير واضح دې ځكه چه "عقب" ګيټې ته وائی.

**قوله:** أَنْ يَفْتَرِشَ:

**د څنګلو غزولو څخه ممانعت:** يعنی سړی له دَ مانځه په حالت په سجده کښې دواړه څنګلې داسې خورول منع دی لكه ځناور دَ كيناستو په وخت مخې ته دواړه خپې په زمكه خورولوسره ايږدی په دې سره سړې سست شی او په مونځ کښې غفلت راځی.

**قوله: الرَّجُلُ:**

**دسړي او ښځې په کيفيت کښې فرق:** دَ سړي لفظ ونيلو سره دې طرف ته اشاره اوکړه چه ښځه به دَ سجدې په حالت کښې لاسونو سره ټول اندامونه راغونډه وي او زمکې سره دې يوشان کړي ځکه چه دا دَهغې دَ ستر دَپاره مناسب دي.

**قوله: بِالتَّسْلِيمِ:**

**د سلام د الفاظو وضاحت:** يعنى سلام اړولو سره مونځ دَ السلام عليكم په الفاظو سره به ئې ختمولو. دا مسئله د تسهيلات كتاب الطهارة كښې شوې ده هلته اوګورئې.

**[۷۹۲] د تكبير تحريمه په وخت د لاسونو پورته كول**

۷۹۲-(۱)[۳] [۱] وَعَنْ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ فِي نَفَرٍ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «أَنَا أَحْفَظُكُمْ لِصَلَاةِ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: رَأَيْتُهُ [۳] إِذَا كَبَّرَ جَعَلَ يَدَيْهِ حِذَاءَ مَنْكِبَيْهِ، [۴] وَإِذَا رَكَعَ أَمْكَنَ يَدَيْهِ مِنْ رُكْبَتَيْهِ، [۵] ثُمَّ هَصَرَ ظَهْرَهُ، [۶] فَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ اسْتَوَى [۷] حَتَّى يَعُودَ كُلُّ فَقَارٍ مَكَانَهُ

**ترجمه:** [۱] د ابو حميد ساعدي رضي الله عنه په باره کې روايت دې چې هغه د رسول الله ﷺ د صحابو رضي الله عنهم په يو جماعت کې وفرمايل [۲] چې زه د رسول الله ﷺ د لمانځه طريقه په تاسو ټولو کې ښه پيژنم ما رسول الله ﷺ ليدلي دی [۳] چې کله به يې تکبير کولو نو خپل دواړه لاسونه به يې تر اوږو پورې پورته کول [۴] او کله چې به رکوع ته تلو نو خپل دواړه زنګنونه به يې په لاسو سره مضبوط نيول [۵] او خپله شا به يې ښکته کوله (چې د څټ سره برابر شي) [۶] او کله چې به يې خپل سر د رکوع څخه پورته کولو نو سيده به ودريدلو [۷] تر دې چې ټول جوړونه به يې په خپل خپل ځاې شو.

**حل اللغات:** ① نَفَرٍ: أَيْ: جَمَاعَةٍ: جماعت، ډله. ② حِذَاءَ: أَيْ: مُقَابِلَهُمَا: مخامخ، برابر. ③ مَنْكِبَيْهِ: مَجْمَعُ عَظْمِ الْعَضُدِ وَالْكَتِفِ: د اوږې او مټ هډوکې چه کوم ځاې يوځاې شوې وي هغې ته منکب يعنى اوږه وائي. ④ أَمْكَنَ: مضبوط نيولو او موټى کښې اخستلو ته وائى. ⑤ هَصَرَ: أَيْ: خَفَضَهُ: ښکته به ئې کړه (ملا، شا). ⑥ فَقَارٍ: وَهِيَ مَفَاصِلُ الصُّلْبِ: فقار جمع ده ددې واحد فقارة راځى، د ملا جوړونو ته وائى.

[۱] فَإِذَا سَجَدَ وَضَعَ يَدَيْهِ [۲] غَيْرَ مُفْتَرِشٍ وَلَا قَابِضِهِمَا، [۳] وَاسْتَقْبَلَ بِأَطْرَافِ أَصَابِعِ رِجْلَيْهِ الْقِبْلَةَ، [۴] فَإِذَا جَلَسَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ جَلَسَ عَلَى رِجْلِهِ الْيُسْرَى وَنَصَبَ الْيُمْنَى [۵] فَإِذَا جَلَسَ فِي الرَّكْعَةِ الْآخِرَةِ قَدَّمَ رِجْلَهُ الْيُسْرَى وَنَصَبَ الْأُخْرَى، [۶] وَقَعَدَ عَلَى مَقْعَدَتِهِ» رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او کله چې به سجدې ته تلو نو دواړه لاسونه به يې په زمکه ايښودل [۲] او هغه به

---

(۱) اخرجه البخارى كتاب الاذان باب سنة الجلوس فى التشهد (رقم-۸۲۸) وابوداود كتاب الصلاة باب افتتاح الصلاة (رقم-۷۳۰)

يي نه غوړول او نه به يي سره مښ کول [۳] او د پښو ګوتي به يي قبلې ته مخامخ ساتلې [۴] او د دوو رکعتو وروسته چې به کیناستو نو په ګسه خپه به کیناستي او ښي پښه به يي ودروله [۵] او هر کله چې به آخري رکعت کې کیناستلو نو ګسه خپه به يي مخکې راوښکله او دويمه (يعني ښي) پښه به ودروله [۶] اوپه مقعد به کیناستلو. (بخاري)

**دابوسعید مختصر تعارف:** حضرت ابوسعید خدری رضي الله عنه چونکه د اکابرصحابه کرامو نه وو پخواني مسلمان وو او احادیثو بیانولو کښې د مکثرین صحابه نه هم وو. د دې د پاره کم عمر او کم صحبت والاصحابه ته ئې اوفرمائیل چه زه د حضورپاك د مونځ د تولونه زیات محفوظ ساتلو والایم. د هغوی تعلق د خدره قبیلې سره دې او هغوی د انصارمدینه نه دی. د اکثرو صحابه کرامو اوتابعینو استاذ دې. په ۷۴هجری کښې د ۸۴کالو په عمرکښې هغوی وفات شوی او په جنت البقیع کښې دفن کړې شوې.

**تسهیلات:**

**قوله:** "حِذَاءَ مَنْكِبَيْهِ"

**په تکبیر تحریمه کښې د لاسونو اوچتولو په مقدار کښې د روایاتو اختلاف:** ① بعضې روایاتو کښې "الی شحمتی اذنیه" الفاظ راغلی دی په کوم کښې چه د غوږو پورته حصې پورې د لاسونو اوچتولو اشاره ملاویږی.

② بعضې نورو احادیثو کښې د غوږونو برابر پورې د لاسونو اوچتولو ذکردې. مثلاً مسنداحمد او دارقطنی په روایت کښې "حتی تکون ابهاماه حذاء اذنیه" الفاظ راغلی دی.

③ په څو احادیثو کښې دغه شان الفاظ دی مثلاً "حذومنکبیه" "حیال منکبیه" په دې کښې د اوګو پورې برابر لاسونه اوچتولو ذکر دې.

**په تکبیرتحریمه کښې د لاسونو اوچتولو په مقدار کښې مذاهب:**

دا راروان اختلاف د جواز عدم جواز نه بلکه د افضل دې.

① د شوافع او مالکیه په نیز لاسونه د اوږو پورې اوچتولومعمول دې اوهم دغه د هغوی په نیزافضل دی.

② د امام احمدبن حنبل رحمه الله په نیزدرې اقوال دی د اوګو پورې غوږونوپورې اود اوګو او غوږونو پورې اوچتولو کښې اختیارمګر مشهور هم اول قول دې.

③ ائمه احناف د غوږونو د نرمو پورې لاسونه اوچتول افضل ګنړی دامسلك زیات ښه دې څکه چه د غوږونو پورې لاسونه اوړلوسره د سینې اواوګو پورې لاسونو اوړلو مسلك باندې عمل کیږی. دې نه علاوه به په هرمسلك باندې محدود عمل کیږی.

**په مختلفو احادیثو دعمل کولو طریقه:** شیخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې لیکلی دی چه دا

هم ممکن دی په مختلف وختونو کښې مختلف حالاتولاندې په دې تولو طریقوباندې عمل اوکړې شی. امام شافعی رحمه الله په دې تولو احادیثو باندې دعمل کولودپاره یوه بهترینه توجیه کړې ده هغوی فرمائی چه تکبیرتحریمه په وخت دلاسونو تلی د اوګو برابر وی غټې ګوتې د غوږونو برابر وی او د ګوتو سرونه د غوږونو پورتنئی حصې برابر وی. دې دپاره چه په دې طریقه سره به په تولو احادیثو
باندې عمل اوشی او په احادیثو کښې به تطبیق هم اوشی.

**قوله: "أَمْكَنَ يَدَيْهِ"**

**په مانځه کښې د ګوتو کیخودلو مختلف کیفیات:** ① یعنی د رکوع په حالت کښې حضورپاك په مضبوطیاسره دواړو لاسونوسره به زنګونونه نیول په دې حالت کښې به د حضورپاك ګوتې مبارکې کولاؤ وې. علماء فرمائی چه د رکوع په حالت کښې ګوتې ارتې کیخودل پکاردی

② په سجدو کښې به حضورپاك ګوتې یوځائی په زمکه باندې په مضبوطیاسره کیخودلې. علماء فرمائی چه د سجدې په حالت په مضبوطیا زمکې سره ملاوول او ساتل پکاردی

③ د تکبیرتحریمه اوقعده په حالت کښې په خپل طبعی حالت باندې پریخودل پکاردی.

**قوله: "غَيْرَمُفْتَرِشٍ"**

**په سجده کښې د لاسونو غزولو مسنون طریقه:** یعنی دهغوی لاسونه په زمکه باندې کیخودلې شوی وو مګر څنګلې به ئی د زمکې نه جدا وې. "افتراش سبع" په شان به نه وې. "ولاقابضهما" یعنی څنګلې او متې د اړخونونه جدا ساتلې اوتلی اوګوتې په زمکه باندې مضبوطې ساتلې مګر متې او څنګلې د اړخونو او زمکې نه دومره جدا وې که چرې د چیلئی وړوکې بچې د حضورپاك د سینې لاندې تیریدل غوښتل نوتیریدلې شو. د قابض مطلب داهم کیدې شی چه حضورپاك په زمکه باندې ګوتې خورې کیخودلې موتې جوړولوسره ئی نه کیخودلې.

**[۷۹۳] درکوع وغیره په وخت رفع یدین**

۷۹۳-()[۳] ① «وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا-، ② أَنَّ رَسُولَ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ

---

[1] اخرجه البخاری کتاب الاذان باب: رفع الیدین فی التکبیرة (رقم-۷۳۵) ومسلم کتاب الصلاة . باب استحباب رفع الیدین حذو المنکبین مع تکبیرة الإحرام. والرکوع. وفی الرفع من الرکوع. وأنه لا یفعله إذا رفع من السجود (رقم) ۲۲ - (۳۹۰) وابوداود کتاب الصلاة،باب رفع الیدین فی الصلاة (رقم-۷۲۲) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة. والسنة فیها ،باب رفع الیدین إذا رکع، وإذا رفع رأسه من الرکوع (رقم-۸۵۸) ومالک فی الموطا کتاب الصلاة باب افتتاح الصلاة (رقم-۱۶) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/بباب رفع الیدین عند الرکوع (رقم-۲۵۵) والنسائی کتاب الافتتاح /رفع الیدین حذو المنکبین (رقم) ۸۷۸

حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ، [۳] وَإِذَا كَبَّرَ لِلرُّكُوعِ، وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ رَفَعَهُمَا كَذَلِكَ، [۴] وَقَالَ: "سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ"، [۵] وَكَانَ لَا يَفْعَلُ ذَلِكَ فِي السُّجُودِ»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابن عمر رضي الله عنه فرمايي [۲] چه رسول الله ﷺ چې به کله مونځ شروع کولو نو دواړه لاسونه به يې تر اوږو پورې پورته کول [۳] او کله چې به يې رکوع د پاره تکبير ونيلو او چې د رکوع څخه به يې سر اوچتولو نو بيا به يې هم د غسې دواړه لاسونه (تر اوږو پورې) پورته کول [۴] (او د رکوع څخه سر پورته کولو سره) به يې ويل سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ (الله د هغه سړي واوريدل يعنې د هغه تعريف يې قبول کړو چا چې د هغه حمد بيان کړو اې پروردګاره ټول تعريف تا لره دي) [۵] او حضور ﷺ به په سجدو کې داسې نه کول. (بخاري).

**حل اللغات:** ① حَذْوَ: أَيْ: مُقَابِلَهُمَا: مخامخ، برابر (اوږو ته)،

**تسهيلات:**

**قوله:** "سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ"

**د سمع الله مفهوم:** دلته د سمع معنى د قبلولو ده يعنى الله تعالى د دغه سړى حمد قبول كړو چاچه د هغه حمد اوكړو. "لمن" كښې لام د نفع دپاره دې يعنى الله تعالى د حمد كونكى د فائدې دپاره د هغه حمد قبول كړو. "حمده" كښې هاء ساكنه ده كوم چه د سكتې او استراحت دپاره دې.

**قوله:** "رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ"

**په تحميد كښې مختلف الفاظ:** دا الفاظ په احاديثو كښې درې قسمه باندې راغلي دي.

① "ربنا لك الحمد" ② "ربنا ولك الحمد" ③ "اللهم ربنا ولك الحمد".

**افضله جمله:** ملاعلي قارى رحمه الله فرمائى چه د آخر والا دواړه جملې د اولې جملې نه بهتر دى. د صحابه كرامو د دور نه اود هغې نه پس د علماؤ معمول كښې دا دعا داسې ده. "ربنا ولك الحمد حمدا كثيرا طيبا مباركا فيه".

**د تحميد او تسميع په تقسيم كښې مذاهب:**

① امام شافعى رحمه الله فرمائى د مام ابويوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله هم دغه مسلك دې چه امام دې تحميد اوتسميع دواړه وائى يعنى سمع الله لمن حمده سره ربنا ولك الحمد هم وائى

② امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى چه د تقسيم كار په توګه امام دې سمع الله لمن حمده وائى اومقتدى دې ربنا لك الحمد وائى.

**داول فريق دليل:** زيربحث حديث د دوى مستدل دې.څكه چه حديث نه هم دا طريقه معلوميږى.

**د دويم فريق دليل:** د دوى مستدل په ابن ماجه او د سنن په ټولو كتابونو كښې ذكر دې. الفاظ دادى: ((عن ابى هريرة قال قال رسول الله ﷺ اذا قال الامام سمع الله لمن حمده فقولوا ربنا لك الحمد))

**طریقه د استدلال**: دَ استدلال طرز داسې دې چه حضورپاك دَامام او ماموم په مینځ کښې دا کلمات تقسیم کړی دی اوتقسیم دَ شرکت منافی دې. امام ابوحنیفه رحمه الله دا حدیث په حالت دَامامت باندې نه محمول کوی بلکه هغوی فرمائی چه دادَ منفرد یعنی خان له مونځ کونکی دَ مونځ کیفیت دې اومنفرد به دواړه جملې اداکوی.

**قوله**: وَكَانَ لَايَفْعَلُ ذٰلِكَ فِي السُّجُودِ:

**سجدې ته د تلو او واپس کیدو په وخت کښې عدم رفع یدین**: یعنی حضورپاك سجدې له دَتلو په وخت اودَ سجدې نه دَ واپس کیدو په وخت رفع یدین نه کول. حضرات شوافع سره دَدې چه دَ رفع یدین قائل دی لیکن هغوی صرف رکوع ته دَ تلو په وخت اودَ رکوع نه دَ پاسیدو په وخت رفع یدین کوی او دَ تکبیرتحریمه په وخت کوی. دې نه علاوه رفع یدین هغه قائل نه دې. دَ سجدې په وخت رفع یدین دَ احادیثونه ثابت دی مګر شوافع دا منسوخ منی. په احادیثو کښې دَدې نسخ واضح توګه باندې تذکره موجود ده. احناف دَ رکوع دَ وخت رفع یدین هم منسوخ ګڼړی دَ رفع یدین مسئله هم راتلونکې ده.

**[۷۹٤] د حضرت ابن عمر رضي الله عنه مونځ**

۷۴۳-()[۵][۱] وَعَنْ نَافِعٍ، «أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ إِذَا دَخَلَ فِي الصَّلَاةِ كَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ،[۲] وَإِذَا رَكَعَ رَفَعَ يَدَيْهِ،[۳] وَإِذَا قَالَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، رَفَعَ يَدَيْهِ،[۴] وَإِذَا قَامَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ رَفَعَ يَدَيْهِ[۵] وَرَفَعَ ذٰلِكَ ابْنُ عُمَرَ إِلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ»-، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: [۱] نافع (رحمه الله) فرمایي چې ابن عمر رضي الله عنه چې به مونځ شروع کولو نو تکبیر به یې وئیلو او خپل دواړه لاسونه به یې پورته کول[۲] او کله چې به رکوع ته تلو نو دواړه لاسونه به یې پورته کول[۳] او کله چې به یې سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَه ویل نو دواړه لاسونه به یې پورته کول [۴] او کله چې به یې دوه رکعاته وکړل او ولاړ به شو نو بیا هم دواړه لاسونه به یې پورته کول،[۵] ابن عمر رضي الله عنه به دا حدیث حضور ﷺ ته په رسولو سره نقل کولو (یعني هغه به ویل چې حضور ﷺ هم دغسې کړي دي) بخاري.

**تسهیلات**:

**قوله**: "وَإِذَا رَكَعَ رَفَعَ يَدَيْهِ"

**رکوع ته په تلو کښې د رفع الیدین حکم**: دې نه مخکښې حدیث نمبر(۷۴۳) اودا زیربحث حدیث نمبر(۷۴۳) او راتلونکې یوڅواحادیثو کښې دَرکوع په حالت کښې دَ رفع یدین کولو مسئله بیان کړې شوې ده. د اصل بحث شروع کولوڅخه وړاندې په درې تمهیدی مباحثو پیژندګلو ضروری ده.

[۱] بخاری کتاب الاذان باب رفع الیدین إذا قام من الرکعتین (رقم-۷۳۹)

## درې مباحث

**اول بحث د تكبير تحريمه څخه علاوه د رفع اليدين مقامات سته :**

① رفع يدين عند الركوع.

② رفع اليدين عند الرجوع عن الركوع.

③ رفع اليدين عند الذهاب الى السجدة.

④ رفع اليدين عند الرجوع عن السجدة كما في النسائي.

⑤ رفع اليدين عند القيام الى الركعة الثالثة كما في ابي داؤد ص: ۱۰۶.

⑥ رفع اليدين في كل تكبيرة عند الرفع والخفض كما في مسند احمد.

**مختلف فيها مقامات :** په دې شپږو مقاماتو كښې اول الذكر صرف دوه مقامات داسې دي په كوم كښې چه رفع يدين او عدم رفع يدين كښې اختلاف دې اوهغه ركوع ته د تلو په وخت اود ركوع نه واپس كيدو په وخت دغه دوه مقامات دی دې نه علاوه په څلورو وارو مقاماتو كښې رفع يدين د ټولو ائمه حضراتو په نيزمنسوخ شوی دی. لهذا د رفع يدين نوم چه كله هم راشي نود هغې نه به مراد هم دغه دوه مقامات وی.

**دويم بحث د تكبير تحريمې په وخت په رفع اليدين كښې اختلاف**

① د تكبير تحريمه په وخت لاسونه اوچتولو حكم دې. نود جمهورو په نيزدا سنت دی په دې كښې څه خاص اختلاف نشته دې

② بعض ظواهر او داؤد ظاهری دې طرف ته تلې دې چه تكبيرتحريمه كښې لاسونه اوچتول فرض دی ③ په شيعه ګانو كښې فرقه زيديه هم په دې كښې اختلاف كړې دې.

**نوټ:** تكبيرتحريمه نه علاوه په نورو مقاماتو كښې د رفع يدين حكم د افضل اوغيرافضل حيثيت لری. د اولی او غيراولی اختلاف دې يا د زيات نه زيات د سنت اختلاف دې د جواز او عدم جواز اختلاف نه دې.

**دريم بحث :** دابحث چه رفع اليدين كښې به لاس تر كومې پورې اوچتولې شی. نودا مسئله ددې حديث نه مخكښې د حديث نمبر ۷۹۲ په تشريح كښې تفصيل سره تيره شوې ده هلته دې اوكتلې شی.

**په قرون اولی كښې په مسئله د رفع اليدين كښې عدم تشدد :** بهرحال د رفع يدين دامعركة الاراء مسئله د صحابه كرامو د دور نه مختلف فيها ده. د تابعينو په دوركښې هم په دې كښې اختلاف پاتې دې څوك د رفع كونكې دی اوڅوك د ترك رفع يدين قائل دی يو ښار داسې نه دې پاتې چرته چه د دواړو طرفو خلق موجودنه وی. او په دنيا كښې كوفه يوداسې ښاروو چه كوم كښې رفع يدين كونكې يو سړې نه وو ټول د ترك رفع يدين قائل وو.

دَدې وجه دا وه چه کوفه دَ اکابر صحابه کرامو دَتعلیم مرکز پاتې دې او هلته ابن مسعود رضي الله عنه معلم عام وو. نودَهغوی دَ تعلیم دا اثروو دَهغوی نه پس دَهغوی شاګردان اوبیا دَ امام ابوحنیفه رحمه الله دَتعلیم دا اثر وو. غرض دا چه دَ رفع یدین په مسئله کښې په شروع کښې په طرفین کښې سختی نه وه روستو سختی راغله. اهل مکه دَ حضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنه دَ تعلیم دَ وجې رفع یدین شروع کړه

**د رفع الیدین په مسئله لیکونکی عالمان:** ① د امام بخاری کتاب جزء رفع الیدین. ② امام بیهقی رحمه الله، ③ علامه ابن عبدالبر رحمه الله ④ حافظ ابن قیم رحمه الله ⑤ محمد بن عمرو مروزی رحمه الله ⑥ علامه زاهد کوثری رحمه الله ⑦ علامه شاه انورشاه کشمیری رحمه الله کتاب نیل الفرقدین فی رفع الیدین او بسط الیدین لنیل الفرقدین دی.

**د رفع الیدین په باب کښې د روایاتو درې قسمونه:** شاه انور شاه کشمیری رحمه الله فرمائی دَ رفع الیدین په سلسله کښې درې قسمه روایات دی:

① اول هغه روایات دی کوم چه ناطق په رفع الیدین دی.

② دویم هغه روایات دی چه ناطق لعدم رفع الیدین دی.

③ دریم هغه روایات دی چه ساکت عنهما دی.

**په مسئله د رفع الیدین کښې د امامانو د اختلاف سبب:** ① دَامام مالك رحمه الله عام دستور دا وو چه هغوی به دَ اهل مدینه تعامل په ټولو مسئلوکښې مخې ته ساتلو. دَ مدینې والاهم دَ ترك رفع یدین قائل وو نوهغوی هم دا واخستل.

② امام شافعی رحمه الله چونکه په غزه کښې پیدا شوې اوبیا هجرت کولوسره په مکه مکرمه کښې ئې قیام کړې نوهغوی هلته دَ اهل مکه په طرز عمل باندې عمل اوکړو اوهلته دَ عبدالله بن زبیر رضي الله عنه دَ تعلیم دَ وجې نه رفع یدین کیدل.

③ دَامام احمدبن حنبل رحمه الله عادت اودَهغوی فقهی مزاج دا وو چه هغوی به دَ احادیثو په ظاهرباندې عمل کولو هم دغه وجه ده چه دکثرت روایاتو دَ وجې دَهغوی څواقوال کیدې شی.

④ دَ امام ابوحنیفه رحمه الله فقهی مزاج داسې وو چه هغوی همیشه دَ شریعت مطهره دَ قواعدو کلیه لحاظ کړې دې. دکلیات په تحفظ کښې که په جزئیات کښې تاویل اوکړې شی نوهغوی به جزئیات کښې تاویل کړې مګر کلیات ئې په ځائی ساتلې. هم دغه وجه ده چه دَاحنافو مسلك څومره هم په سرسری نظرسره اوکتلې شی، نوجزئیات به دَدې منافی ښکاری لیکن چه څومره په ژوروالی سره اوګورې نودا مسلك په ټولو احادیثو باندې پوره منطبق ښکاری.

**په رفع اليدين في الصلاة کښې مذاهب:**

① امام شافعي رحمه الله امام احمد بن حنبل رحمه الله او په يو قول کښې امام مالك رحمه الله دې طرف ته تلې دې چه په رکوع کښې رفع يدين لکه څنګه چه په شروع کښې سنت عمل وو اوس هم هغه شان سنت عمل دې.

② امام ابوحنيفه رحمه الله سفيان ثوري رحمه الله ابراهيم نخعي رحمه الله او دَ مشهور او مختار قول مطابق دَ امام مالك رحمه الله په نيز په رکوع کښې رفع يدين نشته دې. لکه څنګه چه په باقي مقاماتو کښې رفع يدين مخکښې وو بيا دَ ټولو په نيز منسوخ ګڼړلې شي. دغه شان په رکوع کښې هم يا منسوخ يا موقوف شوی دی. لهذا عدم رفع راجح ده. دا خبره هم ياد ساتل پکار دی چې دا اختلاف د افضل او غير افضل دې د جواز او عدم جواز نه دې نو په دې کښې غلو کول ټيک نه دی.

**داول فريق دلائل:** په دې ټولو احاديثو کښې عندالرکوع او عندالرفع عندالرکوع په وخت دَ رفع يدين تصريح موجود ده او دا په خپل مطلوب باندې واضحه دلائل دی.

① د حضرت مالك بن حويرث رضي الله عنه حديث نمبر ۷۹۵ د دوی مستدل دې.

② دَحضرت ابن عمر رضي الله عنهما حديث نمبر ۷۹۳ د دوی مستدل دې

③ دَ حضرت ابوحميد ساعدي رحمه الله اوږد حديث نمبر ۸۰۱ د دوی مستدل دې.

④ دَحضرت وائل بن حجر رحمه الله حديث نمبر ۷۹۷ د دوی مستدل دې.

⑤ زير بحث حضرت نافع او ابن عمر رضي الله عنهما حديث نمبر ۷۹۴ د دوی مستدل دې.

**د رفع اليدين د مثبتينو په نيز د ابن عمر د روايت صحت:** دا روايت د مثبتين رفع يدين په دلائلو کښې دَ ټولو نه زيات معتمد او مستند او مضبوط محفوظ روايت دې په کوم باندې چې دوی اوچتې سترګې ګرځی.

**د ابن عمر په روايت باندې د وقف اعتراض:** امام بخاري رحمه الله مرفوع کيدو ته ترجيح ورکړې ده ليکن امام ابوداؤد رحمه الله دَخپل کتاب صفحه ۱۰۸ باندې دَدې په مرفوع او موقوف کيدو باندې کافی بحث کړې دې. اوس دَدې حديث بنيادی عمارت کمزورې شو چه کيدې شی دا موقوف وی او دَ موقوف حديث نه شوافع حضرات په نيز باندې استدلال کول جائز نه دی.

**د ابن عمر په روايت د اضطراب اعتراض:** دَدې حديث دَ صحت باوجود په دې کښې شپږ قسمه اضطراب دې.

① موطا کښې صرف عندالرکوع رفع يدين ثابت دی.

② امام مالك رحمه الله چه کله مُدَوّنَهٔ کښې دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دا روايت نقل کوی نو هلته رفع يدين صرف په تکبير تحريمه کښې ثابتيږی.

③ دَامام بخاری رحمه الله کتاب صحیح بخاری کښې صرف عندالسجدتین رفع یدین ذکردې.

④ موطا کښې عندالرکوع او عندالرفع عن الرکوع رفع یدین ثابت دی.

⑤ اوطحاوی وغیره کښې هم دَدې روایت نه دَ رفع یدین "عندکل خفض ورفع" یعنی دَهرتکبیر په وخت رفع یدین ثابت دی. په دومره اضطراب او اختلاف سره روایت دَخپل مقام نه ډیر ښکته راځی.

⑥ اوهم دغه دَ حضرت ابن عمر رضی الله عنهما روایت کله امام بخاری رحمه الله جزء رفع الیدین کښې ذکرکوی نوهلته دَ دریم رکعت دَپاره پاسیدو په وخت دَ رفع یدین ذکردې.

**د دویم فریق دلائل:**

① ((وعن ابن عمر مرفوعاً ان النبی صلی الله علیه وسلم کان یرفع یدیه اذا افتتح الصلوة ثم ثم لایعود)) ([1])

② ((وعن البراء ابن عازب ان کان النبی صلی الله علیه وسلم اذا کبر لافتتاح الصلوة رفع یدیه حتی یکون ابهاماه قریباً عن شحمتی اذنیه ثم لایعود)) ([2])

③ ((وعن ابن مسعود عن النبی صلی الله علیه وسلم انه کان یرفع یدیه فی اول تکبیرة ثم لایعود)) ([3])

④ ((وعن ابن عباس عن النبی صلی الله علیه وسلم قال لایرفع الایدي الافی سبع مواطن. ۱ فی افتتاح الصلوة. ۲ واستقبال القبلة. ۳ وعلی الصفا. ۴ والمروة. ۵ وبعرفات. ۶ وبجمع. ۷ وعند الجمرة ([4])

⑤ ((وعن مجاهد قال صلیت خلف ابن عمر فلم یکن یرفع یدیه الافی التکبیرة الاولی من الصلوة)) ([5])

⑥ ((وعن عباد بن الزبیر ان النبی صلی الله علیه وسلم اذا افتتح الصلوة رفع یدین فی اول الصلوة ثم لم یرفعها فی شئ حتی یفرغ)) ([6])

⑦ ((عن الاسود قال رأیت عمر بن الخطاب یرفع یدیه فی اول تکبیرة ثم لایعود (مصنف ابن ابن ابی شیبه طحاوي) قال ورأیت ابراهیم النخعي والشعبی یفعلان کذالك)) ([7])

⑧ ((روي عن ابن عباس قال کان النبی صلی الله علیه وسلم یرفع یدیه کلما رکع وکلما رفع ثم صار الی افتتاح الصلوة وترك ماسوا ذلك)) ([8])

⑨ ((ورأي عبدالله بن الزبیر رجلا یرفع یدیه من الرکوع فقال "مه" کان هذا شئ فعله النبی صلی الله علیه وسلم ثم ترکه)) ([9])

⑩ ((عن عاصم بن کلیب عن ابیه ان لیا رضی الله عنه کان یرفع یدیه فی اول تکبیرة من الصلوة ثم لایرفع بعد)) ([10])

---

[1] (رواه البیهقی فی الخلافیات باسناد صحیح کذا فی معارف السنن)

[2] (رواه الطحاوی ص: ۱۵۴)

[3] (طحاوی ص: ۱۵۴ وکذا فی الترمذی والنسائی)

[4] طبراني والبخاري في جزء رفع الیدین) بحواله تنظیم الاشتات))

[5] مصنف ابن ابی شیبه بیهقی طحاوی ص: ۱۵۵)

[6] رواه بیهقی فی الخلافیات کذا نقله الشیخ محمدهاشم السندهی

[7] (مصنف ابن ابی شیبه وطحاوی ص: ۱۵۶)

[8] کذا فی التعلیق الصبیح بحواله تنظیم الاشتات)

[9] (کذا فی التعلیق الصبیح بحواله تنظیم الاشتات)

[10] (رواه الحطاوی باسنادین جیدین ص: ۱۵۴)

⑪ ((وعن المغيرة بن شعبة قال قلت لابراهيم حديث وائل ﷺ انه رأي النبي ﷺ رأي النبي ﷺ يرفع يديه اذا افتتح الصلوة واذا ركع واذا رفع رأسه من الركوع فقال ان كان وائل ﷺ رآه مرة يفعل فقد رآه عبدالله خمسين مرة لايفعل ذلك))(١)

⑫ ((وعن جابر بن سمرة قال خرج علينا رسول الله ﷺ فقال مالي اراكم رافعي ايديكم كانها اذناب خيل شمس اسكنوا في الصلوة)) (٢)

**په دې روايت اعتراض:** دَدې حديث تعلق دَسلام په وخت رفع يدين سره دې دا حضورپاك منع کړې دی.

**دااعتراض جواب:** په دې حديث کښې حضورپاك "اسكنوافي الصلوة"کوم الفاظ ارشاد فرمائيلی دی مونږ دَدې نه استدلال کوو چه په مونځ کښې سکون او کم نه کم حرکتونه کول مطلوب دی دَ کوم طرف ته چه په قرآن پاك کښې هم اشاره ده :﴿ وَقُوْمُوْا لِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ﴾ [سورت بقره: ۲۳۸] اي ساکنين ساکتين عابدين.

⑬ ((عن علقمة قال قال لنا ابن مسعود الا أصلي بكم صلوة رسول الله ﷺ فصلى ولم يرفع يديه الامرة واحدة مع تكبيرة الافتتاح)) (٣)

**دابن مسعود په ديارلسم نمبر حديث دامام ترمذی اعتراض:** امام ترمذی رحمه الله دَحضرت عبدالله بن مبارك رحمه الله په حواله سره وئيلی دی چه هغوی فرمائی چه دَ ابن عمر رضي الله عنهما حديث ثابت دې کوم چه دَ رفع يدين متعلق دې ليکن دَ ابن مسعود رضي الله عنه روايت ثابت نه دې په کوم کښې چه دَ عدم رفع يدين ذکردې. (ترمذی ص: ۵۹)

**دااعتراض دوه جوابونه:** ① دَ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه روايت چه په کومو واسطوسره امام ابوحنيفه رحمه الله ته رسيدلې دې هلته دَ سند دا دومره اوږده سلسله نه وه صرف يوه يا زيات نه زيات دوه واسطې به وې. اوس دَ امام ابوحنيفه رحمه الله مونږ ته رسيدو کښې دَ اوږد سند دَ وجې نه که چرته روايت کښې ضعف راشی نو دې سره دَ امام ابوحنيفه رحمه الله مستدل ته هيڅ نقصان نه رسيږی. دا جواب دَ يو ضابطې او قاعدې درجه لری چه هرځائی کښې جاری کيدې شی.

② عدم رفع يدين سره متعلق دَ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه دوه روايتونه نقل دی. يو مرفوع قولی دې او دويم مرفوع عملی دې يعنی ابن مسعود رضي الله عنه خپل فعل خودلوسره حديث ته مرفوع وئيلې دې يا خپل قول خودلوسره حديث ته مرفوع وئيلې دې؟ نوحضرت عبدالله

---

١) (طحاوی ص: ۱۵۴) ((وفي البدائع روی عن ابن عباس رضي الله عنهما انه قال العشرة الذين شهدلهم النبي ﷺ بالجنة ماكانوا يرفعون ايديهم الافي افتتاح الصلوة))(كما في العينی ج۲ص۷)

٢) (رواه مسلم)

٣) (رواه الترمذی وابوداؤد مشكوة ص: ۷۷)

بن مبارک رحمه الله په مرفوع قولی باندې رد کوی چه دا ثابت نه دې. مرفوع فعلی ته هغه څنګ غیرثابت وئیلی شی حالاتکه هغه پخپله دَ مرفوع فعلی راوی دې لکه نسائی ص:۱۶۸ باندې واضحه توګه باندې موجود دی لامحاله چه عبدالله بن مبارک رحمه الله دَ مرفوع قولی انکارکوی اودَدې احناف هم قائل دی څکه چه احناف مرفوع فعلی ثابت منی اوهم دَدې نه استدلال کوی. دَ مرفوع قولی نه احناف استدلال نه کوی دکوم الفاظ چه دادی: "ان النبی ﷺ لم یرفع یدیه الافی اول مرة" (ترمذی)

**دمرفوع فعلی ثبوت:** دَحضرت ابن مسعود رضی الله عنه حدیث کوم چه مرفوع فعلی دې دَدې دَ ثبوت دَپاره ابن دقیق العید رحمه الله فرمائی چه دَ ابن مسعود رضی الله عنه دَ روایت مدار په عاصم بن کلیب رحمه الله باندې دې اوهغه دَ مسلم دَ راویانونه دې لهذا مرفوع فعلی ثابت دې.

**د مرفوع فعلی روایت په صحت دمحدثینو اقوال:** ① پخپله امام ترمذی رحمه الله دَهغه کتاب ترمذی کښې دَ حضرت ابن مسعود رضی الله عنه دَ فعلی روایت متعلق فرمائی چه دا روایت حسن دې اودَ بې شمیره خلقو په دې باندې عمل دې ② دغه شان ابن حزم اندلسی رحمه الله دا حدیث صحیح ګرځوی

③ دَ ائمه جرح اوتعدیل نه یحیی بن سعید القطان المغربی رحمه الله نه "الوهم والایهام" کښې دا الفاظ نقل دی "انه صحح حدیث ابن مسعود" ④ دغه شان ابن عبدالبر علی المدینی، ⑤ دارقطنی هم دې ته صحیح وئیلې دې (۱). ⑥ یحیی بن معین، ⑦امام ذهبی ⑧ ابن منده رحمهم الله دا صحیح ګرځولې دې.

**د ابن مسعود په روایت دابوداؤد اعتراض:** صاحب مشکوة دَحضرت ابن مسعود رضی الله عنه دا روایت دَ اصل بحث نه لرې فصل ثالث ص: ۷۷کښې ذکرکړې دې. او بیا په دې باندې دَ امام ابوداؤد رحمه الله په حواله سره اعتراض کړې دې چه "وقال ابوداؤد لیس هو بصحیح علی هذا المعنی".

**د اعتراض درې جوابونه:** ① دا دَ حضرت ابن مسعود رضی الله عنه په مرفوع قولی حدیث باندې اعتراض دې. ② دا جواب په حقیقت کښې دَ صاحب مشکوة غلطی پېتولو دَپاره دې اودومره لونی سرې دَ غلطئی نه دَ بچ کولو دَپاره دې ګنی امام ابوداؤد رحمه الله دَ براء بن عازب رضی الله عنه روایت ته لیس بصحیح وئیلې دې. دَ حضرت ابن مسعود رضی الله عنه په روایت باندې ابوداؤد رحمه الله هیڅ اعتراض نه دې کړې لکه څنګه چه دَ ابوداؤد دَ سیاق اوسباق نه واضح دی.

**تسلیمی جواب:** ③ فرض کړه که امام ابوداؤد رحمه الله هم دَ حضرت ابن مسعود رضی الله عنه په روایت باندې اعتراض کړې دې نودَ هغې جواب دا ورکولې شی چه امام ابوداؤد رحمه الله دا ضعف علی المعنی سره مقید کړې دې یعنی روایت صحیح دې نورو راویانو نقل کړې دې سند

۱) کذافی عرف الشذی

صحیح دي لیکن دَدي خاص معنې په اعتبار سره ضعیف دي.

**د ترک رفع الیدین په روایاتو باندې مجموعی اعتراض:** په دغه پورتنو ټولو روایتونو باندې مخالفینو څه نه څه اعتراض کړې دې تاسو دَدې قسم روایاتونه څنګه استدلال کوئی؟

**د اعتراضاتو مجموعی جواب:** دَمخالفینو ټول اعتراضونو ته که اوکتلې شی نو په اصولی توګه دَ دغه اعتراضونو خلاصه داده چه په دغه روایتونوکښې خو یا ارسال دې یا غرابت اوتفرد دې او یا په دې کښې ادراج دې. واضح جواب دادې چه دا روایات په څو طرقو سره راغلی دی او تعدد دَطرق سره تفرد غرابت او ادراج ختمیږی. باقی پاتې شو دَ بعضې روایتونو مرسل کیدل نو عرض دادې چه دَ جمهورو په نیز ارسال معتبر دې مونږ جمهورو سره یو او هغوی مونږ سره دی.

**په رفع الیدین او عدم رفع الیدین باندې د عمل کولو جواز:** دَدې ټولو احادیثو مرفوعه او آثار منقوله نه دا خبره دَ رنړا ورځ په شان واضحه کیږی چه دَ رفع یدین په مسئله کښې دواړو طرفوته دَ احادیثو یوه ذخیره موجود ده. نو اوس خو به یا دَ دواړو طرفو احادیثو او آثارو کښې دَتطبیق صورت پیدا کولې شی چه کوم عمل کوم ځائی رائج دې هلته دې په هغې باندې عمل اوکړې شی او جائز دې دواړه اومنلې شی. ابن حزم رحمه الله په خپل دَ فخر وړ تصنیف المحلی ج۲ص ۲۳۵ باندې لیکلی دی چه کلهٔ دَ جانبینونه دَ احادیثو صحت ثابت شو نو اوس دواړه عملونه مباح دی. یو عمل فرض نه دې نو مونږ له هم په دغه نیت هم داشان مونځ کول پکار دی که چرته مونږ په مونځ کښې رفع یدین اوکړل نو مونږ هم هغه شان مونځ اوکړو څنګه چه حضور پاك کړې وو او که چرې مونږ رفع یدین اونه کړل نو بیا هم مونږ هغه شان مونځ اوکړو څنګه به چه حضور پاك کولو.

**د رفع الیدین د نسخ قول:** که چرې دَچا دَ تطبیق صورت خوښ نه شو نو بیا به دَ رفع یدین احادیث منسوخ ګنړلې شی هغه داسې چې د رفع یدین مسئله دَ اسلام په شروع کښې وه بیا په مونځ کښې چه کوم باقی تغیرات او تنسیخات ښکاره شوی دی نو دَ رفع یدین مسئله هم موقوف او منسوخ شوه او دا څه فرضی کلام یا مفروضه نه ده بلکه دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما روایت په دې نسخ باندې دلیل دې. دَ حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه روایت په دې نسخ باندې دلیل دې. په دې وجه دَدې حدیث دَ منسوخ کیدو قوی احتمال پیدا شوې دې.

**په د رفع الیدین په نسخ باندې اشکال:** دَ رفع یدین په منسوخ کیدو څه دلیل دې؟

**د اشکال دوه جوابونه:** ① دَ دغه پورته احادیثو او آثارو دَتصریحاتو او توضیحاتو نه په دې خبره واضح دلیل دې چه داحکم اول وو بیا موقوف او منسوخ شو.

② الزامی جواب دادې چه رفع یدین ټول شپږو مقاماتونه باقی څلورو مقاماتو کښې تاسو

حضراتو رفع یدین ترک کولوسره دغه ځلورو مقاماتوکنبې دَ رفع یدین حکم پخپله منسوخ منلې دې. دَدې ځلورو مقاماتودَپاره چه ستاسو کوم جواب وی هم هغه به زمونږ هم وی فرق صرف دومره دې چه تاسو په ځلورو مقاماتوکنبې او مونږ په شپږو مقاماتوکنبې داعمل منسوخ منو.

**د ترک رفع الیدین ترجیح:** یو طرف ته دَ رفع یدین سنت دې او بل طرف ته دَ نسخ قوی احتمال دې او په منسوخ باندې عمل کول حرام دی نو دَ سنت خپلولو او په حرام کنبې دَ پریوتلو مقابله شوه لهذا دا سنت ترک کول اولی او افضل دی په کوم باندې چه عمل کولوسره په حرام کنبې دَ پریوتلو احتمال وی. هم په دې وجه احناف ترک رفع یدین ته اولی وائی دې دَپاره چه په منسوخ عمل باندې دَعمل کولوخطره رانه شی.

**دَ امام ابوحنیفه رحمه الله او امام اوزاعی رحمه الله مناظره**

ملاعلی قاری رحمه الله په مرقات کنبې دَ رفع یدین په دې بحث کنبې لیکلی دی چه صاحب دَ فتح القدیر ابن همام رحمه الله دَهدایه شرح کولوسره دَ رفع یدین په بحث کنبې لیکلی دی چه یو ځل امام ابوحنیفه رحمه الله او امام اوزاعی رحمه الله مکه مکرمه دارالحناطین کنبې یوځائی شو نودَ رفع یدین په مسئله کنبې دَ دواړو داسې خبرې اترې اوشوې:

**امام اوزاعی رحمه الله:** اوزاعی شام دَ امام ابوحنیفه رحمه الله نه داسې سوال اوکړو تاسو خلق رکوع ته دَ تلو په وخت اودَ رکوع نه دَ واپس کیدو په وخت لاسونه ولې نه اوچتوئی؟

**امام ابوحنیف رحمه الله:** مونږ رفع یدین ځکه نه کوو چه په دې کنبې دَ حضورپاک نه څه داسې صحیح حدیث نقل نه دې دکوم په مقابله کنبې چه بل حدیث نه وی.

**امام اوزاعی رحمه الله:** صحیح حدیث ولې نشته حالانکه ماته زهری رحمه الله بیان کړې هغه دَ سالم رحمه الله او سالم رحمه الله دَخپل پلار ابن عمر رضی الله عنهما نه داسې نقل کړې دې چه «ان رسول الله ﷺ کان یرفع یدیه اذا افتتح الصلوة وعند الرکوع وعند الرفع منه»

**امام ابوحنیفه رحمه الله:** دَدې په جواب کنبې امام ابوحنیفه رحمه الله دَ عدم رفع یدین دَپاره سندسره داسې حدیث بیان کړو. «حدثنا حماد عن ابراهیم عن علقمه والاسود عن عبدالله بن مسعود ان النبی ﷺ کان لا یرفع یدیه الا عند الافتتاح ثم لا یعود»

**امام اوزاعی رحمه الله:** امام اوزاعی دَ عُلُوّ سند طرف ته اشاره کولوسره اوفرمائیل چه زه تاته دَ زهری رحمه الله سالم رحمه الله او ابن عمر رضی الله عنهما سندسره حدیث بیانوم اوتاسو دَحماد رحمه الله اوابراهیم رحمه الله په سندسره زما په مخکنبې حدیث پیش کوې؟ (چرته دا سند اوچرته هغه سند)

**امام ابوحنیفه رحمه الله:** امام ابوحنیفه رحمه الله اوفرمائیل چه ګوره شیخ حماد رحمه الله دَ شیخ زهری رحمه الله نه لوئی فقیهه وو. دغه شان ابراهیم نخعی رحمه الله دَ شیخ سالم رحمه الله نه فقه کنبې اوچت وو اوشیخ علقمه رحمه الله دَ حضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه فقاهت کنبې کم نه وو سره دَدې چه ابن

عمر رضی الله عنهما تـه دَ شـرف صـحابيت دَ وجې نـه لـوئى مقـام حاصـل وو. شـيخ اسـود رحمه الله پـه توگـه دَ پاسنگ مونږ سره بلامقابله پاتې شوې په کوم سره چه زمونږ وزن زيات شو.

اودَ عبد الله بـن مـسعود رضی الله عنه بـه څـه وې عبد الله خوعبـد الله دې (دَفقاهت امـام او دَ فـضيلت سپوږمئى وه) په دې بحث كښې حضرت امام اوزاعى رحمه الله دَ سند په اوچتوالى خپـل روايت ته دَترجيح وركولو كوشش اوكړو ليكن امام ابوحنيفه رحمه الله دَ رواة دَ فقاهت دَ وجې نه خپـل روايت راجح اوګرځولو.

**د اختلاف نوعيت:** دَ رفع يدين مسئله اولى او غيراولى اودَ افضل اوغيـر افـضل مـسئله ده دَ جـائز يـا ناجـائز مـسئله نـه ده. بهرحـال پـه مـسئله كـښې دَ طـرفين دَ طـرف نـه وسـعت اوګنجائش دې دَتشدد ضرورت نشته دې. غيرمقلدين په دې كښې سختى كوى اودَ نيغې لارې نه تجاوز كوى اودا اختلاف دَ جائز اوناجائز اختلاف ګنړى اوعـام خلق دَ يـوطرف والا احاديثو سره پـه تـشويش كـښې راګيـره وى اودَ فـضيلت بحث دَ فرضـيت پـه درجـه كـښې ساتى.

پـه حقيقت كـښې دَدې حضراتو يـوه قاعـده ده هغـه دا چـه پـه مـونږ دَ سـنت پـاتې كيـدوسره مـونږ فاسـد كيـږى اورفـع يـدين سنت دى نودَدې په پريخودو سـره بـه مـونږ باطـل كيـږى. حالانكه داضابطه او دا قاعده دَهغوى خپله ده. دَامت فقها ؟ء علماء اومجتهدينو دې ضابطې سره هيڅ تعلق او واسطه نشته دې.

### [۷۹۵] دغوږونو پورې د لاسونو پورته کول

۷۹۵-()[٦]⑴ وَعَنْ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: ⑵«كَانَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-إِذَا كَبَّرَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا أُذُنَيْهِ⑶ وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ فَقَالَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ فَعَلَ مِثْلَ ذَلِكَ»⑷ وَفِي رِوَايَةٍ: حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا فروع أُذُنَيْهِ»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ⑴ مالك ابن حويرث رضی الله عنه فرمايي⑵ چې رسول الله صلی الله علیه وسلم چې به تكبير تحريمه ويـل نو خپل دواړه لاسونه به يې دومره پورته كول چې هغه به يې د غوږونو سيده (مخامخ) پـورې بوتلل⑶ او هر كله چې د ركوع څخه به يې سر پورته كولو نو د سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ ويلو سره به يې دغسې كول (يعني دواړه لاسونه به يـې د غوږونـو سيده پـورې رسول) ⑷ او د يـو روايت الفاظ دا دي چې دواړه لاسونه به يې د غوږونو د پورته پورې بوتلل. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** يُحَاذِيَ: أَيْ: مُقَابِلَهُمَا: مخامخ، برابر به ئې ساتل (غوږونوته).

---

(۱) اخرجه البخارى كتاب الاذان باب رفع اليدين إذا كبر وإذا ركع وإذا رفع (رقم-۷۳۷) ومسلم كتاب الصلاة . باب استحباب رفع اليدين حذو المنكبين مع تكبيرة الإحرام، والركوع، وفى الرفع من الركوع، وأنه لا يفعله إذا رفع من السجود (رقم) ۲۵ - (۳۹۱) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها ،باب رفع اليدين إذا ركع، وإذا رفع رأسه من الركوع (رقم-۸۵۸) والنسائى كتاب الافتتاح /باب رفع اليدين حيال الأذنين باب رفع اليدين حيال الأذنين (رقم-۸۸۰)

**تسهيلات:**

**د لاسونو اوچتولو په حد کښې د احنافو دليل**:دَدې حديث تشريح توضيح او دَتكبير تحريمه په وخت لاسونه اوچتولو مسئله او اختلاف په مكمل توګه دَدې نه مخکښې حديث نمبر (۷۹۳) کښې ليکلې شوی دی هلته اوګورئی. دلته په دې حديث کښې دَ لاسونو اوچتولو حد دَ غوږونو دَ پورتنئی حصې پورې دَ اوږلوبيـان دي داد احنافو مستدل دې اوکوم حضرات چه صرف دَ سينې پورې لاسونه اوچتوی هغوی له پکاردی چه داحديث دې نه هيـروی اولږشان همت دې کوی او لاسونه دې لږ پورته پورې اوړی.

**[۷۹۶] د جلسه استراحت حكم**

۷۹۶ -()[۷] ۱ وَعَنْهُ، «أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُصَلِّي ۲ فَإِذَا كَانَ فِي وِتْرٍ مِنْ صَلَاتِهِ لَمْ يَنْهَضْ ۳ حَتَّى يَسْتَوِيَ قَاعِدًا» رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: ۱ د مالك ابن حويرث ﷺ په باره کې منقول دي چې هغه رسول الله ﷺ په لمانځه کولو ليدلي دي ۲ حضور ﷺ چې به د خپل لمانځه په طاق رکعت (يعني اولني يا دريم) رکعت کې وو ۳ نو تر څو پورې چې به سيده نه وو کيناستلو نه به اودريدلو. (بخاري.)

**حل اللغات**: ① لَمْ يَنْهَضْ: أَيْ: لَمْ يَقُمْ: نه به اودريدلو، نه به پاڅيدلو.

**تسهيلات:**

**قوله**: "فِي وِتْرٍ مِنْ صَلَاتِهِ"

**د حديث مطلب**: مطلب دادې چه کله به رسول الله ﷺ مونځ کولو اودَ رومبی رکعت يا دريم رکعت دَ آخری سجدې نه به ئی سر اوچتولو نواول به لږشان کيناستو آرام به ئی کولو اوبيابه مخکی رکعت دَپاره پاسيدو. دَ فقهاؤ په اصطلاح کښې دې عمل ته جسله دَ استراحت وائی.

**په جلسه استراحت کښې مذاهب:**

① امام شافعی رحمه الله جلسې د استراحت ته مطلقًا سنت وئيلی که په وخت دَ عذر وی اوکه په غيرعذر کښې وی داد عبادت حصه ده اوسنت دی. هغوی فرمائی چه دغه شان د کيناستو نه پس دَ پاسيدو طريقه هم دغه ده چه دواړه لاسونه په زمکه باندې کيخودوسره پاسی دا مسنون دی.

(۱) اخرجه بخاری كتاب الاذان باب قول الله تعالى: {منيبين إليه واتقوه وأقيموا الصلاة ولا تكونوا من المشركين} [الروم: ۳۱](رقم-۵۲۳) كتاب الصلاة،باب النهوض فى الفرد (رقم- ۸٤٤) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب كيف النهوض من السجود (رقم-۲۸۷) والنسائى كتاب التطبيق/باب الاستواء للجلوس عند الرفع من السجدتين باب الاستواء للجلوس عند الرفع من السجدتين (رقم- ۱۱۵۲)

۲ حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله اود مختار قول مطابق حضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله او امام مالك رحمه الله فرمائی چه دا جسله د استراحت د عبادت د قسم سنت یا مستحب نه ده بلکه دا د عذرونو سره متعلق د مجبورئی په وخت یوعمل دی او په حالت د مجبورئی باندې محول دې.

**داول فريق دليل:** زیربحث حدیث د حضرت مالك بن حویرث رضی الله عنه روایت د دوی مستدل دې کوم چه په خپل مقصد باندې واضحه دلیل دې.

**داول فريق د دليل دوه جوابونه:** ۱ د مالك بن حویرث رضی الله عنه روایت په حالت د عذر اومجبورئی باندې محمول دې. حضورپاك د بوډاوالی اوکمزورتیی په حالت کښې یا د بیمارئی د وجې نه داسې عمل کړې دې او په حالت د عذرکښې داکول ښه هم ښکاری.

۲ د حضرت مالك بن حویرث رضی الله عنه روایت د جواز په بیانولو باندې محمول دې چه حضورپاك د بیان جواز دپاره داسې کړی دی.

**د دويم فريق دليل:** د حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت د دوی مستدل دې چه په سنن ترمذی کښې په دې الفاظوسره نقل دې. ((عن ابی هریرة قال کان النبی ﷺ ینهض فی الصلوة علی صدور قدمیه)) (ترمذی ص: ۶۴)

امام ترمذی رحمه الله د مالك بن حویرث رضی الله عنه روایت نه پس متصل حدیث نقل کړې دې او په دې باندې ئې د اهل علم عمل خودلې دې دکوم نه چه معلومیږی چه داحدیث صحیح دې او په کثرت سره امت په دې باندې عمل کړې دې.

**اعتراض:** د دې حدیث د سند په یو طریقه کښې خالد بن ایاس راوی ضعیف وئیلې شوې دې نودا حدیث ضعیف شو. اوقابل استدلال پاتې نه شو.

**داعتراض جواب:** د یو طریق په وجه سره د اصل حدیث صحت نه متاثرکیږی. هم دغه روایت په مصنف ابن ابی شیبه کښې داسې نقل دې: ((عن ابن مسعود انه کان ینهض فی الصلوة علی صدور قدمیه ولم یجلس))

هم دغه شان روایت د حضرت علی رضی الله عنه، حضرت ابن عمر رضی الله عنهما او حضرت زبیر رضی الله عنه نه هم مصنف ابن ابی شیبه کښې ذکردې بلکه د شعبی رحمه الله په حواله سره ابن ابی شیبه داسې فرمائی: "عن الشعبی قال کان عمر وعلی واصحاب النبی ﷺ ینهضون فی الصلوة علی صدور اقدامهم" (کذا فی المعات)[اشعة المعات: ۳۸۳]

**د دويم فريق دويم دليل:** د باب التشهد فصل ثانی آخری حدیث نمبر(۸۹۸) هم د دوی مستدل دې. چه مشکوة ص: ۸۵ باندې ذکر دې الفاظ دادی: ((وعن عبد الله ابن مسعود قال کان النبي ﷺ في الرکعتین الاولیین کانه علي الرضف حتي یقوم)) (رواه ترمذی)

یادلرئی چه د علامه توربشتی رحمه الله د تشریح مطابق داحدیث د جمهورو دلیل دې گنی نورو

شارحينو دَدي مطلب تشهد قعده اولی بيان کړي دي.

**نوټ**: دَ فقهاؤ داختلاف دَ جواز اوعدم جواز نه دي بلکه دَ اولی اوغير اولی اختلاف دي. باقي شوافع چه دَ مونځ گذار دَ اودريدو کومه طريقه خودلي ده چه دواړه لاسونه په زمکه باندې کيږده جمهورو دَدې باره کښې فرمائی دَحضرت ابن عمر ﷠ په روايت کښې دَدې قسم اودريدو ممانعت راغلي دي. باب تشهد کښې حديث نمبر(۸۹۸) لاندې به دَدې بحث ان شاء الله راځی.

**[۷۹۴]دتکبير تحريمه څخه وروسته د لاسونو کيخودلو محل**

۷۹۴—(۱)[۸] ۱ وَعَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ: ۲ «أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- رَفَعَ يَدَيْهِ حِينَ دَخَلَ فِي الصَّلَاةِ كَبَّرَ ۳ ثُمَّ الْتَحَفَ بِثَوْبِهِ، ۴ ثُمَّ وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى الْيُسْرَى، ۵ فَلَمَّا أَرَادَ أَنْ يَرْكَعَ أَخْرَجَ يَدَيْهِ مِنَ الثَّوْبِ، ۶ ثُمَّ رَفَعَهُمَا وَكَبَّرَ فَرَكَعَ، ۷ فَلَمَّا قَالَ: "سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ" رَفَعَ يَدَيْهِ، ۸ فَلَمَّا سَجَدَ، سَجَدَ بَيْنَ كَفَّيْهِ»، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ۱ د وائل ابن حجر ﷛ په باره کې منقول دي ۲ چې هغه حضور ﷺ وليدلو چې حضور ﷺ د مونځ شروع کولو په وخت کې دواړه لاسونه پورته کولو سره تکبير وويلو ۳ بيا لاسونه يې په کپړه کې دننه کړل ۴ او ښي لاس يې په گس لاس کېښودلو ۵ بيا چې رکوع ته د تلو اراده يې وکړله نو دواړه لاسونه يې د کپړې څخه راوښکل ۶ هغه يې اوچت کړل او تکبير ويلو سره رکوع ته لاړلو ۷ او کله چې (د رکوع څخه د ودريدو په وخت يې) سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَہ اوويل نو (هغه وخت هم) لاسونه يې پورته کړل ۸ بيا چې يې سجده کوله نو د دواړو لاسونو په مينځ کې يې وکړله (يعني خپل سر مبارك يې د دواړو ورغوو په مينځ کې كيښودلي. (مسلم)

**د راوی مختصر حالات**: وائل بن حجر ﷛ دَ شان والاصحابی دي چه دَحضورپاك په آخری عمر کښې مسلمان شوې وو. دې دَ حضر موت اوسيدونکي وو اودَهغه ځائی دَ قبائلی سردرانونه وو اودَ هغه پلار دَ حضرموت وغيره بادشاه وو. وائل بن حجر ﷛ غالبًا سنة الوفود کښې مدينې ته راغلو پخپله رضا اورغبت ئی اسلام قبول کړو. وئيلی شی چه دَهغه دَ راتلونه وړاندې رسول الله ﷺ صحابه کرامو ﷡ ته داسې زيرې اوروليې وو تاسوله دَ ډير لرې علاقې حضرموت نه وائل بن حجر ﷛ مسلمان کيدوسره راروان دي چاچه الله تعالی اودَهغه رسول ﷺ په رضا اورغبت سره دَ زړه نه منلې دی اوهغه دَخپلو علاقو دَ بادشاهانو دَ شهزادګانونه يو شهزاده دي.

کله چه حضرت وائل ﷛ رسول الله ﷺ ته راورسيدو نو حضورپاك دَهغوی په ډير ګرمجوشنی سره استقبال اوکړو او هغه ئی خپل ځان ته نيزدې کړو اوبيائی خپل څادر

[۱] اخرجه مسلم كتاب الصلاة ، باب وضع يده اليمنى على اليسرى بعد تكبيرة الإحرام تحت صدره فوق سرته، ووضعهما في السجود على الأرض حذو منكبيه (رقم- ٥٤ - (٤٠١)

خورکړو په هغې نې کینولو او دَهغه په حق کښې دا دعا اوفرمائیله "اللهم بارك في وائل وولده وولدولده" رسول الله ﷺ حضرت وائل رضي الله عنه دَخپلې علاقې سردار مقرر کړو. حضرت وائل رضي الله عنه زیات تر دَحضور پاك دَ مونځ کیفیت بیان کړې دې. دَهغه دَ پلار نوم حجر دې حاء وراندې جیم روستو دې. دَحضرت معاویه رضي الله عنه دَخلافت په زمانه کښې دَهغوی انتقال شوې.

**حل اللغات:** ① اَلْتَحَفَ: أَيْ: تَسَتَّرَ: پټ نې کړل، دننه نې کړل.

**تسهیلات:** **قوله: ثُمَّ وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى الْيُسْرَى:**

په دې حدیث کښې د دریو مسائلو بحث کول دی.

**اول بحث: د قیام په حالت کښې د لاسونو په تړلو او ارسال کښې مذاهب:**

① دَ امام مالك رحمه الله مشهور قول دَارسال دې یعنې په حالت قیام کښې لاسونه په نامه وغیره باندې نه ایږدی بلکه پریخودې شی. دَهغوی دویم قول دَ جمهورو په شان دې چه لاسونه تړل سنت دی.

② دَ جمهور سلف او خلف مسلك دادې چه دَ قیام په حالت کښې وضع یدین سنت دی یعنی مونځ گذار چه کله په مانځه ولاړ وی نو لاسونه تړل سنت دی ارسال نه دې.

**د اول فریق دلیل:** دوی دَ قیاس نه استدلال کړې دې چه کله یو سړې دَ بادشاه په مخکښې اودریږی نو مرعوب کیدو سره لاسونه پریږدی تړی نه. لهذا چه کله سړې دَ احکم الحاکمین مخې ته راځی په مانځه اودریږی نو دَ رعب او هیبت تقاضا ده چه لاسونه دې پریږدی دَ تړلو کوشش دې نه کوی.

**د اول فریق د دلیل جواب:** دَدغه تړولو احادیثو په موجودګئ کښې حضرت امام مالك رحمه الله دَ قیاس هیڅ مقام نشته دې ځکه چې د نقص په مقابله کښې قیاس باطل وی.

**د دویم فریق دلائل:**

① زیربحث حدیث د دوی مستدل دې چه په خپل مقصد کښې ښه واضحه دې.

② دَحضرت سعد بن سهل رضي الله عنه حدیث نمبر(۷۹۸) هم د دوی مستدل دې.

③ دَ فصل ثانی حدیث نمبر(۸۰۳) دَحضرت قبیصه رضي الله عنه روایت د دوی مستدل دې

**دویم بحث: په قیام کښې د وضع یدینو په محل کښې مذاهب:**

کله چه په دې حدیث کښې په مانځه کښې دَلاسونو تړلو صراحت اوشو نو اوس دَ جمهورو په خپل مینځ کښې اختلاف پیدا شو چه لاسونه کوم ځائی اوتړلې شی.

① امام ابوحنیفه رحمه الله امام احمد بن حنبل رحمه الله اوسفیان ثوری رحمه الله دَ مشهور قول مطابق په مانځه کښې لاسونه دَ نامه لاندې تړل غوره دی.

② دَ امام شافعی رحمه الله په نیز او په یوغیر مشهور قول کښې دَ امام احمد بن حنبل رحمه الله په نیز په مانحه کښې لاسونه دَ سینې لاندې او نامه دَپاسه کیخودل غوره دی. (کذا فی رحمة الامة فی اختلاف الائمه ص:۳۲)

**د اول فریق دلیل:** دَ صحیح ابن خزیمه روایت د دوی مستدل دې دکوم الفاظ چې دا شان دی: "فوضع یده الیمنی علی الیسری علی صدره" په دې روایت کښې په سینه باندې دَ لاسونو کیخودو ذکر دې.

**ددویم فریق دلائل:** ① دویم فریق دَحضرت علی رضی الله عنه دَ اثر نه استدلال کړې دې الفاظ ئې دا دی: "قال من السنة وضع الکف علی الکف فی الصلوة تحت السرة" (سنن بیهقی)

② دَ حضرت وائل بن حجر رضی الله عنه روایت هم د دوی مستدل دې. دکوم الفاظو چې دا دی. "عن وائل بن حجر قال رأیت النبی صلی الله علیه وسلم وضع یمینه علی شماله تحت السرة". (مصنف ابن ابی شیبه ج۱ص۳۹۸)

**د اختلاف مذکور نوعیت:** یادلرئی دَ لاسونو تړلو دَمقام دَتعیین باره کښې چه څومره روایتونه دی دَاصول جرح اوتعدیل په رڼا کښې په هغه ټولو باندې کلام دې. احنافو چه دَ کوموروایاتونه استدلال کړې دې په هغې باندې دَ شوافع دَ مستدلات نه نسبتاً کم کلام کړې شوې دې بهرحال دادَ افضل او غیرافضل مسئله ده. بیا دَ جوازدَبیان دَپاره داسې عمل کړې شوې دې لهذا دا څه دومره لویه جګړه نه ده. امام ترمذی رحمه الله داسې فیصله کړې ده. "والعمل علی هذا عند اهل العلم من اصحاب النبی صلی الله علیه وسلم ومن بعدهم یرون ان یضع الرجل یمینه علی شماله فی الصلوة ورای بعضهم ان یضعهما فوق السرة ورای بعضهم ان یضعهما تحت السرة وکل ذلك واسع عندهم". (ترمذی ج۱ص۵۹)

**دریم بحث د لاسونو تړلو په کیفیت کښې مختلف روایات**

دَ لاسونو تړلو په کیفیت کښې هم اختلاف دې بلکه دَ آئمه احنافو په خپل مینځ کښې هم اختلاف دې. ① دَدې وجه داده چه بعض روایاتو کښې وضع الکف ذکر راغلې دې لکه چه پورته دَحضرت علی رضی الله عنه په روایت کښې دې.

② بعض روایاتو کښې ښې لاس دَ ګس لاس په مروند باندې دَ کیخودو ذکر راغلې دې لکه دَ حضرت سعد بن سهل رضی الله عنه حدیث نمبر (۷۹۸) کښې چه دی.

③ بعض روایاتو کښې دَ رسغین ذکر هم راغلې دې.

**د روایاتو په مینځ کښې تطبیق:** علماء کرامو په دې کښې یوبهترین تطبیق کړې دې په کوم سره چه په ټولو روایاتو باندې په آسانئی سره عمل کیږی مثلاً دَ ښی لاس تلې دَ ګس لاس په شا باندې کیخودې شی او غټې ګوتې اوکچې ګوتې دَ ګس لاس په مروند نه راتاؤکړی اودَ ښی لاس باقی درې ګوتې دَ ګس لاس مروند باندې کیږدی. دغه شان کف

رسغین او ذراع والا تول روایاتو باندې به عمل اوکړې شی. اوداخبره یادساتل پکاردی چه بعض خلق په پوره لاسونو او متې دَ اوږو پورې اوږلوسره یوپه بل راتاؤ کړی په سینه باندې ایږدی دا مسنون شکل نه دې په دې وجه دا شکل ښه هم نه ښکاری.

**قوله:** مِنَ الثَّوْبِ:

**یوه نکته:** داسې معلومیږی چه حضرت وائل رضی الله عنه حضوراکرم ﷺ دَیخننی په موسم کښې کتلې په دې وجه رسول الله ﷺ لاسونه په کپړو کښې پټ کړې وو.

**قوله:** بَيْنَ كَفَّيْهِ:

**په سجده کښې د مخ کیخودو مسنون طریقه:** مسنون طریقه هم دغه ده چه دَ سجدې په حالت کښې دواړه لاسونه غوږونو سره داسې کیخودې شی که دَ غوږونونه څه پریوځی نوچه هغه دَ لاسونو په شاباندې پریوځی داسې نه وی چه لاسونه ئی شاته په زمکه باندې ایخودې وی او سر ئی وړاندې وی یا سرئی روستو وی او لاسونه ئی وړاندې وی اونه دې داسې وی چه لاسونه دَ سر او مخ نه ډیر لرې کیخودې وی.

**[۷۹۸] په قیام کښې ښې لاس په گس لاس کیخودل**

٧٩٨ ـ (١)[٩] [١] وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] «كَانَ النَّاسُ يُؤْمَرُونَ أَنْ يَضَعَ الرَّجُلُ الْيَدَ الْيُمْنَى عَلَى ذِرَاعِهِ الْيُسْرَى فِي الصَّلَاةِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] سهل ابن سعد رضی الله عنه فرمایي [٢] چې خلقو ته به حکم ورکول کیدو چې مونځ کونکي دي په لمانځه کې ښي لاس د گس لاس دپاسه ایږدي. (بخاري)

**تسهیلات: نوټ:** د دې حدیث تشریح وړاندې تیره شوې ده.

**[۷۹۹] په مانځه کښې د تکبیراتو ځایونه**

٧٩٩ ـ (٢)[١٠] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ يُكَبِّرُ حِينَ يَقُومُ، [٣] ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَرْكَعُ، [٤] ثُمَّ يَقُولُ: "سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ" حِينَ يَرْفَعُ صُلْبَهُ مِنَ الرَّكْعَةِ، [٥] ثُمَّ يَقُولُ وَهُوَ قَائِمٌ: "رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ" [٦] ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَهْوِي، [٧] ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَرْفَعُ رَأْسَهُ، [٨] ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَسْجُدُ، [٩] ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَرْفَعُ رَأْسَهُ، [١٠] ثُمَّ يَفْعَلُ ذَلِكَ فِي الصَّلَاةِ كُلِّهَا حَتَّى يَقْضِيَهَا، [١١] وَيُكَبِّرُ حِينَ يَقُومُ مِنَ الثِّنْتَيْنِ بَعْدَ الْجُلُوسِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] ابوهریره رضی الله عنه فرمایي [٢] چې رسول الله ﷺ به کله د لمانځه اراده کوله نو د

---

(١) اخرجه البخاری کتاب الاذان باب وضع الیمنی علی الیسری فی الصلاة (رقم-٧٤٠) ومالک فی الموطا کتاب قصر الصلاة فی السفر . باب وضع الیدین إحداهما علی الأخری فی الصلاة (رقم- ٤٧)

(٢) اخرجه البخاری کتاب الاذان باب إقبال الإمام علی الناس، عند تسویة الصفوف (رقم-٧١٩) ومسلم کتاب الصلاة ، باب إثبات التکبیر فی کل خفض، ورفع فی الصلاة إلا رفعه من الرکوع فیقول: فیه سمع الله لمن حمده (رقم-٢٨ - (٣٩٢) والنسائی کتاب التطبیق /باب التکبیر للسجود باب التکبیر للسجود (رقم-١١٥٠)

ودریدو په وخت به یې تکبیر تحریمه ویله۳ بیا رکوع ته د تلو په وخت به یې تکبیر ویلو۴ او هر کله چې د رکوع څخه خپله ملا مبارکه به یې پورته کوله نو سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ به یې ویل۵ بیا په ولاړه به یې رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ ویل۶ بیا چې (د سجدې د پاره) به ښکته کیدلو نو تکبیر به یې ویلو۷ او د سجدې څخه چې سر به یې پورته کولو نو تکبیر به یې ویلو۸ بیا به یې تکبیر ویلو کله چه به سجدې ته تلو ۹ بیا به نې تکبیر ویلو کله چه به یې سر پورته کولو ۱۰ بیا د لمانځه تر پوره کولو پورې به ټول لمانځه کې به یې دغسې کول۱۱ او کله چې به دوو رکعاته کولو څخه وروسته ودریدلو نو تکبیر به یې ویلو. (بخاري، مسلم.)

**حل اللغات:** ① يَهْوِي: أَيْ: يَهْبِطُ وَيَنْزِلُ إِلَى السُّجُودِ: ښکته کیدلو به سجدې ته.

**تسهیلات:**

**نوټ:** د دې حدیث د مختلفو اجزاؤ تشریح په مختلف احادیثو کښې تیره شوې ده.

**[۸۰۰] د اوږد قیام افضلیت**

۸۰۰—()[۱۱] ۱ وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "۲ «أَفْضَلُ الصَّلَاةِ طُولُ الْقُنُوتِ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ حضرت جابر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل۲ د ټولو څخه بهتر مونځ هغه دي چې په هغه کې قیام اوږد وي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① طُولُ الْقُنُوتِ: أَيْ طُولُ الْقِيَامِ: یعنی چه قیام پکښې اوږد وی، د قنوت ډیرې معانې دی دلته په معنی د قیام سره دي.

**تسهیلات:** **قوله:** طُولُ الْقُنُوتِ:

**د قنوت مختلف معانی:**

① لفظ قنوت معنی دَ سکوت هم دي
② دَدې معنی طاعت هم دي.
③ دَدې معني قیام هم دي دعا هم ده.
④ په معنی دَ خشوع او خضوع هم دې.
⑤ په قنوت نازله باندې هم یادیږی
⑥ په مانځه کښې قیام دي

دلته ترې دا شپږمه معنی مراد ده یعنی په مانځه کښې تر ډیر وخته پورې اودریدل او قرآن کریم لوستل افضل دی.

[1] اخرجه مسلم كتاب صلاة المسافرين وقصرها باب أفضل الصلاة طول القنوت (رقم-۱۶٤ - (۷۵۶) وابن ماجة باب ما جاء في طول القيام في الصلوات (رقم-۱٤۲۱) والترمذي كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في طول القيام في الصلاة (رقم-۳۸۷)

**د نفلي مونځ ادا کولو دوه طريقې:** ① چه سرې قيام او قراءت اوږدنه کړي بلکه هم په دومره وخت کښې مختصر مختصر مګر دَ زيات نه زيات رکعتونه اوکړي دې ته کثرت سجود وائيلی شي.

② چه سړې په مانځه او دريږي او ښه اوږد قراءت اوکړي او اوږده رکعتونه اوکړي دې ته طول قيام وائي.

**د دواړو طريقو په جواز اتفاق:** په دې باندې دَ ټولو اتفاق دې چه دا دواړه طريقې جائز او دَ اجراو ثواب سبب دی ليکن په دې کښې بحث دې چه په دې کښې کومه يوه طريقه ډيره غوره ده.

**په طول قيام او کثرت سجود په افضليت کښې مذاهب:**

① دَبعضې سلف په نيزباندې کثرت السجود بهتر دی دَامام شافعي رحمه الله يو قول هم دغه شان دې چه تکثير سجود افضل دی

② بعض حضراتو دواړه برابر ګرځولي دی

③ بعض حضرات دَ شپې طول قيام او دَ ورځې کثرت سجود ته افضل وائيلي دې.

④ شوافع او احناف بلکه جمهور په نيز طول قيام افضل دې

اصل جګړه د اول او څلورم فريق دې دويم او دريم د دې واړو په ضمن کښې راځی. د دې وجې صرف د اول او څلورم فريق دلائل ذکر کولی شي.

**داول فريق دليل:** په حديث کښې راغلی دی کله چه بنده په سجده کښې وی نو هغه دَ خپل رب سره دَ ټولو نه زيات نيزدې وی.

**د څلورم فريق دليل:** په طول قيام کښې تلاوت قرآن دې او په مانځه کښې تلاوت دَ مانځه دَتسبيحاتو نه غوره دی.

**د څلورم فريق وجوه ترجيح:** ① پخپله نبی کريم ﷺ طول قيام غوره ګرځولې دې

② قرآن په طول قيام کښې زيات لوستلې شي او تلاوت افضل دې دَ تسبيحات نه او دَ تسبيحات کثرت سجود دَدوو رکعتو په کثرت سره کيږي.

باقي سجده غوره ده يا قيام غوره دې دَدې بحث به ان شاء الله باب السجود کښې راځي.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۸۰۱] د نبي عليه السلام د مانځه طريقه

۸۰۱-()[۱۲] ۱ عَنْ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ -، ۲ قَالَ فِي عَشَرَةٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: «أَنَا أَعْلَمُكُمْ بِصَلَاةِ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، ۳ قَالُوا: فَاعْرِضْ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ رَفَعَ يَدَيْهِ ۴ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكِبَيْهِ ثُمَّ يُكَبِّرُ، ۵ ثُمَّ يَقْرَأُ، ثُمَّ يُكَبِّرُ وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكِبَيْهِ،

**ترجمه:** ۱ د ابو حميد ساعدي رضي الله عنه په باره کې منقول دي ۲ چې هغه د رسول الله ﷺ دلس صحابه کرامو رضي الله عنهم جماعت ته اوويل چې زه د رسول الله ﷺ د لمانځه طريقه ستاسو څخه زياته ښه پيژنم ۳ د صحابه ؤ رضي الله عنهم جماعت ورته اوويل ښه بيان يې وکړه نو هغه اوويل چې حضور ﷺ چې به د لمانځه د پاره ودريدلو نو خپل دواړه لاسونه به يې پورته کړل او ۴ د اوږو برابر به يې وړل او تکبير به يې ويلو ۵ بيا به يې قراءت کولو د دې څخه وروسته تکبير ويلو سره خپل دواړه لاسونه به يې تر اوږو پورې پورته کول.

**حل اللغات:** ① اعْرِضْ: دا دامرحاضر صيغه ده د باب افعال نه، يعنی پيش کړه، أَيْ: بَيِّنْ: بيان کړه.

**تسهيلات:**

**نوټ:** د دې حديث تشريح وړاندې په مختلفو رواياتو کښې تيره شوې ده.

۱ ثُمَّ يَرْكَعُ وَيَضَعُ رَاحَتَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ، ۲ ثُمَّ يَعْتَدِلُ فَلَا يُصَبِّي رَأْسَهُ وَلَا يُقْنِعُ، ۳ ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهُ فَيَقُولُ: "سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ" ۴ ثُمَّ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكِبَيْهِ مُعْتَدِلًا، ثُمَّ يَقُولُ "اللّٰهُ أَكْبَرُ"، ۵ ثُمَّ يَهْوِي إِلَى الْأَرْضِ سَاجِدًا، ۶ فَيُجَافِي يَدَيْهِ عَنْ جَنْبَيْهِ، ۷ وَيَفْتَخُ أَصَابِعَ رِجْلَيْهِ، ۸ ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهُ وَيَثْنِي رِجْلَهُ الْيُسْرَى فَيَقْعُدُ عَلَيْهَا، ۹ ثُمَّ يَعْتَدِلُ حَتَّى يَرْجِعَ كُلُّ عَظْمٍ فِي مَوْضِعِهِ مُعْتَدِلًا،

**ترجمه:** ۱ او رکوع ته تلو سره دواړه ورغوي به يې په خپلو ګونډو ايښودل ۲ او ملا (شا) به يې سيده کوله او سر به يې نه ښکته کولو او نه بلند کولو (يعني شا او سر به يې برابر ساتل) ۳ بيا د سر پورته کولو په وخت به يې سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَه ويل ۴ او دواړه لاسونه به يې تر اوږو پورې پورته کول او سيده به ودريدلو ۵ بيا به تکبير ويلو سره زمکې ته ښکته کيدو او سجده به يې کوله ۶ او (په سجده کې) خپل دواړه لاسونه به يې د خپل دواړو اړخونو څخه جدا ساتل ۷ او بيا به ئې ګوتې د پښو خپلو (او د قبلې طرف ته به ئې ساتلې) ۸ بيا به يې د سجدې څخه سر پورته کولو او ګسه خپه (غوړولو سره) په هغې به سيده کيناستلو ۹ بيا به په قرار (مطمئن) شو تردې چې هر اندام به په خپل ځاى ته برابر راتلو.

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة، باب افتتاح الصلاة (رقم-۷۳۰) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، باب إتمام الصلاة (رقم-۱۰۶۱) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى وصف الصلاة (رقم-۳۰۴)

**تسهيلات:**

**نوټ:** د دې حديث تشريح وړاندې په مختلفو رواياتو کښې تيره شوې ده.

[۱] ثُمَّ يَسْجُدُ، [۲] ثُمَّ يَقُولُ "اللهُ أَكْبَرُ"، وَيَرْفَعُ وَيَثْنِي رِجْلَهُ الْيُسْرَى فَيَقْعُدُ عَلَيْهَا، [۳] ثُمَّ يَعْتَدِلُ حَتَّى يَرْجِعَ كُلُّ عَظْمٍ إِلَى مَوْضِعِهِ، [۴] ثُمَّ يَنْهَضُ، ثُمَّ يَصْنَعُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ مِثْلَ ذٰلِكَ، [۵] ثُمَّ إِذَا قَامَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ كَبَّرَ [۶] وَرَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكِبَيْهِ كَمَا كَبَّرَ عِنْدَ افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ، [۷] ثُمَّ يَصْنَعُ ذٰلِكَ فِي بَقِيَّةِ صَلَاتِهِ، [۸] حَتَّى إِذَا كَانَتِ السَّجْدَةُ الَّتِي فِيهَا التَّسْلِيمُ أَخَّرَ رِجْلَهُ الْيُسْرَى، [۹] وَقَعَدَ مُتَوَرِّكًا عَلَى شِقِّهِ الْأَيْسَرِ، ثُمَّ سَلَّمَ، [۱۰] قَالُوا: صَدَقْتَ هٰكَذَا كَانَ يُصَلِّي». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ، وَرَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ مَعْنَاهُ،

**ترجمه:** [۱] بيا تکبير ونيلو (دويمي) سجدې ته به تلو [۲] بيا الله اکبر ويلو سره (د سجدې څخه) به پورته کيدې او په ګسه خپه باندې به په اطمينان سره کيناستلو (يعني جلسهٔ استراحت به يې کوله) [۳] بيا به په قرار (مطمئن) شو تر دې چې د بدن هر عضو (اندام) به په خپل ځاي راتلو [۴] بيا به ني په دويم رکعت کې هم (ماسوا د سبحانك اللهم او اعوذ بالله ويلو سره) دغسې کول [۵] او هر کله چې به ددويم رکعت کولو (يعني د تشهد) څخه وروسته ودريدلو نو الله اکبر به يې ويلو [۶] او دواړه لاسونه به يې تر اوږو پورې پورته کول څنګه چې د لمانځه شروع کولو په وخت به يې تکبير ويلو [۷] بيا باقي مونځ به يې دغسې ادا کولو [۸] او هر کله چې هغه سجده (يعني د آخري رکعت دويمه سجده) به يې وکړه چې د هغې څخه وروسته سلام ګرځول کيږي نو خپله ګسه خپه به يې بهر راوښکله [۹] او د ګس طرف په اړخ (کناتې) به کيناستلو او بيا (د تشهد وغيره ويلو وروسته) به يې سلام ګرځولو [۱۰] (دي اوريدو سره) هغه ټولو صحابه و ﷺ اوويل بيشکه تا رښتيا اوويل رسول الله ﷺ به دغسې مونځ کولو (ابوداؤد، دارمي) ترمذي او ابن ماجه دا روايت بالمعنې نقل کړي دي

**حل اللغات:** ② رَاحَتَيْهِ: أَيْ: كَفَّيْهِ: دواړه اوږې مراد دی. ③ لَا يُصَبِّي: دَ باب تفعيل نه دي، أَيْ: لَا يُنْزِلُ: نه به ئې ښکته کولو (سر)، (تصبية د پورته نه ښکته راتلو ته وائی). ③ لَا يُقْنِعُ: دَ باب افعال نه دي أَيْ: لَا يَرْفَعُهُ: په رکوع کښې سر زيات نه اوچتولو. ⑤ يَهْوِي: أَيْ: يَهْبِطُ وَيَنْزِلُ إِلَى السُّجُودِ: ښکته کيدلو به سجدې ته. ⑥ فَيُجَافِي: أَيْ: يُبَاعِدُ: جدا او لرې به ئې ساتل، ⑦ يَثْنِي: ثنی يثنی دَ تاوولو په معنی کښې دې په قعده کښې دکيناستلو دَپاره خپه تاولو سره په هغې باندې کيناستو کيفيت خودلې شوې دی. ⑧ يَنْهَضُ: أَيْ: يَقُومُ: اودريدلو به،

[۱] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [۲] وَفِي رِوَايَةٍ لِأَبِي دَاوُدَ مِنْ حَدِيثِ أَبِي حُمَيْدٍ: [۳] «ثُمَّ رَكَعَ فَوَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ كَأَنَّهُ قَابِضٌ عَلَيْهِمَا، [۴] وَوَتَّرَ يَدَيْهِ فَنَحَّاهُمَا عَنْ جَنْبَيْهِ، [۵] وَقَالَ: ثُمَّ سَجَدَ فَأَمْكَنَ أَنْفَهُ وَجَبْهَتَهُ الْأَرْضَ، [۶] وَنَحَّى يَدَيْهِ عَنْ جَنْبَيْهِ، [۷] وَوَضَعَ كَفَّيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ، [۸] وَفَرَّجَ بَيْنَ فَخِذَيْهِ غَيْرَ حَامِلٍ بَطْنَهُ عَلَى شَيْءٍ مِنْ فَخِذَيْهِ حَتَّى فَرَغَ،

**ترجمه:** [۱] او ترمذي ويلي دي چې دا حديث حسن صحيح دي، [۲] د ابوداؤد په يو روايت

کې چې د ابو حمید څخه روایت دي دا الفاظ دي[۲] بیا رکوع ته تلو سره دواړه لاسونه به یې په زنګونانو داسې ایښودل چې په مضبوطۍ سره به یې نیولي وو[۴] او خپل لاسونه به یې (د لیندۍ) د تار په شان ایښودل او څنګلې به یې د خپلو دواړو اړخونو څخه جدا ساتلې [لکه چې څنګلې یې (د لیندۍ) د تار مشابه وي او اړخ یې د لیندۍ مشابه] [۵] او راوي وایي چه بیا به سجدې ته تلو نو خپله پوزه او تندي به یې په زمکه لګول[٦] او لاسونه به یې د اړخونو څخه جدا ساتل[۷] او دواړه لاسونه به یې د اوږو په برابرۍ کېښودل[۸] او دواړه ورنونه به یې کشاده (کولاو) ساتل او خپل نس (خیټه) به یې دورنو څخه جدا ساتلو تر دې چې د سجدې څخه به فارغ شو.

**حل اللغات:** ⑨ مُتَوَرِّكًا: اَلتَّوَرُّكُ أَنْ يَجْلِسَ الرَّجُلُ عَلَى وَرِكِهِ، أَيْ: جَانِبِ أَلْيَتِهِ وَيُخْرِجُ رِجْلَهُ مِنْ تَحْتِهِ: تورک داسې کیناستلوته وائي چه سړی په یو اړخ (کوناټي) باندې کیني او خپه ددې لاندې راوباسي. ⑩ قَابِضٌ: په موټي کښې نیونکي. ⑪ وَتَّرَ: وَهُوَ جَعْلُ الْوَتَرِ عَلَى الْقَوْسِ: توتیر د باب تفعیل نه دې په لنده باندې پټه خیژولوته وائي. ⑫ فَنَحَّاهُمَا: په دې الفاظو سره دَدې تفسیر مقصود دې یعني څنګه چه په لنده باندې کله پټه اوخیژولې شي هغه وخت دَ لندې دواړه طرفونه جدا کیږي دغه شان دلته لاسونه دَ اړخونو نه جدا کیدل.

[۱] ثُمَّ جَلَسَ، فَافْتَرَشَ رِجْلَهُ الْيُسْرَى[۲] وَأَقْبَلَ بِصَدْرِ الْيُمْنَى عَلَى قِبْلَتِهِ،[۳] وَوَضَعَ كَفَّهُ الْيُمْنَى عَلَى رُكْبَتِهِ الْيُمْنَى،[۴] وَكَفَّهُ الْيُسْرَى عَلَى رُكْبَتِهِ الْيُسْرَى،[۵] وَأَشَارَ بِأُصْبُعِهِ - يَعْنِي السَّبَّابَةَ» -[٦] وَفِي أُخْرَى لَهُ: «وَإِذَا قَعَدَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ قَعَدَ عَلَى بَطْنِ قَدَمِهِ الْيُسْرَى، وَنَصَبَ الْيُمْنَى،[۷] وَإِذَا كَانَ فِي الرَّابِعَةِ أَفْضَى بِوَرِكِهِ الْيُسْرَى إِلَى الْأَرْضِ[۸] وَأَخْرَجَ قَدَمَيْهِ مِنْ نَاحِيَةٍ وَاحِدَةٍ»

**ترجمه:** [۱] بیا به داسې ناست وو چې ګسه خپه به یې وغوړوله[۲] او د ښي پښې پشت (شا) به یې د قبلې طرف ته کړله[۳] او ښي لاس به ئې په ښي زنګون باندې کېښودلو [۴] او ګس لاس به یې په ګس زنګون باندې کېښودلو[۵] او [د اشهد ان لا اله الا الله ویلو په وخت به یې پخپله ګوته یعنې] په سبابه ګوتې سره ئې اشاره کوله[٦] او د ابوداؤد په یو بل روایت کې دا الفاظ دي چې کله به دوه رکعاته کولو نه پس کیناستلو نو د ګسې خپې په تلې به کیناستلو او ښي پښه به یې ودروله[۷] او چه د څلورم رکعت کولو نه پس به کیناستلو نو ګس اړخ (کوناټي) به یې د زمکې سره یو ځاي کولو [۸] او دواړه پښې به یې یو طرف ته وښکلې.

**حل اللغات:** ⑬ غَيْرَ حَامِلٍ: أَيْ: غَيْرَ وَاضِعٍ: بوج به ئې نه راوستلو، نه به ئې ایخودلو. ⑭ بِصَدْرِ: صدر سینې ته وائي دلته ترې د ښي خپې پنجه مراد ده. وَذٰلِكَ بِوَضْعِ بَاطِنِ الْأَصَابِعِ عَلَى الْأَرْضِ مُقَابِلَ الْقِبْلَةِ. کله چه په مونځ کښې په تشهد کښې د ښي خپې ګوتې اودرولې شي نو د خپې شا قبلې طرف ته شي.

**تسهيلات:**

**قوله: "أَنَا أَعْلَمُكُمْ"**

**د اظهار حقيقت په توګه خپل ځان ته لوی عالم ويل:**

ممکن دی چه حضرت ابوحميد الساعدی رضی الله عنه په دغه موجود صحابه کرامو کښې په عمر کښې مشروی په دې وجه ئې اوفرمائيل چه زه تاسو نه زيات پوهيږم.
شيخ عبدالحق رحمه الله اشعة المعات کښې په دې مقام باندې ليکلی دی چه که چرې يوسړې خپل ځان ته زيات عالم وائی اوهغه دَفخر اوتکبر دَپاره نه وی بلکه دَ حقيقت دَ اظهار دَپاره داسې وائی نو دا جائز دی. اوکه يوسړې دکبر اولوئی دَپاره اودَ ځان خودلو دَپاره خپل ځان ته لوئی عالم وائی نو دا ناجائز دی.

**قوله: ثُمَّ يُكَبِّرُ** "دا جمله په دې باندې دلالت کوی چه په تکبير تحريمه کښې اول لاسونه اوچتولې شی اوکله چه لاسونه دَ غوږونو برابر شی نو بيا الله اکبر وئيل پکاردی. دَ احنافو دَ فقهاؤ نه صاحب دَ هدايه وغيره اکثرو فقهاؤ هم دغه رائې ده البته امام ابويوسف او امام طحاوی رحمه الله په نيز مقارنت بهتر دې يعنی چه کوم وخت لاسونه اوچت کړی هم هغه وخت دې الله اکبر هم شروع کړی.

**قوله: "فَأَمْكَنَ أَنْفَهُ وَجَبْهَتَهُ الْأَرْضَ"**

**په سجده کښې د پوزې اوتندی په زمکه لګولو فرضيت:** معلومه شوه چه دَ سجدې دَ صحيح کيدو دَپاره ضروری دی چه پوزه اوتندې دواړه په زمکه باندې ښه کلک کيخودې شی دَ ټولو احاديثونه هم دغه معلوميږی. که چرې دَ مجبورئی او عذر دَ وجې نه دې دواړو کښې يو سره سجده اوکړه نو بغير دَ کراهت نه جائز ده.

**صرف په پوزه يا تندی سجدې کولو کښې دوه صورتونه:** ① که بغير دَ څه عذر اومجبورئی په يو اندام باندې سجده اوکړه نو په دې کښې دا تفصيل دې چه که چرې صرف تندې کيخودو سره ئې
سجده اوکړه پوزه ئې کينه خوده نو دا مکروه دی البته سجده اوشوه مونځ اوشو
② که چرې تندې کينه خودو صرف پوزه کيخودو سره ئې سجده اوکړه

**په دويم صورت کښې اختلاف:** ① په دويم صورت کښې دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په دې صورت کښې هم سره د کراهت سجده اوشوه مونځ صحيح شو ② امام ابويوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نيز په دې صورت کښې سجده صحيح نه ده په دې وجه مونځ فاسد شو.

**مفتی به قول:** دَ احنافو فتویٰ هم د صاحبينو په قول باندې ده.

[۸۰۲] د تكبير تحريمې په وخت د لاسونو پورته كولو اندازه

۸۰۲ـ( )[۱۳]① «وَعَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - ② أَنَّهُ أَبْصَرَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حِينَ قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ رَفَعَ يَدَيْهِ ③ حَتَّى كَانَتَا بِحِيَالِ مَنْكِبَيْهِ، ④ وَحَاذَى إِبْهَامَيْهِ أُذُنَيْهِ، ثُمَّ كَبَّرَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. ⑤ وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ: يَرْفَعُ إِبْهَامَيْهِ إِلَى شَحْمَةِ أُذُنَيْهِ.

**ترجمه:** ① وائل ابن حجر رضي الله عنه راوي دي ② چې هغه رسول الله ﷺ وليدلو چې كله به لمانځه ته ودريدلو نو دواړه لاسونه به يې دومره پورته كول ③ چې د اوږو برابر به رسيدل ④ او دواړه بټې (غټې) ګوتې به يې تر غوږونو پورې يوړلې بيا به يې تكبير وويلو. (ابوداؤد) ⑤ او د ابوداؤد په يو روايت كې داالفاظ دي چې رسول الله ﷺ به بټې ګوتې د غوږونو تر نرمې پورې، پورته كولې.

**حل اللغات:** ① بِحِيَالِ: أَيْ: بِحِذَائِهِمَا: مخامخ، برابر. ② حَاذَى: برابر. ③ إِبْهَامَيْهِ: متې، غټې ګوتې.

**تسهيلات:** **نوټ:** د ترجمې څخه مطلب واضح دي.

[۸۰۳] په قيام كښې د لاسونو د ترلو حكم

۸۰۳ـ( )[۱۴]① «وَعَنْ قَبِيصَةَ بْنِ هُلْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: ② كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ يَؤُمُّنَا ③ فَيَأْخُذُ شِمَالَهُ بِيَمِينِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① قبيصه ابن هلب رحمه الله د خپل پلار بزرګ څخه نقل كوي ② چه حضور ﷺ چې به مونږ ته مونځ راكولو ③ نو (په قيام كې به يې) په خپل ښي لاس سره ګس لاس نيولو. (ترمذي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① يَؤُمُّنَا: أَيْ: يَصِيرُ إِمَامًا لَنَا: زمونږ امام به جوړشو.

**تسهيلات:** د ترجمې څخه مطلب واضح دي.

[۸۰۴] د اركانو تعديل

۸۰۴ـ( )[۱۵]① وَعَنْ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «جَاءَ رَجُلٌ فَصَلَّى فِي الْمَسْجِدِ، ثُمَّ جَاءَ فَسَلَّمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ③ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَعِدْ صَلَاتَكَ، فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ ④" فَقَالَ: عَلِّمْنِي يَا رَسُولَ اللّٰهِ كَيْفَ أُصَلِّي؟ ⑤ قَالَ: "إِذَا تَوَجَّهْتَ إِلَى الْقِبْلَةِ فَكَبِّرْ، ⑥ ثُمَّ اقْرَأْ بِأُمِّ الْقُرْآنِ، وَمَا شَاءَ اللّٰهُ أَنْ تَقْرَأَ، ⑦ فَإِذَا رَكَعْتَ فَاجْعَلْ رَاحَتَيْكَ عَلَى رُكْبَتَيْكَ، ⑧ وَمَكِّنْ رُكُوعَكَ وَامْدُدْ ظَهْرَكَ،

---

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة، باب رفع اليدين في الصلاة (رقم-۷۲٤) والنسائي كتاب الافتتاح/باب موضع الإبهامين عند الرفع باب موضع الإبهامين عند الرفع (رقم-۸۸۲)

(۲) اخرجه الترمذي كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في وضع اليمين على الشمال في الصلاة (رقم- ۲۵۲) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها، باب وضع اليمين على الشمال في الصلاة (رقم-۸۰۹)

(۳) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة، باب صلاة من لا يقيم صلبه في الركوع والسجود(رقم-۸۵۹) و الترمذي كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في وصف الصلاة (رقم-۳۰۲) والنسائي كتاب التطبيق/باب الرخصة في ترك الذكر في الركوع باب الرخصة في ترك الذكر في الركوع (رقم - ۱۰۵۳)

**ترجمه:** [۱] رفاعه ابن رافع رضي الله عنه فرمايي[۲] چې يو سړي مسجد ته راغي او مونځ يې وکړو بيا د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شو او سلام يې وکړو[۳] حضور ﷺ (د سلام جواب ورکړو) او ورته وي فرمايل چه خپل مونځ دوباره اوکړه ځکه چې تا مونځ نه دي کړي[۴] هغه سړي عرض وکړو يا رسول الله ﷺ ماته د لمانځه کولو طريقه راوښايه چې مونځ څنگه اوکړم [۵] رسول الله ﷺ ورته وفرمايل هرکله چې ته قبلي طرف ته متوجه شې نو الله اکبر (يعني تکبير تحريمه) اووايه [۶] بيا سورة فاتحه او څه چې الله جل جلاله غواړي هغه اووايه (يعني د سورة فاتحه سره چې کوم سورت غواړي اووايه)[۷] او هر کله چې ته رکوع ته خې نو خپل دواړه لاسونه په خپلو زنگونانو کيږده[۸] په رکوع کې (په اطمينان سره) قائم اوسه او خپله شا اواره (همواره) ساته.

**حل اللغات:** ① أعِدْ: د امرصيغه ده، راوگرځوه (مونځ). ② رَاحَتَيكَ: أي: كَفَّيكَ: تلي (د لاسونو). ③ مَكِّنْ: أي ارْكَعْ رُكُوعًا تَامًّا مَعَ الطُّمَأنِينَةِ: ښه په آرام او کامل طريقې سره رکوع کوه. ④ امْدُدْ: أي: ابْسُطْ: ملا، شا خوره ساته، هواره ساته،

[۱] فَإِذَا رَفَعْتَ فَأَقِمْ صُلْبَكَ، [۲] وَارْفَعْ رَأْسَكَ حَتَّى تَرْجِعَ الْعِظَامُ إِلَى مَفَاصِلِهَا [۳] فَإِذَا سَجَدْتَ فَمَكِّنِ السُّجُودَ، [۴] فَإِذَا رَفَعْتَ فَاجْلِسْ عَلَى فَخِذِكَ الْيُسْرَى، [۵] ثُمَّ اصْنَعْ ذَلِكَ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ وَسَجْدَةٍ حَتَّى تَطْمَئِنَّ» [۶] هَذَا لَفْظُ الْمَصَابِيحِ، [۷] وَرَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ مَعَ تَغْيِيرٍ يَسِيرٍ، [۸] وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ مَعْنَاهُ، [۹] وَفِي رِوَايَةٍ لِلتِّرْمِذِيِّ، قَالَ: («إِذَا قُمْتَ إِلَى الصَّلَاةِ فَتَوَضَّأْ كَمَا أَمَرَكَ اللَّهُ بِهِ، [۱۰] ثُمَّ تَشَهَّدْ، فَأَقِمْ، فَإِنْ كَانَ مَعَكَ قُرْآنٌ فَاقْرَأْ، [۱۱] وَإِلَّا فَاحْمَدِ اللَّهَ وَكَبِّرْهُ، وَهَلِّلْهُ، ثُمَّ ارْكَعْ».

**ترجمه:** [۱] او هر کله چې (د رکوع څخه) سر اوچت کړي نو خپله شا سيده کړه[۲] او سر اوچت کړه (يعني بالکل سيده ودريږه) تر دي چې ټول هډوکي خپل خپل ځاي ته راشي [۳] او هر کله چې سجده کوي نو په ښه شان سجده کوه[۴] او هر کله چې ته د سجدي څخه سر اوچت کړي نو په خپل گس ورانه باندې کينه[۵] بيا دغسې په هره رکوع او سجده کې کوه تر دي چې رکوع سجده (قومه او جلسه لکه چې د هر رکن په صحيح ادائيگي) باندې تاته اطمينان وشي[۶] د حديث داالفاظ د مصابيح دي[۷] او ابوداؤد رحمه الله دا د لږ تغير او تبديل سره نقل کړي دي،[۸] ترمذي او نسايي هم دا روايت بالمعنى نقل کړي دي،[۹] او د ترمذي په روايت کښي دا الفاظ هم دي چې کله ته د لمانځه کولو اراده وکړي نو دا رنگه اودس اوکړه څرنگه چې الله تعالى جل جلاله تاته حکم در کړي دي[۱۰] بيا کلمه د شهادت اووايه [څنگه چې نقل دي چه د اودس څخه وروسته کلمه شهادت ويل د لويي فضيلت خبره ده يا دا چې د کلمه شهادت څخه مراد اذان دي] بيا په ښه شان مونځ ادا کړه (يا د فاقم مطلب دا دي چې تکبير اووايه] او د قرآن څخه څه چې تاته ياد وي هغه اووايه [۱۱] که هيڅ دي ياد نه وي نو الحمد لله ، الله اکبر او لااله الاالله اووايه بيا رکوع وکړه.

**حل اللغات:** ⑤ صُلْبَكَ: شا، یعنی شا نیغه ساته چه دشا تول جوړونه په خپل خپل خای شی، ⑥ مَفَاصِلِهَا: جوړونه، ⑦ هَلِلْهُ: أَيْ: قُلْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ: یعنی لا إله إلا الله وایه.

**تسهیلات:** دَدې وضاحت وړاندې تیر شوې دې. هغې ته رجوع اوکړئ.

### [۸۰۵] د مانځه څخه وروسته دعا غوښتل

۸۰۵ ـ (۱) [۱۶] ۱ وَعَنِ الْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا -، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ ((«الصَّلَاةُ مَثْنَى مَثْنَى، ۲ تَشَهَّدُ فِي رَكْعَتَيْنِ، ۳ وَتَخَشُّعٌ وَتَضَرُّعٌ وَتَمَسْكُنٌ، ۴ ثُمَّ تُقْنِعُ يَدَيْكَ ۵ - يَقُوْلُ: تَرْفَعُهُمَا - إِلَى رَبِّكَ ۶ مُسْتَقْبِلًا بِبُطُوْنِهِمَا وَجْهَكَ، ۷ وَتَقُوْلُ يَا رَبِّ! يَا رَبِّ! وَمَنْ لَمْ يَفْعَلْ ذٰلِكَ فَهُوَ كَذَا وَكَذَا» ) ۸ وَفِيْ رِوَايَةٍ: "فَهُوَ خِدَاجٌ" رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ فضل ابن عباس رضی الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ (نفل) مونځ دوه دوه رکعاته دي ۳ او په هر دوه رکعات کې التحیات ویل دي ۴ او (د لمانځه روح) خشوع، عاجزي او د غریبي اظهار دي ۴ (بیا د لمانځه کولو څخه وروسته) د خپل پروردګار طرف ته دواړه لاسونه پورته کړه ۵ (حضرت فضل رضی الله عنه وایي چې د ثم تقنع یدیك څخه د رسول الله ﷺ مراد دا وو چې د لمانځه کولو څخه وروسته ته) د خپل پرودرګار طرف ته خپل لاسونه داسې پورته کړه ۶ چې د لاسونو دواړه ورغوي دې د مخ طرف ته وي (کومه چې د دعا طریقه ده) ۷ او دا وایه چې اي زما ربه اي زما ربه اوکوم سړي چې داسې ونه کړي (یعني په مذکوره بالا طریقه باندې عمل ونه کړي او دعا ونه غواړي) نو د هغه مونځ داسې داسې دي (یعني ناقص دي) ۸ او د یو روایت الفاظ داسې دي چې د هغه مونځ ناقص دي. (ترمذي)

**حل اللغات:** ① تَخَشُّعٌ: السُّكُوْنُ وَالتَّذَلُّلُ: اطمینان او عاجزی، ② تَضَرُّعٌ: التَّذَلُّلُ وَالْمُبَالَغَةُ فِي السُّؤَالِ: عاجزی کول او دالله تعالی په زیات منت زاری سره سوال کول. ③ تَمَسْكُنٌ: عاجزی او غریبی ښکاره کول. ④ تُقْنِعُ: أَيْ: تَرْفَعُ: لاسونو پورته کولو ته وائی. ⑤ خِدَاجٌ: أَيْ: نَاقِصٌ فِي الْأَجْرِ وَالْفَضِيْلَةِ: ناقص دي یعنی پوره اجر او ثواب به ورته نه ملاویږی.

**تسهیلات:**

**قوله:** "الصَّلَاةُ مَثْنَى مَثْنَى"

### د نفلو د دوه رکعتیز او څلور رکعتیز مونځ په افضلیت کښې مذاهب:

یعنی نفل مونځ دوه دوه رکعته دې په دې باندې دَټولو اتفاق دې چه نفل مونځ دوه دوه رکعته په یو سلام سره هم جائز دی اوڅلور رکعته هم جائز دی. او په افضل اوغیرافضل کښې اختلاف شوې دې.

① امام شافعی رحمه الله فرمائی چه شپه وی اوکه ورځ وی خو نفل دوه دوه رکعته کول مطلقًا افضل دی.

(۱) اخرجه الترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی التخشع فی الصلاة (رقم - ۳۸۵)

② دَ صاحبينو په نيزدَ ورځې څلور څلور اودَ شپې دوه دوه نفل كول افضل دي.
③ أمام ابوحنيفه رحمه الله په نيز مطلقًا څلورنفل كول افضل دي.
**داول فريق دليل:** دَ زيربحث فضل بن عباس رضي الله عنهما روايت د دوى مستدل دې. په كوم كښې چه دَمثنى مثنى ذكرراغلې دې.
**داول فريق د دليل جواب:** په دې حديث دې په هغې كښې حضورپاك دَ مونځ ګذار ادنى ركعتونو ذكر فرمائيلې دې. دَ افضليت خبره نشته دې مطلب دا چه دَ دوو دوو ركعتونه كم مونځ جائز نه دې.
**ددويم فريق دليل:** په شپه كښې دَ دوو ركعتو كولو افضليت دَ تراويح په مونځ باندې قياس دې.
**د دويم فريق د دليل جواب:** د تراويحو تعداد چونكه زيات دى په دې وجه هلته آسانى وركړې شوې ده او په دوو دوو ركعتوباندې عمل كړې شوې دې.
**ددريم فريق دليل:** ① دَ څلورو ركعتو افضليت دپاره دَ حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها روايت د دوى مستدل دې. هغه فرمائى چه حضورپاك دَ ماسخوتن دَ مانځه نه پس په څلورو ركعتو نفلو باندې مواظبت او دوام يعنى هميشه والې فرمائيلې دې. دَ عائشې رضي الله عنها نه روايت كړې شوې دَ بخارى شريف يوحديث داسې دې فرمائى: ((ماكان رسول الله ﷺ يزيد في رمضان ولا في غيره على احدى عشرة ركعة يصلي اربعا فلا تسأل عن حسنهن وطولهن ثم يصلي اربعا فلا تسأل عن حسنهن وطولهن ثم يصلي ثلاثا الخ)) (بخارى ۱۵۴/۱)
② يوعقلى دليل هم د دوى مستدل دې. هغه داسې چه هرهغه عبادت افضل دې په كوم كښې چه مشقت زيات وى اويو تحريمه دائمى ساتلو سره څلورركعته كولوكښې مشقت زيات دې په دې وجه افضل دى.
**دحديث د بعضې جملو وضاحت:**
① وَتَخَشُّعٌ "دَ باب تفعيل مصدر دې دَعاجزئى په معنى كښې دې.
② "تَشَهُّدٌ" دا هم دَ باب تفعيل نه دَمصدرصيغه ده مرفوع دې اودَمثنى مثنى نه پس خبرثانى دې يعنى په هرو دوو ركعتوكښې يو تشهد ضرورى دې.
③ "وَتَخَشُّعٌ" دا هم دَ باب تفعيل مصدر دې مرفوع دې دَعاجزئى په معنى كښې مګر دَدې عاجزئى تعلق باطن سره دې چه په زړه كښې دَ څه قسم وسوسه رانه شى داكيفيت په مونځ او غيردَ مونځ ټولو ځايونوكښې مطلوب دې.
④ "وَتَضَرُّعٌ" دا هم دَباب تفعيل نه دَمصدرصيغه ده ډيره دعاغوښتل او سوال كول او په هغې كښې زارى او ژړا ته وائى. دَدې تعلق ظاهرى بدن سره دې.

⑤ "وَتَمَسْكُنٌ" دا هم دَ باب تفعيل نه دَمصدر صيغه ده ذلت خواري او دَ افتقاد او حتقار دَ ظاهرولو په معنى كښې دې دا ټول الفاظ په ترکیب کښې مرفوع واقع دی.

⑥ "ثُمَّ تُقْنِعُ يَدَيْكَ" دَباب افعال نه دَمخاطب صيغه ده دَ اقناع اوچتولو په معنى كښې راخى دلته په دعا کښې لاسونه اوچتول مقصود دی.

⑦ "يَقُولُ" دا كلام دَ ابن عباس رضي الله عنهما دې دَحضورپاك دكلام تفسيربيانوى يعنى حضورپاك فرمائي چه تاسو په دعاکښې دواړه لاسونه اوچتوئی اودَ الله تعالى په وړاندې داسې کیفیت جوړوئی چه دَ لاسونو تلى ستاسودَمخ طرف ته وى اولاسونه مو اوچت وی.

⑧ "وَتَقُولُ يَارَبِّ! يَارَبِّ" دادَ مرفوع حديث حصه ده يعنى حضورپاك فرمائي چه تاسو په دعاکښې داسې وايئي.

**قوله: "كَذَا وَكَذَا"**

**د سورة فاتحه په عدم فرضيت باندې استدلال:** يعنى چاچه دَ مونځ نه پس دعا اونه غوښتله نودَهغوى مونځ به ناقص وى هم دَدې مطلب دَپاره په بل روايت كښې دَ خداج لفظ راغلې دې كوم چه دَنقص اونقصان په معنى كښې دې دكوم نه چه معلوميږي دَ فاتحه نه وئيلوسره په مانځه كښې نقص راخى مونځ باطل كيږى نه. سوچ كونكوله سوچ كول پكاردى چه آيا دع نه غوښتلو سره مونځ باطل شو؟ نه بلكه نقصان راغلو.

**دَ فرضو څخه روسته دَ دعا ثبوت:** شيخ عبدالحق رحمه الله فرمائي چه "دل الحديث على استحباب الدعا بعد الصلوة" دَ حديث نه دَمونځ نه پس دَ دعا مستحب كيدل ثابتيږي.

**د فرضو څخه وروسته په اجتماعى دعا كښې دوه ډلې:** ① جمهورعجم دَ فرضونه پس لاسونه اوچتول ضروري ګڼړي اوبخپله لاسونه اوچتولو سره دعاغواړي. ② دَجزيرۀ عرب مسلمانان دَ فرضونه پس هم دَدعادَپاره لاسونه نه اوچتوى. اوس هغوى ته په كتلوسره دَعجم علماء هم خال خال دَهغوى په لاړ دَتلو كوشش كوى.

**د فرضو څخه وروسته د اجتماعى دعا په ثبوت كښې تحقيقى كلام:** مفتى هند مفتى كفايت الله رحمه الله دَ فرضو او سنتو نه پس دعاغوښتل او دعانه غوښتلو سره متعلق "النفائس المرغوبة في حكم الدعا بعد المكتوبة" په نوم سره يوكتاب ليكلې دې چه په حقيقت كښې يوه فتوىٰ ده په كوم باندې چه دَدنيا دَمختلفو ملكونو دَسلو علماؤ دستخطونه دى. په دې كتاب كښې مفتى صاحب دَ فرضونه پس دَ اجتماعى دعا ثبوت سره متعلق يو اوږد كلام كړې دې چه يو ډير ژور تحقيق دې. دكتاب دَ فصل اول نه حضرت مفتى صاحب دلائلو سره دَ سنتونه پس اجتماعى دعا نفى كړې ده اوبيا دَ دويم فصل نه دَ فرضونه پس دعا غوښتلو ثبوت باندې دَ يوولسو احاديثو ذكركړې دې اوبيائى دَ مختلف علماؤ نه دَجواز اوعدم جواز

فتوئ غوښتې ده دكوم په جواب كښې چه دَ دنيا مختلفو علماؤ جواب وركړې دې دَ دغه ټولو جوابونو عبارت تقريباً داسې دې.

فرائضو پسې متصل دعا غوښتل دَسنتو موافق ده دَدې ثبوت په احاديثو كښې موجود دې. ليكن پس دَ سنتو او نفلو خاص التزام سره دعاغوښتل دَدې ثبوت په حديث شريف او فقه يوكتاب كښې نشته دې بلكه دا التزام بدعت دې دا ترك كول ضروري دى. (نفائس مرغوبه ص: ۴۱)

**په اجتماعى دعا كښې د لاسونو په پورته كولو باندې اشكال:** حضرت مفتى صاحب چه دكومو احاديثو نه استدلال كړې دې په هغې كښې بيشكه په واضحه توګه دَ فرضونه پس دَدعا غوښتلو ذكر دې ليكن تپوس كونكى دا سوال كوى چه لاسونه اوچتولو سره اجتماعى دعا غوښتلو ذكر او ثبوت په يوحديث كښې نشته دې اوهم په دې وجه اهل حديث اودَ حرمينو علماء كرام اودَجزيرهٔ عرب علماء او دَ عجمو ډير كم بعضې علماء دَ فرضونه پس لاسونه اوچتول او په جمع دعا غوښتل صحيح نه ګڼړى.

**د اشكال جوابونه:** دَ فرضونه پس دَ دعا قائلين حضرات هغوى ته يو څو جوابونه وركوى:

① حضورپاك چه دَ نفلونونه پس دعاغوښتې ده نو په هغې كښې لاسونه اوچت كړى دى. فقهاؤ دا عمل فرضوسره يوځائى كړو او په دې باندې عمل شروع كړو. فيض البارى شرح بخارى كښې حضرت شاه انورشاه كشميرى رحمه الله په دې باندې ژور تحقيق او اوږد كلام كړې دې.

② لاسونه اوچتول دَ دعا په ادابو كښې دى كله چه دَدعا ثبوت شته نودَ رفع يدين ثبوت خپل پخپله اوشو.

③ زير بحث حديث په واضحه توګه عاجزئى سره لاسونه اوچتولوسره په ژړا او زارئى سره دعا غوښتلو ترغيب وركوى. په حديث كښې سره دَدې چه يوبل احتمال هم دې خودَهغې واضحه مطلب هم دغه دې چه دامعامله دَمونځ كولونه پس دَدعا غوښتو ده. هم دَدې دپاره شيخ عبدالحق رحمه الله لمعات كښې دَ فرضو نه پس په جمع باندې دعا غوښتل مستحب ليكلى دى.

**قوله: "فَهُوَخِدَاجٌ"**

**دخداج معنى:-** يعنى څوك چه داسې دعا نه غواړى نودَ هغه مونځ به ناقص وى دلته دَخداج په دې لفظ سره هم نقصان مراد دې. په يوحديث كښې فاتحه خلف الامام پريخودلودپاره دَخداج لفظ استعمال كړې شوې دې دكوم نه چه معلوميږى چه دَ فاتحه لوستل فرض نه دى بلكه واجب دى ګنى دَ خداج لفظ به نه استعماليدو بلكه دَباطل لفظ

په راتلو.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۸۰٦] دامام دپاره په تکبیراتو باندې جهر کول

۸۰٦–()[۱۷] ۱ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ الْمُعَلَّى، قَالَ ۲ «صَلَّى لَنَا أَبُو سَعِيدٍ الْخُدْرِيُّ، فَجَهَرَ بِالتَّكْبِيرِ حِينَ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُودِ، ۳ وَحِينَ سَجَدَ، وَحِينَ رَفَعَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ ۴ وَقَالَ هَكَذَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ»، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ۱ سعید ابن حارث ابن معلی وایي ۲ چې ابو سعید خدري رضی الله عنه مونږ ته مونځ راکړو نو په اوچت آواز سره یې الله اکبر وویلي کوم وخت چې هغه د سجدي څخه خپل سر پورته کړو ۳ او کوم وخت چې سجدي ته لاړلو او کوم وخت چې د دوه رکعاته کولو نه پس ودریدلو ۴، او وي فرمایل چې رسول الله ﷺ ما دغسې (په پورته آواز سره په تکبیراتو ویلو باندې) لیدلې دې. (بخاري)

**تسهیلات: قوله:** "حِينَ رَفَعَ رَأْسَهُ"

**په دریو مقاماتو کښې د جهر بالتکبیراتو وجه:** په دې دریو مقاماتو کښې په اوچت آواز سره د تکبیرات ذکر په دې وجه کړې دې چه بحث هم په دې کښې روان شوې وو یا د دې دپاره چه خلقو هم په دې مقاماتو کښې د سستئی د وجې نه تکبیرات وئیل پریخودې وو یا د دې دپاره د دې دریو ذکر د نمونې په توګه اوکړې شو او باقي تکبیرات په دې باندې قیاس کړې شو.

شیخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې لیکلی دی چه د بنومروان په دور کښې به حضرت ابوهریره رضی الله عنه مونځ ورکولو. یو ځل هغه بیمارشو نو مونځ حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه ورکړو او په دې دریو مقاماتو کښې ئې په اوچت آواز سره تکبیرونه اووئیل. کله چه د مونځ نه فارغ شو نوچا ورته اووئیل دې خلقو ته ستاسو مونځ نوې ښکاره شو هغوی په منبر باندې اودریدو او ونې وئیل قسم په خدائې زما په دې باندې هیڅ پرواه نشته چه تاسو ما سره زما په مونځ کښې اختلاف اوکړئې یا اونه کړئې ما حضورپاک لیدلې دې اوهغوی به هم داسې مونځ ورکولو. شیخ په لمعات کښې داهم لیکلی دی چه مروان او د هغه تابعدارو به په مونځ کښې د اوچت آواز په ځائې په مزه تکبیرونه وئیل. هم په دې وجه حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه د حضورپاک د مونځ حواله ورکړه چه امام له پکاردی چه هغه دې خلقو ته نه ګوری بلکه مسنون طریقه دې خپله کړي او په اوچت آواز سره دې تکبیرونه وائي.

## [۸۰۷] په مانځه کښې د تکبیراتو تعداد

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الاذان/ باب یکبر وهو ینهز من سجدتین... رقم الحدیث ۸۲۵

۸۰۷–(¹)[۱۸] ① وَعَنْ عِكْرِمَةَ، قَالَ: «صَلَّيْتُ خَلْفَ شَيْخٍ بِمَكَّةَ، ② فَكَبَّرَ ثِنْتَيْنِ وَعِشْرِينَ تَكْبِيرَةً، ③ فَقُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ: إِنَّهُ أَحْمَقُ، ④ فَقَالَ: ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ، سُنَّةُ أَبِي الْقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① عکرمه فرمايي چه ما په مکه کې په يو بوډا سړي (يعني حضرت ابوهريره رضي الله عنه) پسې مونځ وکړو ② هغه په لمانځه کې دوه ويشت (واره) تکبيرات اوويل ③ ما ابن عباس رضي الله عنهما ته اوويل چې (داسي معلوميږي چې) دا سړي احمق دي (چې دومره زيات تکبيرات کوي) ④ ابن عباس رضي الله عنهما وفرمايل ستا مور دي درباندې بوره شي دا طريقه خو د حضرت ابو القاسم محمد رسول الله ﷺ ده. (بخاري)

**حل اللغات:** ① شَيْخٍ: بوډا سړي، ② أَحْمَقُ: أَيْ: جَاهِلٌ: ناپوهه، ③ ثَكِلَتْكَ: أَيْ: فَقَدَتْكَ: ورک دې کړي تا لره. (دا کلمه د تعجب ده، مراد تري دعا کول دي دا په مدح او ذم دواړوکښي استعماليږي دلته د سائل د احمق وئيلو په مقابله کښې د ذم دپاره استعمال شوي ده).

**تسهيلات: قوله:** "سُنَّةُ أَبِي الْقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ"

**دعکرمه د تکبيراتو په تعداد کښې شک پيدا کيدل:** شارحين ليکي چه دَ مروان په دورحکومت کښې هغه په مونځ کښې تکبيرات په مزه وئيل شروع کړي وو. حضرت عکرمه رحمه الله هم دَدغه غلطئ ښکارشوي وو. لهذا چه کله هغه حضرت ابوهريره رضي الله عنه په اوچت آواز سره تکبيرات وئيل واوريده نو په ډيره حيراتتيا کښې پريوتلو او اعتراض ئې اوکړو. دَهغه استاذ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما هغه ښه اورټلو او ورته ئې اوفرمائيل تکبيرات دَ حضورپاك سنت دي. دَدې حديث پس منظر اودَدې نه مخکښې حديث پس منظر يوشان دې چه په هغه وخت تکبيراتو کښې حکومت طرف نه څه فرق راغلي وو په دې وجه عامو خلقوته شك شوي وو.

### [۸۰۸] په هر ټيټيدو او پورته کيدو کښې تکبير

۸۰۸–(²)[۱۹] ① وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ الْحُسَيْنِ، مُرْسَلًا، قَالَ: ② «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكَبِّرُ فِي الصَّلَاةِ كُلَّمَا خَفَضَ وَرَفَعَ، ③ فَلَمْ تَزَلْ تِلْكَ صَلَاتُهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ④ حَتَّى لَقِيَ اللّٰهَ تَعَالَى». رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** ① علي بن حسين بطريق مرسل روايت فرمايي ② چې رسول الله ﷺ چې به په لمانځه کې کله ښکته کيدلو (يعني رکوع او سجدي ته به تلو) او کله چې به (د قومه، جلسه او قيام په وخت) ودريدلو نو تکبير به يي ويلو ③ او حضور ﷺ به هميشه دغسې مونځ کولو ④ تر دې چې الله تبارك وتعالی سره يي ملاقات وشو (يعني وفات شولو) (مالك)

(¹) بخاری کتاب الاذان باب التکبير إذا قام من السجود (رقم-۷۸۸)
(²) اخرجه ابن مالک في الموطا کتاب الصلاة باب افتتاح الصلاة (رقم-۱۷)

**حل اللغات:** ① خَفَضَ: ښكته كيدلو ته (ركوع يا سجدې ته). ② لَقِيَ اللهَ تَعَالٰى: د ملاقات نه مراد وفات كيدل دي.

**تسهيلات: نوټ:** د ترجمه څخه د حديث مطلب واضح دي.

**[۸۰۹] صرف د تكبير تحريمې په وخت رفع يدين**

۸۰۹–()[۲۰]① وَعَنْ عَلْقَمَةَ، قَالَ: قَالَ لَنَا ابْنُ مَسْعُودٍ: ②«أَلَا أُصَلِّي بِكُمْ صَلَاةَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟③ فَصَلَّى وَلَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ إِلَّا مَرَّةً وَاحِدَةً مَعَ تَكْبِيرَةِ الِافْتِتَاحِ»، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ،④ وَقَالَ أَبُو دَاوُدَ: لَيْسَ هُوَ بِصَحِيحٍ عَلَى هَذَا الْمَعْنَى.

**ترجمه:** ① علقمه رحمه الله راوي دي چې ابن مسعود رضي الله عنه مونږ ته وفرمايل ② آيا زه تاسو ته د رسول الله ﷺ په شان مونځ در نه کړم؟ ③ نو ابن مسعود رضي الله عنه مونږ ته (د رسول الله ﷺ د طريقې مطابق) مونځ راکړو او يوازې د تکبير تحريمه په وخت يې دواړه لاسونه پورته کړل، ترمذي ابوداؤد نسايي، ④ ابوداؤد ويلي دي چې دا حديث داسې صحيح نه دي.

**حل اللغات:** ① تَكْبِيرَةِ الِافْتِتَاحِ: تکبير تحريمه.

**تسهيلات: نوټ:** د ترجمه څخه د حديث مطلب واضح دي.

**[۸۱۰] د تكبير تحريمې په وخت د لاسونو پورته كول**

۸۱۰–()[۲۱]① وَعَنْ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: ②«كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ،③ وَرَفَعَ يَدَيْهِ، وَقَالَ: "اللهُ أَكْبَرُ"»، رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① ابو حميد الساعدي رضي الله عنه فرمايي ② چې رسول الله ﷺ چې به د لمانځه د پاره اودريدلو نو مخکې به د قبلې طرف ته متوجه کيدلو ③ بيا به يې دواړه لاسونه پورته کول او د هغې څخه وروسته به يې الله اکبر وئيلو. (ابن ماجه)

**تسهيلات: نوټ:** د ترجمه څخه د حديث مطلب واضح دي.

**[۸۱۱] په مانځه کښې د نبي عليه السلام شاته څخه څيزونه ليدل**

۸۱۱–()[۲۲]① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: ②«صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ،③ وَفِي مُؤَخَّرِ الصُّفُوفِ رَجُلٌ، فَأَسَاءَ الصَّلَاةَ،③ فَلَمَّا سَلَّمَ نَادَاهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ④ "يَا فُلَانُ أَلَا تَتَّقِي اللهَ؟ أَلَا تَرَى كَيْفَ تُصَلِّي؟⑤ إِنَّكُمْ تُرَوْنَ أَنَّهُ يَخْفَى عَلَيَّ شَيْءٌ مِمَّا تَصْنَعُونَ،⑥ وَاللهِ إِنِّي لَأَرَى مِنْ خَلْفِي كَمَا أَرَى مِنْ بَيْنِ يَدَيَّ"»، رَوَاهُ أَحْمَدُ.

---

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب من ذكر أنه يرفع يديه إذا قام من الثنتين (رقم- ۷۴۷) و الترمذي كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في وضع اليدين على الركبتين في الركوع ۲۵۷ والنسائي كتاب التطبيق/الرخصة في ترك ذلك قال البخاري رقم(۱۰۵۸)

(۲) اخرجه ابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها ، باب افتتاح الصلاة (رقم-۸۰۳)

(۳) اخرجه احمد في المسند ۲/۴۴۹

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضي الله عنه فرمايي[۲] چې رسول الله ﷺ (يو ځل) مونږ ته د ماسپخين مونځ راکوي[۳] په آخر صف کې يو سړي ولاړ وو هغه په صحيح طور سره مونځ ونه کې[۳] کوم وخت چې هغه سړي سلام وګرځوي (نو حضور ﷺ هغه ته آواز ورکولو سره وفرمايل[۴] اي فلانيه آيا ته د الله بزرګ وبرتر څخه نه ويرېږي؟ آيا تاته معلومه نه ده چې تا څنګه مونځ وکړي؟[۵] ته خو دا ګڼې چې ته څه کوي ما ته نه دي معلوم[۶] حالانکه قسم په الله څنګه چې زه مخې ته ګيزونه وينم دغسې خپل وروسته هم ګيزونه وينم، احمد.

**حل اللغات:** ① فَأَسَاءَ: أَيْ: أَتَى فِيهَا بِمَا يُبْطِلُهَا: مونځ ماتونکې عمل ئې کولو. ② تُرَوْنَ: أَيْ: تَظُنُّونَ: ستاسو خيال او ګمان دي. ③ يَخْفَى: پټ دی، معلوم نه دی. ④ تَصْنَعُونَ: چه څه عمل کوئ تاسو (په خپل مونځ کښې).

**تسهيلات:** **قوله: مِنْ خَلْفِي:**

**نبی علیه السلام ته د شا مونځګذار په نظر راتلل:** يعنی په الله تعالی قسم زه په مانځه کښې شاته ولاړ خلق وينم په دې وجه تاسو په مانځه کښې څه خلاف سنت حرکت مه کوئی. دَدې حديث نه معلومه شوه چه حضورپاك ته وړاندې روستو يوشان ښکاريدل.

**سوال:** په دې ځائی کښې دا سوال پيدا کيږی چه الله تعالی علم غيب خپله خاصه ګرځولي ده. په قرآن کريم کښې ډير آياتونه اودَ انبياء کرامو اولياء عظامو ډيرې قصې او واقعات په دې باندې دلالت کوی چه علم غيب دَالله تعالی خاصه ده. حالانکه

**اشکال:** دلته دَدې حديث نه دا خيال پيدا کيږی چه حضورپاك عالم الغيب وو اوهغوی په وړاندې روستو حاضر اوپټوګيزونوباندې خبريدلو دَدې تعارض څه جواب دې؟

**د اشکال درې جوابونه:** ① دَحضورپاك په مانځه کښې وړاندې روستو يوشان ليدل دَ معجزې په توګه وو نوهغوی به په حقيقی سترګو وړاندې روستو کتل. [قاله عبدالحق رحمه الله في اشعة المعات: ۳۹۲]

② حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په حضورپاك باندې به په مانځه کښې انکشاف تام کيدلو اودَ انکشاف تام دَدغه حالت دَ وحې نه په حضورپاك باندې به دَ تجليات پوره نزول کيدلو. دَ څه په وجه چه به خرق عادت هغوی ته وړاندې روستو هرڅه ښکاريدل. داکيفيت به دَمانځه نه بهر نه وو په دې وجه دَ مانځه نه بهرچه دَحضورپاك نه دَعلم غيب نفی کړې شوې دَهغې دې حديث سره تعارض نشته.

③ دَ وحی يا الهام په توګه حضورپاك ته معلوميدله بهرحال څنګه هم چه وی مګر داحالت مستمره نه ووبلکه دَ مانځه دَحالت پورې محدودوو.

# [۲۹/۱۲]بَابُ الْقِرَاءَةِ فِي الصَّلَاةِ

## په مونځ کښې د قراءت بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثلاثة واربعون حديثاً مشتملة على إحدى عشر مسئلة:**

① قراءة الفاتحة: ۱، ۲، ۶۔
② افتتاح القرآءة : ۳، ۲۲۔
③ التأمين: ۴، ۵، ۲۳، ۲۴۔
④ قراءة الفاتحة خلف الإمام: ۲، ۳۰۔
⑤ السكوت خلف الإمام: ۵، ۳۱، ۳۲، ۳۳۔
⑥ تفاوت الركعات في القراءة:۶، ۷، ۲۹۔
⑦التخفيف في القراءة: ۱۱۔
⑧ ما ينوب عن القراءة للأمي: ۳۴۔
⑨ جواب بعض الكلمات: ۳۵، ۳۶، ۳۷،
⑩ قراءة المفصلات: ۲۹، ۴۲۔
⑪ تسمية بعض السور المقرؤة في الصلوة: ۸، ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۱۴ ،۱۵، ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۲۱، ۲۵، ۲۶، ۲۷، ۲۸، ۳۸، ۳۹، ۴۰، ۴۱ ، ۴۳۔

**د فقهاء کرامو په مینځ کښې د اختلاف وجوهات:**

① دَ فقهاء کرامو په مینځ کښې کله دَدې وجې نه اختلاف پیدا کیږی چه په یوحکم کښې دَاستنباط اواستخراج اسباب اوعلل مختلف وی
② اوکله په دې وجه اختلاف کیږی چه دَ شرعی حکم ناسخ اومنسوخ په صحیح توګه پیژندګلونه کیږی
③ اوکله فهم ادراك معانی کښې فرق راځی.
④ اوکله دَمجتهدینو په اجتهاد کښې تخلف وی
⑤ کله هم دیوحکم متعلق کثرت نصوص اوپه دې کښې تفاوت دَ اختلاف ذریعه جوړیږی.
⑥ کله په صحابه کرامو کښې په یوحکم باندې اختلاف عمل سبب اختلاف وی. چونکه په هغه زمانه کښې دَ ذرائع ابلاغ کمې وو اودَ لرې لرې علاقونه به خلق راتلل مدینه منوره کښې به نبی دَ حضورپاك ﷺ نه یوحکم زده کولو اوواپس به تلل او په هغه حکم باندې به تول عمر روان وو. حالانکه شاته به په هغه حکم کښې بدلون راغلې وو لیکن هغوی به پخپله دَ نبی کریم ﷺ نه یوحکم زده کړې وو په دې وجه به هم په هغې باندې قایم وو نودَ راتلونکوخلقو دَپاره به هغه دَ اختلاف سبب جوړیدو.

دَ فقهاء کرامو چه په کوم کوم ځائی کښې اختلاف پیدا شوې په دغه اختلافی مسائلو کښې یوه معرکة الآراء مسئله د قراءت خلف الامام ده. یعنی په امام پسې د اقتداء په دوران کښې مقتدی لره سورة فاتحه وئیل څه حکم لری.نو په دې کښې د جواز اوعدم جواز اختلاف دې.هم دَدې وجې نه دَ قراءت خلف الامام مسئله دَهمیشه نه دَ بحث موضوع ده. لهذا دلته هم دَدې متعلق یو څو بحثونه حاضر خدمت دی.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۸۲۲]په مانځه کښې د سورة فاتحه وئیلو حکم

۸۲۲–()[۱]⊡عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ،قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "⊡«لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ» "، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.⊡وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: " «لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِأُمِّ الْقُرْآنِ فَصَاعِدًا»".

**ترجمه**:⊡ عباده بن صامت رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل⊡ کوم سړي چې (په لمانځه کې) سورة فاتحه ونه ويله د هغه مونځ پوره نه شو، بخاري مسلم،⊡او د مسلم په يو روايت کې دا الفاظ دي چه د هغه سړي مونځ نه کيږي چې سورة فاتحه او د هغې څخه وروسته د قرآن څخه څه ونه وايي.

**حل اللغات**:- ①لَاصَلَاةَ:أَيْ:كَامِلَةً: يعنی کامل مونځ نه دې. ②أُمِّ الْقُرْآنِ: يعنی سورة فاتحه، ③فَصَاعِدًا:أَيْ:فَمَازَادَعَلَيْهَا: دا د صعود نه دې يعنی د ښکته نه پورته ختلو ته وائی. دلته ترې زياتی قرأت لوستل مراد دی.

**تسهیلات**:-

**قوله:لَاصَلَاةَ:**

**په قرأت فی الصلاة کښې درې مباحث**:-په مانځه کښې دَ قرأت متعلق درې بحثونه اهم او مشهوردی په کوم کښې چه دَ فقهاؤ کرامو اختلاف دې. اول بحث دَ فاتحې په رکنيت او عدم رکنيت کښې دې. دويم بحث په دې کښې دې چه څو رکعتوکښې قرأت فرض دې. دريم بحث امام پسې شاته قرأت کښې دې. دا ذکرشوی دريواړه بحثونه په ترتيب سره بيانولې شی.

(۱) اخرجه بخاری کتاب الاذان باب وجوب القراءة للإمام والمأموم فی الصلوات کلها، فی الحضر والسفر، وما یجهر فیها وما یخافت(رقم-۷۵۶) ومسلم کتاب الصلاة ، باب وجوب قراءة الفاتحة فی کل رکعة، وإنه إذا لم یحسن الفاتحة، ولا أمکنه تعلمها قرأ ما تیسر له من غیرها (رقم-۳٤ - (۳۹٤) وابوداود کتاب الصلاة،باب من ترک القراءة فی صلاته بفاتحة الکتاب (رقم-۸۲۲) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها ، باب القراءة خلف الإمام (رقم- ۸۳۷) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء أنه لا صلاة إلا بفاتحة الکتاب (رقم-۲٤۷) والنسائی کتاب الافتتاح/باب البداءة بفاتحة الکتاب قبل السورة (رقم-۹۱۰)

**اول بحث:د سورة فاتحې په رکنیت کښې مذاهب:-**

① امام شافعی رحمه الله امام مالك رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله یعنی جمهور فرمائی په مونځ کښې فاتحه وئیل په متعین توګه باندې فرض ده اودا دَمونځ رکن دې. که فاتحه اونه وئیلې شی نومونځ نه کیږی باقی قرآن که هرڅومره وئیلې شوی وی.

② امام ابوحنیفه رحمه الله اوصاحبین فرمائی چه فاتحه په متعین توګه باندې وئیل دَ مونځ رکن نه دې بلکه دَمونځ رکن "قدر ماتجوزبه الصلوة" دې که اوږد آیت وی اوکه مختصر وی یعنی دومره اندازه باندې دَ قرآن لوستل په مونځ کښې فرض دی په کوم سره چه مونځ کیږی که هغه درې واړه آیاتونه وی یا یو اوږد آیت وی. اودَ احادیث مبارکو دَ وجې نه بالخصوص په مونځ کښې فاتحه لوستل واجب دی. که یو مونځ ګذار باقی قرآن اووئیل لیکن فاتحه ئی پریخوده نو فرض قرأت خوادا شو لیکن دَ واجب پاتې کیدو دَ وجې نه مونځ ناقص پاتې شو لهذا سجده سهو به کول وی دې دَپاره چه جبیره نقصان اوشی یا به مونځ دوباره کولې شی.

**د اول فریق دلیل:-** ① دَحضرت عباده بن صامت رضی الله عنه دا زیربحث حدیث د دوی مستدل دې ځکه چه په دې کښې ذکردی چه دَ فاتحې نه وئیلوسره مونځ نه کیدل ګرځولې شوی دی معلومه شوه چه په خاص توګه باندې دَ فاتحې وئیل فرض دی. دَ دې پریخودوسره دَمونځ نفی کیږی اوکوم ته چه دامقام حاصل وی هغه رکن وی. لهذا فاتحه دَمونځ رکن دې. داخبره هم یادلرئی چه دَمالکیه حضراتو په نیز فاتحې سره دَ سورت یوځائی کول هم فرض دی یعنی دواړه دَمونځ رکن دی.

**د دویم فریق دلیل:-** د قرآن آیت ﴿فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ﴾ [سورت مزمل: ۲۰] د دوی مستدل دې.دَ قرآن د آیت اطلاق چې دکوم څیز تقاضا کوی هغه په مانځه کښې مطلق قرآن لوستل دی. او دَمونځ رکن دې. دلته دَ فاتحې تخصیص او تعیین نشته دې لهذا دا رکن کیدې نه شی. اودَ فاتحې تخصیص دَ حدیث خبرواحدسره شوې دې اوکوم حکم چه په خبرواحدسره ثابت شی هغې ته فرض نه بلکه واجب وئیل پکاردی نو مطلق دَ قرآن لوستل رکن او فرض دی او خاص کر دَفاتحې وئیل واجب دی. داځکه چه دَ فرض اورکن مقام قطعی اویقینی وی اودَ قطعی حکم دَ اثبات دَپاره دلیل هم قطعی کیدل پکاردی.

**د دلائلو څلور قسمونه:-** ځکه چه دلائل څلورقسمه دی.

① قطعی الثبوت قطعی الدلالةپه دې سره فرض ثابتیږی

② قطعی الثبوت ظنی الدلالةپه دې سره واجب ثابتیږی

③ ظنی الثبوت قطعی الدلالةپه دې سره سنن مؤکده وغیره ثابتیږی

④ ظنی الثبوت ظنی الدلالة په دې سره مستحبات ثابتیږی.

**طريقه داستدلال:** - مذكوره زيربحث حديث دحضرت عباده رضی الله عنه حديث خبر واحد دې کوم چه ظني الثبوت قطعي الدلالة دې په کوم سره چه فرض يا رکن نه شي ثابتيدې بلکه صرف واجب ثابتيدې شي اودَ وجوب فاتحه احناف قائل دی لهذا دا حديث دَهغوی دَ مسلك مخالف نه دې اونه دَهغوی مسلك دَحديث مخالف دې.

**د حديث په مفهوم کښې دوه اقوال:** - بل دَ "لاصلوة"دوه مفهوم اخستې شي. ① يو مفهوم دا چه دَدې نه بالکل دَ اصل صلوة نفی مراد واخستې شي

② دويم مفهوم دادې چه دې نه دَ کمال صلوة نفی مراد واخستې شي يعنی دَ فاتحې نه وئيلو په صورت کښې مونځ نه کامل کيږی بلکه ناقص کيږی.

**د دويم مفهوم تائيد:** - دَ حضرت ابوهريره رضی الله عنه روايت دا دويم مفهوم متعين کړې دې په کوم کښې چه "فصلوته خداج غيرتمام" الفاظ راغلی دی يعنی دَ مانځه وجود دې مګردَ فاتحې نه وئيلو په وجه سره ناقص دې اودا هم هغه وخت چه کله سړې امام يا منفرد وی مقتدی نه وی. الزامی جواب دادې چه په حديث کښې مازاد او فصاعدا الفاظ هم دی. نوآيا دَ فاتحې نه علاوه څه نور هم رکن صلوة دی؟

**دويم بحث:د قراءت د فرضيت بياره د رکعتونو په تعين کښې مذاهب:-**

په مونځ کښې د قراءت په فرضيت اتفاق دې.خود قرءت دپاره د رکعت په تعين کښې اختلاف دې. ①دَ امام زفر رحمه الله اوحضرت حسن بصری رحمه الله په نيزصرف په يو رکعت کښې قرأت فرض دې ﴿فَاقْرَءُوا﴾ حکم دې په کوم کښې چه تکرارنشته دې اوامر دَ تکرار تقاضاهم نه کوی په يو رکعت کښې فرض قرأت کافی دې.

② امام مالك رحمه الله فرمائی چه په دريو رکعتوکښې قرأت فرض دې څکه چه دري رکعته اکثر دی او "للاکثرحکم الکل".مسلمه قاعده ده لکه چه دَمالکيه په نيزپه څلورو واړو رکعتوکښې قرأت فرض دې ليکن دريو رکعتوکښې وئيلوسره داحق اداکيږی.

③امام شافعی رحمه الله په نيزدَ فرضو په ټولو رَکعتونوکښې قرأت فرض دې او ضم سورت دَ فرضو په اول دوو رکعتوکښې نه واجب دې نه سنت دې بلکه مستحب دې. دَمشهور قول مطابق دَ حنابله هم دغه مسلك دې چه په ټولو رکعتونوکښې قرأت فرض دې. داحضرات دَ قرآن اوحديث مطلق حکم ته ګوری په کوم کښې چه دَ قرأت کولو حکم دې.

④ دَ ائمه احناف مشهور او مفتی به قول دادې چه که چرته څلورو رکعتو والامونځ وی نو په اول دوو رکعتوکښې "بقدرثلاث ايات قصار" مطلق قرأت فرض دې اوخاص توګه باندې دَ فاتحې وئيل واجب دی. البته دَ دوو رکعتونه پس قرأت کول ضروری نه دی که فاتحه وائی اوکه تسبيح وائی يا چپ پاتې شي.

**دريم بحث: په قراءت خلف الامام کښې مذاهب:-**

**د قاری د قراءت درې صورتونه:-** ① دا مام دَ پاره اودَ هغه منفرد دپاره جهری او سری دواړو مونځونو کښې مطلق قرأت بالاجماع فرض دې.

② په مقتدی او ماموم باندې امام پسې شاته دسورت لوستل بالاتفاق واجب نه دی.

③ اوس صرف یو صورت پاتې شو چه امام پسې شاته په مقتدی باندې فاتحه ونیل څنګه دی په دې کښې اختلاف دې.

**د قراءت خلف الامام د اختلاف نوعیت:-** امام پسې شاته قرأت کول یعنی فاتحه خلف الامام وئیلو یا نه وئیلو کښې دَ فقهاء کرام ډیر لوئی اختلاف دې. دا یو معرکة الآراء او اختلافی مسئله ده. په اختلافی مسئلو کښې دا دَ ټولو نه زیاته سخته مسئله ده څکه چه یو فریق لوستلو ته فرض وائی او دوئم فریق ناجائز اوحرام وائی. دا اختلاف بهرحال دَ صحابه کرامو دَ وخت نه راروان دې په هغه دور کښې په دې کښې دومره شور اوسختی نه وه. علامه بدرالدین عینی رحمه الله اتیا صحابه کرام شمیرلې دی چه دَ فاتحه خلف الامام دترك کولو قائل وو. په دوی کښې حضرت عبدالله بن مسعو، حضرت ابن عباس، حضرت عمرفاروق، حضرت ابوموسیٰ اشعری، حضرت ابودرداء، حضرت ابن عمر، حضرت علی، حضرت عائشه رضي الله عنهم نومونه شامل دی.

ددې مسئلې نوم قرأت خلف الامام دې مګر ددې نه فاتحه خلف الامام مراد اخستل متعین شوی دی. ① د امام شافعی اوداؤد ظاهری وغیره امامانو په نیز قراءة خلف الامام مطلقاً فرض دې که جهری مونځ اوکه سری. اود جمهور فقهاء یعنی امام ابوحنیفه رحمه الله امام مالك رحمه الله امام احمدبن حنبل رحمه الله سفیان ثوری رحمه الله اوزاعی رحمه الله او عبدالله بن مبارك رحمه الله په نیز جهری مونځ کښې امام پسې شاته فاتحه ونیل جائز نه دی.

② بیا دَ ائمه ثلاثه نه امام مالك رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله په نیز په سری مونځ کښې قرأت خلف الامام مستحب دې خو په جهری مونځ کښې که چرې مقتدی دامام قرأت نه اوری نو هغه وخت هم دهغه دپاره فاتحه وئیل مستحب دی.امام محمد رحمه الله ته هم داسې نسبت شوې دې چې د هغوی په نیز هم په سری مونځونو کښې قرآءت لوستل مستحب دې.

③ امام ابوحنیفه رحمه الله په سری مونځونو کښې فاتحه وئیل اونه وئیلو متعلق پنځه اقوال په معارف السنن کښې دَ حضرت سید یوسف بنوری رحمه الله نقل کړی دی.

۱- وئیل واجب دی. ۲- مستحب دی ۳- مباح دی
۴- مکروه تنزیهی دی ۵- مکروه تحریمی دی.

داحنافو په نیز مکروه تحریمی ته ترجیح حاصله ده.

**امام محمد ته په سری مونځ کښې د قراءت خلف الامام د استحباب نسبت:-**

① دَاحنافو دَعلماؤ نه امام محمد رحمه الله طرف ته دا خبره صاحب دَ هدایه منسوب کړې ده چه دَ امام محمد رحمه الله په نیز مستحب دی. خو

② ملاعلی قاری رحمه الله دَ مشکوة شریف په شرح کښې فرمائی: "والامام محمد من ائمتنا یوافق الشافعی فی القراءة فی السریة وهو اظهر فی الجمع بین الروایات الحدیثیة" (مرقات ج۲ص: ۳۰۱) یعنی زمونږ ائمه احناف نه امام محمد رحمه الله سری مونځونو کښې قرأت خلف الامام کښې دَ شوافع موافق دې اودَ احادیثو ټول روایات راجمع کولودَ پاره دا مسلك زیات واضح دې اوهم دغه دَ امام مالك رحمه الله هم مسلك دې. ملاعلی قاری فصل ثانی دَ ابوهریره رضی الله عنه دَ حدیث نمبر(۸۵۵) لاندې لیکی: "وَمَفهومه انهم کانوا یسرون بالقراءة فیما کان یخفی فیه رسول الله صلی الله علیه وسلم وهومذهب الاکثروعلیه الامام محمد من ائمتنا" (مرقات: ۳۰۲/۲)

③ غالبًا دَ شاه ولی الله رحمه الله هم دغه رائې ده چه سری مونځونو کښې قرأت خلف الامام بهتر دې.

**امام محمد څخه په ټولو مونځونو کښې د قراءت خلف الامام د عدم جواز نقل:-**

که دَ امام محمد رحمه الله دَ کتابونو طرف ته رجوع اوکړې شی نو په دې موجوده حالت کښې دَ هغوی دکتابونو نه هم دغه معلومیږی چه دَ هغوی په نیز په هیڅ یوصورت کښې فاتحه خلف الامام دَ وئیلو اجازت نشته دې.

① موطا امام محمد رحمه الله کښې هغوی فرمائی "لاقرأة خلف الامام فیما جهر فیه ولا فیما لم یجهر بذلك جاءت عامة الآثار وهوقول ابی حنیفة". (ص: ۹۴)

② دغه شان هغه کتاب الآثار کښې ترك قرأت خلف الامام روایتونه جمع کولوسره فرمائی "وبه نأخذ لانری القراءة خلف الامام فی شئ من الصلوة یجهر فیه اولا یجهر" (ص: ۶۵)

دَدې روایتونونه بیشکه معلومیږی چه دَامام محمد رحمه الله مسلك فاتحه خلف الامام کښې هم هغه دې کوم چه دَعامو احنافو دې

**د مسلک حنفی مفتی به قول:-** خودَ ائمه احناف دَمسلك فتویٰ داسې نه ده. افسوس که په سری مونځونو کښې احنافو دَ فاتحه خلف الامام وئیلو فتویٰ ورکړې وې نو شوافع په جهری کښې دَنه وئیلو فتویٰ ورکولې نو په دې سره به په دواړو مسلکونوکښې دَدې سخت اختلاف داخلیج کم شوې وې او په ټولو نصوصوکښې به تطبیق کیدلو لکه چه دَ مالکیه اوحنابله مسلك دې.

نوټ: دلته مونږ دا اختلاف په دوو مذاهبوکښې تقسیمو. اول مذهب وجوب قراءة خلف الامام اودویم مذهب عدم جواز قراءت خلف الامام. تفصیل داسې دې.

**داول فريق اول دليل:** – زير بحث حديث دَ حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه ددوى مستدل دي. كوم چه په صحيحين كښې ذكردي.

**د اول دليل درې جوابونه:** – ① داخبر واحد دې دَدې نه فرضيت نه شي ثابتيدې. دَ فرضيت دَ ثبوت دَپاره قطعي الثبوت او قطعي الدلالة نقص ضرورت دې كوم چه دلته نشته دې.

② حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه نه كوم روايت صحيحين كښې نقل دې چه "لاصلوة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب" په دې سره قرأت خلف الامام باندې استدلال نه شي كيدې ځكه چه په دې روايت كښې قطعاً دا تصريح موجود نه ده چه دادَ منفرد مونځ دې يا دَامام يا دَ مقتدى مونځ دې. ددې نه خوصرف دا معلوميږى چه چا فاتحه اونه وئيله دَهغه مونځ اونه شو. نوددې متعلق مونږ هم دا وايو چه دَمنفرد اوامام مونځ دَ فاتحې نه بغير صحيح نه دې.

**د مذكوره توجيه قائلين** – ① دَ قرأت خلف الامام دَدې قسم ټول روايا تو داسې توجيه امام احمدبن حنبل رحمه الله كړې دې. امام احمدبن حنبل رحمه الله قول ترمذى ص: ۵۰ باندې ذكردې. دَ امام احمدبن حنبل رحمه الله يوقول ابن قدامه رحمه الله المغنى كښې نقل كړى دى. عبارت مزيدار دې په دې وجه دَ ناظرينو دَپاره پيش كولې شي.

"قال احمد ماسمعنا احداً من اهل الاسلام يقول ان الامام اذاجهر بالقراءة لاتجزئى صلوة من خلفه اذا لم يقرأ، وقال هذا النبى صلى الله عليه وسلم واصحابه وهذا مالك فى اهل الحجاز وهذا الثورى فى اهل العراق وهذا الاوزاعى فى الشام وهذا الليث فى اهل المصر، ماقالوا الرجل صلى وقرء امامه ولم يقرء هو، صلوته باطل".

② هم دغه توجيه حضرت سفيان ثورى رحمه الله هم په ابوداؤد صفحه ۱۱۹ باندې كړې ده چه دَدې قسم روايتونه دَامام يا منفرد يعنى ځان له مونځ كونكى دى.

**يوه معقوله خبره:** – دَعقل ځخه د ډك كلام مطلب دادې چه امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائى چه مونږ دَ اهل اسلام نه دَ چاباره كښې دانه دى اوريدلى ځوك چه دا وائى كه چرې امام په جهرسره قرأت كوى اومقتدى قرأت نه كوى نودَ هغه مونځ نه كيږى بيا فرمائى چه لږ شان اوګورئى دا نبى كريم صلى الله عليه وسلم اوصحابه كرام مدينه منوره كښې موجود دى اودا امام مالك رحمه الله په حجاز كښې موجود دې. دا سفيان ثورى رحمه الله په عراق كښې دې هغه اوګورئى اوزاعى رحمه الله په شام كښې دې اوليث بن سعد رحمه الله دَ علم مركز مصر كښې دې. داټول حضرات دَ دغه سړى مونځ ته باطل نه وائى دَ كوم چه امام قرأت كوى اوهغه پخپله قرأت نه كوى.

③ امام ترمذى رحمه الله هم فاتحه خلف الامام نه ويونكى مونځ ته صحيح وئيلې دې اوفرمائيلى چه كوم خلق دَ مانځه فاسد كيدو خبره كوى هغوى دَ تشدد نه كاراخلى اوبيائى اوفرمائيل چه امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائى چه دَ عباده بن صامت رضي الله عنه روايت دَمنفرد باره كښې دې.

**د اول دلیل دریم جواب:**- ③ دلته لاصلوة کښې دَ لا کلمه نفی دکمال دَپاره ده لکه څنګه چه په دې لاندې حدیث کښې نفی دکمال دَپاره ده. دَمثال په توګه:

**د نفی کمال دپاره د،،لا،، د استعمال مواقع:**-

① ((لايؤمن احدكم حتى اكون احب اليه من والده وولده))

② ((لايؤمن من يشبع وجاره جائع))

③ ((ليس المسكين الذي ترده التمرة والتمرتان))

④ ((لا ايمان لمن لا عهد له))

⑤ ((لاصلوة لجار المسجد الا في المسجد))

بهرحال دَحضرت عباده بن صامت رضي الله عنه په حدیث کښې اصل صلوة نفی نه ده بلکه دکمال نفی ده او مونږ هم وایو او منوئی. خلاصه دا چه دا حدیث ډیر مضبوط دې مګر په مدعاباندې نص نه دې.

**داول فریق دویم دلیل:**-

وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: كُنَّا خَلْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ، فَقَرَأَ فَثَقُلَتْ عَلَيْهِ الْقِرَاءَةُ، فَلَمَّا فَرَغَ، قَالَ: "«لَعَلَّكُمْ تَقْرَءُونَ خَلْفَ إِمَامِكُمْ؟ قُلْنَا: نَعَمْ، يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ: لَا تَفْعَلُوا إِلَّا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ، فَإِنَّهُ لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِهَا» "، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ،

دا حدیث په مشکاة کښې نمبر ۸۵۴ باندې دې.د دې څخه دوی استدلال کوی. دا حدیث په خپله مدعاباندې نص هم دې

**د دویم دلیل څلور جوابونه:**- ① دَ سند په اعتبارسره دا حدیث مضطرب دې ځکه چه مکحول کله محمود بن ربیع نه نقل کوی او کله په مینځ کښې دَ نافع واسطه ذکر کوی. کله دَمکحول او عباده بن صامت رضي الله عنه په مینځ کښې یوه واسطه راځی.

② دَ علماء اصول په نیزدا قاعده ده چه دَ نهی نه پس کومه استثنا راځی هغه دَ اباحت فائده ورکوی یعنی امر بع الحظر اباحت فائده ورکوی لهذا دَ فاتحې فرضیت دَدې نه نه ثابتیږی. (کذاقال الشیخ ګنګوهی)

③ حضرت عباده رضي الله عنه په کوم دورکښې دَ فاتحې ذکرفرمائی نودغه دویم دور وو. روستوچه کله بیا دریم دور راغلو نودا حکم موقوف شو لکه چه اول بیان کړې شوې دې چه په مونځ باندې دَ تغیراتو درې دورونه راغلی دی.

④ دَحضرت عباده رضي الله عنه زیر بحث روایت کښې بعضې طرق کښې "فصاعدا" او "مازاد" او "ماتیسر" الفاظ هم راغلی دی حالانکه اول فریق په مقتدی باندې ضم صورت نه واجب کوی صرف فاتحه پرې فرض کوی نو په دې صورت کښې په نیم حدیث باندې عمل شته او په نیم حدیث باندې عمل نشته.

**د اول فریق دریم دلیل:** - دابوهریره رضی الله عنه هغه روایت د دوی مسدل دې په کوم کښې چه دَ فاتحې نه بغیر مونځ خداج گرځولې شوې دې اوحضرت ابوهریره رضی الله عنه وائی چه په زړه کښې دې وائی مگر فاتحه دې نه پریږدی.

**د دریم دلیل دوه جوابونه:** ① په حقیقت کښې خودا روایت دَ احنافو دلیل دې چه فاتحې نه واجب وائی شوافع خو فاتحه فرض گڼړی. که فاتحه فرض وی نوبیا چرته مونځ ناقص شو بیاخو باطل شو. بیا هم احناف دَدې دا جواب ورکوی چه سفیان ثوری رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله داحدیث دَ خان له مونځ گذار دَپاره گرځوی. باقی "اقرأفي نفسك" مطلب دادې چه په زړه کښې دَ فاتحې تصور کوه اودَ هغې په معنی کښې غورکوه گنې په زړه سره خوقرأت نه کیږی.دَ چا په نیز هغه قرأت معتبر نه دې دَ کوم الفاظ چه په ژبه سره ادانه شی.

② مقتدی به فاتحه کوم وخت وائی چه تاسو وایئی دَ ثنا په وخت کښې دې وائی نوامام شافعی رحمه الله په کتاب الام کښې په واضحه توگه دا منع کړی دی. که چرې تاسو وایئی چه په سکتات کښې دې وائی یعنی کله چه امام دَ فاتحې ختمولو نه پس سکته کوی یا بل وخت کښې سکته اوکړی نودَدې جواب دادې چه په امام باندې هیڅ یو سکته واجب نه ده. که چرې امام په مینځ کښې سکته اونه کړی نو بیابه تاسو څه کوئی اوکه دَامین په وخت ئې په سکته کښې وایئی نوهلته دومره وخت نه وی چه فاتحه په کښې اوشی. که چرې امام دَ مقتدی په انتظار شو نوبیا خوهغه پیش امام نه پاتې کیږی بلکه مقتدی به جوړشی ځکه چه دا امام دَ مقتدی تابعداری کوی اودا قلب موضوع ده نوتاسو اوښایئی چه مقتدی په جهری مونځ کښې فاتحه په کوم وخت کښې اووائی؟

**د دویم فریق اول دلیل:**

دَ قرآن کریم آیت دې. ﴿ وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴾ [سورت اعراف. ۲۰۴] د دوی مستدل دې.

**د استدلال دوه طریقې:** - ① دلته دوه لفظونه دی (فَاسْتَمِعُوا) دې دَدې تقاضاده چه کله دَ قرآن دَ لوستلو په وخت هغه اورولې شی نو تاسو خاموش کیدوسره هغه واؤرئی. دلته دویم لفظ (وَأَنْصِتُوا) دې. دَدې مطلب دادې چه کله قرآن لوستلې شی نوسره دَدې چه هغه نه شی اوریدې نوبیاهم خاموش پاتې شه. په دې صورت کښې دَ (فَاسْتَمِعُوا) او (وَأَنْصِتُوا) کښې دَ لغت په اعتبارسره فرق وی اودا فرق مفسرینو منلې دې لهذا دا دلیل دَاحنافو په دواړو دعووباندې واضح دلیل دې چه امام پسې جهری او سری دواړو قسمو مونځونو کښې قرأت نشته دې.

② اوکه چرې (فَاسْتَمِعُوا) او (وَأَنْصِتُوا) مفهوم جدا جدا نه وی بلکه هم یو وی چه کله قرآن لوستلې شی نو تاسو خاموش اوسیږئی نو په دې صورت کښې به دا آیت په جهری

مونځونو کښې امام پسې شاته نه وئيلو باندې دَ احناف او جمهور واضح دليل دې.

**په مذکوره دليل اعتراض:-** دا آيت دَ جمعې دَخطبې باره کښې نازل شوې دې لهذا په خطبه کښې خاموش پاتې کيدل پکاردی مونځ سره دَدې تعلق نشته دې؟

**دااعتراض درې جوابونه:-** ① دا دَ سورت اعراف مکی آيت دې اودَ جمعې خطبه يا دَ اخترونو خطبه مشروعيت او شروع په مدينه منوره کښې شوې وه نودَ آيت تعلق خطبې سره څنګه ممکن کيدې شی. (کذاقال شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله)

② دَمفسرينو اوجمهور علماؤ په نيز دا آيت دَمونځ متعلق نازل شوې دې. حافظ ابن تيميه رحمه الله فرمائی چه: "قال احمد اجمع الناس على انها نزلت في الصلوة" (فتاوىٰ ابن تيميه ج ۲۳ ص ۲۹۵)

محمدبن جرير طبری رحمه الله فرمائی چه دَدې آيت په شان نزول کښې درې قسم اقوال مشهوردی. اول دا چه مانځه سره متعلق دې دويم دا چه دَدې تعلق خطبې سره دې او دريم احتمال دادې چه دا آيت مونځ اوخطبې دواړو سره متعلق دې چه په دواړوکښې دَ قرآن دَ لوستلو په وخت چپ اوسيدل پکاردی. ابن جرير رحمه الله دريم قول ته ترجيح ورکړې ده.

③ تيک ده دا آيت دَ جمعې دَ خطبې باره کښې نازل شوې نوچه کله دَ خطبې دَ يو څو آياتونودَ وجې نه دَ اوريدو اوچپ کيدو حکم دې نو دَ مونځ په قرأت کښې خو په درجه اولی کيدل پکاردی ځکه چه په مونځ کښې خو ډير آياتونه لوستلې کيږی.

④ دَ قرآن په آياتونوکښې دَعموم الفاظو اعتبارکيږی دَ خصوصی موقع او واقعې اعتبارنه کيږی کمافی الاصول.نوکه دا آيت د خطبې په باره کښې هم نازل شوې وی نوحکم به ئې صرف په خطبه پورې خاص نه وی بلکه عامو حالاتو ته به هم شامل وی.

**د دويم فريق دويم دليل:-** دَ حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت د دوی مستدل دې دکوم الفاظ چه دادی. ((قال فانتهى الناس عن القراءة مع رسول الله ﷺ)) په مشکاة کښې دَ شمير په لحاظ سره دا حديث ۳۱ دې. داحديث په جهری مونځ کښې قراءة خلف الامام نه کولوباندې واضح ترين دليل دې بله دا چې ابوهريره رضي الله عنه متاخرفی الاسلام دې نوکيدې شی چه دا روايت دَ قرأت دَ باقی احاديثودَپاره ناسخ وی.

**دااعتراض:-** دَ فانتهى الناس جمله دَ زهری ده دَ صحابی نه ده نودا روايت مرسل دې اودا جمله مرفوع نه ده؟

**د اعتراض دوه جوابونه:-** ① تيک دا روايت مرسل دې نوڅه اوشو؟ جمهور خو مرسل په زړه او ځان سره قبلوی دا روايت هم زمونږ قبول دې. په دې روايت سره هم دَ احنافو يوه دعویٰ ثابتيږی چه په جهری مونځ کښې فاتحه خلف الامام وئيلونه خلق منع شی.

② حقيقت دادې دا جمله دَحضرت ابوهريره رضي الله عنه نقل کړې شوې جمله ده اودَ زهری نه ده. او شوافع ته وهم شوې اودَ وهم قصه داسې پيښه شوې ده چه زهری دا روايت بيانولو کله

چه فانتهى الناس ته اورسيدو نو آواز ئې ښکته شو اوريدې نه شو. نوشاګردانو يوبل ته اوونيل ماقال الزهري؟ يعنې زهري څه اوونيل. کوم وخت چه دَ هغه آواز ښکته شو نو خودونکي اوونيل چه قال الزهري فانتهى الناس نوراتلونکي نقل کونکو ته شك پيدا شو چه دا قول دَ امام زهري رحمه الله دې دَ صحابي نه دې. حالانکه اخوا ابوداؤد شريف ص: ۱۴۰ باندې تصريح موجود ده چه ((قال قال ابوهريرة فانتهى الناس))

**د دويم فريق دريم دليل:-** دَ حضرت ابوموسى اشعري رضي الله عنه حديث د دوى مستدل دې کوم چه دَ مشکوة شريف ص: ۷۹باندې موجود دې په کوم کښې چه دا الفاظ راغلي دى "واذاقرأ فانصتوا" يعنې چه کله امام قرآن لولي توتاسوچپ اوسيږئ. داحديث امام مسلم رحمه الله صحيح مسلم ج۱ص: ۱۷۴باندې نقل کړې دې او تاکيدسره ئې داحديث صحيح ګرځولې دې. سره ددې چه دَحديث بعضې طرق کښې دا جمله مذکور نه ده وړاندې تفصيل راځي.

**په مذکوره دليل اول اعتراض:-** دَدې روايت په سند کښې سليمان تيمي رحمه الله دې اوهغه مدلس دې اودلته قتاده رحمه الله نه عنعنه سره نقل کوى اودَمدلس عنعنه قبوله نه ده؟

**داول اعتراض جواب:-** دَ بعض مدلسين دَ ثقاهت دَ وجې نه دَ هغه عنعنه قبلولې شي لکه قتاده، اعمش او سليمان تيمي لهذا دلته هم دَ هغه عنعنه قبوله ده. محدثينوتصريح کړې ده چه دَ صحيحين په رواياتو کښې که چرې دَمدلس عنعنه هم راشي نوهغه مقبول ده. ځکه چه دَ صحيحين دَ ټولو روايتونو په صحت باندې دَعلماؤ اتفاق دې هغه که چرې عنعنه سره هم دَمدلس روايت نقل کوى نو پوره تحقيق او پوره يقين سره ئې نقل کوى.

چنانچه امام نووي رحمه الله په يومقام باندې فرمائي "فقد قدمنافي مواضع من هذاالشرح ان مارواه البخاري ومسلم عن المدلسين وعنعنوه فهو محمول على انه ثبت من طريق آخر سماع ذلك المدلس هذالحديث فيمن عنعنه منه واكثرهذااوكثيرمنه يذكر مسلم وغيره سماعه من طريق آخر متصلا به" (مسلم ۲۰۹/۱)

نودا اعتراض بې ځايه دې ځکه چه هم دغه روايت په ابوداؤد وغيره کښې ذکردې هلته عنعنه نشته دې.

**په مذکوره دليل دويم اعتراض:-** "واذاقرأفانصتوا"چه کومه جمله ده هغه دَ قتاده رحمه الله نه صرف دَهغه يو شاګرد سليمان تيمي رحمه الله نقل کوى. دَقتاده رحمه الله نور شاګردان دا جمله نه نقل کوى نو سليمان تيمي رحمه الله دَدې جملې په نقل کولو کښې منفرددې لهذا داجمله معتبر نه ده؟

**د اعتراض جواب:-** دَ قتاده رحمه الله نه "واذاقرأفانصتوا" جمله صرف سليمان تيمي رحمه الله نه نقل کوى بلکه دَهغه متابع موجود دى. چنانچه دَ ابوعوانه په روايت کښې قتاده رحمه الله نه ابوعبيده نقل کوى اودَ بيهقي دارقطني او بزاز په روايت کښې دَ حضرت قتاده رحمه الله نه عمر بن عامر اوسعيدبن ابى عروبه رحمه الله نقل کوى نودَ قتاده رحمه الله نه که دا جمله سليمان

تيمي نقل کړې ده. نوعمر بن عامر، سعيدبن ابی عروبة او ابوعبيده رحمهم الله هم نقل کړې ده. لهذا سليمان تيمي رحمه الله دَ حضرت قتاده رحمه الله دَ نورو شاګردانو مخالفت نه دې کړې بلکه هغوی يو زياتی مستند جمله ذکرکړې ده کومه چه نورو شاګردانو نه ده نقل کړې نودا مخالفت نه دې.

**امام مسلم اوه زياتی جملې توثيق:**- امام مسلم رحمه الله دا جمله صحيح ګرځولې ده ځکه چه دَهغوی نه دَهغوی شاګرد ابوبکر رحمه الله تپوس اوکړو چه دَحضرت ابوهريره رضي الله عنه په حديث کښې کوم "واذاقرأفانصتوا" جمله ده هغه څنګه ده؟ امام مسلم رحمه الله اوفرمائيل "هوصحيح عندي" يعنی زما په نيزصحيح ده. "فقال لم لم تضعه ههنا؟ فقال ليس كل شئ عندي صحيح وضعته ههنا" (مسلم ۱۷۴/۱) يعنی شاګرد تپوس اوکړو چه که چرې داجمله صحيح وه نوبيا تاسو په کتاب کښې دَ ابوموسیٰ اشعری رضي الله عنه والا روايت په دې حديث کښې ولې نه دې درج کړې؟ امام مسلم رحمه الله په جواب کښې اوفرمائيل دا ضروری نه دی چه زه دې هريوصحيح حديث دلته راجمع کړم. دير زيات صحيح احاديث دی مګر مادلته نه دی جمع کړی لکه چه دا حديث دې په کوم کښې چه دا جمله ده البته چه کوم حديث زه جمع کوم هغه ضرور صحيح وی.

**خلاصه د دليل:**- دَ ابوموسیٰ اشعری رضي الله عنه دَ روايت نه دَ احنافو صرف يوه دعویٰ ثابتيږی چه په جهری مونځ کښې قرأت خلف الامام نشته دې.

**د دويم فريق څلورم دليل:**- دَ حضرت جابر رضي الله عنه روايت د دوی مستدل دې دَ کوم الفاظ چه دادی: ((عن جابر رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ من كان له امام فقراءة الامام له قراءة)) طحاوی دا روايت په مختلف طرق سره نقل کړې دې. دغه شان امام محمد رحمه الله مؤطا کښې دا ذکرکړې دې. بله دا چه به مسندابی حنيفه کښې هم موجود دې او بيهقی او دارقطنی هم دا نقل کړې دې. دَدې په اکثرطرق کښې سره دَدې چه ضعف دې ليکن بعض طرق بالکل صحيح دی.

**په مذکوره دليل اعتراض:**- دارقطنی دَدې روايت په مرفوع کيدو باندې اعتراض کولوسره ليکلی دی "لم يسنده عن موسى بن ابی عائشه غيرابی حنيفه والحسن بن عمارة وهما ضعيفان" يعنی دا روايت مرفوع روايت کونکی صرف دوه راوی دی يو ابوحنيفه رحمه الله او دويم حسن بن عماره رحمه الله دې اودا دواړه ضعيف دی؟

**داعتراض جواب:** علامه بدرالدين عينی رحمه الله فرمائی که چرته دارقطنی کښې لږشان هم شرم اوحياء وې نوهغه به داسې خبره چرې هم نه کوله. بيا هم دَ هغه خپلو دَ شوافع علماؤ په دارقطنی باندې داسې قلم اوچت کړې دې چه هغه ئی ذره ذره کړې دې او بيا دَ اصحاب الجرح والتعديل علماؤ وئيلی دی چه په ائمه اربعه باندې تفصيلی جرح هم معتبرنه ده نوځه به اجمالی جرح وی.

**امام ابوحنيفه د محدثينو په نظر کښې:**- علماء جرح والتعديل دَ امام ابوحنيفه رحمه الله

زبردست توثیق کړې دې.

① یحیی بن معین رحمه الله فرمائي "ابوحنیفة ثقة مأمون ماسمعت احدا ضعفه وشعبة بن الحجاج يكتب اليه ان يحدث" بل شعبه بن حجاج رحمه الله هغوی ته "صدوق في الحديث" په شاندار الفاظو سره یاکړې دې هغوی لیکلي دي "قال شعبة ابوحنيفة ثقة من اهل الدين والصدق ولم يتهم بالكذب، وكان مأمونا في دين الله صدوقا في الحديث" یاد لرئي شعبه بن حجاج رحمه الله دَ امام ابوحنیفه رحمه الله دَ لویو استاذانو نه دې. بهرحال دَ امام ابوحنیفه رحمه الله ډیر اوچت شان دې.

② دَ امام بخاري رحمه الله او مسلم استاذ فی الحدیث الشیخ عبدالرازق صاحب رحمه الله المصنف دَ امام ابوحنیفه رحمه الله شاګرد دې. هغه چه کله په خپل کتاب کښې دَ امام ابوحنیفه رحمه الله حدیث نقل کوی نو فرمائي چه "اخبرنا ابوحنيفة الخ" شیخ عبدالرزاق رحمه الله په خپل کتاب مصنف کښې تقریباً اویا روایتونه دَ امام ابوحنیفه رحمه الله نه اخستی دی.

③ امام شافعي رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله خودَ امام ابوحنیفه دَ شاګردانو شاګردان دی. هم په دې وجه امام شافعي رحمه الله فرمائیلي "الناس عيال في الفقه على ابي حنيفة رحمه الله" بهرحال دَ دارقطنی دَپاره مناسب نه وو چه هم دَ خپلې سلسلې دومره لوئی فقیه اوامام باندې داسې سختې حملې اوکړی. ګورئي مونږ یوداسې سند راوړو په کوم کښې چه امام ابوحنیفه رحمه الله ذکرنشته دې.

((عن اسحاق الازاق عن سفيان وشريك عن موسى بن ابي عائشة عن ابراهيم عن جابر قال قال رسول الله ﷺ من كان له امام فقراءة الامام له قراءة)) دریم سند هم واخلئی چه تسلی اوشی.

((عن اسحاق الازاق عن سفيان الثوري وشريك عن موسى بن ابي عائشة عن شداد بن الهاد عن جابر قال قال رسول الله ﷺ من كان له امام فقراءة الامام له قراءة))

دا ټول روایات مرفوع دی اودا آخری سندخو علی شرط مسلم دې. اوکه چرې دارقطنی په ضد کښې وی چه حدیث مرسل دې نومونږ هغه ته ښایو چه زمونږ په نیز اودَ جمهور علماؤ په نیز مرسل روایت حجت دې. اوکه چرې دَ دارقطنی په نیزحجت نه دې نومونږ دَ هغه دا درد کمولې نه شو.

دا روایت دَ ائمه احناف دَ دوارو دعوو دَپاره بهترین دلیل دې دَ کوم مطلب چه دادې په سری او جهری دوارو مونځونو کښې دَ امام قرأت دَمقتدیانودَپاره کافی دې.

**د دویم فریق پنځم دلیل:** – دَ حضرت ابوهریره رضي الله عنه حدیث د دوی مستدل دې دکوم الفاظ چه دادی: ((عن ابي هريرة قال قال رسول الله ﷺ انما جعل الامام ليؤتم به فاذا كبر فكبروا واذا قرأ فانصتوا)) (رواه ابوداؤد)

**په مذکوره دلیل اعتراض:** – په دې کښې یو راوی ابوخالد دې هغه ضعیف دې لهذا استدلال صحیح نه دې؟

**د اعتراض جواب:-** علامه ابن حجر رحمه الله ابوخالد په ثقات کښې شمیرې دې. دغه شان نواب صدیق حسن خان هغه ته ثقه وئیلی دی بل دَ ابوخالد متابع محمدبن سعد انصاری هم دې. علامه شبیراحمدعثمانی رحمه الله فتح الملهم کښې فرمائی چه په دې حدیث کښې "واذاقرأفانصتوا" الفاظ که نه هم وی بیاهم داحدیث په عدم قرأت خلف الامام باندې واضح دلیل دې. ځکه چه بخاری اومسلم کښې اونورو ټول کتب حدیث کښې "واذاقرأفانصتوا" جملې څخه علاوه حدیث په کثرت سره موجود دی په کوم کښې چه مقتدی ته دَامام دَ اتباع حکم ورکړې شوې دې او دَ امام اتباع په تکبیر کښې داده چه تاسو هم تکبیروایئی په رکوع کښې اتباع داده چه ته هم رکوع ته لاړشه او په سجده کښې اتباع داده چه تاسو هم سجده اوکړئی. په قیام کښې اتباع دا چه تاسو هم قیام اوکړئی. اوس سوچ کول پکار دی چه قرآن لوستلوکښې دَامام دَ اتباع کولو طریقه څه ده آیا لوستل دی که چپ پاتې کیدل دی. نودَ بخاری په روایت کښې دی چه کله به جبرائیل امین وحی راوړله اوقرآن به ئې وئیلو نو حضورپاک ﷺ به هم ورسره وئیلو نودَ قرآن آیت راغلو ﴿فَإِذَا قَرَأْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ﴾ دَ دې فاتبع قرآنه په تفسیر کښې حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی "اي استمع له وانصت" دَدې نه په واضحه توګه باندې معلومه شوه قرآن وئیلووخت کښې دَ امام اتباع داده چه مقتدی دې چپ پاتې شی که قرآن اوری اوکه نه اوری ځکه چه دا ذمه والی امام پخپله پوره کوی. دَ حضرت ابوهریره رضي الله عنه دا حدیث هم دَ احنافو دَدواړو دعوو دَپاره دلیل جوړیدې شی.

**د دویم فریق شپږم دلیل:-**

((عن ابن عباس رضي الله عنهما ان النبی ﷺ قال تکفیك قراءة الامام خافت وجهر)) (رواه دارقطنی).

**په مذکوره دلیل اعتراض:-** دَا روایت منکردې نوقابل استدلال نه دې؟

**د اعتراض جواب:-** لیکن ابن قدامه رحمه الله فرمائی چه په دې روایت باندې دَ فقهاؤ دَمذهب بنیاد قائم دې اودَ فقهاؤ مسلك چه په کومو روایتونو باندې قائم وی هغه روایاتوته منکرنه شی وئیلې کیدې. دا روایت دَ ائمه احناف دَمسلك دَپاره دَ واضح ترین دلائلونه دې دَ احنافو دواړه دعوې دَدې څخه ثابتې دی.

**د دویم فریق اتم دلیل:-** دَحضرت جابر رضي الله عنه هم روایت د دوی مستدل دې چه کوم سړې مونځ کوی او په هغې کښې فاتحه اونه وائی نوهغه هډو مونځ نه دې کړې. ((الا ان یکون وراء الامام)) یعنی او که امام پسې وی نو دَ فاتحې وئیلو نه بغیرمونځ کیږی. (ترمذی طحاوی اومؤطامالك دا روایت نقل کړې دې). دا روایت دَ احنافو دَپاره سری او جهری دواړو مونځونودَپاره بالکل واضحه دلیل دې.

**د دویم فریق نهم دلیل:-** دَحضرت ابوبکر رضي الله عنه روایت هم د دوی مستدل دې. اودَا هغه واقعه ده چاچه په مسجد نبوی کښې دَ داخلیدو په وخت حضورپاك ﷺ په رکوع کښې

اوليدلو اوهم هلته دَ دروازې نه ئې نيت اوتړلو اودَ رکوع په حالت کښې دَ صف طرف ته په منډه اورسيدو. دَ مونځ دَ فارغيدو نه پس ئې دَ حضورپاك ﷺ نه دَمسئلې تپوس اوکړو حضورپاك ﷺ اوفرمائيل ((زادك الله حرصاولاتعد)) (مشکوة ص: ۹۹) حضورپاك ﷺ هغه ته دَ مونځ راواپس کولودَپاره اونه فرمائيل بلکه دَ شوق زياتيدو دعائې ورله اوغوښتله چه الله تعالى دې دَ نيکوطرف ته ستا شوق نور هم زيات کړي بيا داسې مه کوه بلکه صف کښې شامليدوسره تکبيرتحريمه اداکوه کوم مونځ چه ملاؤ شي هغه اوکړه اوکوم چه قضا شي هغه اداکړه.

**استدلال:** -دَ حديث په دې واقعه کښې شوافع هيڅ تاويل نه شي کولې اودا يومضبوط دليل دې چه دَ امام قرأت دَ مقتدى قرأت دې جدا وئيلو ضرورت نشته دې گنی فرض پريخودوسره مونځ څنګه صحيح کيدې شي.

**يوه اختلافي قاعده:** -په حقيقت کښې دلته يو ضابطه ده کوم چه شوافع په داسې مسلك خپلولوباندې مجبورکړي دي اوهغه دا چه دَ شوافع په نيز دَامام اومقتديانو په مينځ کښې په مونځ کښې اتحاد نشته دې بلکه صرف اشتراك عمل دې اودَ هريوخپل خپل عمل دې په دې وجه هريوله فاتحه وئيل پکاردي. دَ امام وئيل صرف دَ هغه دَ ځان دَپاره دي او مقتدى له پخپله وئيل پکاردي. ليکن دَ احنافو په نيز دَدواړو مونځ کښې صرف اشتراك عمل نه بلکه اتحاد عمل هم دې. لهذا دَ امام قرأت دَ مقتديانو هم قرأت دې. بهرحال دا روايت هم دَ احنافو دَ دواړو دعوو دَپاره دليل دې.

**د دويم فريق لسم دليل:** -دَ حضرت ابوهريره ﷺ هم د دوى مستدل هغه مشهورحديث دې کوم چه اول فريق په خپل دليل کښې پيش کوى ليکن په حقيقت کښې هغه دَ احنافو دليل دې. دَهغې يو څو الفاظ دادى: ((وعن ابوهريرة قال قال رسول الله ﷺ من صلى صلوة لم يقرأ فيها بأم القرآن فهي خداج ثلاثاً غير تمام)) (مسلم شريف)

**طريقه د استدلال:** -طرز دَ استدلال داسې دې چه امام پسې شاته فاتحه نه وئيلودَ وجې حضورپاك ﷺ دَ مونځ گذار مونځ ناقص گرځولې دې باطل نې ورته نه دی فرمائيلی. که چرې فاتحه فرض وې نودَهغې نه بغيرېه مونځ باطل کيدو.

**په احنافو اعتراض:** -احنافو تاسو پخپله منئى چه دَ فاتحې نه بغيرمونځ ناقص دې نو تاسو ناقص مونځونه ولې کوئى؟ او په دې نقصان اوچتولو باندې دا دومره زور ولې ورکوئى؟د دې اعتراض جواب په دې لاندې عنوان کښې ورکړې شوې دې؟

**د مونځ تاريخي مراحل:** -په مونځونو باندې څو دورونه راغلي دى.

① يو وخت داسې وو چه په مونځ کښې دَ خبرو کولو اجازت وو

② بيا هغه حکم موقوف شو او امام سره سره په جهرى مونځونوکښې قرآن لوستل باقي پاتې شو.

③ بيا داحكم موقوف شو او په سري مونځونو كښې ونيل باقي پاتې شو
④ بيا داهم موقوف شو او صرف دَ فاتحې ونيلو حكم باقي پاتې شو كوم چه پورته په حديث كښې ذكر دى
⑤ بيا داحكم موقوف شو اودَ امام قرأت دَ مقتديانو دَپاره كافي اوګرځولې شو باقي نه منع كړې شو. نوچه كله دَامام لوستل په حكمي توګه باندې دَمقتديانو ونيل دى نواوس دا نقصان ختم شو لهذا دَ مقتدي فاتحه ونيلو نه بغير مونځ ناقص نه دې.

**د دويم فريق يولسم دليل:** – د دويم فريق يو دليل دَعلقمه رحمه الله د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت كړې دې چه حضرت ابن مسعود رضي الله عنه اوفرمائيل چه افسوس چه دَ دغه سړي خله دَ خاورونه ډكه شي څوك چه امام پسې لوستل كوي. (رواه طحاوي باسنادحسن)

**د دويم فريق دولسم دليل:** – ابوحمزه رحمه الله وائي چه مادَ حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه تپوس اوكړو چه كله امام مخامخ وى نوآيا زه هغه پسې شاته لوستل كوم؟ ابن عباس رضي الله عنه په جواب كښې اوفرمائيل چه نه مه وايه. (طحاوي ص: ۱۵۱)

**د دويم فريق ديارلسم دليل:** – د دويم فريق يو دليل د عطاء بن يسار رحمه الله دَ حضرت زيدبن ثابت رضي الله عنه نه روايت كړې دې چه حضرت زيدبن ثابت رضي الله عنه اوفرمائيل چه امام پسې په يو مونځ كښې هيڅ مه وايئى. (طحاوي ص: ۱۵۱)

**د دويم فريق څوارلسم دليل:** – دَ الله تعالى په وړاندې په صف كښې اودريدو سره ټول مونځ ګذار ثنا وائي بيا ټول خاموش كيدوسره يوامام دَ درخواست پيش كولودَپاره فاتحه وائي. په آخره كښې ټول مقتديان په دغه درخواست باندې آمين ونيلوسره دستخط كوي او دَدغه مضمون تائيد كوي. داسې نه ده پكارچې هريوكس خپل خپل درخواست وړاندې كوي.

**دمثال په رڼا كښې وضاحت:** –دَدې مثال تاسو داسې اوګڼئى چه مثلاً يوه جرګه او معزز وفد بادشاه له ځي. نوقاعده داده چه اول دَ ټولو نه مخكښې ټول دَ بادشاه په مخكښې دَحاضرئى په وخت سلام وغيره آداب اوكړى بيا ټول ملاويدوسره يومكړې دَ خبرې دَ وړاندې كولو دَپاره وكيل جوړوى اودَ وكيل خبره دَ ټولو خبره وى دَ بادشاه په مخكښې دَټولو خبرې كول دَ ادب خلاف ګڼلې شي. بياچه كله وكيل درخواست پيش كوى نودَ وفد نور اركان دَ هغې تائيد كوى.

بالكل هم دغه شان دلته دَ ټولو په لوستلوسره دَ اصول وكالت او اصول اقتداء دَخرابيدو خطره ده. هلته په درخواست كښې چونكه دَ هدايت سوال كړې شوې دې په دې وجه حكم كيږى چه قرآن وايئى هم دغه هدايت دې. په دې وجه امام سورت يوځائى كولوسره قرآن وائي اوكله چه درخواست قبليږى نو ټول كيناستوسره دَ شكريې په توګه التحيات وائي او بيا دَ رخصتى سلام كولوسره واپس ځي.

**خلاصه د دلائلو:** - د دې ټولو روایتونونه داخبره ثابته شوه چه د امام او ومقتدی دواړو په مونځ کښې وحدت او اتحاد راغلې دې ځکه چه امام د دې د پاره مقرر کړې شوې دې چه د هغه اقتداء او اتباع اوکړې شی. د امام مونځ ضامن دې او د مقتدی مونځ متضمن دې. اوس که چرته مقتدی هم لوستل شروع کړی نو دا اصول اقتداء او اصول اتباع خلاف دې مگر یادلرنی چه دا قاعده صرف د قرآن لوستلو متعلق ده ځکه د قرآن متعلق د ﴿فَاسْتَمِعُوا﴾ او ﴿وَأَنصِتُوا﴾حکم راغلې دې. د قرآن نه علاوه نور ذکرونه امام پسې شاته وئیل منع نه دی.

**په فاتحه خلف الامام باندې د امام اعظم مناظره:** - نقل دی چه امام ابوحنیفه رحمه الله سره قرأت خلف الامام باندې بعضې علماؤ بحث اوکړو. هغوی اوفرمائیل چه د بحث او مناظرې د پاره یوجماعت تشکیل کړنی. هغوی یوجماعت جوړ کړو. امام صاحب اوفرمائیل چه ماسره به په بحث کښې ټول خبرې کونی که یوکس به کوی؟ هغوی وئیل خبره به یوکس کوی. هغوی اوفرمائیل چه د خبرې کولو د پاره چه څوك خوښوئی د هغه خبره به د ټولو خبره وی یا د هغوی به خپله خبره وی؟ وفد وئیل چه نه هغه به زمونږ وکیل او نمائنده وی د هغه خبره به د ټولو خبره وی. امام صاحب اوفرمائیل چه بس مناظره اوشوه. په هغوی کښې چه کوم کم فهم وو هغوی شور شروع کړو چه نه اوس مناظره کول دی. مگر د هغوی پوهانو اووئیل بس کړنی لاړشئ تاسو ماتې خوړلې ده او د شکست تاسو اقرار اوکړو. لکه چه امام ابوحنیفه رحمه الله هغوی ته په عملی توگه اوخودل چه کله زما په مخکښې هم یو وکیل خبرې کوی او د هغه خبره د ټولو د طرف نه اوګڼلې شی او ټول په ټول خبرې نه کوی نو هم دغه ضابطه اوقاعده د مانځه متعلق هم ده په مونځ کښې د دې نه ولې انحراف کولې شی.

**[۸۲۳] د سورة فاتحه نه وئیلو سره په مانځه کښې نقص راتلل**

٨٢٣ - (١)[٢] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[٢] «مَنْ صَلَّى صَلَاةً لَمْ يَقْرَأْ فِيهَا بِأُمِّ الْقُرْآنِ فَهِيَ خِدَاجٌ [٣] " ثَلَاثًا - غَيْرُ تَمَامٍ "، [٤] فَقِيلَ لِأَبِي هُرَيْرَةَ: إِنَّا نَكُونُ وَرَاءَ الْإِمَامِ، [٥] قَالَ: اقْرَأْ بِهَا فِي نَفْسِكَ، فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [٦] " قَالَ اللّٰهُ تَعَالَى: قَسَمْتُ الصَّلَاةَ بَيْنِي وَبَيْنَ عَبْدِي نِصْفَيْنِ، [٧] وَلِعَبْدِي مَا سَأَلَ، فَإِذَا قَالَ الْعَبْدُ: ﴿الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ [الفاتحة: ٢] [٨] قَالَ اللّٰهُ تَعَالَى: حَمِدَنِي عَبْدِي،

**ترجمه:** [١] او ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] کوم سړي چې په لمانځه کې سورة فاتحه ونه وایي نو د هغه مونځ ناقص دي [٣] (حضور ﷺ دا) درې ځله (وفرمایل چې د هغه مونځ ناقص دي) [٤] د ابوهریره رضی الله عنه څخه (دا اوریدو سره) پوښتنه وشوه هر کله چې مونږ امام په پسي يو (نو هغه وخت يي هم اووايو)؟ [٥] هغه اوویل چې (هو مګر)

[١] اخرجه مسلم كتاب الصلاة، باب وجوب قراءة الفاتحة فى كل ركعة، وإنه إذا لم يحسن الفاتحة، ولا أمكنه تعلمها قرأ ما تيسر له من غيرها (رقم٣٨ - (٣٩٥)

خو په خپل زړه کې يې په رو وايه چې بس ته يې اوريدي شي ځکه چې ما د حضور ﷺ څخه اوريدلي دي[٦] چې الله بزرگ وبرتر فرمايي ما مونځ (يعني سورة فاتحه) خپل او د خپل بنده ګانو په مينځ کې نيم په نيم تقسيم کړي دي (دا رنګه چې حمد او ثنا خو زما د پاره ده او دعا د بنده د پاره)[٧] او بنده چې څه غواړي هغه ته به ورکول شي هر کله چې بنده دا وايي الحمدلله رب العٰلمين (يعني ټول تعريفونه د الله د پاره دي چې د ټولو جهانو پروردګار دي)[٨] نو الله تعالى جل جلاله فرمايي چه زما بنده زما تعريف بيان کړو.

[١] وَإِذَا قَالَ: ﴿الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ﴾ [الفاتحة: ٣] [٢] قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: أَثْنَى عَلَيَّ عَبْدِي،[٣] وَإِذَا قَالَ: ﴿مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ﴾ [الفاتحة: ٤][٤] قَالَ: مَجَّدَنِي عَبْدِي،[٥] وَإِذَا قَالَ: ﴿إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ﴾ [الفاتحة: ٥] [٦] قَالَ: هٰذَا بَيْنِي وَبَيْنَ عَبْدِي، وَلِعَبْدِي مَا سَأَلَ،[٧] فَإِذَا قَالَ: ﴿اهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ - صِرَاطَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ﴾ [الفاتحة: ٦-٧][٨] قَالَ: هٰذَا لِعَبْدِي وَلِعَبْدِي مَا سَأَلَ» "، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[١] او هر کله چې بنده دا وايي چه الرحمٰن الرحيم (يعني الله ډير مهربان او ډير رحم کونکي دي)[٢] نو الله تعالى فرمايي زما بنده زما ثناء بيان کړه[٣] هر کله چې بنده وايي چه مالك يوم الدين (يعني الله د انصاف (قيامت) د ورځي حاکم دي)[٤] نو پروردګار فرمايي چه زما بنده زما د تعظيم اظهار وکړو[٥] هر کله چې بنده وايي اياك نعبد واياك نستعين (يعني اي پروردګاره مونږ خاص ستا عبادت کوو او خاص ستا څخه مدد غواړو)[٦] نو الله تعالى جل جلاله فرمايي دا زما او زما د بنده په مينځ کښې دي (يعني عبادت د الله د پاره دي او مدد غوښتل د بنده دپاره دي) او زما بنده چې څه غواړي هغه به ورته ملاوشي[٧] هر کله چې بنده وايي اهدنا الصراط المستقيم صراط الذين انعمت عليهم غير المغضوب عليهم ولا الضالين (يعني اي پروردګاره) مونږ په سيده لاره روان کړي د هغه خلقو په لاره چې تا پري فضل او کرم کړي دي نه د هغه خلقو په لاره چې تا پري غضب کړي دي او نه د ګمراهانو په لاره)[٨] نو الله تعالى جل جلاله فرمايي چه دا زما د بنده د پاره دي او بنده چې څه غواړي هغه به ورته ملاوشي، (مسلم.)

**حل اللغات:**- ① خِدَاجٌ: أَيْ نَاقِصَةٌ: ناقص، نقصان والا. ② حَمِدَنِي: زما تعريف ئې اوکړو، ③ أَثْنَى: زما ثنا ئې اوکړه. ④ مَجَّدَنِي: أَيْ: عَظَّمَنِي: زما لوئى ئې بيان کړه. ⑤ الْمَغْضُوبِ: چه غضب پرې شوې دې يعنى يهود. ⑥ الضَّالِّينَ: چه ګمراهان دى يعنى نصارىٰ.

**تسهيلات:- قوله:** بِأُمِّ الْقُرْآنِ:

**د ام الكتاب وجه تسميه:** دې ته ام الكتاب هم وائي. وجه دا ده چه سورت فاتحه دَ قرآن پاك دَټولو مضامينو اصل اوبنياد دې. دَ قرآن پاك ټول مضامين هم دې نه چاپيره ګرځي.

**قوله:** غَيْرُ تَمَامٍ:

**د خداج تفسیر:** -دا دَخداج تفسیر دې اودې نه واضحه کیږي چه فاتحه رکن صلوٰة نه دې دَ شوافع خیال دې چه دارکن صلوٰة دې اودَاحنافو په نیز مطلق قرآن رکن صلوٰة دی. حضورپاك ﷺ چه کله اعرابی ته مونځ خودلو نوونی فرمائیل "اقرأماتیسر معك من القرآن" خداج په معنی ذات خداج دې.

**قوله:** فَقِيلَ لِأَبِي هُرَيْرَةَ:

**د فاتحه خلف الامام عدم تداول:** -د مذکوره جملې څخه معلومیږي چه دَ سلف صالحین په نیز امام پسې فاتحه وئیل متعارف نه وو بلکه نه لوستل متعارف وو. نوځکه خود حضرت ابوهریره رضی اللہ عنہ سوال کیږی "فی نفسك" یعنی په مزه وایه، احناف دا قلبی تصور او فاتحه کښې په غور اوفکرباندې حمل کوی اودا قراءت دَ چا په نیز معتبرمعلوم نه شوامام پسې فاتحه وئیل منع دی. "قسمت" دَمتکلم صیغه دَ تقسیم نه ده او اوس داحدیث قدسی جوړشو.

**قوله:** الصَّلَاةَ:

**دابوهریره استنباط اودهغې تضعیف:** -فاتحه باندې دَ اصلوٰة اطلاق شوې دې اودا اطلاق الکل علی الجزء دَ قبیلې نه دې کیدې شی هم دَدې نه حضرت ابوهریره رضی اللہ عنہ په توګه دَ استنباط او اجتهاد دَ فاتحه فرضیت ثابتول غواړی. دَاحنافو علماء فرمائی چه دا اجتهاد دَ مرفوع حدیث په مقابله کښې فائده مندنه دې. حضرت شیخ عبدالحق رحمہ اللہ فرمائی په دې استنباط کښې خفا او پټوالې دې.

**قوله:** نِصْفَيْنِ:

**دتنصیف اعتبار:** -دا تنصیف دَ ایاتونو په اعتبارسره دې ځکه چه فاتحه په مجموعی اعتبارسره اووه آیاتونوباندې مشتمل ده او "صراط الذین انعمت علیهم" یوایت شمیرلوسره په دې وقف اوکړې شی نو په دریو ایاتونوکښې دَ الله تعالی تعریف دې او په دریو آیاتونوکښې دَ بنده دَ طرف نه سوال دې او یوآیت "ایاك نعبدوایاك نستعین" مشترك دې. اول نیمه حصه دَالله تعالی تعریف دې اودویمه نیمه حصه دَ بنده سوال دې. "ولعبدي ماسأل" یعنی دَ بنده سوال زه قبلوم. "مجدني عبدي" اوچت کرم او شرف واسع ته مجدوائی علماؤ لیکلی دی چه کله ذاتی شرافت خوافعالوسره ملاؤشی نو هغې ته مجد اومجیدوائی.

**دتسمیه په عدم جزئیت من الفاتحه دلیل:** -دَحضرت ابوهریره رضی اللہ عنہ داحدیث په دې باندې واضح دلالت کوی چه بسم الله الرحمن الرحیم دَ سورت فاتحه جزء نه دې که چرې دا جزء شی نو دَ فاتحه اووه آیاتونو په څائی به اته شی کوم چه دَدې حدیث منافی دې بل دَتقسیم په

دوران کښې بسم الله نه شاملول هم دَدې خبرې دليل دې چه داد فاتحه جزء نه دې اوهم دغه دَ امام ابوحنيفه رحمه الله مسلك دې.

**[٨٢٤] بسم الله په اوچت آواز سره وئيل پكار دي؟**

٨٢٣-(١)[٣] ١ «وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبَا بَكْرٍ وَعُمَرَ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ، ٢ كَانُوا يَفْتَتِحُونَ الصَّلَاةَ بِـ﴿الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ [الفاتحة: ٢]»، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه او حضرت عمر فاروق رضي الله عنه به ٢ مونځ د الحمد لله رب العٰلمين څخه شروع كولو. (مسلم)

**تسهيلات:-**

**قوله: كَانُوا يَفْتَتِحُونَ الصَّلَاةَ:**

**په تسميه دعدم جهر دليل:** -په جهري مونځونو كښې دَالحمد لله شروع كولونه وړاندې بسم الله په مزه وئيل پكاردي دَ احنافو هم دغه مسلك دې. په يوروايت كښې دي په امام باندې دَ دريوځيزونواخفاء لازم ده يواعوذبالله دويم بسم الله او دريم آمين، دلته دَدې روايت نه بالكل په واضحه توګه ثابتيږي چه بسم الله په مزه وئيل پكاردي. دَ دې مسئلې مكمل تفصيل باب صفة الصلوة حديث نمبر ٢ كښې ليكلې شوې دې.

**[٨٢٥] دآمين وئيلو حكم**

٨٢٥-(٢)[٣] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ " «إِذَا أَمَّنَ الْإِمَامُ فَأَمِّنُوا، ٣ فَإِنَّهُ مَنْ وَافَقَ تَأْمِينُهُ تَأْمِينَ الْمَلَائِكَةِ، ٤ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ» "، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ٥ وَفِي رِوَايَةٍ، قَالَ: ٦ " «إِذَا قَالَ الْإِمَامُ: ﴿غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ﴾ [الفاتحة: ٧]

**ترجمه:** ١ ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ (هر كله چې امام د سورة فاتحه د قراءت څخه وروسته) آمين اووائي (نو هغه وخت چونكه فرشتې آمين وايي) ٣ نو تاسو هم آمين وايئ؛ ځكه چه د كوم سړي آمين چې د فرشتو د آمين سره يو ځاي شي ٤ نو الله تعالىٰ جل جلاله د هغه ټول مخكني ګناهونه بخښي، بخاري مسلم، ٥ د يو روايت الفاظ دا

(١) اخرجه البخاري كتاب الصلاة باب ما يقول بعد التكبير (رقم-٧٤٣) ومسلم كتاب الصلاة، باب حجة من قال لا يجهر بالبسملة (رقم) ٥٠ - (٣٩٩) وابوداود كتاب الصلاة، باب من لم ير الجهر ب «بسم الله الرحمن الرحيم» (رقم-٧٨٢) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، باب افتتاح القراءة (رقم-٨١٣) والترمذي كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب في افتتاح القراءة ب {الحمد لله رب العالمين} [الفاتحة: ٢] (رقم-٢٤٦) والنسائي كتاب الافتتاح/ (رقم-٩٠٧)

(٢) اخرجه البخاري كتاب الاذان باب جهر الإمام بالتأمين (رقم-٧٨٠) ومسلم كتاب الصلاة، باب التسميع، والتحميد، والتأمين (رقم-٧٢ - (٤١٠) وابوداود كتاب الصلاة، باب التأمين وراء الإمام (رقم-٩٣٦) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها، باب الجهر بآمين (رقم-٨٥١) ومالك في الموطا كتاب الصلاة باب ما جاء بالتأمين خلف الإمام (رقم-٤٥) والترمذي كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في فضل التأمين (رقم-٢٥٠) والنسائي كتاب الافتتاح/باب ترك الجهر ببسم الله الرحمن الرحيم رقم (٩٠٧)

دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[٦] هر كله چې امام غير المغضوب عيهم ولا الضالين اووائي

[١] فَقُولُوا: آمِينَ، فَإِنَّهُ مَنْ وَافَقَ قَوْلُهُ قَوْلَ الْمَلَائِكَةِ، [٢] غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ»، [٣] هَذَا لَفْظُ الْبُخَارِيِّ، وَلِمُسْلِمٍ نَحْوُهُ. [٤] وَفِي أُخْرَى لِلْبُخَارِيِّ، قَالَ: "[٥] «إِذَا أَمَّنَ الْقَارِئُ فَأَمِّنُوا، [٦] فَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ تُؤَمِّنُ، [٧] فَمَنْ وَافَقَ تَأْمِينُهُ تَأْمِينَ الْمَلَائِكَةِ، [٨] غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ»".

**ترجمه:** [١] نو تاسو آمين اووايئ ځکه چې د کوم سړي (آمين) ويل د فرښتو د آمين ويلو سره يو ځاي شي[٢] نو د هغه ټول مخکني گناهونه به وبخښل شي، [٣] داالفاظ د بخاري دي د مسلم د حديث الفاظ د دې په مثل دي[٤] او د بخاري د يو روايت الفاظ دا دي چه رسول الله ﷺ وفرمايل[٥] هر كله چې د قرآن ويونكي (يعني امام يا ځوك مطلق ويونكي آمين وائي نو تاسو هم آمين اووايئ[٦] ځکه چې (هغه وخت) فرښتي آمين وايي[٧] او د کوم سړي آمين چې د فرښتو آمين سره يو ځاي شي[٨] نو د هغه مخکني ټول گناهونه به وبخښل شي.

**حل اللغات:-** ① أَمَّنَ: أي: قَالَ: آمِينَ: يعنى آمين به ئې اووئيلو. ② وَافَقَ: أي: مَنْ طَابَقَ: چه مطابق او برابر شو.

**تسهيلات:--**

**قوله: فَأَمِّنُوا:**

**د مقارنت آمين د حكم مصداق:** -يعنى تاسو هم آمين وايئى ځكه چه فرښتې هم آمين وائى اوهغه معصوم مخلوق دي دهغوى دعا قبليږي. كه چرې دهغوى ددعا الفاظوسره ستاسو د دعا الفاظ ملاؤ شو نوستاسو ټول واړه گناهونه به معاف شى كوم چه دې نه مخكښې شوى دى. مقتدى دغه شان آمين صرف په جهرى مونځونو كښې وئيلى شى په سرى مونځونو كښې ددې مقارنت امكان نشته دې.

باقى دا مسئله چه آمين په مزه وئيل دى كه په اوچت آواز سره وئيل پكاردى. دا مسئله په حديث نمبر ۳۲ كښې ان شاء الله په تفصيل سره راځى.

**[۸۲٦] دمقتدى د مانځه طريقه**

۸۲٦-()[٥] [١] وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[٢] «إِذَا صَلَّيْتُمْ فَأَقِيمُوا صُفُوفَكُمْ ثُمَّ لِيَؤُمَّكُمْ أَحَدُكُمْ، [٣] فَإِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوا، [٤] وَإِذَا قَالَ: ﴿غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ﴾ [الفاتحة: ٧] [٥] فَقُولُوا: آمِينَ، يُجِبْكُمُ اللَّهُ، [٦] فَإِذَا كَبَّرَ وَرَكَعَ، فَكَبِّرُوا وَارْكَعُوا [٧] فَإِنَّ الْإِمَامَ يَرْكَعُ قَبْلَكُمْ وَيَرْفَعُ قَبْلَكُمْ"،

(1) اخرجه مسلم كتاب الصلاة . باب التشهد فى الصلاة (رقم) ٦٢ - (٤٠٤) وابوداود كتاب الصلاة،باب التشهد(رقم-٩٧٢) والنسائى كتاب التطبيق /باب قوله ربنا ولک الحمد (رقم-١٠٦٤)

**ترجمه:** ① ابو موسى اشعري ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هر كله چې تاسو (با جماعت) مونځ كوي نو (مخكې) خپل صفونه سيده كړي بيا په تاسو كې دي يو سړي ستاسو امام جوړ شي ③ هر كله چې هغه امام تكبير تحريمه يعني الله اكبر اووائي نو تاسو هم الله اكبر اووايئ ④ هر كله چې امام غيرالمغضوب عليهم ولاالضالين اووائي ⑤ نو تاسو آمين اووايئ الله تعالى به ستاسو دعا قبوله كړي ⑥ او هر كله چې امام (ركوع ته د تلو د پاره) الله اكبر اووائي او ركوع ته لاړ شي نو تاسو هم الله اكبر ويلو سره ركوع ته لاړ شئ ⑦ او امام ستاسو څخه مخكې ركوع كوي او ستاسو څخه مخكې سر پورته كوي

| ① قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "فَتِلْكَ بِتِلْكَ" ② قَالَ: وَإِذَا قَالَ: سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، فَقُولُوا: اللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ، ③ يَسْمَعِ اللّٰهُ لَكُمْ» "، رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
|---|

**ترجمه:** ① نو رسول الله ﷺ وفرمايل چه د امام مخكې سر پورته كول د مخكې ركوع كولو بدله ده ② او حضور ﷺ وفرمايل هر كله چې امام سمع الله لمن حمده اووائي نو تاسو اووايئ: اللهم ربنا لك الحمد ③ الله ستاسو تعريف اوري،

**حل اللغات:** - ① فَتِلْكَ بِتِلْكَ: فَتِلْكَ اللَّحْظَةُ بِتِلْكَ اللَّحْظَةِ: يعنى دا وخت دهغې و خت په بدل كښې شو.

② يَسْمَع: أَيْ يَقْبَلُهُ: يعنى الله تعالى به ستاسو دعا قبوله كړي.

**تسهيلات:** - **قوله:** فَتِلْكَ بِتِلْكَ:

**د مذكوره جملې مفهوم:** - يعنى امام په ركوع كښې تاسو نه وړاندې ځى تاسو روستوځئ ليكن امام تاسو نه د ركوع نه وړاندې راپاسى او تاسو ترډغه وخته پورې په ركوع كښې يئې. لهذا په ركوع كښې حصاريدل ستاسو اوستاسو د امام برابرشو. "يسمع الله لكم" يعنى الله تعالى به ستاسو دعا واوري اوقبوله به ئى كړي. د تحميد او تسميع مكمل تفصيل او د فقهاء اختلاف باب صفة الصلوة حديث نمبر ۴۳، په شرح كښې تير شوې دې.

**تحميد او تسميع كښې د تقسيم دليل:** - خلاصه دا چه ځان له مونځ گذار "سمع الله لمن حمده" او "ربنالك الحمد" دواړه وائى كه په يوباندې اكتفاء اوكړه نو جائز دى. دا حديث د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دې چه امام كله د ركوع نه پاسى نو هغه به سمع الله لمن حمده وائى نو تاسو ربنالك الحمد وايئ يعنى دا تقسيم كاردې. ليكن امام شافعى رحمه الله فرمائى امام مقتدى اوځان له مونځ كونكې ټول به دا دواړه كلمات وائى. صاحبين فرمائى چه امام دې دواړه كلمات وائى.

| ۸۲۷-( )[۰] ① وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَقَتَادَةَ: "«وَإِذَا قَرَأَ فَأَنْصِتُوا»". |
|---|

(۱) اخرجه مسلم كتاب الصلاة، باب التشهد فى الصلاة (رقم) ۶۳ - (۴۰۴) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها باب إذا قرأ الإمام فأنصتوا (رقم-۸۴۶)

**ترجمه:**[۱] او د مسلم په يو بل روايت كې دا الفاظ هم دي چې (رسول الله ﷺ وفرمايل هر كله چې امام قرا ءت كوي نو تاسو چپ اوسئ، (مسلم.)

**[۸۲۸] په ما ئخه كښې د قراءت طريقه**

۸۲۸–(۲)[۱]وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲]«كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ فِي الْأُولَيَيْنِ بِأُمِّ الْكِتَابِ وَسُورَتَيْنِ،[۳] وَفِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُخْرَيَيْنِ بِأُمِّ الْكِتَابِ، وَيُسْمِعُنَا الْآيَةَ أَحْيَانًا،[۴] وَيُطَوِّلُ فِي الرَّكْعَةِ الْأُولَى مَا لَا يُطِيلُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ،[۵] وَهَكَذَا فِي الْعَصْرِ وَهَكَذَا فِي الصُّبْحِ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] ابو قتاده رضي الله عنه فرمايي[۲] چې رسول الله ﷺ به د ماسخوتن په لمانځه كې په اولني دوؤ ركعاتو كې سورة فاتحه او دوه سورتونه (يعني په هر ركعت كې سورة فاتحه او يو سورت) لوستلو[۳] او په وروسته دوه ركعاتو كې به يې صرف سورة فاتحه لوستله او كله كله به يې مونږ ته هم څه آيت اورولو[۴] او د دويم ركعت په نسبت به ئې اولني ركعت زيات اوږدولو[۵] دغسې به يې د مازيگر او د سحر په لمانځه كې هم كول. ( بخاري، مسلم.)

**حل اللغات:-** ① أُمِّ الْكِتَابِ: يعني سورة فاتحه. ② أَحْيَانًا: يَعْنِي نَادِرًا: كله كله، بعضې وخت.

**تسهيلات:--**

**توله: يَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ:**

**په سرى مونځ كښې دجهراً قراءت كولو وجه:-** يعنى دَماسپخين په مونځ كښې دَ حضورپاك ﷺ عام معمول په مزه قرأت كولوو مگر كله كله به ئې دَماسپخين په مونځ كښې يو سورت يا يو آيت په اوچت آواز سره اورولو داعمل به دَامت دَ تعليم دَپاره وو چه دا معلومه شي چه فاتحې سره يو سورت هم ملاوولې شي اودَ ملاوولو طريقه څه وى دَماسپخين قيد اتفاقى دې احترازى نه دې ځكه چه حضورپاك ﷺ به مازيگر كښې هم داسې كول دا ټول دَامت دَتعليم دَپاره وو.

**توله: وَيُطَوِّلُ:**

**داول ركعت په دويم ركعت باندې اوږدولو كښې مذاهب:-**

«وَيُطَوِّلُ» د باب تفعيل څخه دَ اوږدولو په معنى كښې دې. دَدې حديث نه معلوميږى چه رومبې ركعت دَ نورو نه زيات اوږدول پكار دى. په دې مسئله كښې اختلاف دې.

①دَامام مالك رحمه الله امام شافعى رحمه الله امام احمد بن حنبل رحمه الله او امام محمد رحمه الله مسلك دادې چه په ټولو مونځونو كښې اول ركعت دَ نورو ركعتونو په نسبت زيات اوږدول پكار دى.

② دَامام ابوحنيفه رحمه الله او امام ابويوسف رحمه الله په نيز صرف دَ سحر دَمونځ دا خصوصيت دې

[1] أخرجه البخاري كتاب الاذان باب: يقرأ في الأخريين بفاتحة الكتاب (رقم-۷۷٦) ومسلم كتاب الصلاة باب القراءة في الظهر والعصر(رقم-١٥٤- (٤٥١) والنسائي كتاب الافتتاح/باب القراءة في الركعتين الأوليين من صلاة العصر رقم(٩٧٨)

چه اولنۍ رکعت اوږد کړې شي باقي په ټولو مونځونو کښې د ټولو رکعتونو حیثیت برابر دې. البته چه په کومو رکعتونو کښې ضم صورت نشته دې د هغې حیثیت جدا دې.

**داول فریق دلیل:** - زیر بحث د حضرت ابوقتاده رضی الله عنه روایت د دوی مستدل دې په کوم کښې چه د سحر ماسپخین اومازیګر د رومبی رکعت اوږدولو ذکر ملاویږي اوماښام اوماسخوتن دې حضراتو په دې دریوارو مونځونو باندې قیاس کړې دی. عبدالرزاق رحمه الله د معمر رحمه الله نه نقل کړی دی چه زمونږ خیال د رومبي رکعت به حضورپاک صلی الله علیه وسلم څکه اوږدولو دې د پاره چه خلق رومبې رکعت حاصل کړی. امام ابوداؤد رحمه الله هم دغه شان لیکلی دی.

**د دویم فریق دلیل:** - ① راتلونکی متصل روایت کښې "في كل ركعة قدر ثلاثين آية" د دوی مستدل دې. څکه چه هلته د دوارو رکعتو قرأت برابر خودلې شوې دې.

② امام صاحب رحمه الله داهم فرمائی چه رومبې رکعت دعا استفتاح تعوذ او تسمیه باندې مشتمل دې په دې وجه اوږد وی د قرأت د وجې نه اوږدول صرف د سحر د مونځ خصوصیت دې.

**راجح قول:** - خلاصة الفتاوی کښې لیکلی دی چه امام محمد رحمه الله او جمهورو مسلك راجح اوخوښ کړې شوې دې یعنی اول رکعت ته اوږدوالې ورکول بهتر دی.

**[۸۲۹] په مانځه کښې د نبی علیه السلام د قیام مقدار**

٨٢٩-(٧)[١] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [٢] كُنَّا نَحْزُرُ قِيَامَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ، [٣] فَحَزَرْنَا قِيَامَهُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ مِنَ الظُّهْرِ قَدْرَ قِرَاءَةِ: الم تَنْزِيلُ السَّجْدَةِ - [٤] وَفِي رِوَايَةٍ -: فِي كُلِّ رَكْعَةٍ قَدْرَ ثَلَاثِينَ آيَةً، [٥] وَحَزَرْنَا قِيَامَهُ فِي الْأُخْرَيَيْنِ قَدْرَ النِّصْفِ مِنْ ذَلِكَ، [٦] وَحَزَرْنَا فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ مِنَ الْعَصْرِ عَلَى قَدْرِ قِيَامِهِ فِي الْأُخْرَيَيْنِ مِنَ الظُّهْرِ، [٧] وَفِي الْأُخْرَيَيْنِ مِنَ الْعَصْرِ عَلَى النِّصْفِ مِنْ ذَلِكَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

**ترجمه:** [١] ابو سعید خدري رضی الله عنه فرمايي [٢] چې مونږ به د ماسخوتن او مازیګر په لمانځه کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د قیام (د مقدار) اندازه کوله [٣] نو مونږ اندازه وکړه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به دماسپخین په اولني دوه رکعتونوکي د الٓمٓ تنزیل السجدة ویلو په قدر قیام کولو [٤] د یو بل روایت الفاظ دا دي چې په هر رکعت کې به ئې د دیرشو ایتونو ویلو په اندازه قیام کولو [٥] او دماسپخین په اخري دوه رکعاتونو کې مونږ د هغې نه د نصف اندازه وکړله [٦] او د مازیګر په اولني دوه رکعاتو کې دماسپخین د آخري دوه رکعاتو په قدر قیام [٧] او د مازیګر په آخري دوه رکعاتو کې د هغې نه د نصف په قدر د قیام مونږ اندازه وکړله. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① نَحْزُرُ: أَيْ نَقِيسُ وَنُخَمِّنُ: د نصر ینصر نه، قیاس کولو او تخمینه لګولو ته وائی یعنی اندازه کول.

[1] اخرجه مسلم كتاب الصلاة . باب القراءة في الظهر والعصر (رقم-١٥٦ - (٤٥٢) وابوداود كتاب الصلاة باب تخفيف الأخريين (رقم-٨٠٤)

**تسهیلات:--**

**قوله: وَحَزَرْنَا:**

**د ماسپخین په مانځه کښې د قراءت مقدار:** -چونکه دَماسپخین اومازیګر په مونځ کښې قراءت پټ وی په دې وجه دَقیام مقدار هم په اندازه سره معلومولې شو کوم وخت چه خلق نیکان وونودَ قرآن پاك دَ سورتونو اندازه په ئې په مسافت سره اندازه کول. په دویم روایت کښې دی چه حضورپاك ﷺ به په هررکعت کښې دَ دیرشو آیاتونو لوستلو په اندازه قیام کولو مطلب دا چه حضورپاك ﷺ به په هرو دوو رکعتوکښې دَ الـم تنزیل السجده په اندازه تلاوت کولو.

**قوله: قَدْرَ النِّصْفِ مِنْ ذٰلِكَ:**

**د ماسپخین په آخری دوؤ رکعتونو کښې د قراءت مقدار:** -دَ پوره حدیث پوهیدلو په اعتبار داسې ګنړل پکاردی چه دَ حضوراکرم دَماسپخین په ړومبو دوو رکعتو کښې دَ قیام اندازه کله مونږ دَماسپخین دَ روستنو دوو رکعتو په قیام سره کوله نوداسې به معلومیدل چه دَ آخری رکعتونو قیام دَ ړومبو رکعتونو په قیام سره دَ نصف مقدار دی یعنی په ړومبو رکعتونوکښې به قراءت اوږد وو او په آخری رکعتونوکښې به دَدې نصف وو. اوچه کله به مونږ دَ مازیګر په مونځ کښې اندازه کوله نودَمازیګر دَ ړومبو دوو رکعتونوقیام مقدار به دَماسپخین دَ آخری دوو رکعتو دَ قیام په مقدار وو اودَمازیګر په آخری دوو رکعتونو کښې دَ قیام اندازه دَ مازیګر دَ ړومبورکعتونو دَ قیام په مقدار نصف وو.

**دماسپخین د دوو آخری رکعتونو په قراءت کښې دامام شافعی دوه اقوال:-**

① تولوشارحینو حضراتو لیکلی دی چه دَدې حدیث نه معلومیږی چه حضوراکرم به دَ مونځ په آخری دوو رکعتونوکښې قراءت کولو بیافرمائی چه هم دغه دَ امام شافعی رحمه الله مسلك دې چه په آخری دوو رکعتوکښې قراءت کول پکاردی بیا فرمائی چه دادَ امام شافعی رحمه الله قول جدید دې

② په قول قدیم کښې دادی چه په آخری دوو رکعتونوکښې دَ سورت قراءت ضروری نه دې او فتویٰ هم په دې باندې ده

**د ماسپخین په دوو آخری رکعتونو کښې عدم قراءت:** -اوهم دغه دَ احنافو مسلك دې چه په آخری دوو رکعتونوکښې سورت نه دی ملاوول که چرې حضورپاك ﷺ لوستلې وی نو دَبیان جوازدَپاره به ئې لوستلې وی.

دغه شان دَ احنافو فقهاؤ لیکلی دی په آخری دوو رکعتونوکښې مسنون هم دغه دی چه فاتحه اولوستلې شی کنی تسبیحات دې اولولی یادې خاموشی اختیارکړی. زه وایم که امام پسې په آخری رکعتونوکښې دَ فاتحه دَ لوستلو اهتمام اوکړی نو په اولنورکعتونو

کښې د فاتحه نه لوستلو به دا لوستل قائمقام شي او د اختلاف نه به بچ شو.

**اشکال:** – علامه شمس الدین رحمه الله صاحب التعلیق الفصیح ص ۱۲۵ کښې لیکي چه په دې حدیث کښې یو واضح اشکال دې او هغه دا چه د مازیګر رومبو دوو رکعتوکښې سورت شامل وی او د ماسپخین آخری دوو رکعتوکښې سورت شاملول نه دی نو د دې دوارو په مقدار کښې څنګه یوشان والي کیدې شی؟

**د اشکال جواب:** – د دې جواب شیخ شمس الدین رحمه الله داورکړې دې چه دلته په دغه مونځونو او د هغې په رکعتونوکښې په قرآءت کښې مساوات او برابروالي مراد نه دې او نه په دې حدیث کښې د قراءت د مساوات ذکر دې بلکه دلته خو صرف د قیام ذکر دې. د حضورپاك ﷺ قیام په رومبی رکعت کښې څومره وو او په آخری رکعت کښې څومره وو نوکیدې شی چه حضورپاك ﷺ په آخری دوو رکعتوکښې فاتحه په داسې ترتیل سره لوستلې وی چه د رومبی رکعت د وخت نه د هغې وخت نیم کیدلو.

خلاصه دا چه دلته د قیام د مقدار خبره ده د قرآءت خبره نشته نو په اول دوو رکعتونو کښې د فاتحه نه پس سورت شاملول وو او په آخری دوو رکعتونوکښې نه وو. نو هغه د اول رکعتونو د نصف په مقدار کښې وو. د دیر ژوروالی نه پس واضح کیږی چه د حدیث دا مطلب واضح او مناسب دې.

### [۸۳۰] دماسپخین په مانځه کښې مسنون قراءت

۸۳۰–( )[۸] ۱ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ ۲ «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ بِـ ﴿وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَىٰ﴾ [الليل: ۱]، ۳ وَفِي رِوَايَةٍ: بِـ ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى﴾ [الأعلى: ۱]، ۴ وَفِي الْعَصْرِ نَحْوَ ذٰلِكَ، وَفِي الصُّبْحِ أَطْوَلَ مِنْ ذٰلِكَ»، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ جابر بن سمره رضي الله عنه فرمایي ۲ چې رسول الله ﷺ به د ماسپخین په لمانځه کې سورة واللیل اذا یغشی لوستلو ۳ او په یو روایت کې دي چې سورة سبح اسم ربك الاعلی به یي لوستلو ۴ او د مازیګر په لمانځه کې د دې په قدر (څه آیت یا سورت) به یي لوستلو او د سحر په لمانځه کې به یي دي څخه اوږد قراءت کولو. (مسلم.)

**تسهیلات:** - **قوله:** يَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ

**په پنځو مونځونو کښې د مسنون قراءت مقدار:** –د دې حدیث پاك نه معلومه شوه چې د سحر او ماسپخین مونځ کښې به طوال مفصل وائی، د مازیګر او ماسختن مونځ کښې به اوساط مفصل وائی او د ماښام مونځ کښې به قصار مفصل وائی. نبی کریم ﷺ به د مقتدیانو حالاتو ته کتل او هغه شان قرآءة به یې کولو. کله به یې قرآءة اوږد کړو او کله به

(۱) اخرجه مسلم كتاب الصلاة ،باب القراءة في الصبح (رقم-۱۷۰ - (۴۵۹) ابوداود كتاب الصلاة،باب قدر القراءة في صلاة الظهر والعصر (رقم-۸۰۶) والنسائي كتاب الافتتاح/باب القراءة في الركعتين الأوليين من صلاة العصر رقم (۹۸۰)

يې قرآءة مختصر كولو. كله به حضور ﷺ د سحر په مونځ كښې سورة مؤمنون ، سورة روم ، سورة يس ، سورة واقعه ، سورة اذا زلزلت او كله معوذتين مختصر وئيل. او د ماسپخين مونځ كښې به يې سورة لقمان ، سورة تنزيل السجدة ، سورة الذاريات ، والسماء ذات البروج ، والسماء والطارق ، والاعلى ، وهل تاك ، والشمس وضحها ، والليل اذا يغشها وئيل. او د مازيګر مونځ كښې به يې هغه سورتونه وئيل چې كوم چې د والسماء نه شروع كيږي. او كله به يې سورة الاعلى وئيلو او كله سورة غاشية.

**[۸۳۱] د ماښام د مانځه مسنون قراءت**

۸۳۱—()[۹] [۱] وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ بِالطُّورِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] جبير ابن معطم رضي الله عنه فرمايي [۲] چې ما د ماښام په لمانځه كې د رسول الله ﷺ څخه سورة مرسلات ويل اوريدلي دي. (بخاري، مسلم)

**تسهيلات:- قوله:** فِي الْمَغْرِبِ بِالطُّورِ:

**د ماښام د وخت دامتداد دپاره غلط استدلال:**- ددې حديث پاك نه دا استدلال كول چې د شفق نه تر غروب كيدو پورې د ماښام وخت ختميږي، دا صحيح نه دى. څكه دويم فصل كښې چې كوم روايات دى هغې كښې راځى چې نبى كريم ﷺ به د ماښام په مونځ كښې سورة اعراف، سورة دخان، سورة اعلى، سورة كافرون، سورة التين، والقارعة، لوستل او د ماسختن په مونځ كښې اذالسماءانشقت لوستل. لهذا ديوسورة ذكر كولو سره دا نه لازميږي چې نبى كريم ﷺ به ګنې نور سورتونه نه وئيل. او ددې نه ترد غروب شفق پورې د ماښام وخت متعين كول هم نه ثابتيږي څكه چې دسورة اعراف په وئيلو كښې كافى وخت لګى.

**[۸۳۲] د ماښام په مانځه كښې د سورة مرسلات قراءت**

۸۳۲—()[۱۰] [۱] «وَعَنْ أُمِّ الْفَضْلِ بِنْتِ الْحَارِثِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ بِـ﴿وَالْمُرْسَلَاتِ عُرْفًا﴾ [المرسلات:۱]»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

(۱) اخرجه البخارى كتاب المغازى باب الجهر فى المغرب (رقم-۷۶۵) ومسلم كتاب الصلاة . باب القراءة فى الصبح (رقم-۱۷۴ - (۴۶۳) وابوداود كتاب الصلاة،باب قدر القراءة فى المغرب (رقم-۸۱۰) ومالك فى الموطا كتاب الصلاة باب القراءة فى المغرب والعشاء (رقم-۲۳) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها . باب القراءة فى صلاة المغرب (رقم-۸۳۲) والنسائى كتاب الافتتاح/باب القراءة فى المغرب بالطور (رقم) ۹۸۷

(۲) اخرجه البخارى كتاب المغازى باب القراءة فى المغرب (رقم-۷۶۳) ومسلم كتاب الصلاة . باب القراءة فى الصبح (رقم) ۱۷۳ - (۴۶۲) وابوداود كتاب الصلاة،باب قدر القراءة فى المغرب (رقم-۸۱۰) ومالك فى الموطا كتاب الصلاة باب القراءة فى المغرب والعشاء (رقم-۲۴) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب فى القراءة فى المغرب (رقم-۳۰۸) والنسائى كتاب الافتتاح/باب القراءة فى المغرب بالمرسلات (رقم)۹۸۵ وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها . باب القراءة فى صلاة المغرب (رقم-۸۳۱) (رقم-۸۳۱۰)

**ترجمه:**[۱] بي بي ام فضل بنت حارث رضي الله عنها فرمايي[۲] چه ما د رسول الله ﷺ څخه د ماښام په لمانځه کې سورة مرسلات ويل اوريدلي دي، (بخاري، مسلم.)

**تسهيلات:-**

**قوله: يَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ وَالْمُرْسَلَاتِ عُرْفًا:**

**يو سورة ه يو ركعت سره د خاص كولو حكم:-** بعض روايتونو كښې راغلي دي چه حضورپاك ﷺ به دَ ماښام په مونځ كښې سورت اعراف وئيلو اوسورت انفال اوسورت دخان به ئې وئيلو. دلته دغه احاديثوسره دَ نورو احاديثو ذكرهم ملاويږي. دَدې ټولو احاديثونه داخبره واضحه كيږي چه په مونځ كښې يو ركعت سره څه خاص سورت متعلق نه دې اونه يو مونځ سره څه خاص سورت يا آيات تړلي شوي دي.

**داوږدو سورتونو په لوستلو كښې دوه توجيهات:-**

① اوږده سورتونه وئيل په دې باندې محمول دي چه حضورپاك ﷺ به مونځ كښې دَدې يو حصه وئيلې پوره سورت مراد نه دې سره دَدې چه نوم دَ پوره سورت دې يا حضورپاك ﷺ به ډيرو ركعتونو كښې يو سورت تقسيم كولوسره وئيلې دي.

② دَ حضورپاك ﷺ معجزه وه.

**[۸۳۳] دمفترض په متنفل پسې اقتداء**

۸۳۳-()[۱][۱] وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ:[۲] «كَانَ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ يُصَلِّي مَعَ النَّبِيِّ،[۳] ثُمَّ يَأْتِي فَيَؤُمُّ قَوْمَهُ،[۴] فَصَلَّى لَيْلَةً مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِشَاءَ،[۵] ثُمَّ أَتَى قَوْمَهُ فَأَمَّهُمْ، فَافْتَتَحَ بِسُورَةِ الْبَقَرَةِ،[۶] فَانْحَرَفَ رَجُلٌ فَسَلَّمَ، ثُمَّ صَلَّى وَحْدَهُ وَانْصَرَفَ،[۷] فَقَالُوا لَهُ: أَنَافَقْتَ يَا فُلَانُ؟[۸] قَالَ: لَا وَاللَّهِ، وَلَآتِيَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَأُخْبِرَنَّهُ،

**ترجمه:**[۱] حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي[۲] چې معاذ ابن جبل رضي الله عنه به د رسول الله ﷺ سره مونځ وكړو[۳] بيا به راغې خپل قوم ته به يې مونځ وركولو[۴] يو ځل هغه د رسول الله ﷺ سره د ماسخوتن مونځ وكړو[۵] بيا راغې د خپل قوم امامت يې وكړو او (په مونځ كښې يې) سورة بقره شروع كړه[۶] (هر كله چې قراءت اوږد شو) نو يو سړي سلام وګرځولو او د جماعت څخه ووتلو او ځان ته يې مونځ وكړو او لاړو[۷] خلقو (چې كله دا وليدل نو) هغه ته يې اوويل فلانيه آيا ته منافق شوي يې ؟ (ځكه چې د جماعت څخه ځان بچ كولو سره وتل خو د منافقانو كار دي)[۸] هغه اوويل نه قسم په الله (زه منافق شوي نه يم) زه به د حضور ﷺ په خدمت كې خامخاحاضر شم اوحقيقت حال به ورته بيان كړم

[۱] اخرجه البخاری كتاب المغازی باب من لم یر إكفار من قال ذلك متأولا أو جاهلا(رقم-۶۱۰۶) ومسلم كتاب الصلاة باب القراءة فی العشاء (رقم-۱۷۸ - (۴۶۵) وابو داود باب فی تخفیف الصلاة (رقم-۷۹۰) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، باب من أم قوما فلیخفف(رقم-۹۸۶)والنسائی كتاب الافتتاح /باب القراءة فی العشاء الآخرة بالشمس وضحاها (رقم)۹۹۸

**حل اللغات:-** ① اَلْحَرَفَ: أَيْ: مَالَ: راوګرځیدو، رادیخوا شو. ② الصَّرَفَ: أَيْ: خَرَجَ مِنَ الْمَسْجِدِ: یعنی دجمات نه اووتلو. ④ أَنَافَقْتَ: أَيْ: أَفَعَلْتَ مَا فَعَلَهُ الْمُنَافِقُ: یعنی تاهم داسې کار اوکړو څنګه چه منافق ني کوي چه دجماعت نه دې مخ واړولو او مونځ دې خانله اوکړو.

① فَأَتَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّا أَصْحَابُ نَوَاضِحَ، ② نَعْمَلُ بِالنَّهَارِ، وَإِنَّ مُعَاذًا صَلَّى مَعَكَ الْعِشَاءَ، ③ ثُمَّ أَتَى قَوْمَهُ، فَافْتَتَحَ بِسُورَةِ الْبَقَرَةِ. ④ فَأَقْبَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى مُعَاذٍ، فَقَالَ: " يَا مُعَاذُ! أَفَتَّانٌ أَنْتَ؟ ⑤ اقْرَأْ: (وَالشَّمْسِ وَضُحَاهَا) _ و((وَالضُّحَى)) و((وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى))، وَ((سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى _)) ، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① نو هغه سړي په بارګاه رسالت کې حاضر شو او عرض يې وکړو يا رسول الله ﷺ مونږ اوښانو واله (ساربانان) يو ② د ورځې کار کوو [یعنې] د اوښانو په ذريعه اوبه راښکلو سره د رختي (فصلونه) اوبه کوو او ټوله ورځ په محنت ومشقت کې لګيا يو] معاذ ﷜ د شپې ستا (ﷺ) سره د شپې مونځ وکړو ③ بيا راغې او مونږ ته مونځ راکولو نو سورة بقره شروع کړه (د اوږد قراءت کيدو او د خپلې ستړيااو ستوماني په وجه زه بد دل شوم) ④ دې اوريدوسره حضور ﷺ حضرت معاذ ﷜ طرف ته متوجه شو او وې فرمايل اې معاذه آيا ته فتنه پيدا کونکې يې (يعنې ته د خلقو نه جماعت ترک کولو سره هغوی د دين څخه بيزاره کول او په فتنه کې مبتلا کول غواړې؟ ⑤ بهتره دا ده) چې ته سورة والشمس وضحها، سورة والضحی، سورة والليل، اذا يغشی او سورة سبح اسم ربك الاعلی اولولې. (بخاري، مسلم.)

**حل اللغات:-** ③ نَوَاضِحَ: د نَاضِحَةِ جمع ده، ددې مذكر نَاضِحٌ راځي. هغې اوښ ته وائی په کوم باندې چه د وونو بوټو د اوبه کولو دپاره اوبه راوړلې شي. ⑤ أَفَتَّانٌ: أَيْ: أَمُنَفِّرٌ: آيا ته خلق په فتنه کښې اچوې، خلقو کښې نفرت پيدا کوې.

**تسهیلات:- -**

**قوله: كَانَ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ:**

**د معاذ بن جبل د واقعې پس منظر:-** دَدې حديث عمومی مفهوم دادې چه حضرت معاذ ﷜ دَ مدنيې منورې په يوه محله کښې اوسيدو اوهلته به ئی دَ خپلې محلې والو په جمات کښې هغوی ته مونځ هم ورکولو. اوکله به مسجد نبوی ته هم دَ مانځه دَپاره تګ راتګ کيدلو. کله کله به ئی دَ ماسخوتن مونځ دَ حضورپاك ﷺ په اقتداء کښې په مسجدنبوی کښې کولو. حضورپاك ﷺ به دَماسخوتن مونځ په لږتاخيرسره اداکولو. قرأت به هم اوږد وو نودَ مونځ نه فارغيدو نه پس به ماسخوتن کښې ناوخته کيدو. حضرت معاذ ﷜ به دَ مسجدنبوی نه فارغيدو سره دَ خپلې محلې طرف ته تللو په دې کښې به هم وخت لګيدلو. دَمحلې والو به انتظارکولو. بياچه به ئی کله مونځ ورکولو نودَ سورت بقره

وغيره اوږدو سورتونه به ئې اوږد قرات کولو. يوځل داسې اوشو چه په محله کښې سليم يا حزام نوې يو صحابي مونځ مات کړو اوځان له ئې اوکړو. خلقو هغه ملامته کړو چه ته منافق شوې. هغه ونيل دَمنافقت څه خبره نشته دې زه به صباله ضرور ورځم اوذَ نبی کريم ﷺ په مخکښې به دَمعاذ رضي الله عنه شکايت کوم. هغه شکايت اوکړو او وئې ونيل چه مونږ مزدورئی کونکی خلق يو سترې ستومانه راځو اول دَمعاذ انتظار کول وی بيا دَ هغه اوږد مونځ برداشت کول وی په دې وجه ما هغه بله شپه مونځ ځان له اوکړو. حضورپاك ﷺ دَحضرت معاذ رضي الله عنه ډير خفه شو اوونی فرمائيل چه آيا ته خلق په فتنه کښې اچول غواړې؟ داسې مه کوه يا ماپسې مونځ کوه خپل قوم ته مونځ مه ورکوه يا ماپسې مه کوه هغوی ته مونځ ورکوه. ليکن په دې کښې هم داخيال ساته چه فلانکې فلانکې مختصر سورت وايه.

**دَ مفترض په متنفل پسې دَ اقتداء په حکم کښې مذاهب:-**

اوس دَدې واقعې دَوجې په فقهاؤ کښې اختلاف راغلې چه آيا دَمتنفل امام شاته دَ فرض کونکو مونځ جائز دې که نه ځکه چه حضرت معاذ رضي الله عنه نفل کونکې وو اودَمحلې خلقو فرض کول. حضرت معاذ رضي الله عنه به فرض مونځ حضورپاك ﷺ سره کړې وو.

① دَ امام شافعی رحمه الله په نيز متنفل پسې شاته دَمفترض مونځ جائز دې. دَامام احمدبن حنبل رحمه الله يو قول هم داشان دې. دَ شوافع په نيز دَ نابالغ هلك امامت هم دَدې اصولو لاندې جائز دې.

② ائمه احناف امام ابوحنيفه رحمه الله، امام مالك رحمه الله او دَ يو قول مطابق امام احمد رحمه الله ټولو مسلك دادې چه دَ مفترض مونځ متنفل پسې جائزنه دې.

**داول فريق اول دليل:-** ① دَ حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه زير بحث حديث او دَدې واقعه د دوی مستدل دې او داخبره ښکاره ده چه معاذ رضي الله عنه فرض اول کړی او دَ محلې دَ خلقو چه کوم امامت کوی په هغې کښې دې متنفل دې لهذا متنفل پسې دَ مفترض مونځ جائز دې.

**داول فريق د اول دليل ځنګه جوابونه:-** ① دَحضرت معاذ رضي الله عنه واقعه په هغه وخت باندې محمول ده کوم وخت چه فرض مونځ دوه ځل کيدلو بيا دا طريقه منسوخ شوه. په دې باندې دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنه روايت دلالت کوی.

شيخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې دا حديث داسې نقل کړې دې ((نهي ان نصلي فريضة في يوم مرتين))(لمعات: ۱۳۸/۳، اشعة المعات: ۴۰۵.

② دَمعاذ بن جبل رضي الله عنه داعمل دَهغه خپله رائی اودَ هغه خپل اجتهاد وو. په کوم چه دَ حضور پاك ﷺ تقرير او توثيق نه وو خوچه کله حضورپاك ﷺ ته معلومه شوه نوهغوی خفه شو.

③ دَ چا دَنيت علم چاته نه کيږی. دَ حضرت معاذ رضي الله عنه په عمل کښې دا احتمال دې چه هغوی دَ فضيلت دَ حاصلولو په غرض دَ حضورپاك ﷺ په اقتداء کښې دَ نفل نيت کړې

وی اوبیا خپل قوم سره فرض ادا کړي وی چه دَجمع فضیلت هم حاصل کړی بلکه احراز فضیلتین حاصل شی.

④ دغه خلقو ته دوه شکایتونه وو. اول دا چه په ماسخوتن کښې تاخیر کیږی دویم دا چه قرأت اوږد کوی. حضور پاك ﷺ دوه جوابونه ورکړل اول دا چه دوه ځایه دَماسخوتن مونځ مه کوه اوکه قوم ته مونځ ورکول وی نومختصر قرأت کوه. نودَ یومنهی عنه دَ فعل نه څنګه استدلال کولې شی.

⑤ دَ عشاء اطلاق په مغرب هم کیږی کوم ته چې عشاء اولی وائی او په عشاء یعنی ماسخوتن باندې هم دَدې اطلاق عام دې کوم ته چه عشاء آخرة وائی. نودا قوی احتمال دې چه دلته دَ ماښام مونځ مراد وی اودَ دې تذکره دَترمذی ص:۷۵باندې هم ملاویږی.

**داول فریق دویم دلیل:-**

② عمرو بن سلمه ﷺ یونابالغ هلك به خپل قوم ته مونځ ورکولو هغه هم متنفل وو اودَ قوم مونځ فرض وو لکه چه باب الامامة کښې حدیث نمبر ۱۰ لاندې دا قصه راځی.

**د اول فریق د دویم دلیل دوه جوابونه:-** پاتې شوه دا چه د حدیث عمرو بن سلمه ﷺ نه د نابالغ د امامت جواز ثابتیږی لکه چه امام بخاری او امام شافعی ﷫ فرمائیلې دی، علماء کرامو د دې ډیر جوابونه کړی دی.

① امام خطابی ﷫ فرمائی چه حسن بصری ﷫ دې حدیث ته ضعیف وئیلې دې.

② عمرو بن سلمة ﷺ چه کوم امام جوړ کړې شوې وو هغه د صحابه کرامو اجتهاد وو د رسول الله ﷺ قول یا فعل یا تقریر نه دې.

**د دویم فریق دلائل:-** ① "الامام ضامن والمؤذن مؤتمن" (ترمذي ،ابوداود) په دې حدیث کښې دَامام مونځ متضمن اسم فاعل اوګرځولې شو یعنی یوڅیز په ترخ کښې اخستونکې اودَمقتدی مونځ متضمن اسم مفعول اوګرځولې شو اوداخبره ښکاره ده چه دَ متنفل مونځ دَ قوت او کیفیت په اعتبارسره ډیر کمزورې دې هغه دَمفترض مونځ چه دَقوت او کیفیت په اعتبار سره ډیر قوی دې په خپله غیږ کښې نه شی اخستې.

② "انما جعل الامام لیؤتم به" حدیث هم د دوی مستدل دې په کوم کښې چې دا تعلیم ورکړې شوې دې چه امام اعلی حالاًکیدل پکاردی خو متنفل امام ادنی حالاًوی. لهذا دا اقتداء جائز نه ده.

دلته یوه بنیادی ضابطه ده دکوم په وجه چه دا اختلاف اودَ قرأت خلف الامام اختلاف راغلې دې هغه دا چه دَ شوافع په نیز دَ امام اومقتدی په مونځ کښې اتحاد نشته دې. زمونږ په نیز دَ امام اومقتدی په مونځ کښې اتحاددې هغوی کښې اتحادنشته دې صرف په افعالَ کښې اشتراك دې لهذا جدا جدا مونځ دې نو په هرشان سره جائز دې.

**قوله:- اقْرَأْ: وَالشَّمْسِ وَضُحَاهَا:**

**د مذكوره قول په مفهوم كښې دوه اقوال:-**

① يعنى دا سورت وايه هغه سورت وايه دَدې مختصرو سورتونو لوستل كوه نودَدې مقصد دانه دې چه په اول ركعت كښې سورت شمس وايه اودويم ركعت كښې سورت اعلى وايه ځكه چه داداسې وئيل دَمصحف دَترتيب خلاف دى ځكه چه سورت اعلى مخكښې دې بلكه په حديث كښې واؤ دَ مطلق جمع دَپاره دې چه دَدې سورتونونه دَتخفيف په غرض سره څه وايه.

② اوكه چرې مطلب ئې دا وى چه په اول ركعت كښې والشمس وايه او دويم ركعت كښې سورت اعلى وايه نودا به دَ بيان دَ جواز دَپاره وى. ځكه چه مسنون طريقه دَمصحف د ترتيب مطابق وئيل دى. اودَدې خلاف وئيل خلاف اولى دى.

**په سورت كښې د تقديم او تاخير كراهت:-** ليكن كه يوسړې دَ يوسورت په آيات كښې تقديم اوتاخير سره لولى نودا ناجائز دى وجه دَ فرق داده چه دَ آيات ترتيب قطعى اوتوقيفى دې اودَ سورتونو ترتيب دَ نزول نه پس دَ صحابه كرامو په اجتهاد باندې دې. بل په آياتونو كښې وړانديوالې او روستووالې كولوسره په مضمون اومعانى كښې فرق راځى او په سورتونوكښې داسې نه وى. دَدې حديث نه امت ته دا تعليم حاصل شو چه امام له پكاردى چه هغه دې دَ خپلو مقتديانو په مانځه كښې هرلحاظ سره خيال ساتى دې دَ پاره چه خلق متنفر او ګډوډ نه شى.

**[۸۲٤] د ماسختن د مونځ مسنون قراءت**

٨٣٣ –()[۲][۱] «وَعَنِ الْبَرَاءِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْعِشَاءِ: ﴿وَالتِّينِ وَالزَّيْتُونِ﴾ [التين:١] [۳] وَمَا سَمِعْتُ أَحَدًا أَحْسَنَ صَوْتًا مِنْهُ»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت براء رضي الله عنه فرمايي [۲] چې ما د رسول الله ﷺ څخه د ماسخوتن په لمانځه كي سورة والتين والزيتون ويل اوريدلي دي [۳] او ما د رسول الله ﷺ د آواز څخه زيات ښكلي آواز د بل چا ندي اوريدلي، (بخاري،مسلم.)

**تسهيلات:-**

**قوله: أَحْسَنَ صَوْتًا مِنْهُ:**

**د نبى عليه السلام ذات د كمالات باطنى اوظاهرى مجسمه:-** څنګه چه حضورپاك ﷺ په باطنى كمالاتوكښې دټولو نه زيات كامل اواكمل انسان وو هم هغه شان الله تعالى رسول الله ﷺ ته ظاهرى اوبدنى بناست او كمالات ورعطاكړې وو. بيا چه څنګه الله تعالى

(۱) اخرجه البخارى كتاب الاذان باب القراءة فى العشاء (رقم-٧٦٩) ومسلم كتاب الصلاة باب القراءة فى العشاء (رقم) ١٧٧ - (٤٦٤) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها ،باب القراءة فى صلاة العشاء (رقم-٨٣٥)

حضورپاك ﷺ په ښکلې صورت کښې دَ ټولو نه اوچت جوړ کړې وو دغه شان الله تعالی حضورپاك ﷺ ته دَ آواز په خوږوالی کښې هم يو امتيازی شان ورعطا کړې وو. هم دَدې تذکره حضرت براء بن عازب رضی الله عنه په دې روايت کښې کړې ده. دا څه جذباتی او په مبالغه باندې دَ جذباتو اظهار نه بلکه حقيقت دادې چه دا دَ يو صحابی دَ قوت بيانی آخری حد خو کيدې شی ليکن دَ پيغمبرئی دَ حد دَ شان ابتدا به وی.

**ښه آواز د پيغمبری لازمی صفت:** -ملاعلی قاری رحمه الله دَدې حديث لاندې ليکلی دی چه ابن عساکر رحمه الله يو حديث نقل کړې دې چه حضورپاك ﷺ فرمائيلی چه الله تعالی کله هم يو نبی راليږلې نوهغه ته ئی يو خوږ آواز او يوه ښکلې دَمخ څهره ورکولو سره راليږلې. تردې چه الله تعالی ستاسو نبی (محمد ﷺ) راليږلې نوهغه له ئی هم خوږ آواز او ښائسته مخ ورکولو سره راليږلې دې.

**د نبی عليه السلام د آواز اوچتوالې:** -په احاديثو کښې راغلی دی چه آواز به ئی هغه ځائی ته رسيدو چرته چه به دَ چا آواز نه رسيدو. دَبيهقی په يو روايت کښې دی چه يوځل حضورپاك ﷺ خطبه ورکوله نو په کورنو کښې په پرده کښې ناستو ښځود حضورپاك ﷺ آواز واوريدو. ابونعيم رحمه الله دَ عبدالله بن رواحه رضی الله عنه يو حديث نقل کړې دې هغه فرمائی چه زه په بنوتميم کښې ووم چه دَجمعې په ورځ دَحضورپاك په منبرباندې ما آواز واوريدو فرمائيلې کينه. دَ ابن ماجه په يوروايت کښې دی چه ام هانی رضی الله عنها به دَ حضورپاك ﷺ تلاوت هغه وخت اوريدو کوم وخت چه به حضورپاك ﷺ دَ شپې کعبې سره تلاوت کولو اوام هانی رضی الله عنها به په خپل کور کښې وه.

**[۸۳۵]د سحر په مانځه کښې مسنون قراءت**

۸۳۵-()[۱۳]①«وَعَنْ جَابِرِبْنِ سَمُرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: ②كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْفَجْرِ بِـ ﴿قٓ وَالْقُرْآنِ الْمَجِيدِ﴾ [ق:۱] وَنَحْوِهَا، ③وَكَانَتْ صَلَاتُهُ بَعْدُ تَخْفِيفًا»، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① جابر ابن سمره رضی الله عنه فرمايي ② چې رسول الله ﷺ به د سحر په لمانځه کې سورة قٓ وَالْقُرْآنِ الْمَجِيْدِ يا دغسې (اورد) څه بل سورت لوستلو③ او حضور ﷺ به د سحر د لمانځه څخه وروسته په بل لمانځه کې مختصر سورتونه ويل. (مسلم.)

**حل اللغات:** - ① بَعْدُ: أَيْ: بَعْدَ صَلَاةِ الْفَجْرِ: يعنی پس د دغه سحر د مونځ نه، يا دا چه روستو د دغه وخت نه. ② تَخْفِيفًا: لنډ يعنی مختصر مونځ به ئې کولو.

**تسهيلات:** -

**توله: وكانت صلوته بعد تخفيفاً:**

[1] اخرجه مسلم كتاب الصلاة ، باب القراءة في الصبح (رقم) ۱٦۸ - (٤٥۸)

**د مذكوره جملې په مفهوم كښې څلور اقوال:-** ① علامه ابن حجر رحمه الله ددې جملې مطلب دا بيان كړې دې چه "بعد" تعلق زماني سره دې يعنى د هجرت په شروع كښې د حضورپاك ﷺ مونځ په مسجدنبوى كښې اوږد وو ځكه چه خلق به كم وو. خو چه كله خلق زيات شو نوبيا به د حضورپاك ﷺ مونځ مختصر وو دا مطلب دحديث الفاظوسره څه نيزدې دې.

② يعنى په صبا كښې سورت "ق" وغيره د طويل قراءت باوجود بياهم د حضورپاك ﷺ مونځ مختصر معلوميدلو ځكه چه د حضورپاك ﷺ قراءت او د قراءت خوند به د مزې نه ډك وو. دډې جملې څلورمفهوم ليكلې شوى دى.

③ صاحب سفرسعاده ليكلى دى چه د نورو امامانو په نسبت به د حضورپاك ﷺ اوږد مونځ هم مختصر معلوميدلو. د ټولو نه وړاندې چه كوم مطلب ليكلې شوې دې هغه د شيخ عبدالحق رحمه الله دې زما په خيال كښې هم هغه مطلب راجح دې. دا ټول په اشعة المعات كښې ذكردى (ج۱ص۴۰۶)

④ علامه طيبى رحمه الله دامطلب ليكلې دې چه د فجرد مانځه نه علاوه نور څلور واړه مونځونه به مختصر وو د سحر مونځ به اوږد وو. عام شارحينو هم دغه مطلب اخستې دې مگر دا زړه پورې نه دې ځكه چه د حديث الفاظ او دعربيت ذوق دا نه قبلوى.

**[۸۳۶] د سحر په مانځه د سورة الليل قراءت**

۸۳۶-()[۱۳] ① «وَعَنْ عَمْرِوبْنِ حُرَيْثٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، ② أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْفَجْرِ: «وَاللَّيْلِ إِذَا عَسْعَسَ_»» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① د عمرو ابن حريث رضي الله عنه باره كې منقول دي② چې هغه د رسول الله ﷺ څخه د سحر په لمانځه كې والليل اذاعسعس (يعني سورة اذاالشمس كورت) ويل اوريدلي دي.(مسلم)

**تسهيلات:-**

**قوله:** وَاللَّيْلِ إِذَا عَسْعَسَ:

**د حديث په مفهوم كښې دوه اقوال:-** ① دسحرپه مونځ كښې به نبى كريم ﷺ صرف يوآيت ونيلو او كه نه ټول سورة به ئې ونيلو. ځيني حضرات وائى چې صرف يو آيت مبارك به ئې تلاوت كولو ځكه چې مونځ كښې تخفيف هم په دې طريقه وى.

② صحيح خبره داده چې ددې آيت نه اذا الشمس پورا سورت مراد دې. دا ذكر الجزء اراد لكل د قبيل څخه دې. دا سورة په طوال كښې راځى.

(۱) اخرجه مسلم كتاب الصلاة، باب القراءة فى الصبح (رقم) ۱۶۴ - (۴۵۶) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها، باب القراءة فى صلاة الفجر(رقم-۸۱۷)

## [۸۳۷] د صبا په مانځه کښې د سورة مؤمنون لوستل

۸۳۷ – (۱) [۱۵] ۱ «وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ السَّائِبِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ ۲ صَلَّى لَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصُّبْحَ بِمَكَّةَ، ۳ فَاسْتَفْتَحَ سُورَةَ الْمُؤْمِنِينَ، حَتَّى جَاءَ ذِكْرُ مُوسَى وَهَارُونَ أَوْ ذِكْرُ عِيسَى ۴ أَخَذَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَعْلَةٌ فَرَكَعَ»، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ عبدالله ابن السائب رضی الله عنه فرمایي ۲ چې (د مکې د فتح څخه وروسته یو ځل) رسول الله ﷺ مونږ ته په مکه کې د سحر مونځ راکړو ۳ او سورة مؤمنون یې شروع کړو کوم وخت چې حضور ﷺ د موسی وهرون یا عیسی ذکر ته ورسیدو ۴ نو حضور ﷺ ته ټوخي راغي (چې د هغې په وجه د سورة پوره کولو نه بغیر) حضور ﷺ رکوع ته لاړلو. (مسلم.)

**حل اللغات:** ۱ سَعْلَةٌ: أَيْ: سُعَالٌ: وَهُوَ صَوْتٌ يَكُونُ مِنْ وَجَعِ الْحَلْقِ وَالْيُبُوسَةِ فِيهِ: د حلق یعنی د مرئ د درد اود اوچ والی په وجه چه کوم ټوخي راځی هغې ته وائی.

**تسهیلات:-**

**قوله: حَتَّى جَاءَ ذِكْرُ مُوسَى:**

**د عذر په وجه په مینځ کښې د قراءت پریښودو جواز:** –یعنی دَ سورت مؤمنون آیت ﴿ثُمَّ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ وَأَخَاهُ هَارُونَ﴾ ته چه کله حضور پاک ﷺ اورسیدلو نوزړه ئی ډک شو او په ژړا شو دَ دغه ژړا په وجه دَ نبی کریم ﷺ مرئی مبارکه اوچه شوه او ټوخي راغلو نو حضور پاک ﷺ دَ سورت ختمولو نه بغیر هغه پریښودو اورکوع ئی اوکړه. "اوذکرعیسی" اودَ شك دَپاره دي دَ راوی شك شوي چه دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام ذکر داسې دي ﴿وَجَعَلْنَا ابْنَ مَرْيَمَ وَأُمَّهُ آيَةً﴾.

## [۸۳۸] د جمعې په ورځ د سحر د مانځه مسنون قراءت

۸۳۸ – (۲) [۱۶] ۱ «وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ۲ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْفَجْرِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ: الم تَنْزِيلُ فِي الرَّكْعَةِ الْأُولَى، ۳ وَفِي الثَّانِيَةِ: ﴿هَلْ أَتَىٰ عَلَى الْإِنْسَانِ﴾ [الإنسان: ۱]» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ ابوهریره رضی الله عنه فرمایي ۲ چې رسول الله ﷺ به د جمعې په ورځ د سحر د مونځ په اولني رکعت کې الٓمٓ تَنْزِيلُ ۳ او په دویم رکعت کې هَلْ أَتَىٰ عَلَى الْإِنْسَانِ لوستلو (بخاري مسلم.)

(۱) اخرجه مسلم كتاب الصلاة. باب القراءة فى الصبح (رقم) ۱۶۳ - (۴۵۵) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها، باب القراءة فى صلاة الفجر (رقم-۸۲۰) والنسائى كتاب الافتتاح/باب قراءة بعض السورة (رقم) (۱۰۰۷)

(۲) اخرجه البخارى كتاب الجمعة باب ما يقرأ فى صلاة الفجر يوم الجمعة (رقم-۸۹۱) ومسلم كتاب الجمعة باب ما يقرأ فى يوم الجمعة (رقم) ۶۵ - (۸۸۰) وابوداود كتاب الصلاة، باب ما يقرأ فى صلاة الصبح يوم الجمعة (رقم-۱۰۷۴) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها، باب القراءة فى صلاة الفجر يوم الجمعة (رقم-۸۲۳) والنسائى كتاب الافتتاح/باب القراءة فى الصبح يوم الجمعة (رقم) ۹۵۵

**تسهيلات:-**

**قوله: يَقْرَأُ فِي الْفَجْرِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ:**

**د جمعې په ورځ د صبا په مانځه کښې مسنون قراءت:**- دَ جمعې په ورځ دَ سحر په مونځ کښې "الم تنزيل" يعنى سورت سجده کوم چه په سيپاره اتل ما اوحى کښې دې دکوم نوم چه سورت سجده دې او په درېو رکوع باندې مشتمل دې. دا به نبى په اول رکعت کښې وئيلو او سورت دهر به ئې په دويم رکعت کښې وئيلو. په قرآن کښې يوحم السجده دې هغه سورت مراد نه دې هغه په شپږو رکوع باندې مشتمل دې. شوافع حضرات فرمائى. په دې حديث باندې عمل کولو سره دَ جمعې دَ سحر په مونځ کښې هم دغه دوه سورتونه وئيل پکار دى. احناف فرمائى چه په متعين توګه باندې نه دى لازم کول پکار ځکه چه په دې سره دَعقيدې نقصان کيدې شى.

**مسنون عمل لره عقيدة د فرض ګڼړلو عدم جواز:**- او په دې ظاهرى حديث باندې عمل کول مستحب او اولى دى په دې شرط چه دَ دې سنت پوره کولو په اراده سره وى او دَ لزوم عقيده ئې نه وى ځکه چه حضورپاك ﷺ خو دَدې دوو سورتونو نه علاوه هم دَجمعې دَ سحر په مونځ کښې څه سورتونه وئيلى دى نو هميشه والې ثابت نه دې او دَ غيردوام په لوستلو باندې احناف منکر نه دى.

**[۸۳۹] د جمعې د مانځه مسنون قراءت**

۸۳۹-()[۱۷] [۱] وَعَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] اسْتَخْلَفَ مَرْوَانُ أَبَا هُرَيْرَةَ عَلَى الْمَدِينَةِ، وَخَرَجَ إِلَى مَكَّةَ، [۳] «فَصَلَّى لَنَا أَبُو هُرَيْرَةَ الْجُمُعَةَ، فَقَرَأَ سُورَةَ (الْجُمُعَةِ)، فِي السَّجْدَةِ الْأُولَى، [۴] وَفِي الْآخِرَةِ: ﴿إِذَا جَاءَكَ الْمُنَافِقُونَ﴾ [المنافقون: ۱] [۵] فَقَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ بِهِمَا يَوْمَ الْجُمُعَةِ»، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] عبيدالله بن رافع فرمايي [۲] چې مروان حضرت ابوهريره رضي الله عنه په مدينه کې خليفه (يعني خپل قائم مقام ګورنر) مقرر کړي او خپله مکې ته لاړلو [۳] (نو د هغه په عدم موجودګي کي) ابوهريره رضي الله عنه مونږ ته د جمعي مونځ راکړو هغه په اولني رکعت کې سوره جمعه [۴] او په دويم رکعت کې يي سوره إِذَا جَاءَكَ الْمُنَافِقُونَ وويل [۵] او وي فرمايل چه ما د رسول الله ﷺ څخه د جمعي په ورځ (يعني د جمعي په لمانځه کې دا دواړه سورتونه ويل اوريدلي دي. (مسلم.)

**حل اللغات:-** ① اسْتَخْلَفَ: أَيْ: جَعَلَهُ خَلِيفَتَهُ وَنَائِبَهُ: يعنى خپل خليفه او نائب ئې جوړ کړو.

---

(۱) اخرجه مسلم كتاب الجمعة باب ما يقرأ فى صلاة الجمعة (رقم) ۶۱ - (۸۷۷) وابن ما جة كتاب إقامة الصلاة باب ما جاء فى القراءة فى الصلاة يوم الجمعة (رقم-۱۱۱۸) والترمذى كتاب الجمعة /باب ما جاء فى القراءة فى صلاة الجمعة (رقم-۵۱۹)

**تسهيلات:-**

**قوله: فَقَرَأَ سُورَةَ (الْجُمُعَةِ)، فِي السَّجْدَةِ الْأُولَى:**

**دجمعې په مونځ کښې مسنون قراءت:** -يعنى كله چې مروان د مدينې منورې حاكم وو نو د جمعې مونځ به ئې پخپله وركولو. يوځل خپل دور حكومت كښې مكې مكرمې ته حج دپاره لاړو، پخپل ځائې ئې حضرت ابوهريره رضی الله عنه مقرر كړو. كله چې ابو هريره رضی الله عنه د جمعې مونځ وركړو نو په مونځ كښې ئې داسورتونه اولوستل. او نبى كريم ﷺ به هم كله كله دجمعې په مونځ كښې دا سورتونه وئيل. لوستل حديث پاك د هميشوالى ذكر نشته دې. او دا حديث د نورو احاديثو خلاف هم نه دې.

**[۸٤۰] داخترونو اود جمعې په مونځونو كښې مسنون قراءت**

۸۳۰-()[۱۸] ۱ «وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، قَالَ: ۲ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْعِيدَيْنِ، وَفِي الْجُمُعَةِ: بِـ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى﴾ [الأعلى: ۱] وَ﴿هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ الْغَاشِيَةِ﴾ [الغاشية: ۱] ۳ قَالَ: وَإِذَا اجْتَمَعَ الْعِيدُ وَالْجُمُعَةُ فِي يَوْمٍ وَاحِدٍ ٤ قَرَأَ بِهِمَا فِي الصَّلَاتَيْنِ»، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ نعمان ابن بشير رضی الله عنه فرمايي ۲ چې رسول الله ﷺ به د اخترونو (وړوكى اختر او لوى اختر) او د جمعې په لمانځه كې سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى او هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ الْغَاشِيَةِ سورتونه ويل ۳ او حضرت نعمان رضی الله عنه وايي هر كله چې اختر او جمعه به په يوه ورځ جمع شو ٤ نو رسول الله ﷺ به د اختر او جمعې په دواړو لمونځونو كې دا دواړه سورتونه ويل، (مسلم)

**تسهيلات:-**

**د اخترونو په مونځونو كښې مسنون قراءت:** -نبى كريم ﷺ به په مختلفو مونځونو كښې مختلف سورتونه لوستل او به دې مذكوره مونځونو كښې به ئې اكثر دا سورتونه لوستل هميشه دپاره به ئې نه لوستل.

**فوائد مستنبطه:** - ① كه د جمعې ورځ او اختر په يو ورځ راشي نو د جمعې مونځ نه معاف كيږي. ② په دوو ركعتونو كښې يو سورت لوستل جائز دى. ③ د جمعې اود اختر جمع كيدل د بركت سبب دې. نه چې د نحوست لكه څنګه چې د بعضې ناپوهه خلقو عقيده ده.

**[۸٤۱] داخترونو په مونځونو كښې د سورة ق او سورة قمر لوستل**

۸۳۱-()[۱۹] ۱ وَعَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، «أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ سَأَلَ أَبَا وَاقِدٍ اللَّيْثِيَّ: ۲ مَا كَانَ يَقْرَأُ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى

---

[۱] اخرجه مسلم كتاب الجمعة باب ما يقرأ فى صلاة الجمعة (رقم-۶۲ - (۸۷۸) وابوداود كتاب الصلاة،باب ما يقرأ به فى الجمعة (رقم-۱۱۲۲) والترمذى كتاب العيدين/باب القراءة فى العيدين (رقم-۵۳۳) والنسائى ذكر الاختلاف على النعمان بن بشير فى القراءة فى صلاة الجمعة (رقم) ۱٤۲٤

[۲] اخرجه مسلم كتاب صلاة العيدين باب ما يقرأ به فى صلاة العيدين (رقم-۱٤ - (۸۹۱) وابوداود كتاب الصلاة،باب ما يقرأ فى الأضحى والفطر (رقم-۱۱۵٤) وابن ماجة باب ما جاء فى القراءة فى صلاة العيدين (رقم-۱۲۸۲) والترمذى كتاب العيدين/باب القراءة فى العيدين (رقم-۵۳٤) والنسائى كتاب صلاة العيدين/باب القراءة فى العيدين بقاف واقتربت باب القراءة فى العيدين بقاف واقتربت (رقم-۱۵۶۷)

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْأَضْحٰى وَالْفِطْرِ؟ ٣ فَقَالَ: كَانَ يَقْرَأُ فِيهِمَا: بِـ﴿قٓ وَالْقُرْاٰنِ الْمَجِيْدِ﴾ [ق:١] وَ﴿اقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ﴾ [القمر:١]»، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ عبيد الله فرمايي چې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د ابو واقد ليثي رضي الله عنه څخه پوښتنه وكړه ٢ چې حضور ﷺ به د وړوكي او لوي اختر په لمونځو كې څه ويل ٣ هغه ورته وفرمايل حضور ﷺ به په دي دواړو لمونځونو كې سورة قٓ وَالْقُرْاٰنِ الْمَجِيْدِ او سورة وَاقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ ويل، (مسلم.)

**تسهيلات:-**

**قوله: عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ:**

**د روايت ارسال:-** د مسلم په شرح كښې دي روايت ته مرسل ليكلې شوى دى. ځكه چې عبيدالله د عمر بن الخطاب رضي الله عنه په زمانه كښې نه وو. او نه ورسره ددوئ ملاقات شوى دې. خو دا روايت صحيح دې ځكه چې د مسلم بل روايت كښې دا الفاظ موجود دى. عن عبيدالله عن ابى واقد قال سالنى عمربن الخطاب رضي الله عنه.

**قوله: أَبَا وَاقِدٍ اللَّيْثِيَّ:**

**دابوواقدليثى په نوم كښې مختلف اقوال:-**

① خيني وائي چې نه خو دده نوم معلوم او نه دده د پلار.

② ابن الملك رحمة الله عليه فرمائي چې دده نوم حارث بن مالك دې.

③ خيني وائي چې دده نوم ابن عون دې.

④ خيني وائي چې عون بن الحارث دې.

**[٨٤٢] د سحر د مونځ په سنتو كښې مسنون قراءت**

٨٣٢-()[٢٠] ١ «وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ٢ إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ فِي رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ: ﴿قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ﴾ [الكافرون:١] وَ﴿قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ﴾ [الإخلاص:١]»، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ ابوهريره رضي الله عنه فرمايي ٢ چې رسول الله ﷺ به د سحر سنتو په دوؤ ركعتونو كې سورة قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُوْنَ او قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ ويل. (مسلم.)

**تسهيلات:- نوټ:-** د ترجمې څخه مطلب واضح دې.

---

(١) اخرجه مسلم كتاب صلاة المسافرين باب استحباب ركعتى سنة الفجر. والحث عليهما وتخفيفهما. والمحافظة عليهما. وبيان ما يستحب أن يقرأ فيهما (رقم-٩٨ - (٧٢٦) وابن ماجة باب ما جاء فيما يقرأ فى الركعتين قبل الفجر (رقم-١١٤٨) والنسائى كتاب الافتتاح/باب القراءة فى ركعتى الفجر بقل يا أيها الكافرون وقل هو الله أحد باب القراءة فى ركعتي الفجر بقل يا أيها الكافرون وقل هو الله أحد (رقم-٩٤٥)

**[۸٤۳] د صبا په سنتو کښې مسنون قراءت**

۸۴۳ ــ()[۲۱] ۱ «وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ۲ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ: ﴿قُولُوا آمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْنَا﴾ [البقرة: ۱۳۶] ۳ وَالَّتِي فِي (آلِ عِمْرَانَ): ﴿قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلَى كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ﴾ [آل عمران: ۶۴]» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ ابن عباس رضی الله عنهما فرمايي ۲ چې رسول الله ﷺ به د سحر د سنتو دوه رکعاتو کې د سورة بقره دا آيت قُوْلُوْا اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَا اُنْزِلَ اِلَيْنَا ۳ اود سوره آل عمران دا آيت قُلْ يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ تَعَالَوْا اِلٰى كَلِمَةٍ سَوَاءٍۢ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ ويل. (مسلم)

**تسهیلات:-**

**قوله:** يَقْرَأُ فِي رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ:

**په مختلفو مونځونو کښې مختلف قرات:**-نبي کريم ﷺ به مختلف مونځونو کښې مختلف سورتونه وئيل. په دې مذکوره مونځونو کښې به ئې هم دا سورتونه اکثر وئيل خو دا هميشه دپاره نه وو

**د جمعې په ورځ د اختر راتلو په وجه د جمعې عدم سقوط:**-که چرته اختر د جمعې په ورځ راشي نو د اختر مونځ به د جمعې په وجه معاف نه وي. بلکه هم هغه شان به کول وي. لکه څنګه چې غير مقلدين د اختر په وجه د جمعې مونځ معاف ګڼړي.

**د غير مقلدينو غلط فهمي:**-شايد چې غير مقلدينو د حضرت عثمان رضی الله عنه په هغه عمل کښې د غلط فهمۍ ښکارشوی وي چې يو ځل حضرت عثمان رضی الله عنه د خپل خلافت په زمانه کښې کلي والو ته وئيلي وو که تاسو د جمعې مونځ دپاره پاتې کيږئ نو پاتې شئ او که تلل غواړئ نو لاړ شئ او په هغوئ باندې دجمعې مونځ فرض نه وو بلکه صرف د برکت حاصلول دپاره به هغوئ د جمعې مونځ کولو دپاره ښار ته راتلل. حالانکه غير مقلدين دصحابهٔ کرامو اتباع او تقليد نه کوي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۸٤٤] د مانځه په اول کښې د بسم الله وئيل**

۸۴۴ ــ()[۲۲] ۱ «عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ۲ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْتَتِحُ صَلَاتَهُ بِـ﴿بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ﴾ [الفاتحة: ۱]» ۳ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِذَاكَ.

---

[۱] اخرجه مسلم كتاب صلاة المسافرين باب استحباب ركعتى سنة الفجر، والحث عليهما وتخفيفهما، والمحافظة عليهما، وبيان ما يستحب ان يقرا فيهما (رقم) ۱۰۰ - (۷۲۷)

[۲] اخرجه الترمذي كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب من رأى الجهر ب {بسم الله الرحمن الرحيم} [الفاتحة: ۱](رقم-۲٤۵)

**ترجمه:**[۱] ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ به خپل مونځ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ سره شروع كولو [۳] دا حديث ترمذي روايت كړي دي او ويلي يي دى چه د دې اسناد قوي نه دي.

**تسهيلات:-**

**په تسميه د عدم جهر دليل:-** دَدې حديث پوره توضيح اوتفصيل اودَ فقهاؤ اختلاف دَ باب صفت الصلوة حديث نمبر ۲ لاندې ليكلي شوې دي. داحديث دَ احنافو دليل دې چه بسم الله په مزه ونيل پكاردى او امام ترمذي رحمه الله دې روايت ته بغيرد څه وجې اوونيل چه "ليس اسناده بذاك" څكه چه داحديث حسن دي او صحيح الاسناد دي.

**[۸٤۵] آمين بالجهر ونيل**

۸۳۵-()[۳۳][۱] «وَعَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ: ﴿غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ﴾ [الفاتحة:۷]، [۳] فَقَالَ: آمِينَ، مَدَّ بِهَا صَوْتَهُ»، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:**[۱] وائل ابن حجر رضي الله عنه فرمايي[۲] چې ما واوريدل چې حضور ﷺ (په لمانځه كي) غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّيْنَ اوويل[۳] بيا په اوږد آواز سره يي آمين وويلو، (ابوداؤدو، دارمي، ترمذي.)

**حل اللغات:-** ① مَدَّ: د آواز او ساه اوږدولو په معنى كښي دي.

**تسهيلات:-**

**قوله: فَقَالَ: آمِينَ:**

**د امين د لفظ په ماخذ كښې اقوال:-** په لفظ آمين كښې دَ ټولو نه اول بحث دادې چه دادَ كوم لغت اوكومې ژبې لفظ دې.

① بعضې علماؤ دادَ فارسئ لفظ منلي دې چه دا لفظ "همين" وو د كوم معنى چه كذالك ده دې نه عربي جوړه كړې شوه نو آمين شو. مطلب دا چه امام لولى او بيا آمين وائى نو مقتدى هم په دغه درخواست باندې دَتصديق مهرلګولوسره وائى چه "په څائى دې اوفرمائيل هم دغه شان ده".

② بعضې نور علماء فرمائى چه دا لفظ عجمى نه دې بلكه داعربى لفظ دې اوعربودا استعمال كړې دې. مجنون ليلى وائى:

(۱) اخرجه الترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى التأمين (رقم-۲٤۸) وابوداود كتاب الصلاة، باب التأمين وراء الإمام (رقم-۹۳۲) والنسائى كتاب الافتتاح/باب رفع اليدين حيال الأذنين باب رفع اليدين حيال الأذنين (رقم-۸۷۹)

امين امين لا ارضى بواحدة حتى اضم اليها الفين امينا

بیاوائی:

اللهم لا تسلبني حبها ابدا ويرحم الله عبدا قال امينا

③ بعضې علماؤ دَ عبرانئی یا سریانئی ژبې لفظ منلې دې. په دې ژبو کښې داسې وزنونه زیات راځی لکه هابیل، قابیل، میکائیل او اسرافیل وغیره نودا لفظ په دې ژبو کښې دَ "اِسْتَجِبْ" یعنی قبلولو معنی کښې دې.

**د امین د لفظ په تلفظ کښې اقوال:-** ① دا لفظ دوه شان سره لوستلې شوې دې یعنی بالقصر امین او بالمد آمین دواړه صحیح دی او امینا الف اشباعی سره هم صحیح دې.

② دَدې لفظ دوه شان سره وئیل غلط دی یو په الف باندې زبر سره وئیل غلط دی لکه اَمین دویم په الف باندې مد او میم باندې شد سره وئیل غلط دی لکه آمّین کوم چه دَ قصد په معنی کښې دې.

**امین د چا وظیفه ده په دې کښې مذاهب:-**

دَ آمین په مسئله کښې په دوو مقاماتو کښې اختلاف دې. اول اختلاف خو په دې کښې دې چه آیا آمین وئیل صرف دَمقتدی کار دې یا دَ امام او مقتدی دواړو کار دې.

① دَامام مالک رحمه الله په نیز دا صرف دَ مقتدی کار دې

② جمهور فقهاؤ او ائمه ثلاثه فرمائی چه آمین دَ امام او مقتدی دواړو کار دې.

**داول فریق دلیل:-** د دوی مستدل دا حدیث دې. ((اذا قال الامام ولا الضالين فقولوا امين)) طریقه د استدلال دا ده چې یعنی دلته کار تقسیم دې دَ امام کار فاتحه وئیل دی او دَ مقتدی کار آمین وئیل دی.

**د اول فریق د دلیل جواب:-** دغه دلیل په خپله دعوی باندې صریح نص نه دې بلکه صرف دَ اشارة النص نه ئی استدلال کړې دې خو پخپله جمهورو دَ عبارة النص نه استدلال کړې دې کوم چه اولی او راجح دې. په سری مونځ کښې دا صرف د امام کار دې.

**د دویم فریق دلیل:-** دَدوی دلیل دَ صحیحینو دا روایت دې: ((قال رسول الله ﷺ اذا امن الامام فامنوا)) یعنی چه کله امام آمین اووائی نو تاسو هم وایئی.

**په امین بالجهر کښې مذاهب:-**

آمین جهراً اوسراً وئیلو کښې دَ څلورو واړو امامانو اتفاق دې چه دواړه شان وئیل جائز دی په هیڅ طرف نه څه کراهت نشته دې. خبره صرف دومره ده چه احناف ئی جهراً وئیلو باندې دَسنت کیدو اطلاق نه کوی بلکه دَجائز په درجه کښې ئی منی او شوافع حضرات سراً وئیلو ته جائز وائی جهراً وئیل ئی افضل ګنړی. نودا اختلاف افضل او غیر افضل، اودَ اولی او غیر اولی دې دَ جائز او ناجائز نه دې.

① امام شافعی رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله په جهری مونځونو کښې آمین بالجهر ته افضل وائی
② احناف اومالکیه آمین بالسر افضل ګرځوی.

**داول فریق دلائل:-** ① زیر بحث د وائل بن حجر رضی الله عنه روایت د دوی مستدل دې په کوم کښې چه "مدبهاصوته" الفاظ راغلی دی دَ کوم مطلب چه دَ دغه حضراتو په نیز "رفعبهاصوته" دې.

**داول فریق د اول دلیل جوابونه:-**

① په زوره باندې وئیلو کښې د ((مدبهاصوته)) جمله نص صریح نه دې بلکه دَمدها مطلب داهم کیدې شی چه په اوږد آوازسره آمین اووئیل مګر دا جواب کمزورې دې.
② اصل جواب دادې چه حضورپاك صلی الله علیه وسلم بیشکه په اوچت آواز سره آمین وئیلې دې لیکن دادَ امت په تعلیم باندې محمول دې لکه دَماسپخین په مونځ کښې حضورپاك صلی الله علیه وسلم په زوره قرأت وئیلې دې دَ رفعبهاصوته هم دغه جواب دې.

**داول فریق دویم دلیل:-** دَ بشربن رافع رضی الله عنه روایت د دوی مستدل دې په کوم کښې چه "رفعبهاصوته" الفاظ راغلی دی چه په خپله مدعاباندې صریح دلیل دې. دَ ابن ماجه په روایت کښې دی ((حتی یسمعها الصف الاول فیرتج بها المسجد)) اشعة المعات: ۴۰۹.

**داول فریق دریم دلیل:-** دَحضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت دې کوم چه ابوداؤد نقل کړې دې اوپه هغې کښې دا الفاظ راغلی دی: ((کان رسول الله صلی الله علیه وسلم اذاتلاغیرالمغضوب علیه ولاالضآلین قال آمین حتی یسمع من یلیه من الصف الاول)) (لمعات ۱۴۴/۳)اشعة المعات: ۴۰۹.

امام ترمذی رحمه الله په خپل کتاب ترمذی کښې دواړه روایتونه نقل کړی دی په یو کښې دَجهر ذکر دې او په بل کښې دَعدم جهرذکردې. بیا امام ترمذی رحمه الله جهری روایت ته ترجیح ورکړې ده اودَ امام بخاری رحمه الله په حواله سره دَ عدم جهرپه روایت باندې اعتراضات راغلی دی.

**د دویم فریق دلائل:-** ① دَ قرآن کریم دَا آیت د دوی مستدل دې ﴿ اُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً ۗ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ ﴾ (سورت اعراف آیت: ۵۵) طرز دَ استدلال داسې دې آمین دعاده اودَدعا باره کښې دَ قرآن اعلان دې چه په مزه باندې غواړئی لهذا آمین هم په مزه وئیل پکاردی.
② دَ حضرت ابن مسعود رضی الله عنه روایت د دوی مستدل دې کوم صاحب دَ هدایه هم نقل کولوسره دَدې نه استدلال کړې دې. اصل روایت دَحضرت عمر فاروق رضی الله عنه نه نقل دې دکوم الفاظ چه دادی: ((عن عمربن الخطاب رضی الله عنه انه قال یخفی الامام اربعة اشیاء التعوذ والبسملة وامین وسبحانك اللهم وبحمدك وعن ابن مسعود مثله)) (لمعات: ۱۴۴/۳)اشعة المعات: ۴۰۹. هم دا روایت صاحب هدایه روایت بالمعنی کولوسره فرمائیلی چه ابن مسعود رضی الله عنه فرمائی ((اربع یخفیهن الامام وذکر من جملتها التعوذ والتسمیة وامین)) (هدایه ص ۱۰۳)

③ دَ سمرة بن جندب رضي الله عنه روایت د دوی مستدل دي چه دَمشکوة شریف ص ۷۸ باندې داسې نقل دي: ((عن سمرة بن جندب انه حفظ عن رسول الله ﷺ سکتتین سکتة اذا کبر وسکتة اذا فرغ من قراءة غیر المغضوب علیهم ولا الضالین فصدقه ابی بن کعب)) (رواه ابوداؤد) په دې روایت کښې چه دَ ولا الضالین په وخت دَ سکتې کوم ذکر دې دا صرف دَ امین بالسر دَونیلو دَپاره وو.

④ ((عن ابی وائل قال کان عمر وعلی لایجهران بالبسملة ولا بالتعوذ ولا آمین)) (رواه جریر والطحاوی کذا فی المعات) [اشعة المعات: ۴۰۹]

⑤ د ابووائل روایت د دوی مستدل دې. الفاظ ئې دا دی: ((وعن ابی وائل قال لم یکن عمر وعلی یجهر ان ببسم الله الرحمن الرحیم ولا امین)) (تهذیب الآثار په حواله دَ طبرانی)

⑥ هم دَدغه وائل بن حجر رضي الله عنه روایت دې کوم چه داسې دې: ((عن وائل بن حجر ان النبی ﷺ قرء غیر المغضوب علیهم ولا الضالین فقال امین وخفض بها صوته)) (ترمذی ص ۳۴)

**خلاصه د بحث:**- روایتونه اوآثار دَ دواړو طرفونو ته دی مګر مدار دَ اختلاف هم په دغه روایت دَ وائل بن حجر رضي الله عنه باندې دې. شوافع مد بها صوته دَ راویانو دَ وجې نه دَ قوت سند په اعتبار سره راجح ګرځولې دې او دَ احناف ټول مستدلات ئې په څه نه څه وجه باندې معلول ګرځولې دی. دَ شوافع دا مستدل سفیان ثوری رحمه الله نقل کوی او شوافع دَحضرت سفیان ثوری رحمه الله دَ سند طریق ښکلې ګرځوی دَ احنافو دَ سند طریق شعبه نقل کوی احناف هغه ته په ثوری رحمه الله باندې ترجیح ورکوی اته اته ترجیحات بیانولې شی مګر فیصله نه کیږی.

**نوټ:**- دا خبره وړاندې تیره شوې وه چې دا اختلاف د جواز او عدم جواز نه دې بلکه د افضل او غیر افضل دې. نو په دې کښې تشدید او سختوالې نه دې پکار بلکه په کوم جمات کښې چې آمین بالسر وئیلی شی هلته امین بالجهر نه دی وئیل پکار او په کوم جمات کښې چې امین بالجهر وئیلی شی نو هلته امین بالجهر هم کول پکار دی چې په سنت باندې هم عمل راشی. انتشار جوړول او تفریق پیدا کول ګناه اود نقصان خبره ده. الله پاک دې مونږ مسلمانانو ته توفیق راکړی چې په فروعی اختلافاتو کښې شدت نه اختیار وو.

## [٨٤٦] دآمین په وجه د دعا قبلیدل

٨٤٦-()[٢٣] ① ((وَعَنْ أَبِي زُهَيْرٍ النُّمَيْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ ③ فَأَتَيْنَا عَلَى رَجُلٍ قَدْ أَلَحَّ فِي الْمَسْأَلَةِ ④ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَوْجَبَ إِنْ خَتَمَ" ⑤ فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ: بِأَيِّ شَيْءٍ يَخْتِمُ؟ قَالَ: "بِآمِينَ"» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**توجمه:** ① ابو زبیر نمیری رضي الله عنه فرمایې ② چې یوه شپه مونږ د رسول الله ﷺ سره

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة باب التأمین وراء الإمام (رقم-۹۳۸)

راووتلو③ او په يو داسې سړي راغلو چې په دعا کولوکې بې حده زاري کوله④ رسول الله ﷺ وفرمايل واجب يې کړه که ختم يې کړه⑤ يو سړي پوښتنه وکړه (يا رسول الله ﷺ) څه شي سره يې ختم کړي؟ وي فرمايل په آمين سره. (ابوداؤد.)

**حل اللغات:-** ①ذَاتَ يَوْمٍ: أَيْ: سَاعَةً مِنْ سَاعَاتِ يَوْمٍ: په ورځو کښې يو وخت. ②أَلَحَّ: أَيْ: بَالَغَ فِي السُّؤَالِ: دباب افعال نه الحاح عاجزئ او زاري سره اصرار کول. دلته دالله تعالى نه دعاکولوکښې بنه مبالغه او اصرار کول مراددی. ③أَوْجَبَ: واجب ئې کړو، ④إِنْ خَتَمَ: ختم په معنى د مهر لګولو سره دې يا په معنى د اختتام سره دې.

**تسهيلات:- قوله: أَوْجَبَ:**

**په الله تعالى باندې د وجوب مطلب:-** يعني دغه سړي دخپل ځان دپاره جنت واجب کړو. په الله تعالى باندې د بنديګانو د طرف نه هيڅ خيز واجب کيدې نه شي دلته مراد دادې چه الله تعالى په خپل فضل اوکرم او احسان سره په خپل ځان واجب اولازم کړې دې. لکه چه داسې وعده ئې فرمائيلې ده دکوم نه چه به وعده خلافي نه کوي.

**قوله: إِنْ خَتَمَ:**

**دختم په مفهوم کښې دوه اقوال:-**

①په دې صورت کښې به دا لفظ خاتم نه به د مهرپه معنى کښې وي. په يوحديث کښې دی "امين خاتم رب العالمين" مطلب دا لکه څنګه چه د بادشاه مهر په يوخط باندې لګولې شي هغه دهرقسم نقصان نه محفوظ کيږي او داعتماد قابل کيږي دغه شان لفظ آمين دې چه دا دکومې دعاشاته هم اووئيلې شي هغه محفوظ مقبول او د اعتماد قابل جوړيږي. په دې صورت کښې به دا لفظ خاتم نه به د مهرپه معنى کښې وي. په يوحديث کښې دی "امين خاتم رب العالمين" مطلب دا لکه څنګه چه د بادشاه مهر په يوخط باندې لګولې شي هغه دهرقسم نقصان نه محفوظ کيږي او داعتماد قابل کيږي دغه شان لفظ آمين دې چه دا دکومې دعاشاته هم اووئيلې شي هغه محفوظ مقبول او د اعتماد قابل جوړيږي.

② دويم مطلب دادې په دې شرط چه دا دعا په يوڅيز باندې ختمه کړي.

**دامين وئيلو په محل کښې دوه اقوال:-**

①ددې آمين نه په مانځه کښې امين هم مراد اخستې شي

②د مانځه نه بهر امين هم مراد کيدې شي.

**د دعا په آخر کښې د آمين وئيلو تعليم:-**

په دې حديث سره امت ته داتعليم ملاؤشو که دعا اجتماعي وي اوکه انفرادي وي په آخره کښې امين يارب العالمين وئيل پکاردي دې دپاره چه د الله تعالى د طرف نه په دې عمل او دې دعا باندې د قبليدو مهر او د حفاظت اوبرکت مهر اولګي.

### [۸۴۷] د ماښام په مانځه کښې د اوږد قراءت جواز

۸۴۷- (۱)[۲۵] ①«وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ②إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى الْمَغْرِبَ بِسُورَةِ (الْأَعْرَافِ)، ③فَرَّقَهَا فِي رَكْعَتَيْنِ»، رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي ② چې رسول الله ﷺ د ماښام په لمانځه کې سورة اعراف (داسې) ويلو ③ چې هغه يې په دوه رکعتونو کې تقسيم کړو. (نسايي.)

**حل اللغات:-** ① فَرَّقَهَا: تقسيم ئې کړلو.

**تسهيلات:-**

**دحديث نه اشارةً داحنافو دمسلک تائيد:** دَظاهر د حديث نه هم دغه معلوميږي چه نبی کريم ﷺ دَ ماښام په دوو رکعتو کښې پوره سورت اعراف لوستلې وو اودَماښام وخت سره دَدې چه مختصروی او حضورپاك ﷺ به عموماً په دې کښې مختصر قراءت لوستلو مګر کله کله به ئې دَ جوازدَبيان دپاره اوږدقراءت هم فرمائيلو دَ کوم نه چه دَ اشارې په توګه دا ثابتيږي چه دَ ماښام وخت دومره تنګ نه دې لکه څنګه چه ئې شوافع حضرات ګڼړي. دَهغوی په نيزدَ نمر دَ ډوبيدونه پس چه کومه سرخي وی هم هغه شفق دې دَدې په ختميدوباندې دَ ماښام وخت ختميږی مګر دَ احنافو په نيزشفق دَ نمردَ ډوبيدو نه پس دَ سرخئی نه پس سپينوالی نوم دې اودا وخت کافی اوږد دې په دې کښې سورت اعراف په دوو رکعتوکښې لوستلې کيدې شی. په دې شرط چه قراءت حدر سره وی په مصری طرز باندې نه وی. دَ رسول الله ﷺ په قراءت کښې تيزی وه اومعجزه هم شامل حال وه. يعنی په کم وخت کښې به زيات قراءت کيدلو کوم ته چه "طي" وائی. شيخ عبدالحق رحمه الله وائی چه داسې ويناکول ډيره لرې خبره ده چه حضورپاك ﷺ دَ سورت اعراف بعض حصه اولوستله پوره سورت ئې نه دې لوستلې.

### [۸۴۸] د سورة فلق او سورة الناس فضيلت

۸۴۸- (۲)[۲۶] ①«وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ②كُنْتُ أَقُودُ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَاقَتَهُ فِي السَّفَرِ، ③فَقَالَ لِي: "يَا عُقْبَةُ أَلَا أُعَلِّمُكَ خَيْرَ سُورَتَيْنِ قُرِئَتَا؟ ④"، فَعَلَّمَنِي ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ﴾ [الفلق: ۱] وَ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ﴾ [الناس: ۱]، ⑤قَالَ: فَلَمْ يَرَنِي سُرِرْتُ بِهِمَا جِدًّا، ⑥ فَلَمَّا نَزَلَ لِصَلَاةِ الصُّبْحِ صَلَّى بِهِمَا صَلَاةَ الصُّبْحِ لِلنَّاسِ، ⑦ فَلَمَّا فَرَغَ، الْتَفَتَ إِلَيَّ، ⑧فَقَالَ: "يَا عُقْبَةُ! كَيْفَ رَأَيْتَ؟» "، رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

---

(۱) اخرجه النسائی کتاب الافتتاح/باب القراءة فی المغرب بالمص (رقم-۹۹۱)

(۲) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة/باب فی المعوذتین (رقم-۱۴۶۲) والنسائی کتاب الافتتاح/باب الفضل فی قراءة المعوذتین (رقم-۹۵۳)

**ترجمه:** [۱] عقبه ابن عامر رضی الله عنه فرمايي [۲] چه زه په يو سفر کي د رسول الله ﷺ د اوښي مهار نيولي تلم [۳] چې حضور ﷺ ماته وفرمايل اي عقبه آيا زه تاته دوه ډيربهترين سورتونه چې ويل شوي دي (يعني چې په ما نازل شوي دي) ونه ښايم؟ [۴] نو حضور ﷺ ماته معوذتين يعنی قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس وښودل [۵] عقبه رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ زه په دي دوه سورتونو سره ډير خوشحاله ونه ليدم [۶] بيا په سحر کې چې رسول الله ﷺ د سحر د لمانځه د پاره تشريف راوړو نو خلقو ته يې په مونځ کې دا دواړه سورتونه اوويل [۷] کله چې رسول الله ﷺ د لمانځه څخه فارغه شو نو زما طرف ته متوجه شو [۸] وي فرمايل اي عقبه تا (د دي دوه سورتونو فضيلت) وليدلو؟ (احمد، ابوداؤد، نسايي.)

**حل اللغات:-** ① أَقُودُ: د واحد متکلم صيغه ده، أي: أَجُرُّهَا مِنْ قُدَّامِهَا: د مخې نه مې راښکله. ② سُرِرْتُ: أي جُعِلْتُ مَسْرُورًا وَفَرِحًا: خوشحاله، ③ جِدًّا: أي: كَثِيرًا: ډير، ④ اِلْتَفَتَ: متوجه شو، مخ ئې راواړولو.

**تسهيلات:-**

**قوله:** فَلَمْ يَرَنِي سُرِرْتُ بِهِمَا جِدًّا:

يعنی چه حضور اکرم ﷺ کله اوکتل ما معوذتين اوريدو سره زياته خوشحالی اونه شوه لکه څنګه چه به په نورو سورتونو باندې کيدله په کوم کښې چه د توحيد اوږده او اعلی مضامين وی. نو حضور پاك ﷺ دا محسوس کړه او غوښتل ئې چه ماته په عملی توګه باندې د دې سورتونو عظمت اوخودلې شی نو د سحر مونځ ئې هم په دې مختصر سورتونو سره اوکړو

قوله: كَيْفَ رَأَيْتَ؟

**د معوذتين د خير سورة کيدو وجه:-** بيائی اوفرمائيل "كيف رأيت" يعنی اودې کتل" چه څنګه د تولونه غوره مونځ په کوم کښې چه اوږده سورتونه وی په دې دوو مختصر سورتونو سره ما اوکړل داد دې سورتونو شان دې اودا ښکلې سورتونه دی. رسول الله ﷺ چه معوذتين ته "خير سورتين" اوفرمائيل دا په دې اعتبارسره دی چه په دې کښې د شيطان مکر اوفريب او دهغه د وسوسو او دسيسه کارونه تحفظ او بچ کيدلو مکمل سامان دې په دې اعتبار سره دا د ټولونه ښه سورتونه دی.

**[۸۴۹] د جمعې په ورځ د ماښام په مانځه کښې مسنون قراءت**

۸۴۹- ()[۲۷] [۱] «وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي صَلَاةِ الْمَغْرِبِ لَيْلَةَ الْجُمُعَةِ: ﴿قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ﴾ [الكافرون:۱] وَ﴿قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ﴾ [الإخلاص:۱]» رَوَاهُ فِي

[۱] اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحديث ۳/ ۸۱

"شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** [۱] جابر ابن سمره رضي الله عنه فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ به د جمعي په ورځ د ماښام په لمانځه کې قُلْ يَاأَيُّهَا الْكَافِرُوْنَ او قُلْ هُوَاللهُ أَحَدٌ ويلې دا حديث په شرح السنة کې منقول دی

۸۵۰-( )[۰] [۱] وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنِ ابْنِ عُمَرَ إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ "لَيْلَةَ الْجُمُعَةِ".

**ترجمه:** [۱] او ابن ماجه دا حديث د ابن عمر رضي الله عنه څخه نقل کړي دي ليکن په هغې کې د ليلة الجمعة الفاظ نشته.

**تسهيلات: - قوله: يَقْرَأُ:**

**د سحر او ماښام په سنتو کښې د سورة الکافرون او سورة اخلاص ويلو حکمت:** يعنی د ماښام په مانځه کښې به کله حضورپاك ﷺ دا دواړه سورتونه لوستل څکه چه دَدې دواړو سورتونو ړومبې سورت د کافرانود مکمل ويزارئی اعلان او دويم سورت کښې د توحيد خالص اعلان دې. هم دغه وجه ده چه حضورپاك ﷺ به دماښام او سحر سنتو کښې اکثرهم دا سورتونه لوستل دې دپاره چه د شپې اوورځې په شروع کښې حضورپاك ﷺ دغه اعلان راؤګرځوی لکه چه دې سره والاحديث کښې راځي. بهرحال حضورپاك ﷺ په دې دواړو سورتونوباندې هميشه والې او التزام نه دې فرمائيلې. دې سره امت ته داتعليم ملاؤ شو د قرآن هرسورت په مانځه کښې لوستل جائزدی اويوسورت نه دی خاص کول پکار.

**۸۵۱- په مانځه کښې د سورهٔ کافرون او سورهٔ اخلاص په کثرت سره لوستل**

۸۵۱-( )[۲۸] [۱] «وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] مَا أُحْصِي مَا سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ يَقْرَأُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ، [۳] وَفِي الرَّكْعَتَيْنِ قبل صَلَاةِ الْفَجْرِ: بِـ﴿قُلْ يَاأَيُّهَا الْكَافِرُوْنَ﴾ [الكافرون:۱] وَ﴿قُلْ هُوَاللّٰهُ أَحَدٌ﴾ [الإخلاص:۱]» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي [۲] چه زه نشم شميرلي چې ما څومره ځله رسول الله ﷺ څخه د ماښام د لمانځه څخه وروسته [۳] او د سحر د لمانځه څخه مخکې په دواړو سنتو کې قل ياايها الکافرون او قل هو الله احد ويل اوريدلي دي، (ترمذي)

۸۵۲-( )[۰] [۱] وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ: "بَعْدَ الْمَغْرِبِ".

**ترجمه:** [۱] دا حديث ابن ماجه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه نقل کړي ي خو هغه روايت کې د بعد المغرب الفاظ نشته.

---

(۱) اخرجه ابن ماجة كتاب إقامة الصلاة والسنة فيها، باب القراءة فى صلاة المغرب (رقم-۸۳۳)

(۲) اخرجه الترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الركعتين بعد المغرب والقراءة فيهما (رقم-٤۳۱)

(۳) اخرجه ابن ماجة كتاب إقامة الصلاة،باب ما جاء فيما يقرأ فى الركعتين قبل الفجر (رقم-۱۱٤۸)

**تسهیلات:** -قوله: مَا أُحْصِي:

**د ،،ما،، کلمې نوعیت:**- ما نافیه دې ،او((احصی)) په معنی د ((اطیق)) ، لا اطیق دې ،یعنی په ما کښې د شمیرلو طاقت نشته دې.

**قوله:** مَا سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ

**د دویمې ما کلمې نوعیت:**-ما موصوله ، او ځینې وائی چې ما مصدریه دې. او دا په کثرت باندې محمول دې چې نبی کریم ﷺ به اکثر دا سورتونه وئیل.

**۸۵۳- په مونځونو کښې د قراءت مسنون مقدار**

۸۵۳-()[۲۹][۱] وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ،عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ،[۲] قَالَ "مَا صَلَّيْتُ وَرَاءَ أَحَدٍ أَشْبَهَ صَلَاةً بِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ مِنْ فُلَانٍ[۳] قَالَ سُلَيْمَانُ صَلَّيْتُ خَلْفَهُ فَكَانَ يُطِيلُ الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ مِنَ الظُّهْرِ،[۴] وَيُخَفِّفُ الْأُخْرَيَيْنِ، وَيُخَفِّفُ الْعَصْرَ[۵] وَيَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ بِقِصَارِ الْمُفَصَّلِ،[۶] وَيَقْرَأُ فِي الْعِشَاءِ بِوَسَطِ الْمُفَصَّلِ،[۷] وَيَقْرَأُ فِي الصُّبْحِ بِطِوَالِ الْمُفَصَّلِ،رَوَاهُ النَّسَائِيُّ،[۸] وَرَوَى ابْنُ مَاجَةَ إِلَى وَيُخَفِّفُ الْعَصْرَ.

**ترجمه:**[۱] سلیمان ابن یسار (تابعي) رحمه الله دابوهریره رضی الله عنه څخه نقل کوی [۲] چې ابوهریره رضی الله عنه به فرمایل [چې ما په هیڅ سړي پسي د رسول الله ﷺ د لمانځه مشابه مونځ نه دي کړي څنګه چې مې په په فلاني سړي پسي کړې دي [۳] سلیمان رحمه الله وايي چې ما هم په هغه سړي پسي مونځ کړي دي هغه به دماسپخین اولني دوه رکعاته اوږده کول[۴] او آخري دوه رکعاته به یې مختصر کول د مازیګر په لمانځه کې به یې تخفیف کولو[۵] د ماښام په لمانځه کې قصار مفصّل[۶] او په ماسخوتن کې اوساط مفصّل[۷] او د فجر (سحر) په لمانځه کې به یې طوال مفصّل ویل، نسایي،[۸] او ابن ماجه دا روایت نقل کړي دي خو د هغه روایت صرف تر ویخفف العصر پورې دي.

**حل اللغات:**- ① الْمُفَصَّلِ: سُمِّيَ مُفَصَّلًا؛ لِأَنَّ سُوَرَهَا قِصَارٌ كُلُّ سُورَةٍ كَفَصْلٍ مِنَ الْكَلَامِ: په مفصلات کښې تول واړه لنډې سورتونه دی ځکه د یوبل نه زر زر جدا کیږي. سورت حجرات نه دَ والناس پورې تولو سورتونوته مفصلات وائی. ② قِصَارُ الْمُفَصَّلِ: دَ سورت بینة نه تر والناس پورې سورتونو ته قصار مفصل وائی. ③ وَسَطِ الْمُفَصَّلِ: دَ سورت بروج نه دَ سورت بینة پورې سورتونو ته اوساط مفصل وائی. ④ طِوَالِ الْمُفَصَّلِ: دَ سورت حجرات نه دَ سورت بروج پورې سورتونو ته طوال مفصل وائی.

**تسهیلات:** - قوله: بِقِصَارِ الْمُفَصَّلِ:

**د قرآن کریم د سورتونو یو څو اصطلاحی نومونه:** ① سورت بقره سورت آل عمران سورت مائده سورت انعام سورت اعراف اوسورت انفال وبراءت دا اووه سورتونه "السبع الطول" په نوم مشهوردی په دې شرط چه انفال اوتوبه یووی دې نه پس هغه سورتونه دی چه سل یا

[1] اخرجه النسائی کتاب الافتتاح/باب القراءة فی المغرب بقصار المفصل باب القراءة فی المغرب بقصار المفصل (رقم-۹۸۳)

دَدې نه په زياتو آياتونو مشتمل دی دا سورتونه دَ "مئین" په نوم سره مشهور دی.
② دې نه پس هغه سورتونه دی کوم ته چه مثاني وئيلې شي اودا سلسله دَسورت حجرات پورې ځی ③ دَ سورت حجرات نه دَ والناس پورې ټولو سورتونو ته مفصلات وائی ځکه چه دا دَ يوبل نه زر زر جدا کيږی.

**دمفصلاتوپه درې حصو کښې تقسيم:** - په دَې مفصلات کښې ټول واړه سورتونه چه په دريو درجو کښې تقسيم کړې شوی دی.
① طوال مفصل:- دا د سورت حجرات نه دَ سورت بروج پورې دی
② اوساط مفصل:- دا دَ سورت بروج نه دَ سورت بينة پورې دی
③ قصار مفصل:- دا د سورت بينة څخه ترسورة الناس پورې دی.

**۸۵٤-د فاتحه خلف الامام حکم**

۸۵۳-()[۳۰] ① وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② كُنَّا خَلْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ، ③ فَقَرَأَ فَثَقُلَتْ عَلَيْهِ الْقِرَاءَةُ، فَلَمَّا فَرَغَ، قَالَ: ④ "«لَعَلَّكُمْ تَقْرَءُونَ خَلْفَ إِمَامِكُمْ؟ قُلْنَا: نَعَمْ، يَا رَسُولَ اللّٰهِ ⑤ قَالَ: لَا تَفْعَلُوا إِلَّا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ، ⑥ فَإِنَّهُ لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِهَا» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَلِلنَّسَائِيِّ مَعْنَاهُ.

**ترجمه:** ① عباده بن صامت رضی الله عنه فرمايي ② چې (يوه ورځ) مونږ خلق د سحر په لمانځه کې په رسول الله صلی الله علیه وسلم پسې وو ③ حضور صلی الله علیه وسلم چې قراءت شروع کړو نو قراءت ورته دروند معلوم شو بيا چې د لمانځه څخه فارغ شو نو وي فرمايل ④ شايد تاسو خلق امام پسې قراءت کوئ؟ مونږ عرض وکړو چې هو يا رسول الله صلی الله علیه وسلم، ⑤ ده صلی الله علیه وسلم وفرمايل سوا د سورة فاتحې څخه هيڅ مه وايئ ⑥ ځکه چې کوم سړي دا سورت نه وايي د هغه مونځ نه کيږي. (ابوداؤد ترمذي) او نسايي دا روايت بالمعني نقل کړي دي

**حل اللغات:**- ① ثَقُلَتْ: أَيْ: عَسُرَتْ: دروند ورته معلوم شو.

① وَفِي رِوَايَةٍ لِأَبِي دَاوُدَ، قَالَ: ② «وَأَنَا أَقُولُ: مَالِي يُنَازِعُنِي الْقُرْآنُ ③ فَلَا تَقْرَءُوا بِشَيْءٍ مِنَ الْقُرْآنِ إِذَا جَهَرْتُ إِلَّا بِأُمِّ الْقُرْآنِ» ".

**ترجمه:** ① او د ابوداؤد په روايت کې دالفاظ هم دي ② چې حضور صلی الله علیه وسلم (د صحابو رضی الله عنهم جواب اوريدو سره) وفرمايل ځکه خو ما (په خپل زړه کې) اوويل چې دا څه وشو چې قراءت په ما باندې دروند کيږي ③ هر کله چې زه په اوچت آواز سره وايم نو تاسو خلق بغير د سورة فاتحه څخه نور څه مه وايئ.

[1] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب من ترك القراءة في صلاته بفاتحة الكتاب (رقم-۸۲۳) وابوداود كتاب الصلاة،باب من ترك القراءة في صلاته بفاتحة الكتاب (رقم-۸۲٤) والترمذي كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء في القراءة خلف الإمام(رقم-۳۱۱) والنسائي كتاب الافتتاح/باب قراءة أم القرآن خلف الإمام فيما جهر به الإمام (رقم) ۹۲۰

**حل اللغات**:- ②یُنَازِعُنِی: جګړه کوی ماسره یعنی دا قرآن په ما باندې ولې دروند شو.

**تسهیلات**:-

**قوله**: لَعَلَّکُمْ تَقْرَءُوْنَ:

**دمونځ په تغیراتو کښې یو تغیر**:- دَدې نه معلومیږي چه مقتدیانو په مزه اوئیل اودَ مقتدیانو په حضورپاک ﷺ باندې په روحانی توګه بوج پریوتلو په دې وجه حضورپاک ﷺ تپوس اوکړو چه کیدې شی تاسو خلق ماپسې شاته لوستل کوئی؟ که چرې هغه خلقو په زوره باندې وئیلې نو حضورپاک ﷺ به داسې سوال نه کولو. په دې کښې دَمانځه دَتغیراتو نه دَ یوتغیرخبره ده چه دَ فاتحې نه سوا هیڅ مه واینې بیا روستو دَ فاتحې وئیل هم منع کړې شو لکه څنګه چه وړاندې لیکلی شوی دی.

### ۸۵۵-په جهری مونځونو کښې د فاتحه خلف الامام لوستلو حکم

۸۵۵-()[۳۱]① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ،② «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْصَرَفَ مِنْ صَلَاةٍ جَهَرَ فِيهَا بِالْقِرَاءَةِ،③ فَقَالَ: "هَلْ قَرَأَ مَعِي أَحَدٌ مِنْكُمْ آنِفًا؟④" فَقَالَ رَجُلٌ: نَعَمْ، يَا رَسُولَ اللّٰهِ!⑤ قَالَ: "إِنِّي أَقُولُ: مَالِي أُنَازَعُ الْقُرْآنَ؟"»⑥ قَالَ: فَانْتَهَى النَّاسُ عَنِ الْقِرَاءَةِ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ⑦ فِيمَا جَهَرَ فِيهِ بِالْقِرَاءَةِ مِنَ الصَّلَوَاتِ⑧ حِينَ سَمِعُوا ذٰلِكَ مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ، رَوَاهُ أَحْمَدُ وَمَالِكٌ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ. وَرَوَى ابْنُ مَاجَةَ نَحْوَهُ.

**ترجمه**:① ابوهریره رضی الله عنه فرمایي② چې (یو ځل) رسول الله ﷺ د جهري لمانځه څخه چې په هغې کې قراءت په اوچت آوز سره ویل کیږي فارغ شولو③ او (د لمانځه کونکو طرف ته متوجه کیدو سره یې) او فرمایل آیا په تاسو کې چا زما سره اوس قراءت کړي دي؟④ یو سړي عرض وکړو چې هو یا رسول الله ﷺ،⑤ حضور ﷺ ورته وفرمایل (څکه خو ما په زړه کې) ویل چې څه چل وشو چې زه په قرآن ویلو کې انخلم⑥ ابوهریره رضی الله عنه فرمایي چې خلق د رسول الله ﷺ سره قراءت کولو څخه منع شو⑦ په هغه لمونځونو کې چې په هغې کې به حضور ﷺ په اوچت آواز سره قراءت کولو،⑧ خلقو چې دا د رسول الله ﷺ څخه واوریدل (نو منع شول). (مالك، احمد، ابوداؤد، ترمذي، نسايي.)

**حل اللغات**:- ①انْصَرَفَ: أَيْ: فَرَغَ: راوګرځیدو یعنی فارغ شو (دمونځ نه). ②آنِفًا: یَعْنِي الْآنَ: اوس، نزدې، ③أُنَازَعُ: أَيْ: أُدَاخَلُ فِي الْقِرَاءَةِ وَأُشَارَكُ: جګړه کوی ماسره یعنی دې قراءت کښې ماسره بل څوک ولې شریکیږي یعنی دا قراءت په ما باندې ولې دروند شو.

[1] اخرجه مالک کتاب الصلاة باب ترک القراءة خلف الإمام فیما جهر فیه (رقم-٤٤) وابوداود کتاب الصلاة،باب من کره القراءة بفاتحة الکتاب إذا جهر الإمام (رقم-٨٢٦) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها ،باب إذا قرأ الإمام فأنصتوا (رقم-٨٤٨) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی ترک القراءة خلف الإمام إذا جهر الإمام بالقراءة (رقم- ٣١٢) والنسائی کتاب الطهارة/باب الأمر بإسباغ الوضوء رقم (١٤١)

**تسهیلات:-**

**قوله:** مَالِي أُنَازَعُ القُرْآنَ؟:

**د قراءت خلف الامام په عدم باندې دلیل:-** منازعه ګډوډوالی ته وائی یعنی چه امام هم لوستل کوی او مقتدی هم لوستل کوی دا منازعه ده. حضور پاك ﷺ په زړه کښې اوفرمائیل او په ژبه مبارکه ئی هم اظهار اوفرمائیلو چه داسې نه دی کول پکار. نوخلق په جهری مونځونو کښې دَ عام قرأت او فاتحې وغیره ونیلو نه منع شو. داحدیث دَاحنافو مضبوط دلیل دې چه امام پسې دَ قرأت لوستلو نه حضور پاك ﷺ په سختئی سره منع اوفرمائیل او فاتحه هم قرآن دې نو دَدې نه هم منع راغله.

**د قراءت خلف الامام د نسخې دلیل:-** دَ احنافو په نیز دا روایت امام پسې لوستلو دَپاره ناسخ دې ځکه چه ابوهریره رضی اللہ عنہ متاخر فی الاسلام دې نو دا دَ آخری دور نقشه ده. او دَ "فانتهى الناس" الفاظو کښې دَ صحابه کرامو دَعملی فیصلې اندازه کیږی او دا جمله دَ زهری نه ده بلکه دَحضرت ابوهریره رضی اللہ عنہ ده لکه څنګه چه مخکښې تفصیل شوې دې.

**۸۵۶—په مانځه کښې د خپل رب سره مناجات**

۸۵۶—(١)[٣٢] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَالْبَيَاضِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ، قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ② «إِنَّ الْمُصَلِّيَ يُنَاجِي رَبَّهُ فَلْيَنْظُرْ مَا يُنَاجِيهِ بِهِ ③ وَلَا يَجْهَرْ بَعْضُكُمْ عَلَى بَعْضٍ بِالْقُرْآنِ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ① ابن عمر او بیاضي رضی اللہ عنہم روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② مونځ کونکي د خپل پروردګار سره (د لمانځه په حالت کي) مناجات کوي لهٰذا هغه ته پکار دي چې کوم مناجات هغه کوي په هغې کې دي غور کوي (یعني ذکر او قراءت دې په حضور قلب او خشوع او خضوع سره دي کوي) ③ او په قرآن شریف ویلو کې تاسو کې دي هیڅوك په یو بل باندې آواز نه اوچتوي. (احمد)

**حل اللغات:-** ① يُنَاجِي: أي: يُحَادِثُهُ وَيُكَالِمُهُ: یعنی خبرې ورسره کوی (دا کنایه ده دکمال قربت معنوی نه ځکه چه مونځ دمؤمن معراج دې).

**تسهیلات:- قوله:** وَلَا يَجْهَرْ بَعْضُكُمْ عَلَى بَعْضٍ بِالْقُرْآنِ:

**د قرآن په تلاوت کښې په یوبل باندې د جهر کولو ممانعت:-** یعنی بعض لوستونکی په زوره زوره لوستلو سره په نورو غالب را نه شی نه دې بل په تشویش کښې اخته کړی که هغه اوریدونکي په مانځه کښې وی او که اوده وی یا پخپله قرآن لولی په دې ټولو صورتونو کښې مسلمان ته تکلیف رسول جائز نه دی. لهذا قرآن پاك په زوره نه دی لوستل پکار او دَ قرآن نه علاوه په بل څیز سره تکلیف رسول خو په طریقه اولی دیرخراب عمل دې. دَدې

(١) اخرجه احمد فی المسند ٤/ ٣٤٤ ومالک کتاب الصلاة باب العمل فی القراءة (رقم-٢٩)

حدیث نه معلومه شوه چه امام پسې فاتحه لوستل په جهري مونځونوکښې مناسب نه دی.

**۸۵۷-د امام د تابعدارۍ وجوب**

۸۵۷-()[۳۳] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲]«إِنَّمَا جُعِلَ الْإِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهِ، [۳] فَإِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوا، وَإِذَا قَرَأَ فَأَنْصِتُوا» "، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] امام د دې د پاره مقرر شوې دې چې د هغه پیروي وشي [۳] کله چې امام الله اکبر اووائي نو تاسو هم الله اکبر اووایئ او کله چې امام قراءت کوي نو تاسو چپ اوسیږئ. (ابوداؤد، نسايي، ابن ماجه.)

**حل اللغات:-** ① لِيُؤْتَمَّ: د مجهول صیغه ده. أي: لِيُقْتَدَي بِهِ: چه اقتداء ئې اوکړې شي.

**تسهيلات:- قوله:** فَأَنْصِتُوا:

**دعدم قراءت خلف الامام دلیل:-** یعنی کله چه امام قرآن لولی نوتاسو چپ چاپ خاموش اوسیږئ که چرې دَهغه قراءت اورئ نو په غوږ کیخودوسره ئې اورئ. هلته دَ "فاستمعوا" حکم دې اوکه مونځ سري یعنی پټ وی نوهغې کښې هم داسې خاموش اوسیږئ "وانصتوا" ئې فرمائیلي. دا حدیث دَاحنافو دلیل دې بلکه دَجمهورو هم دغه مسلك دې. اودَامام قراءت دَ پوره قوم قراءت دې نوقوم بغیردَ قراءت نه پاتې نه شو.

**۸۵۸-د امي د قراءت حکم**

۸۵۸-()[۳۴] [۱] «وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: [۳] إِنِّي لَا أَسْتَطِيعُ أَنْ آخُذَ مِنَ الْقُرْآنِ شَيْئًا، فَعَلِّمْنِي مَا يُجْزِئُنِي، [۴] قَالَ: "قُلْ سُبْحَانَ اللّٰهِ، وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ، وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ، وَاللّٰهُ أَكْبَرُ، [۵] وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ"،

**ترجمه:** [۱] عبدالله بن ابي اوفي رضی الله عنه فرمايي [۲] چې يو سړي د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړو چې يا رسول الله ﷺ [۳] زه (سم دستي) د قرآن څخه په څه يادولو قادر کيدي نشم نو ماته څه داسې شي وښايي چې زما د پاره کافي وي [۴] رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ته دا کلمات وايه سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ. يعنې الله پاك دي او ټول تعريفونه الله لره دي او د الله څخه سوا بل معبود نشته او الله ډير لوي دي [۵] او د ګناهونو څخه د بچ کيدو توفيق او د عبادت کولو طاقت صرف د الله د طرف څخه دي.

---

[۱] اخرجه ابو داو د كتاب الصلاة، باب الإمام يصلي من قعود (رقم-٦٠٤) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها، باب إذا قرأ الإمام فأنصتوا (رقم-٨٤٦) والنسائی كتاب الافتتاح/باب تأويل قوله عز وجل: {وإذا قرئ القرآن فاستمعوا له وأنصتوا لعلكم ترحمون} [الأعراف: ٢٠٤] (رقم) ٩٢٢

[۲] اخرجه ابوداودكتاب الصلاة، باب ما يجزئ الأمي والأعجمي من القراءة (رقم -٨٣٢) والنسائی كتاب الافتتاح/باب ما يجزئ من القراءة لمن لا يحسن القرآن (رقم-٩٢٤)

**حل اللغات** ① لَا أَسْتَطِيعُ: د نفی متکلم صیغه ده، طاقت یعنی وس نه لرم ② آخُذَ: أي: أَتَعَلَّمَ وَأَحْفَظَ: چه څه زده کړم، یاد کړم ③ يُجْزِئُنِي: چه کافی شی زما دپاره

[١] قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! هَذَا لِلَّهِ؟ فَمَاذَا لِي؟ [٢] قَالَ: "قُلْ: اللَّهُمَّ ارْحَمْنِي، وَعَافِنِي، [٣] وَاهْدِنِي، وَارْزُقْنِي" [٤] فَقَالَ هَكَذَا بِيَدَيْهِ وَقَبَضَهُمَا [٥] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَمَّا هَذَا فَقَدْ مَلَأَ يَدَيْهِ مِنَ الْخَيْرِ". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، [٧] وَانْتَهَتْ رِوَايَةُ النَّسَائِيِّ عِنْدَ قَوْلِهِ: "إِلَّا بِاللَّهِ".

**ترجمه:** [١] هغه سړي عرض وکړو یا رسول الله ﷺ دا خو د الله د پاره دي زما د پاره څه دي؟ [٢] رسول الله ﷺ ورته وفرمایل (د خان د پاره) ته دا وایه اللَّهُمَّ ارْحَمْنِيْ وَعَافِنِيْ وَاهْدِنِيْ وَارْزُقْنِيْ، یعنی ای پروردګاره په ما رحم وکړه ما ته عافیت راکړه [٣] او ماته هدایت وکړه او ما ته رزق راکړي، [٤] بیا هغه سړي په خپلو دواړو لاسونو سره دا رنګه اشاره وکړله او هغه یي بند کړل [٥] رسول الله ﷺ وفرمایل دي سړي خپل دواړه لاسونه د نیکۍ څخه ډك کړل، ابوداؤد، [٦] او د نسایي روایت تر الابالله پورې ختم شوې دي.

**حل اللغات:** - ② عَافِنِي: عافیت راکړې ماته، بچ کړې ما (د دواړو جهانونو د آفاتونه).

**تسهیلات:** -

**قوله:** إِنِّي لَا أَسْتَطِيعُ:

**اشکال:** - دادې چه یو اهل زبان اوبیا عربی اودَ عربودَ ذهانت نه دا خبره لرې معلومیږی چه هغه دې دَقرآن دومره حصه زده نه کړی په کوم سره چه مونځ جائزنه شی.

**د اشکال دوه جوابونه:** - ① دَ اسلام په شروع کښي دَدې خبرې اسانی وه چه دَ قرآن په ځانی دَ څه ذکرالله اوتسبیحات سره مونځ کولو. کوم یوکس ته چه ډیرسورتونه یاد وی نو په یوسورت باندې همیشه والې کول مکروه دی اوکه چرې یاد نه وی نویادول پکاردی ګنی مکروه دی دَمکروه نه مراد خلافت سنت دی.

② که یوطرف ته په عربوکښې ذهین خلق وونوبل طرف ته شاړ خلق هم وو. دَ زیات عمر خلقو دَپاره زده کول ګران وی او ډیره قرین قیاس خبره داده چه دا سړې به هم دغه وخت کښې مسلمان شوې وی او دَ مانځه معامله ورپیښه شوه نودا سوال ئې اوکړو.

**قوله:** هَذَا لِلَّهِ؟

**د رجل هوښیارتیا:** -داسړې خورمره هوښیاروو چه دا تسبیحات تمجیدات تحمیدات او تعریفات ټول دَالله تعالی دَپاره دی آخر زما دَپاره دَ دعا په درجه کښې کوم یوڅیزدې؟ په دې باندې حضورپاك ﷺ هغه ته دَ رحمت عافیت او رزق اوهدایت دعا اوخودله.

**قوله:** فَقَالَ هَكَذَا:

**قاعده لغویه:** -دَ قال لفظ په عربی لغت کښې دَ اشاره دَپاره هغه وخت استعمالیږی کله

چه دَدې په صله کښې "باء" راشي دلته "بيديه" کښې باء کلمه دَ وجې نه په دې جمله کښې دَاشارۀ معنى پيدا شوه.

**قوله: وَقَبَضَهُمَا:**

**دَ قبض په کیفیت کښې دوه اقوال: -**

① یعنی دې سرې په دواړو لاسونو باندې اشاره کولوسره دواړه موټې بند کړل لکه چه ده ته يوښه نعمت ملاؤ شو او هغه خوشحال شو اودائي محفوظ کړو

② په یوه یوه ګوته باندې نې دا کلمات شمیرلوسره موټې بند کړو. په دې باندې حضور اکرم اوفرمائيل چه دې سړې دواړه لاسونه دَ ښيګړې نه ډك کړل.

**۸۵۱- دَ سبح اسم ربك الاعلى جواب**

۸۵۱-()[۳۵] ١ «وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، ٢ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا قَرَأَ ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى﴾ [الأعلى:١] ٣ قَالَ: "سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى"» ، رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي ٢ چې رسول الله ﷺ چې به كله (په يو لمانځه کي) سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى ويل ٣ نو سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى به يي ويلي، (احمد، ابوداؤد.)

**تسهیلات:** - دَ قرآن کریم آیت ﴿ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى ﴾ سورت اعلی.

په دې کښې دَ تسبیحات حکم دې په دې حکم باندې عمل کولوسره رسول الله ﷺ پخپله هم په دې عمل اوکړو اوامت ته ئې هم اوفرمائيل چه دا په سجده کښې ساتلوسره سبحان ربي الاعلى وائي دغه شان كله چه ﴿ فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ ﴾ آيت نازل شو نو حضورپاك ﷺ اوفرمائيل چه دا په رکوع کښې اوساتئی اوسبحان ربي العظيم وائي.

**په مونځ کښې د تکبیراتو او تسبیحاتو په مینځ کښې یو عجیبه ترتیب:** -دا عجیبه ترتیب دې ځکه چه دَ انسان چه خپل وجود خومره باقی پاتې کيږی. دَ الله تعالی دَ شان پوره اعتراف انسان نه شی کولې ليکن كله چه انسان خپل وجود ختم کړی نو دَالله تعالی دَ شان مکمل اعتراف شروع کيږی. کله چه انسان خپل وجود ختمه وی نو دَالله تعالی دَ شان مکمل اعتراف شروع کيږی. کله چه انسان اودريږی نو هغه الله اکبر وائی ليکن كله چه خپل ځان يوه درجه کموی نو سبحان ربي العظيم وائی خوچه کله په سجده کښې خپل ځان بالکل فانی کوی نو هغه وخت دَالله تعالی شان په مکمل توګه اوچتولوسره وائی "سبحان ربي الاعلى" یعنی چه زه څومره ادنی یم الله تعالی هم هغه هومره اعلی دې.

دې دَدې جواب په قرأت کښې مخل او مضر نه دې.

---

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة،باب الدعاء فی الصلاة (رقم-۸۸۳)

## ۸۶۰- د بعضې آياتونو جواب ورکول

۸۶۰-()[۳٦]① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:② " «مَنْ قَرَأَ مِنْكُمْ بِـ ﴿وَالتِّينِ وَالزَّيْتُونِ﴾ [التين: ۱]،③ فَانْتَهَى إِلَى: ﴿أَلَيْسَ اللّٰهُ بِأَحْكَمِ الْحَاكِمِينَ﴾ [التين: ۸]④ فَلْيَقُلْ: بَلَى، وَأَنَا عَلَى ذٰلِكَ مِنَ الشَّاهِدِينَ، ⑤ وَمَنْ قَرَأَ: ﴿لَا أُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيَامَةِ﴾ [القيامة: ۱] فَانْتَهَى إِلَى: ﴿أَلَيْسَ ذٰلِكَ بِقَادِرٍ عَلَى أَنْ يُحْيِيَ الْمَوْتَى﴾ [القيامة: ۴۰]، فَلْيَقُلْ: بَلَى، ⑥ وَمَنْ قَرَأَ (وَالْمُرْسَلَاتِ)، فَبَلَغَ: ﴿فَبِأَيِّ حَدِيثٍ بَعْدَهُ يُؤْمِنُونَ﴾ [الأعراف: ۱۸۵] فَلْيَقُلْ: " آمَنَّا بِاللّٰهِ» "، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ إِلَى قَوْلِهِ: «وَأَنَا عَلَى ذٰلِكَ مِنَ الشَّاهِدِينَ» ".

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل② په تاسو کې کوم سړي چې سورة والتين والزيتون اووائي③ او (دي ايت) أَلَيْسَ اللّٰهُ بِأَحْكَمِ الْحَاكِمِينَ، يعنى آيا الله د ټولوڅخه لوي حاکم نه دي؟ پورې راورسي④ نو داالفاظ دي اووائي بَلَى وَأَنَا عَلَى ذٰلِكَ مِنَ الشَّاهِدِينَ، يعنى هو، او زه په دي د شهادت ورکونکو څخه يم⑤ او کوم سړي چې سورة لَا أُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيَامَةِ اووائي او دي ايت أَلَيْسَ ذٰلِكَ بِقَادِرٍ عَلَى أَنْ يُحْيِيَ الْمَوْتَى، (يعني آيا هغه الله) په دي خبره قدرت نه لري چې مړي راژوندي کړي) ته چې ورسي نو اودي وايي بَلَى (يعني هغه په دي خبره قدرت لري)⑥ او کوم سړي چې سورة والمرسلات اووائي او (دي آيت) فَبِأَيِّ حَدِيثٍ بَعْدَهُ يُؤْمِنُونَ، (يعنى اوس دي څخه وروسته به دوي په کومه خبره ايمان راوړي) ورسيږي نو او دي وايي آمَنَّا بِاللّٰهِ (يعني مونږ په الله ايمان راوړي دي) ابوداؤد او ترمذي دا روايت والتين تر آيت وَأَنَا عَلَى ذٰلِكَ مِنَ الشَّاهِدِينَ پورې نقل کړي دي.

**تسهيلات:-**

**قوله:: "فَلْيَقُلْ: بَلَى"**

**د مخصوصو سورتونوپه اختتام کښې د مخصوصو کلماتو ويلوکښې مذاهب:-**

① امام شافعي رحمه الله فرمائی دَدې سورتونو په اختتاط باندې دا کلمات ويل پکاردی که هغه فرض مونځ وی اوکه نفل وی اودَمونځ نه بهرهم دغه شان جواب ورکول پکاردی.

② امام مالك رحمه الله فرمائی چه دَ مانځه نه بهرخو په هرحال کښې داجواب ورکول پکاردی خو که چرې په مانځه کښې وی نو بيا په نفل مونځ کښې جواب ورکول پکاردی په فرضو کښې نه.

③ امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله فرمائی دَمونځ نه بهرخو جواب ورکول پکاردی ليکن په مانځه

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب مقدار الركوع والسجود (رقم-۸۸۷) والترمذى كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ومن سورة التين (رقم-۳۳۴۷)

کښې دننه نه دي ورکول پکار که فرض مونځ وي او که نفل وي ځکه چه په دې سره وهم پیدا کیږي چه دا کلمات هم قرآن دې. او که یوسړې په دې ظاهري حدیث باندې عمل کول غواړي نو بیا دې په نوافل کښې وائي ځکه چه بعضې روایاتو کښې نوافل (تهجد) تصریح موجود ده. بل په نوافل کښې وسعت وي.

**۸۶۱-په سورة رحمن کښې د یو آیت جواب ورکول**

۸۶۱-()[۳۷][۱]«وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲]خَرَجَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَصْحَابِهِ، فَقَرَأَ سُورَةَ (الرَّحْمٰنِ)، مِنْ أَوَّلِهَا إِلَى آخِرِهَا، فَسَكَتُوا، [۳]فَقَالَ: "لَقَدْ قَرَأْتُهَا عَلَى الْجِنِّ لَيْلَةَ الْجِنِّ، فَكَانُوا أَحْسَنَ مَرْدُودًا مِنْكُمْ، [۴]كُنْتُ كُلَّمَا أَتَيْتُ عَلَى قَوْلِهِ: ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ [الرحمن: ۱۳] [۵]قَالُوا: لَا بِشَيْءٍ مِنْ نِعَمِكَ رَبَّنَا نُكَذِّبُ، فَلَكَ الْحَمْدُ»"، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي[۲] چې (یو ورځ) رسول الله ﷺ د خپل اصحابو رضي الله عنهم یو جماعت ته تشریف راوړو او د هغوئ په مخکې یې سورة رحمٰن د اوله ځخه تر آخره پورې وویلو صحابو رضي الله عنهم خاموشي اختیار کړي وه[۳] حضور ﷺ (چې سورت ختم کړو نو) وي فرمایل دا سورت ما د جنات (پیریانو) په مخکې په هغه شپه ویلي وو چې هغوئ د اسلام قبلولو او د قرآن اوریدو د پاره راجمع شوي وو او هغوئ په جواب راکولو کې ستاسو ځخه بهتر وو [۴] هر کله چې زه دې آیت فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ (یعني د الله کوم کوم نعمتونه به تاسو دروغ ګڼې) ته ورسیدم[۵] نو هغوئ به جواب راکولو لَا بِشَيْءٍ مِنْ نِعَمِكَ رَبَّنَا نُكَذِّبُ فَلَكَ الْحَمْدُ (یعني اې پروردګار زمونږ ستا هیڅ نعمت دروغ نه ګڼو او ټول تعریفونه تا لره دي) دا روایت امام ترمذي رحمه الله نقل کړي دي او ویلي یې دی چې دا حدیث غریب دي.

**حل اللغات:-** ① فَسَكَتُوا: چپ وو، خاموش وو (اوریدونکي صحابه کرام).
② مَرْدُودًا: أَيْ: جَوَابًا وَرَدًّا: یعنی جواب به ني ورکولو.

**تسهیلات:-**

**قوله: "أَحْسَنَ مَرْدُودًا"** یعنی پیریانو چه دَ سورت رحمن دَ نعمتونو والا آیت واوریدو نو هغوی تاسو نه ښه جواب ورکړو او دَ هر نعمت په بدله کښې ئې اووئیل چه مونږ ناشکری نه کوو.

**دښه تلاوت په دوران کښې په سبحان الله سره د داد ورکولو حکم:** -ځه خلق دَ ښه تلاوت په جواب کښې سبحان الله وغیره الفاظ دَ قرأت دوران کښې وائي. بعضې محتاط علماء وائي چه دا صحیح نه دي بلکه دا ﴿فَاسْتَمِعُوا﴾ او ﴿وَأَنْصِتُوا﴾ خلاف دي چپ اوسیدل پکار دي. پاتې شو دَ سورت رحمن آیت نو په هغې کښې خو باقاعده استفهام سره سوال کړې شوې

(۱) اخرجه الترمذي كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة الرحمن (رقم-۳۲۹۱)

**د تلاوت په آخر کښې د صدق الله العظيم ونيلو حکم:-** زمونږ په ملک کښې د تلاوت په آخر کښې«صدق الله العظيم» ونيلى شى اود دې داسې التزام کولى شى چې تاسو به په تقريباتو وغيره کښې داسې نه وى ليدلى چې د قرآن پاک د تلاوت په اختتام کښې «صدق الله العظيم» اونه وائى د دې شدت التزام په وجه عوام عملى طور دا ضرورى ګنړى. ماته د دې په باره کښې معلومه نه ده چې په احاديثو کښې چرته دا کلمه ونيل منقول هم ده که نه؟ د دې کلمې د التزام په ځائې که مختلف الفاظ اونيلى شى يا کله ونيلى شى اوکله نه نودا به ښه وى والله اعلم بالصواب (شاه فيصل)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## ۸٦۲-په دوو رکعتو کښې د يو سورت لوستل

۸٦۲-()[۳۸] [۱]«عَنْ مُعَاذِ بْنِ عَبْدِ اللهِ الْجُهَنِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [۲]إِنَّ رَجُلًا مِنْ جُهَيْنَةَ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۳]قَرَأَ فِي الصُّبْحِ ﴿إِذَا زُلْزِلَتِ﴾ [الزلزلة: ۱] فِي الرَّكْعَتَيْنِ كِلْتَيْهِمَا» [۴]فَلَا أَدْرِي أَنَسِيَ أَمْ قَرَأَ ذَلِكَ عَمْدًا، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] معاذ ابن عبدالله جهني (تابعي) رحمه الله فرمايي [۲] چه د قبيله جهينه يو سړي ماته بيان وکړو چې هغه د حضور ﷺ څخه اوريدلي دي [۳] چې د سحر په دوه رکعاتو کې يې سورة اذا زلزلت الارض ويل [۴] او زه نه پوهيږم چې حضور ﷺ قصداً داسې کړي وو يا په هيره تري شوي وو. (ابوداؤد.)

**تسهيلات:-**

**قوله: فِي الرَّكْعَتَيْنِ:**

**په فرائضو کښې يو سورت لره د مکرر ونيلو حکم:** يعنى چه هم يوسورت زلزال ئى په دوو رکعتوکښې اولوستلو، که چرې نيم نيم ئى لوستلې وې نو هم جائزوو مګر په هر رکعت کښې ئى پوره سورت اولوستلو په ظاهره داسې معلوميږى چه حضورپاک ﷺ دَ بيان جواز دَپاره داسې کړى دى او حضورپاک ﷺ په هيره سره نه دې بلکه په اراده سره ئى داسې کړى دى سره ددې چه افضل اواولى هم دغه دى چه يوسورت مکرر اونه لوستلې شى خاص کر په فرائضو کښې داسې نه دى کول پکار.

**دعوامو غفلت:-** عوام الناس له غور کول پکاردى په کوم کښې چه اکثر داسې کوى چه ﴿قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ﴾ يا يوخاص سورت په ټولو رکعتونو کښې سردوباره کولوسره لولى. هغوى له کم نه کم دومره سورتونه خويادول پکاردى په کوم سره چه په مانځه کښې کراهت پاتې نه شى. چاته چه مختلف سورتونه ياد وى اوهغه صرف هم يوسورت لولى دامکروه دى اوچاته

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب الرجل يعيد سورة واحدة في الركعتين (رقم-۸۱٦)

چه یاد نه وی نو هغوی له یادول پکاردی ګنی مونځ به نی مکروه شی او دَ مکروه مطلب خلاف سنت دي.

**۸۱۳–د صبا په دوو رکعتونو کښې سورة بقره لوستل**

۸۱۳–()[۳۹][۱]وَعَنْ عُرْوَةَ، قَالَ:[۲]إِنَّ أَبَا بَكْرٍ الصِّدِّيقَ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، صَلَّى الصُّبْحَ،[۳]فَقَرَأَ فِيهِمَا بِـ(سُورَةِ الْبَقَرَةِ)، فِي الرَّكْعَتَيْنِ كِلْتَيْهِمَا، رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:**[۱] حضرت عروه ابن زبیر (تابعي) رحمه الله فرمایي[۲] چې (یو ځل) حضرت ابو بکر صدیق رضي الله عنه د سحر مونځ ورکړو[۳] او په دواړو رکعاتو کښې یې سورة بقره وویله. (مالک)

**تسهیلات:**-

**قوله:** فَقَرَأَ فِيهِمَا بِـ(سُورَةِ الْبَقَرَةِ):

**دصبا په مانځه کښې د سورة بقره اوله حصه لوستل:**–حضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه دَ سورت بقره څه حصه په اول رکعت کښې او څه حصه په دویم رکعت کښې اولوستله دا جائزدی مګر پوره سورت بقره دَ سحر دَ مونځ په دوو رکعتوکښې لوستل دکرامت نه خالي نه دی لکه چه حضورپاک صلی الله علیه وسلم دَمابنام په مونځ کښې سورت اعراف اولوستلې کوم چه دَ معجزه نه خالي نه دي.

**۸۱۴–د صبا په مانځه کښې د سورة یوسف لوستل**

۸۱۴–()[۴۰][۱]وَعَنِ الْفُرَافِصَةِ بْنِ عُمَيْرٍ الْحَنَفِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا،[۲]قَالَ مَا أَخَذْتُ سُورَةَ (يُوسُفَ) إِلَّا مِنْ قِرَاءَةِ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ إِيَّاهَا فِي الصُّبْحِ،[۳]مِنْ كَثْرَةِ مَا كَانَ يُرَدِّدُهَا، رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:**[۱] فرافصه ابن عمیر (تابعي) رحمه الله فرمایي[۲] چې ما سورة یوسف د عثمان رضي الله عنه څخه (په آوریدلو آوریدلو سره) یاد کړي دي[۳] ځکه چې هغه به دا سورت د سحر په لمانځه کښې په کثرت سره ویلو. (مالک)

**حل اللغات:**- ① إِيَّاهَا: أَيْ: تِلْكَ السُّورَةَ: یعنی دغه سورت. ② يُرَدِّدُهَا: أَيْ: يُكَرِّرُهَا: یعنی اکثر به نې دا سورت په مونځ کښې ونیلو.

**تسهیلات:**- **قوله:** مَا أَخَذْتُ سُورَةَ (يُوسُفَ):

**اشکال:**– یوسورت دَ مانځه دَ پاره متعین کول خو مکروه دی بیا حضرت عثمان رضي الله عنه داسې ولې اوکړه؟

**داشکال دوه جوابونه:**–① هغوی به صرف سورت یوسف نه لوستلو بلکه په کثرت سره به نې دا لوستلو اونور سورتونه به نې هم لوستل مګر ډیرکم، نودا صورت دَ کراهت نه خالي دي.

(۱) اخرجه مالک کتاب الصلاة باب القراءة فی الصبح (رقم-۳۳)
(۲) اخرجه مالک کتاب الصلاة باب القراءة فی الصبح (رقم-۳۵)

④ یوسورت دَ تولو مونځونو دَپاره متعین کول دَعلماء په نیزمکروه دي مګر صرف دَ سحر په مونځ کښې دَ سورت یوسف لوستل دَدې منافی نه دې ځکه چه دَ تولو مونځونوسره دَ خاص کولو معامله نه وه.

**په کثرت سره د سورة یوسف لوستلو فائده:** - علماؤ لیکلی دی چه په کثرت سره دَ سورت یوسف لوستلوسره الله تعالی لوستونکی ته دَ شهادت مرګ ورکوی اوحضرت عثمان رضي الله عنه ددې ښکاره نمونه دې.

**۸۶۵- د صبا په مانځه کښې د سورة یوسف او سورة حج لوستل**

۸۶۵-()[۳۱] ① وَعَنْ عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② صَلَّيْنَا وَرَاءَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ الصُّبْحَ، فَقَرَأَ فِيهَا بِسُورَةِ (يُوسُفَ)، وَسُورَةِ (الْحَجِّ)، قِرَاءَةً بَطِيئَةً، ③ قِيلَ لَهُ: إِذًا لَقَدْ كَانَ يَقُومُ حِينَ يَطْلُعُ الْفَجْرُ، ④ قَالَ: أَجَلْ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** ① عامر ابن ربیعه رضي الله عنه فرمایي ② چې (یو ځل) مونږ په امیر المؤمنین حضرت عمر فاروق رضي الله عنه پسې مونځ وکړو هغه دوه رکعاته کې سورة یوسف او سورة حج په قلار قلار وویلو ③ د عامر رضي الله عنه ځخه چا پوښتنه وکړه چې بیاخو به حضرت عمر رضي الله عنه په اول وخت کې د لمانځه د پاره ودریدلو؟ (یعني په اول وخت کې به یي مونځ شروع کولو ځکه چې دومره اوږد قراءت خو هله ممکن کیدي شي چې د صبا د ختلو په وخت ودریږي، ④ هغه وفرمایل هو، (مالك.)

**حل اللغات:** - ① بَطِيئَةً: أَيْ: قِرَاءَةً مُجَوَّدَةً مُرَتَّلَةً مُبَيَّنَةً: یعنی په تجوید او ترتیل سره ئې په آرام او قلار قلار ویلو.

**تسهیلات:** - **قوله:** فَقَرَأَ فِيهَا بِسُورَةِ (يُوسُفَ):

**د صبا په مانځه کښې اوږده سورتونه لوستل:** - دصبا په مانځه کښې دومره اوږده سورتونه وئیل په جواز باندې محمول دی. او داسې کله کله شوی دی ځکه چې په داسې اوږد قراءت باندې هیڅ مداومت نه وو کړې.

**۸۶۶- په مانځه کښې د هر سورت د لوستلو جواز**

۸۶۶-()[۳۲] ① «وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: ② مَا مِنَ الْمُفَصَّلِ سُورَةٌ صَغِيرَةٌ وَلَا كَبِيرَةٌ إِلَّا قَدْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ③ يَؤُمُّ بِهَا النَّاسَ فِي الصَّلَاةِ الْمَكْتُوبَةِ»، رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** ① عمرو ابن شعیب د خپل پلار ځخه او هغه د خپل نیکه (عبد الله رضي الله عنه) ځخه نقل کوي ② چې د مفصل هیڅ لوي اووړوکی سورت داسې نشته چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم ځخه نه دي آوریدلي ③ چې خلقو ته به یې په هغې سره مونځ ورکولو. (مالك.)

(۱) اخرجه مالک کتاب الصلاة باب القراءة فی الصبح (رقم-۳٤)
(۲) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة،باب من رأی التخفیف فیها (رقم- ۸۱٤)

**حل اللغات**:- ① الْمُفَصَّل: مفصلات (د سورة حُجرات نه تر د قرآن آخره پورې سورتونه مراد دی.او دې ته مفصلات ځکه وائی چه په دې کښې د قرآن د ټولو مضامينو اجمال سره ذکرشوې دې).

**تسهيلات**:-

**قوله: يَؤُمُّ بِهَا النَّاسَ فِي الصَّلَاةِ الْمَكْتُوبَةِ:**

**په مونځ کښې د هرسورت د لوستلو جواز**:- نبی کريم ﷺ دبيان جواز په طور مفصل سورتونه په مختلفو وختونو کښې او مختلفو مونځونو کښې لوستلی دی او خلقو ته ئې ښودلی دی چې په مونځ کښې د هر سورة وئيل درست دی.

**۸۶۷- دماښام په مانځه کښې دحم دخان لوستل**

| ۸۶۷-()[۴۳] ① «وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② قَرَأَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي صَلَاةِ الْمَغْرِبِ بِحم الدُّخَانِ»، رَوَاهُ النَّسَائِيُّ مُرْسَلًا. |
|---|

**ترجمه**: ① عبدالله ابن عتبه ابن مسعود (تابعي) رحمه الله فرمايي② چې رسول الله ﷺ د ماښام په لمانځه کې سورة حٰم الدخان اولوستلو دا روايت نسايي مرسلاً نقل کړې دي (ځکه چې عبدالله ابن عتبه تابعي دي)

**تسهيلات**:-

**نوټ**:- د دې حديث وضاحت په باب صفة الصلاة کښې حديث نمبر ۲۲ کښې تيرشوې دې.

## [۱۳/۳۰]بَابُ الرُّكُوعِ

**د رکوع بيان**

| **خلاصة الباب:-**<br>**فيه تسعة عشر حديثاً مشتملة على سبع مسائل:**<br>① اتمام الركوع: ۱، ۱۱.<br>② مقدار الركوع: ۲، ۱۶.<br>③ مقدار القومة: ۳.<br>④ التسبيحات في الركوع: ۴، ۵، ۶، ۱۲، ۱۳، ۱۴، ۱۵.<br>⑤ النهي عن القراءة في الركوع: ۶.<br>⑥ التحميد والتسميع في القومة: ۷، ۸، ۹، ۱۰.<br>⑦ الوعيد بعدم اتمام الركوع: ۱۷، ۱۸، ۱۹. |
|---|

[1] اخرجه النسائی کتاب الافتتاح /باب القراءة فی المغرب بحم الدخان (رقم-۹۸۸)

**د رکوع لغوی او شرعی حیثیت:** په لغت کښې رکوع انحاء اوښکته کیدوپه معنی کښې ده. په مانځه کښې رکوع دَ ارکان صلوة نه یورکن دې دَدې منکر کافردې اوپه مانځه کښې دَدې پریخودلو سره مونځ باطل کیږی.

**رکوع د امت محمدی صلی الله علیه وسلم خصوصیت:** رکوع دَدې امت دَ خصوصیات نه ده. دَ پخوانو امتونو په مونځونوکښې رکوع نه وه. حضرت مریم علیها السلام ته چه کوم حکم اوشو "ارکعی" نوهغه دَ "صلی" په معنی کښې دې.

**د رکوع د عدم تکرار فی الصلاة دوه وجوهات:-**

① ملاعلی قاری رحمه الله لیکلی دی اوله سجده کښې دَ سجدې آیت ﴿ مِنْهَا خَلَقْنٰكُمْ ﴾ طه:۵۵. طرف ته اشاره ده. او دویمه سجده کښې ﴿وَفِيْهَا نُعِيْدُكُمْ﴾ طه:۵۵. طرف ته اشاره ده اوبیا دَ قیام طرف ته تللوکښې﴿ وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً اُخْرٰى ﴾طه:۵۵. طرف ته اشاره ده.

② په مانځه کښې رکوع چونکه دَ سجدې دَپاره تمهید اووسیله ده په دې وجه په دې کښې تکرار نشته دې او سجده چونکه یولوئی مقصد دې اودَ الله تعالی دَعبادت یوه اوچته نمونه ده په دې وجه په دې کښې تکرار دې.

③ حضرت آدم علیه السلام ته کله فرښتو سجده اوکړه اودَ سجدې نه پاسیدلې نوهغوی ابلیس اولیدلو چه دَ سجدې کولونه محروم ولاړدې نو فرښتو دَ شکر په توګه دویمه سجده اوکړه لهذا سجدې دوه دی. ملاعلی قاری رحمه الله لیکلی دی چه دَ حکمت دَ لټولوځه قیمت نشته دې اصل خبره خودَ الله تعالی حکم دې چه دوه سجدې کوئی نومونږ ئی کوو.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**۸۶۸-د رکوع او سجدې په صحیح طریقه د کولو حکم**

۸۶۸-()[۱] [۱] عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:[۲] " «أَقِيْمُوا الرُّكُوْعَ وَالسُّجُوْدَ[۳] فَوَاللّٰهِ إِنِّي لَأَرَاكُمْ مِنْ بَعْدِي» "،مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] حضرت انس رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل[۲] (مسلمانانو) رکوع او سجده په صحیح طور سره کوئ[۳] په الله مې دې قسم وي زه تاسو د شا څخه هم وينم، (بخاري. مسلم.)

**حل اللغات:-** ① لَأَرَاكُمْ: أَيْ: أَعْلَمُ مَا تَفْعَلُوْنَ خَلْفَ ظَهْرِيْ: یعنی تاسو چه څه کوئ زه پرې خبریږم.

**تسهیلات:-**

**نوټ:-** ددې حدیث تشریح په حدیث نمبر ۷۹۱ په تشریح کښې تیره شوې ده.

[۱] اخرجه البخاری كتاب الاذان باب إيجاب التكبير، وافتتاح الصلاة (رقم-۷۳۲) ومسلم كتاب الصلاة، باب الأمر بتحسين الصلاة وإتمامها والخشوع فيها (رقم-۱۱۰ - ۴۲۵)

۸۶۹– د رکوع او سجدې وغیره مقدار

۸۶۹–(¹)[۲][۱] «وَعَنِ الْبَرَاءِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ:[۲] كَانَ رُكُوعُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسُجُودُهُ وَبَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ، وَإِذَا رَفَعَ مِنَ الرُّكُوعِ -[۳] مَا خَلَا الْقِيَامَ وَالْقُعُودَ- قَرِيبًا مِنَ السَّوَاءِ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] براء ابن عازب رضي الله عنه فرمايي[۲] چه د رسول الله ﷺ رکوع، سجده، د دواړو سجدو په مينځ کې ناسته او د رکوع څخه سر پورته کول[۳] د قيام او قعود څخه علاوه دا [څلور واړه څيزونه په مقدار کې] تقريبًا برابر وو. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:**- ① مَا خَلَا: ماسوا، علاوه، ② قَرِيبًا مِنَ السَّوَاءِ: يعنى تقريبًا برابر به وو (نه به اوږد وو نه به لنډ وو).

**تسهيلات:-**

**قوله:** قَرِيبًا مِنَ السَّوَاءِ:

**د مذکوره جملې مفهوم:**–يعنی نيزدې نيزدې وو بالکل يوشان نه وو. په دې حديث کښې دا بيان کړې شوی دی چه دَ حضورپاک ﷺ په مونځ کښې څلور لوئی ارکان مثلاً رکوع، سجدې، جلسه او قومه ټول به برابر وو.

**قوله:** مَا خَلَا الْقِيَامَ وَالْقُعُودَ:

**دمذکوره جملې مطلب:**–دَدې جملې مطلب دادې چه دَ قيام رکن اودَ قعدې رکن دَ رکوع او سجدې په شان نه وو بلکه په قيام کښې قرأت وی اودَ قعدې او التحيات وئيل وی په دې وجه دا دواړه ارکان دَ باقی ارکان نه اوږده وو.

۸۷۰– د نبی کريم صلى الله عليه وسلم د قومې او جلسې اوږدوالې

۸۷۰–(²)[۳][۱] «وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ:[۲] كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَالَ: "سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ" قَامَ[۳] حَتَّى نَقُولَ: قَدْ أَوْهَمَ،[۴] ثُمَّ يَسْجُدُ وَيَقْعُدُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ[۵] حَتَّى نَقُولَ: قَدْ أَوْهَمَ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[۱] حضرت انس رضي الله عنه فرمايي[۲] چې رسول الله ﷺ چې به سمع الله لمن حمده ويلو سره (د رکوع څخه) ودريدلو[۳] نو تر دومره وخته پورې به ولاړ وو چې مونږ به (په خپل زړه کې) اوويل چې شايد حضور ﷺ ته وهم وشو[۴] اورکعت يي پريښودلو بيا چې به حضور ﷺ سجدې ته لاړلو او د دواړو سجدو په مينځ کې به کيناستلو[۵] نودومره به ناست وو چې

---

(۱) اخرجه البخاری کتاب الاذان باب حد إتمام الركوع والاعتدال فيه والطمأنينة (رقم-۷۹۲) ومسلم كتاب الصلاة باب اعتدال أركان الصلاة وتخفيفها فى تمام (رقم- ۱۹۳ - (۴۷۱) وابوداود كتاب الصلاة،باب طول القيام من الركوع وبين السجدتين (رقم -۸۵۴) والنسائى كتاب التطبيق /بقدر القيام بين الرفع من الركوع والسجود/رقم-۱۰۶۵) (رقم) ۱۰۶۵

(۲) اخرجه البخاری کتاب الاذان باب حد إتمام الركوع والاعتدال فيه والطمأنينة (رقم-۷۹۲) ومسلم كتاب الصلاة باب اعتدال أركان الصلاة وتخفيفها فى تمام (رقم- ۱۹۳ - (۴۷۱) وابوداود كتاب الصلاة،باب طول القيام من الركوع وبين السجدتين (رقم -۸۵۴) والنسائى كتاب التطبيق /بقدر القيام بين الرفع من الركوع والسجود/رقم-۱۰۶۵) (رقم) ۱۰۶۵

مونږ به (په خپل زړه کي) ویل چي شاید حضور ﷺ دا سجده پریښوده. (مسلم.)

**حل اللغات:-** ① قَدْأَوْهَمَ: أَيْ:وَقَعَ فِي وَهْمِ النَّاسِ: خلقوبه دا خیال کولوچه حضورپاك ﷺ ته په مانځه کښې وهم شوې یا ئې څه حصه پریخودې ده.

**تسهیلات:- قوله: قَدْأَوْهَمَ:**

**د قد اوهم په مطلب کښې دوه اقوال:-** ① "اوهم" دَترك په معنی کښې راخی یعنی زمونږ به خیال تیریدلو چه حضورپاك ﷺ دَ مانځه څه حصه پریخودې ده.

② حضورپاك ﷺ به په قومه اوجلسه کښې دومره وخت لګولو چه کتونکی به داخیال کولوچه کیدې شی حضورپاك ﷺ ته په مانځه کښې وهم شوې چه آیا اوس به څه کول وی.

**په قومه اوجلسه کښې د طوالت مقدار:-** علماء لیکلی چه راجح دادی چه حضورپاك ﷺ به دا اوږدوالې په نفلی مونځونوکښې کولو اوکه په فرائض کښې کله اوږدوالې کړې نوهغه په کله کله باندې محمول دې.

### ۸۷-په رکوع اوسجده کښې دعا کول

۸۷-()[۳] [۱]«وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲]كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكْثِرُ أَنْ يَقُولَ فِي رُكُوعِهِ وَسُجُودِهِ: [۳]"سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ رَبَّنَا وَبِحَمْدِكَ، اللّٰهُمَّ اغْفِرْلِي يَتَأَوَّلُ الْقُرْآنَ»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمایي[۲] چې رسول الله ﷺ د قرآن په حکم عمل کولو سره په خپلي رکوع او سجود کې به یې دا دعا ډیره په کثرت سره ویله[۳] سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ رَبَّنَا وَبِحَمْدِكَ اللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ، اي الله ته پاك یې اي زمونږ پروردګاره زه ستا تعریف بیانوم، اي الله ته زما ګناه معاف کړې. (مسلم.)

**حل اللغات:-** ① يُكْثِرُ: د اکثر او زیات تر په معنی کښې دې. ② يَتَأَوَّلُ الْقُرْآنَ: أَيْ يَعْمَلُ مَا أُمِرَبِهِ فِيهِ: عمل به ئې کولو په قرآن باندې (یعنی په فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ باندې).

**تسهیلات:- قوله: يَتَأَوَّلُ الْقُرْآنَ:**

**په مانځه کښې د استغفار ویلو دپاره استنباط:-** یعنی دَ قرآن کریم دَ آیت نه به ئی استدلال کولو ځکه چه په قرآن کریم کښې دَ سورت نصر آیت داسې دې (فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ) نو حضورپاك ﷺ به هم دَدې نه استدلال فرمائیلو لکه څنګه چه په کثرت سره په مونځ کښې ئی دَ الله تعالی حمد فرمائیلو هم دغه شان به ئی ورسره استغفار ملاوولو اوښه استغفار به ئی غوښتلو.

---

(۱) اخرجه البخاری کتاب الاذان باب التسبیح والدعاء فی السجود (رقم-۸۱۷) ومسلم کتاب الصلاة . باب ما یقال فی الرکوع والسجود(رقم) ۲۱۷ - (٤٨٤)

## ۸۷۲- د سجدې او رکوع تسبيح

۸۷۲-()[٥]① وَعَنْهَا «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ فِي رُكُوعِهِ وَسُجُودِهِ:② "سُبُّوحٌ قُدُّوسٌ، رَبُّ الْمَلَائِكَةِ وَالرُّوحِ"» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**① بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي چې رسول الله ﷺ به په خپلې رکوع او په سجده کې دا ويل② سُبُّوحٌ قُدُّوسٌ رَبُّ الْمَلَائِكَةِ وَالرُّوحِ، ډير پاک دې اونهايتي پاک دې د فرشتو او روح (يعني جبرائيل عليه السلام) پروردګار دې (مسلم).

**حل اللغات:-** ① سُبُّوحٌ قُدُّوسٌ: وَهُوَ مِنْ أَبْنِيَةِ الْمُبَالَغَةِ، وَالْمُرَادُ التَّنْزِيهُ: دا دواړه دمبالغه صيغې دی، په دې دواړو لفظونوسره دالله تعالى پاکی بيانول مقصوددی. تکرار د تاکيد دپاره دې يا په يو کښې دالله تعالى دَ ذات پاکی مقصود ده او دويم لفظ کښې دَ صفات پاکی مقصود ده.

② الرُّوحِ: فَالْمُرَادُ جِبْرِيلُ خُصَّ بِالذِّكْرِ تَفْضِيلًا: دَ روح نه مراد حضرت جبرائيل عليه السلام دې ده ته روح څکه ونيلې شوې دې چه دَ کائنات ساه هم ده سره تړلې ده.

**تسهيلات:- قوله: سُبُّوحٌ قُدُّوسٌ:**

**دسبوح او قدوس ضبط:** ملاعلي قاري رحمه الله دَ نهايه ابن اثير په حواله سره فرمائی چه سبوح او قدوس دواړه دَمبالغه صيغې دی اودَ دواړو لفظونو اول حرف مفتوح هم دې اومضموم هم دې اوالبته دَ ضمه او پيش استعمال زيات مشهور دې.

**په سبوح او قدوس کښې د فرق وجوه:-** ① په يوکښې دالله تعالى دَ ذات پاکی مقصود ده او دويم لفظ کښې دَ صفات پاکی مقصود ده. "سبوح" ای انت سبوح انت قدوس، يعنی ته د هرعيب څخه پاک ئې اود هرهغه څيزڅخه منزه ئې چې قبيح اوبد ګڼړلی شی.

② په يولفظ کښې دَماضی مفهوم وی او دويم کښې دَمستقبل وی. مطلب دا چه الله تعالى په هره زمانه کښې دَهرقسم عيب نه پاک دې. "ای طاهر من کل عيب ومنزه عن کل مايستقبح" المرقات: ۲/٥٩۳.

**قوله: رَبُّ الْمَلَائِكَةِ:**

**په کائنات کښې فرمانبردار مخلوق:** علامه ابن حجر رحمه الله فرمائی په کائنات کښې دَټولونه لوئی مخلوق فرښتې دی اودَټولونه زيات حکم منونکې هم فرښتې دی اودَ الله تعالى په عبادت کښې دَټولونه زيات مشغول هم فرښتې دی. په يواثرکښې نقل دی چه هرې هرې پاڼړې او وابنوسره يوه يوه فرښته وی. په يويل اثرکښې دی چه دَ باران هريوڅاڅکی سره يوه يوه فرښته دَ آسمان نه راکوزيږی هريو څاڅکې شميری اودا هم ياد ساتی چه دا څاڅکې چرته پريوځی.

[1] اخرجه مسلم كتاب الصلاة باب ما يقال فى الركوع والسجود(رقم) ۲۲۲۳ - (٤٨٧)وابوداود كتاب الصلاة،باب ما يقول الرجل فى ركوعه وسجوده(رقم-۸۷۲) والنسائى كتاب التطبيق/باب نوع آخر منه (رقم) ١٠٤٨

**دفرښتو د عبادت مختلف کيفيات:**-په يوحديث کښې دي چه بعض داسې فرښتې دي چه دکله نه الله تعالى زمکه اوآسمان جوړ کړي دي هغوی په سجده کښې پرتې دی اودقيامته پورې به دَ سجدې نه سرنه اوچته وی دغه شان بعض فرښتې په رکوع کښې دی چه دَقيامت پورې به په رکوع کښې وی. دغه شان بعض په صف کښې ولاړې دی اود قيامته پورې به هم دغه شان وی. کله چه په قيامت کښې دَالله تجلی پريوځی نودا فرښتې به خپل رب ګوری "سبحانك ماعبدناك كما ينبغی لك"

**قوله: وَالرُّوحِ:**

**د روح په مصداق کښې اقوال:**-① دَ روح نه مراد دَ فرښتو يوخان له قسم دې.
② دَ روح نه مراد دَالله تعالى په دربار کښې يودربان فرښته ده چه دَټولوفرښتونه لويه ده که چرې هغه خله کولاؤکړی نوټولې فرښتې به دَهغې په خله کښې راشی.

**۸۷۳-په رکوع او سجده کښې د قرآن د لوستلو ممانعت**

۸۷۳-()[۱]① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ، قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②«أَلَا إِنِّي نُهِيتُ أَنْ أَقْرَأَ الْقُرْآنَ رَاكِعًا أَوْسَاجِدًا،③ فَأَمَّا الرُّكُوعُ فَعَظِّمُوا فِيهِ الرَّبَّ④ وَأَمَّا السُّجُودُ فَاجْتَهِدُوا فِي الدُّعَاءِ،⑤ فَقَمِنٌ أَنْ يُسْتَجَابَ لَكُمْ» "رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**① ابن عباس رضی الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل② خلقو خبردار شی زه د دې خبرې څخه منع کړې شوې يم چې د رکوع يا سجدې په حالت کې قرآن اووايم③ نو تاسو په رکوع کې دخپل پروردګار لويي بيانوي④ او په سجده کې د دعا پوره پوره کوشش کوي⑤ مناسب دي چې ستاسو د پاره دا دعا قبوله شي. (مسلم.)

**حل اللغات:**- ① فَعَظِّمُوا: أَيْ: فَقُولُوا سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ: د رب تعظيم پکې کوئ يعنی سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ پکښې وايئ. ② فَاجْتَهِدُوا: أَيْ: بَالِغُوا: ښه کوشش او مبالغه کوئ (په دعا غوښتلو کښې).
③ فَقَمِنٌ: أي جَدِيرٌ وَخَلِيقٌ وَلَائِقٌ وَحَقِيقٌ: په قاف فتح اوميم باندې کسره ده. دا دَ لائق او مناسب په معنی کښې دې قمن دَ واحد تثنيه او جمع ټولو دَپاره استعماليږی لائق نيزدې، لازمی، مناسب او مستحق په معنی کښې راځی.

**تسهيلات:- قوله: إِنِّي نُهِيتُ:**

**په نهی کښې دوه احتمالات:**-① دا نهی تنزيهی ده
② دا نهی تحريمی ده. دَ قياس تقاضاهم دغه ده چه دا نهی دې تحريمی وی ځکه چه الله تعالى دَ مانځه دَ ټولو حالتونودَپاره جدا جدا وظيفه مقرر کړې ده. په مانځه کښې قيام دَ

---
[1] اخرجه مسلم كتاب الصلاة باب النهی عن قراءة القرآن فی الركوع والسجود (رقم) ۲۰۷ - (۴۷۹) وابوداود كتاب الصلاة،باب فی الدعاء فی الركوع والسجود (رقم-۸۷۶)

تېولونه بنه حالت دي په دې وجه په دې کښې دَ قرآن پاك لوستلوحکم ورکړې شوې دې ځکه چه قرآن پاك په ټولو ذکرونوکښې دَټولونه اوچت ذکر دې. لهذا دَ الله تعالى دَ دغه منشاء خلاف کول یاحرام دی یا مکروه تحریمی دی.

**په رکوع او سجده کښې د تلاوت د ممانعت وجه:** -الله تعالى دَ رکوع اوسجدې دَپاره اذکار مقررکړی دی نو حضورپاك ﷺ اوفرمائیل چه زه په رکوع اوسجدو کښې دَ قرآن لوستلونه منع کړې شوې یم لهذا په رکوع کښې دَالله تعالى تعظیم بیانوئی او په سجده کښې دعا غوارئی تعظیم سبحان ربی العظیم دې

**د دعا دوه قسمونه:** - ① دَالله تعالى نه دَ الفاظو په ذریعه دَ خپل مطلب دعا اوغوښتلې شي.

② دَ دعا دویم قسم دادې چه دَالله تعالى حمداوثنا او عظمت بیان کړې شی داهم په حقیقت کښې دعا ده ځکه چه دَ سخي او عظمت والاسړی تعریف هغه ورکړه کوی. دغه شان الله تعالى په خپل تعریف خوشحالیږی او بیا دَ خیر زیاتوالي کوی نودَې حمد په ضمن کښې دَ حصول مقصود دَپاره بهترین انداز دعا ده. په یوحدیث کښې دَ دې تشریح تائید کولې شی فرمائی "افضل الذکرلااله الاالله وافضل الدعاالحمدلله" سجده په دواړه قسم دعاګانو باندې مشتمل ده.

**په سجده کښې د دعا غوښتلو مطلب:** او په سجده کښې چه دَ کومې دعا غوښتلو حکم ورکړې شوې دې دَهغې ځخه دواړو قسم دعا مراد ده.

**حدیث په نوافلوباندې حمل کول:** - بعض احناف فرمائی چه په نوافل کښې په سجده کښې بنه دعاغوښتل پکاردی لیکن فرائضو کښې صرف په تسبیحاتو باندې اکتفاء کول پکاردی. (لمعات مختصراً)

### ۸۷۳- دتسمیع ځخه روسته دتحمید ویل

۸۷۳-(۱۷)[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«إِذَا قَالَ الْإِمَامُ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، فَقُولُوا: اللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ، [۳] فَإِنَّهُ مَنْ وَافَقَ قَوْلُهُ قَوْلَ الْمَلَائِكَةِ [۴] غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ» "، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] امام کله چې (د رکوع ځخه ودرېدو سره) سمع الله لمن حمده اووائي نو تاسو رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ وایئ [۳] ځکه چې د کوم

---

(۱) اخرجه البخاری کتاب الاذان باب فضل اللهم ربنا لک الحمد(رقم-۷۹۶) ومسلم کتاب الصلاة ، باب التسمیع، والتحمید، والتأمین (رقم) ۷۱ - (۴۰۹) وابوداود کتاب الصلاة،باب ما یقول إذا رفع رأسه من الرکوع (رقم- ۸۴۸) ومالک فی الموطا کتاب الصلاة باب ما جاء بالتأمین خلف الإمام (رقم-۴۷) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب منه آخر (رقم-۲۶۷) والنسائی کتاب التطبیق/باب قوله ربنا ولک الحمد باب قوله ربنا ولک الحمد (رقم-۱۰۶۳)

سري دا ويل د فرشتو د ويلو سره هم آهنگ (موافق) شي۴ نو د هغه مخکي گناه بخښل کيږي. (بخاري، مسلم.)

**تسهيلات:-**

**قوله: غُفِرَلَهُ مَاتَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ:**

يعنی صغائر به په نيکو سره معاف شي او کبائر به په توبې سره يا دالله تعالی په فضل وکرم سره . معاف کيږی د دې مسئلې پوره تفصيل په اول جلد کښې تير شوې دې.

**نوټ:-** د دې حديث د نورو اجزاء تشريح په حديث نمبر ۸۲۵ کښې تيره شوې ده.

**۸۷۵- د لالديني دعا په نفلو کښې لوستل**

۸۷۵-()[۸]۱ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ۲«كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَفَعَ ظَهْرَهُ مِنَ الرُّكُوعِ قَالَ: "سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، ۳اللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ مِلْءَ السَّمَاوَاتِ وَمِلْءَ الْأَرْضِ، ۴وَمِلْءَ مَا شِئْتَ مِنْ شَيْءٍ بَعْدُ»، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ عبدالله ابن ابي اوفي رضي الله عنه فرمايي۲ چې رسول الله صلی الله عليه وسلم چې به د رکوع څخه پُشت مبارك (شا) پورته کوله نو دا به يې ويل سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ اللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ مِلْأَ السَّمٰوَاتِ وَمِلْأَ الْاَرْضِ وَمِلْأَ مَا شِئْتَ مِنْ شَيْءٍ بَعْدَ، (يعني الله تعالى جل جلاله اوري څوک چې د هغه حمد وثناء وکړي، ۳ اي الله اي زمونږ پروردگاره ټول تعريفونه تالره دي د ټولو آسمانونو او زمکې ۴ او د هغه شي د ډکوالي برابر چې ته يې د آسمانونو او زمکې څخه وروسته پيدا کول غواړي. (مسلم.)

**تسهيلات:-**

**قوله: قَالَ: سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ:**

**د تسميع اوتحميد ويونکي:-** د دې حديث پاك نه معلومه شوه چې تسميع اوتحميد دواړه د امام وظيفه ده.

**د دعا په مطلب کښې دوه اقوال:-** ① اي الله تعالی! ستا دومره تعريفونه دی چې که هغه مجسم وی نو دا به په زمکه او آسمان او د دې نه ماسوا کښې رانشي .

② مطلب دادې چې ستا د حمد کوؤنکو نه زمکه او آسمان ډك دی.

---

(۱) اخرجه مسلم كتاب الصلاة باب ما يقول إذا رفع رأسه من الركوع (رقم- ۲۰۲ - (۴۷۶) وابوداود كتاب الصلاة،باب ما يقول إذا رفع رأسه من الركوع (رقم- ۸۴۶) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها ،باب ما يقول إذا رفع رأسه من الركوع (رقم-۸۷۸)' اخرجه مسلم كتاب الصلاة باب ما يقول إذا رفع رأسه من الركوع (رقم- ۲۰۲ - (۴۷۶) وابوداود كتاب الصلاة،باب ما يقول إذا رفع رأسه من الركوع (رقم- ۸۴۶) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها ،باب ما يقول إذا رفع رأسه من الركوع (رقم-۸۷۸)

## ۸۷۶–د رکوع څخه روسته د الله تعالی حمد لوستل

۸۷۶–()[۹][۱]وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲]«كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ قَالَ: [۳]" اللَّهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ، مِلْءَ السَّمَاوَاتِ وَمِلْءَ الْأَرْضِ، [۴]وَمِلْءَ مَا شِئْتَ مِنْ شَيْءٍ بَعْدُ، [۵]أَهْلَ الثَّنَاءِ وَالْمَجْدِ، [۶]أَحَقُّ مَا قَالَ الْعَبْدُ وَكُلُّنَا لَكَ عَبْدٌ: [۷]اللَّهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ، [۸]وَلَا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ، [۹]وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[۱] ابو سعيد خدري رضي الله عنه فرمايي[۲] چې رسول الله ﷺ چې به کله د رکوع څخه سر مبارك اوچتولو نو دا کلمات به يي ويل[۳] اللَّهُمَّ رَبَّنَا.... مِنْكَ الْجَدُّ (اي الله او اي زمونږ پروردګاره ټول تعريفونه ستا د پاره دي په اندازه دډکوالي دآسمانونو او زمکي[۴]او د هغه شي برابر چې ته يي بيا (د آسمانونو او زمکي څخه وروسته پيدا کول) غواړي[۵] اي د هر قسم تعريف او بزرګي لائقه[۶] (ستا ذات) د هغه تعريف څخه بالاتر دي چې بنده يي کوي مونږ ټول ستا بندګان يو[۷] اي الله تعالى جَلَّ جَلَالُهُ تا چې کوم شي عطا کړي دي هغه څوك بندولي نشي[۸] او کوم شي چې تا د ورکولو څخه بند کړي دي هغه څوك ورکولي نشي[۹] او دولتمند ته دولتمندي ستا د عذاب څخه هيڅ نفع نشي ورکولي (يعني د عذاب څخه يي نشي بچ کولي). (مسلم.)

**حل اللغات:-** ① أَهْلَ الثَّنَاءِ: اي د هر قسم تعريف لائقه. ② الْمَجْدِ: أَي: الْعَظَمَةِ أَوِ الْكَرَمِ: لوئی او بزرګی.

**تسهيلات:-**

**قوله:** أَهْلَ الثَّنَاءِ:

**د مذکوره جملې نحوی ترکيب:-** دا منصوب على المدح دي. "اي امدح اهل الثناء" يا مرفوع دي. "اى انت اهل الثناء؟ "احق ماقال العبد" دا منصوب دي مفعول به دي. د "ولاينفع" د پاره فاعل.

**قوله:** "الْجَدُّ"

**د جد په معنی کښې څلور اقوال:-**

① جد قسمت او بخت ته هم وائی. ② جد نيکه ته هم وائی

③ محنت اومشقت ته هم وائی. ④ جد رزق اودولت ته هم وائی. دامعنی دلته ډيره مناسب ده.

**نوټ:-** دَدې حديث تشريح په حديث نمبر ۸۷۵ او ۸۷۶ کښې تيره شوې ده.

---

[۱] اخرجه مسلم كتاب الصلاة باب ما يقول إذا رفع رأسه من الركوع (رقم) ۲۰۵ - (۴۷۷) وابوداود كتاب الصلاة باب ما يقول إذا رفع رأسه من الركوع (رقم- ۸۴۷) والنسائی كتاب التطبيق /بقدر القيام بين الرفع من الركوع والسجود (رقم) ۱۰۶۸

## ۸۷۷-د رکوع څخه وروسته تسبيح وليل

۸۷۷-()[۱۰] ① وَعَنْ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «كُنَّا نُصَلِّي وَرَاءَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرَّكْعَةِ، قَالَ: "سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ": ③ فَقَالَ رَجُلٌ وَرَاءَهُ: رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ، ④ حَمْدًا كَثِيرًا طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيهِ ⑤ فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ: "مَنِ الْمُتَكَلِّمُ آنِفًا"، قَالَ: أَنَا ⑥ قَالَ: "رَأَيْتُ بِضْعَةً وَثَلَاثِينَ مَلَكًا يَبْتَدِرُونَهَا، ⑦ أَيُّهُمْ يَكْتُبُهَا أَوَّلُ» رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① رفاعه ابن رافع رضي الله عنه فرمايي ② چې مونږ به رسول الله ﷺ پسې مونځ کولو کله چې به حضور ﷺ د رکوع څخه سر مبارك پورته کولو نو سمع الله لمن حمده (يعني الله تعالى د هغه سړي حمد او ثنا قبوله کړه چا چې د هغه حمد او ثنا وکړه) به يې ويله ③ يوه ورځ چې حضور ﷺ د رکوع څخه سر مبارك پور ته کولو سره دا کلمات او ويل نو يو سړي چې به حضور ﷺ پسې وروسته مونځ کولو وي ويل ربنا ولك الحمد حمدًا كثيرًا طيبًا مباركًا فيه (يعني اي زمونږ پروردګاره تا لره تعريف ④ او ډير تعريف دي داسې تعريف چې د شرك او ريا د ملاوټ څخه پاك او (د کثرت اخلاص او حضور قلب په وجه) بابرکت دي) ⑤ حضور ﷺ چې د لمانځه څخه فارغه شو نو وي فرمايل چې اوس (دا کلمات) چا وويل؟ هغه سړي عرض وکړو دالله رسوله زه ووم ⑥ حضور ﷺ ورته وفرمايل ما څه دپاسه ديرش فرشتې وليدلې چې په خپلو کې يې په دې خبره کې تلوار کولو ⑦ چې د دې کلماتو ثواب مخکې څوك وليکي. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① طَيِّبًا: أَيْ: خَالِصًا مُنَزَّهًا عَنِ النُّقْصَانِ: دهر قسم عيب او نقص نه پاك، ② آنِفًا: يَعْنِي الْآنَ: اوس، نږدې، ③ بِضْعَةً: وَهِيَ مِنَ الثَّلَاثَةِ إِلَى التِّسْعَةِ: د دريو نه نهو پورې شمير ته وائي. ④ بِضْعَةً وَثَلَاثِينَ: يعنى څه دپاسه ديرش، ⑤ يَبْتَدِرُونَهَا: أَيْ: يُسَارِعُونَ يَعْنِي يَسْبِقُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا: جلتي ني کوله د يو بل نه مخکښې کيدل (چه دا کلمات اوليکي).

**تسهيلات:-**

**قوله:** مَنِ الْمُتَكَلِّمُ آنِفًا:

**اشکال:**-د دې حديث پاك نه معلوم شو چې په مونځ کښې داسې دعاګانې په اوچت آواز سره کول جائز دي؟

**داشکال جوابونه:-** ① د نبی کريم ﷺ په يوه موقع يوکار ته حسن وئيل بله خبره ده او دا هميشه په اوچت آواز سره لوستل بله خبره ده. نبی کريم ﷺ به د يو امر د تحسين حکم کولو او بيا به يې روستو ددې نه منع کوله. د نبی کريم ﷺ يو صحابی رضی الله عنه ليدل چې په

(۱) بخاری کتاب الاذان باب فضل اللهم ربنا لک الحمد (رقم-۷۹۹) وابوداود کتاب الصلاة،باب ما يستفتح به الصلاة من الدعاء (رقم-۷۷۰) والنسائی کتاب التطبيق/باب ما يقول المأموم (رقم- ۱۰۶۲)

رکوع کښې مونځ کښې شامل شو هغه ته نبی کریم ارشاد اوفرمائیل : زادك الله حرصاً ولا تعد، دې کښې يې تعريف هم اوکړو او منع يې هم اوفرمائيله.

۲ دا په بتداء اسلام باندې محمول دی،کله چې په مونځ کښې ددې امورو گنجائش وو. باقی اوړدې دعاگانې وئيل په نوافلو کښې مشروع دی، فرائضو کښې خکه نه دی چې فرائضو کښې اختصار او آسانی مطلوب وی.

**قوله:** رَأَيْتُ بِضْعَةً وَثَلَاثِينَ مَلَكًا يَبْتَدِرُونَهَا:

**تعارض:**- ماقبل روايت کښې د دولسو فرښتو ذکر دې او دلته د ديرشو فرښتو ذکر دې؟

**د تعارض درې جوابونه:-** ۱ دا په مختلفو اوقاتو محمول دی.

۲ د هغه صحابی رضی الله عنه مقام ډير اوچت وو نو ډيرې فرښتې راغلې.

۳ عدد اقل دعدد ا کثر نفی نه کوی

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### ۸۷۸- د تعديل اركان حكم

۸۷۸-()[۱۱]۱عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:۲ "«لَا تُجْزِءُ صَلَاةُ الرَّجُلِ حَتَّى يُقِيمَ ظَهْرَهُ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ،۳ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:**۱ ابو مسعود انصاري رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل۲ د يو سړي مونځ تر هغه پورې نه قبليږي تر څو پورې چې هغه په رکوع او سجده کې خپله ملا (شا) سيده نه کړي، (ابوداؤد، ترمذي، نسايي، ابن ماجه، دارمي)۳ او امام ترمذي رحمه الله فرمايلي دي چه دا حديث حسن صحيح دي.

**تسهيلات:-**

**قوله:** يُقِيمَ ظَهْرَهُ فِي الرُّكُوعِ:

**د قومې او جلسې حكم:** كله چه دَ ركوع نه واپس قومه كښې دَمونځ گذار ملا نيغه شوې نه وی دَهغه مونځ جائزنه دې. دغه شان كله چه دَ سجدې نه پاسی جلسه كښې ملانيغه نه شی اواطمينان اوتسلی رانه شی مونځ به نه صحيح كيږی. په دې حديث كښې دَ تعديل اركان طرف ته اشاره ده. دا مسئله اول ليكلې شوې ده.

**دتعديل اركان په حكم كښې اختلاف:-**۱ جمهوردَي د فرض كيدو قائل دی.

---

[۱] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب صلاة من لا يقيم صلبه فى الركوع والسجود(رقم-۸۵۵) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها ،باب الركوع فى الصلاة (رقم- ۸۷۰) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فيمن لا يقيم صلبه فى الركوع والسجود (رقم-۲۶۵) والنسائى كتاب الافتتاح/باب إقامة الصلب فى الركوع (رقم) ۱۰۲۷

④ امام ابوحنيفه رحمه الله دا واجب منی. ځکه چه دَ فرض دَپاره دَ دليل قطعی ضرورت وی کوم چه دلته موجودنه دي. اودَ وجوب دَپاره دا حديث دليل دي دکوم چه احناف قائل دی.

### ۸۷۹- د رکوع او سجدي تسبيحات

۸۷۹-(۱)[۱۲] ① وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «لَمَّا نَزَلَتْ ﴿فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ﴾ [الواقعة: ۷۴]، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اجْعَلُوهَا فِي رُكُوعِكُمْ"، ③ فَلَمَّا نَزَلَتْ ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى﴾ [الأعلى: ۱] ④ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اجْعَلُوهَا فِي سُجُودِكُمْ"» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① عقبه ابن عامر رضي الله عنه فرمايي ② چې کوم وخت چې دا آيت فسبح باسم ربك العظيم نازل شو نو رسول الله ﷺ وفرمايل تاسو خلق دا (د سبحان ربي العظيم په صورت کي) په خپلو رکوع کې شامل کړئ ③ او کله چې دا آيت سبح اسم ربك الاعلى نازل شو ④ نو حضور ﷺ وفرمايل چې دا (د سبحان ربي الاعلى په صورت کي) په خپلو سجدو کې داخل کړي، (ابوداؤد، ابن ماجه، دارمي.)

**تسهيلات:- توله:** لَمَّا نَزَلَتْ:

**د سجدې او رکوع د تسبيحاتو تعيين:-** حاصل دحديث دادی چې ((کله فسبح باسم ربك العظيم)) نازل شو نو ددې د نزول نه پس ((سبحان ربي العظيم)) درکوع تسبيح متعين کړې شو. او د سبح اسم ربك الاعلى د نزول نه پس د سجدې تسبيح سبحان ربي الاعلى متعين کړې شو.

**توله:** اجْعَلُوهَا:

**د رکوع و سجدې د تسبيحاتو تعيين:-** يعنی ددې آيت مبارك نه چې کوم تسبيح معلوم شو هغه په خپله رکوع او سجده کښې وائي.

**د رکوع او سجدې په تسبيحاتو کښې حکمت:-** باقی په دې کښې څه حکمت دې چې د رکوع په تسبيح کښې سبحان ربي العظيم او د سجدې په تسبيح کښې ((سبحان ربي الاعلى)) دی. دا حکمت غالبا په احياء العلوم کښې ليکلې شوې دې. هغه دا چې دقيام په دوران کښې زړه کښې عجز وی ليکن حسی طور چې کله رکوع ته بنده لاړ شی نو ددې حسی تنصيب اوشو او عجز راغلو، په دې وجه رکوع کښې يئ دا اووئيل چې ((سبحان ربي العظيم)) يعنی دالله تعالى د عظمت اقرار يئ اوکړو. او کله چې سجدې ته لاړو نو ډيره عاجزی او انکساری راغله او حسی طور سره هم عجز راغلو. په دې وجه سجده کښې يئ اووئيل چې سبحان ربي الاعلى،

---

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة، باب ما يقول الرجل في ركوعه وسجوده، (رقم-۸۶۹) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها، باب التسبيح في الركوع والسجود (رقم- ۸۸۷)

۸۸۰-په رکوع او سجده کښې د تسبیحاتو کم تعداد

۸۸۰-(۱)[۱۳] ① وَعَنْ عَوْنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "إِذَا رَكَعَ أَحَدُكُمْ فَقَالَ فِي رُكُوعِهِ: سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ، ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، ③ فَقَدْ تَمَّ رُكُوعُهُ، وَذٰلِكَ أَدْنَاهُ، ④ وَإِذَا سَجَدَ، فَقَالَ فِي سُجُودِهِ: سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى، ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، ⑤ فَقَدْ تَمَّ سُجُودُهُ، وَذٰلِكَ أَدْنَاهُ» "، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ، ⑥ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ، ⑦ لِأَنَّ عَوْنًا لَمْ يَلْقَ ابْنَ مَسْعُودٍ.

**ترجمه:** ① عون ابن عبدالله د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② هر کله چې په تاسو کې څوك رکوع کوي نو هغه لره په رکوع کې سبحان ربي العظیم درې ځله ویل پکار دي ③ د هغه رکوع به پوره شي او دا ادنى درجه ده ④ او هر کله چې په تاسو کې څوك سجده کوي نو هغه لره په سجده کې درې ځله سبحان ربي الاعلى ویل پکار دي ⑤ د هغه سجده به پوره شي او دا ادنى درجه ده، (ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجه) ⑥ او ترمذي ویلي دي چه د دې روایت سند متصل نه دي ⑦ ځکه چې د عون ملاقات د ابن مسعود رضي الله عنه سره ثابت نه دي.

**حل اللغات:-** ① تَمَّ رُكُوعُهُ: أَيْ: كَمُلَ: کامله او پوره به شي.

② أَدْنَاهُ: أَيْ: أَدْنَى تَمَامِ رُكُوعِهِ: دا د رکوع د کامل کیدو او پوره والی ادنى درجه ده.

**تسهیلات:-**

**قوله: وَذٰلِكَ أَدْنَاهُ:**

**دادنى مصداق:-** په رکوع او سجده کښې تسبیحات سنت دی مګر دَدې تعداد څومره دې په دې حدیث کښې تعیین کړې شوې دې. درې ځل تسبیحات ونیل ادنى خودلې شوی دی. علماؤ لیکلی دی چه دَ ادنى نه مراد دَسنت ادنى درجه کمال دې یعنی دَدریو نه کم ناقص دی درې کمال دې. ادنى درجه دکمال ورته ځکه اوونیلې شو چه نفس سنت خو په یوځل ونیلو سره ادا کیږی اوسط درجه سنت پنځه ځل ونیل دی او اعلى درجه اووه ځل ونیل دی اودَ زیاتو ونیلو څه حد نشته دې. طاق عدد بهتر دې یولسو پورې تلل پکار دی لیکن دَ امام دَمقتدیانو خیال ساتل ضروری دی او خان له مونځ ګذار آزاد دې.

۸۸۱-د رحمت او عذاب د آیتونو لوستلو په وخت مسنون عمل

۸۸۱-(۲)[۱۴] ① وَعَنْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، «أَنَّهُ صَلَّى مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ② فَكَانَ يَقُولُ فِي

(۱) اخر جه ابوداود كتاب الصلاة،باب مقدار الركوع والسجود (رقم-۸۸۶) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى التسبيح فى الركوع والسجود (رقم- ۲۶۱)

(۲) اخر جه الترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب ما جاء فى التسبيح فى الركوع والسجود (رقم- ۲۶۲) وابوداود كتاب الصلاة،باب ما يقول الرجل فى ركوعه وسجوده(رقم-۸۷۱) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها ،باب التسبيح فى الركوع والسجود (رقم- ۸۸۸) والنسائى كتاب التطبيق/باب الذكر فى الركوع (رقم- ۱۰۴۶)

رُكُوعِهِ: " سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ "؛[٣] وَفِي سُجُودِهِ: " سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى "[٤] وَمَا أَتَى عَلَى آيَةِ رَحْمَةٍ إِلَّا وَقَفَ وَسَأَلَ،[٥] وَمَا أَتَى عَلَى آيَةِ عَذَابٍ إِلَّا وَقَفَ وَتَعَوَّذَ»، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ،[٦] وَرَوَى النَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ إِلَى قَوْلِهِ " الْأَعْلَى "[٧] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:**[١] حضرن حذيفه رضي الله عنه راوي دي چې ما د رسول الله ﷺ سره مونځ وکړو[٢] حضور ﷺ په رکوع کې سبحان ربي العظيم[٣] او په سجده کښې سبحان ربي الاعلى ويل[٤] او کله چې به حضور ﷺ (په قراءت کې) يو آيت د رحمت ته ورسيدي نو هلته به ودريدلو او د طلب رحمت دعا به يې کوله[٥] او کله چې به د يو عذاب ايت ته ورسيدو نو هلته به ودريدلو د عذاب څخه به يې پناه غوښتله، (ترمذي، ابوداؤد، دارمي)[٦] د نسايي او ابن ماجه دا روايت تر سبحان ربي الاعلى پورې نقل کړي دي[٧] او ترمذي ويلي دي چې دا حديث حسن صحيح دي.

**حل اللغات:**- ① وَقَفَ: اودريدلو به، ② سَأَلَ: أَيْ رَحْمَةً: د رحمت دعا به نې غوښتله. ③ تَعَوَّذَ: أَيْ: بِاللَّهِ مِنْ عَذَابِهِ: دالله تعالى نه به ئې دهغه دعذاب سخه پناه غوښتله.

**تسهيلات:**-

**د اضافي دعاګانو کولو جوازمحل:** -دَ رحمت او عذاب په آيت باندې اودريدل اوتوجو کول او دعااواستغفارکول په نوافل کښې پکاردی يعنی دَ احنافو اومالکيه په نيز دغه شان اودريدل او دعاغوښتل نفلونو کښې جائز دی فرضوکښې جائز نه دی. اوکه حضورپاك ﷺ دَ جوازدَبيان دَپاره کړې وی نوهغه جدا خبره ده چه په محتاط اندازکښې په فرضوکښې جائزدی.

**په صاحب مشكاة باندې تعريض:** -شيخ جزری رحمة الله عليه ليکلی دی چې دا حديث مسلم رحمة الله عليه هم نقل کړی دي، لهذا مؤلف د مشکوة ته پکار وو چې دا حديث مبارك يې د دويم فصل په ځائې په اول فصل کښې نقل کړې وې.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### ۸۸۲-د نبی کريم ﷺ اوږده رکوع کول

۸۸۲-(¹)[١٥][١] عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [٢] «قُمْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا رَكَعَ مَكَثَ قَدْرَ سُورَةِ (الْبَقَرَةِ): [٣] وَيَقُولُ فِي رُكُوعِهِ: " سُبْحَانَ ذِي الْجَبَرُوتِ وَالْمَلَكُوتِ وَالْكِبْرِيَاءِ وَالْعَظَمَةِ» "، (رَوَاهُ النَّسَائِيُّ).

**ترجمه:**[١] حضرت عوف ابن مالك رضي الله عنه فرمايي[٢] چې ما د رسول الله ﷺ سره مونځ وکړو نو کوم وخت چې حضور ﷺ رکوع ته لاړلو نو د سورة بقره (ويلو) په قدر ودريدلو[٣]

(¹) اخرجه النسائي كتاب التطبيق/باب نوع آخر من الذكر في الركوع (رقم-١٠٤٩) والنسائي كتاب التطبيق/باب عدد التسبيح في السجود (رقم-١١٣٥)

او په رکوع کې) دا يې ويل، سُبْحَانَ ذِي الْجَبَرُوْتِ وَالْمَلَكُوْتِ وَالْكِبْرِيَاءِ وَالْعَظَمَةِ، د قهر او بادشاهت او لويي او بزرګي مالك (الله تعالی جل جلاله) پاک دي. (نسايي)

**حل اللغات:-** ① مَكَثَ: أَيْ لَبِثَ: ايساريدلو به، ② الْجَبَرُوتِ: بِمَعْنَى الْقَهْرِ وَالْغَلَبَةِ: د قهر او غلبې والا، يعني زور آور. ③ الْمَلَكُوتِ: د بادشاهۍ مالک، ④ الْكِبْرِيَاءِ: د لويۍ او بزرګۍ والا، ⑤ الْعَظَمَةِ: لوئی شان والا.

**تسهيلات:-**

**قوله:** مَكَثَ قَدْرَ سُورَةٍ:

**د مذکوره مونځ په مصداق کښې اقوال:-** ① خينو وئيلی دی چې د نفلو مونځ وو.

② خينو وئيلی دی چې د تهجدو مونځ وو.

③ خينو وئيلی دی چې صلوة خسوف وو ،او په هغې کښې نبی کريم صلی الله عليه وسلم ته جنت او جهنم اوخودلې شو،

**قوله:** فَلَمَّا رَكَعَ مَكَثَ:

**درکوع ګانو په تعداد کښې داختلاف وجه:-** د اوږدې رکوع په وجه خينې خلق په شك کښې شو، خکه چې خينې خلق د رکوع نه پورته شو او وې کتل نو نبی کريم صلی الله عليه وسلم هم په رکوع کښې وو، نو هغوئ دوباره رکوع ته لاړل. د ړومبی صف والو دوئ اوکتل او وې وئيل چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم دوه رکوع ګانې اوکړې. حالانکه هم يوه رکوع وه. ددې تفصيل به انشاء الله په باب الکسوف والخسوف کښې راشی.

**د رکوع نه مراد:-** ابن حجر رحمة الله عليه فرمائی چې رکوع ئې اوونيله خو ددې نه مونځ يا قيام مراد دې. لکه څنګه چې په خينو مقاماتو کښې د رکوع يا سجدې ذکر کولو نه مراد مونځ وی. داشان دلته هم دی چې رکوع ئې وئيلې ده خو ددې نه مراد ئې قيام اخستې دې. يعنی جزء ئې اوونيلو او کل ئې ترې مراد واخستو.

**قوله:** ذِي الْجَبَرُوتِ وَالْمَلَكُوتِ:

**په جبروت اوملکوت کښې فرق:-** داشان دې حديث پاك کښې جبروت اوملکوت دواړه د مبالغې صيغې دی. جبروت د جبر نه په معنی هر غالب باندې غالب، ملکوت ،ملك نه په معنی دقبضه ،ظاهری قبضې ته ملك او باطنی قبضې ته ملکوت وائی. الله تعالی زمونږ د بدن هم مالك دې او زمونږ د روح هم. ددې وجې مخلوق دپاره عطاء ملك ثابت دی ملکوت نه.

### ۸۸۳—په رکوع او سجده کښې تسبيحات وئيل

۸۸۳—(۱)[۱۲] وَعَنِ ابْنِ جُبَيْرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يَقُولُ: ۲ مَا صَلَّيْتُ وَرَاءَ أَحَدٍ بَعْدَ

(1) وابوداود كتاب الصلاة،باب ما يقول الرجل في ركوعه وسجوده،(رقم-۸۷۳)

رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشْبَهَ صَلَاةً بِصَلَاةِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ هٰذَا الْفَتَى - يَعْنِي عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ -[۲] قَالَ: قَالَ: فَحَزَرْنَا رُكُوعَهُ عَشْرَ تَسْبِيحَاتٍ، وَسُجُودَهُ عَشْرَ تَسْبِيحَاتٍ، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:**[۱] ابن جبير رحمه الله وايي چې ما د انس بن مالك رضي الله عنه څخه واوريدل[۲] چې ما د حضور ﷺ د وفات څخه وروسته د دې زلمي يعنى عمر بن عبدالعزيز څخه علاوه په چا پسې داسې مونځ نه دي كړي چې د حضور ﷺ د لمانځه سره زيات مشابه وي[۳] راوي وايي چه انس رضي الله عنه وفرمايل مونږ د دوي (يعني د حضور ﷺ يا عمر بن عبدالعزيز رحمه الله) ركوع د لسو تسبيحاتو په قدر او سجده د لسو تسبيحاتو په قدر اندازه كړه، (ابوداؤد، نسايي)

**حل اللغات:**- ① أَشْبَهَ: زيات مشابه يعنى يوشان، ② الْفَتَى: ځوان، ځلمې يعنى عمربن عبدالعزيز، ③ فَحَزَرْنَا: أَيْ: قَدَرْنَا: د نصر ينصر نه، قياس كولو او اندازه لگولو ته وائي.

**تسهيلات:**-

**قوله:** بَعْدَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**د عمر بن عبد العزيز د مونځ د نبي عليه السلام مونځ سره مشابهت:**-دنبى اكرم ﷺ د وفات نه پس عمر بن عبدالعزيز رحمة الله عليه مونځ د تابعينو په نسبت درسول اكرم ﷺ مونځ سره زيات مشابه وو. ددې مطلب دا بالكل نه دې چې گنې د عمر بن عبدالعزيز رحمة الله عليه مونځ د صحابه كرامو او خلفاء راشدينو نه زيات بهتر وو. دا ځنگه كيديشى چې پخپله د حضرت انس ﷺ مونځ د نبى كريم ﷺ سره مشابه نه وى. په دې وجه د قال فاعل ځوك بل ځوك راوى دې او د دويم قال فاعل حضرت سعيد دې يعنى حضرت انس ﷺ دهغه د مونځ تعريف اوكړو. نو حضرت سعيد فرمائى چې مونږ دهغه د مونځ اندازه اولگوله

**اشكال:**- مستحب خو طاق تسبيحات دى دلته خو لس (جفت) ذكر شوى دى؟

**دااشكال جواب:**- دا د دوى خپله اندازه ده، گنى د هغوئ تسبيح نهه يا يوولس نوافل وو.

**۸۸٤- ركوع او سجده په ښه طريقه ادا كول**

۸۸٤-()[۱۷]⑴ وَعَنْ شَقِيقٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ:[۲] إِنَّ حُذَيْفَةَ رَأَى رَجُلًا لَا يُتِمُّ رُكُوعَهُ وَلَا سُجُودَهُ،[۳] فَلَمَّا قَضَى صَلَاتَهُ دَعَاهُ،[۴] فَقَالَ لَهُ حُذَيْفَةُ: مَا صَلَّيْتَ،[۵] قَالَ: وَأَحْسَبُهُ قَالَ: وَلَوْ مِتَّ مِتَّ عَلَى غَيْرِ الْفِطْرَةِ[٦] الَّتِي فَطَرَ اللّٰهُ مُحَمَّدًا، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:**[۱] شقيق فرمايي[۲] چې حضرت حذيفه رضي الله عنه يو سړي وليدلو چې هغه (په لمانځه كې) ركوع او سجده پوره نه ادا كوله[۳] كوم وخت چې هغه مونځ وكړو نو حذيفه رضي الله عنه

⑴ اخرجه البخارى كتاب الاذان باب: متى يحل المعتمر (رقم-۷۹۱)

راوغوښتلو۴ او ورته یې اوویل تا په پوره طور سره مونځ ونه اوکړو۵ شقیق وایي چه زما گمان دا دی چې حذیفه رضی الله عنه هغه سړي ته دا هم اوویل که ته (د داسې لمانځه څخه د توبې کولو نه بغیر) مړ شې نو ته به په غیر اسلامي فطرت باندې (یعني د طریقهٔ اسلام خلاف) مړ شې۶ په کوم چې الله تعالیٰ جل جلاله حضرت محمد ﷺ پیدا کړي دي. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① الفِطْرَةِ: أَيْ: الطَّرِيقَةِ أَوِ السُّنَّةِ أَوِ المِلَّةِ: یعنی طریقه، سنت او دین.

**تسهیلات:-**

**توله:** فَقَالَ لَهُ حُذَيْفَةُ: مَا صَلَّيْتَ:

**د امام شافعی مستدل:-** دا حدیث د تعدیل ارکان په مسئله کښې د امام شافعی دلیل دی. ځکه چې په دې کښې ځومره سخت وعید ذکر شوې دې که تعدیل د ارکانو فرض نه وې نو ولې به ئې دومره سخت وعید بیانولو. د دې جواب دا دې چې دا حضرت حذیفه رضی الله عنه اجتهاد دې د نبی کریم ﷺ تقریر په دې باندې نشته.

**نوټ:-** د تعدیل ارکان تفصیلی بحث په بل ځائې کښې تیرشوې دې.

## ۸۸۵–د مانځه څخه غلا کول

۸۸۵–()[۱۸] ۱ وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ أَسْوَأُ النَّاسِ سَرِقَةً الَّذِي يَسْرِقُ مِنْ صَلَاتِهِ" ۳ قَالُوا: يَا رَسُولَ؟ وَكَيْفَ يَسْرِقُ مِنْ صَلَاتِهِ؟ ۴ قَالَ: لَا يُتِمُّ رُكُوعَهَا وَلَا سُجُودَهَا»، رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ۱ ابو قتاده رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ د غلا کولو په اعتبارسره د ټولو څخه لوي غل هغه دې چې په خپل لمانځه کې غلا کوي ۳ صحابه و رضی الله عنهم عرض وکړو چې یا رسول الله (ﷺ) د لمانځه غلا څنګه وي؟ ۴ حضور ﷺ ورته وفرمایل رکوع او سجده پوره نه ادا کول. (احمد)

**حل اللغات:-** ① أَسْوَأُ: أَيْ: أَقْبَحُهُمْ: ډیر بد، ډیر ناخوښه. ② سَرِقَةً: أَخْذُ مَا لَيْسَ لَهُ أَخْذُهُ فِي خَفَاءٍ: د یو داسې څیز په پټه باندې اخستل چه دهغې ده ته دا خستلو حق نه وی دې ته سرقه وائی. یعنی غلا کول.

**تسهیلات:-**

**توله:** أَسْوَأُ النَّاسِ:

**د مانځه غل:-** یعنی بدترین غل هغه انسان دې چه دَ مانځه دَارکان نه غلا کوی اوتعدیل دَ ارکان په ځائی نه ساتی. دې سړی ته ځکه بدترین غل اوونیلې شو چه دا خساره دآخرت دَ همیشه خساره ده. دَدنیا خساره پوره کیدې شی چه دَمالك نه معافی اوغواړی یا دَشرعی قانون مطابق په ده باندې شرعی حد اولګی لاس ترې پرې کړی اودَ آخرت دَ سزا نه بچ شی

[1] اخرجه احمد فی المسند رقم(۵/۳۱۰) والدارمی کتاب الصلاة /باب فی الذی لا یتم الرکوع والسجود (رقم-۱۳۶۷)

ليکن د مانځه غل داسې غل دې د چا د غلا ازاله کول چه ممکن نه دی. دا سړې خپل حق پخپله وهی اود دې په بدله کښې د آخرت عذاب اخلی دا ښکاره خساره ده.

### ۸۸۱– دمانځه څخه غلا کول

۸۸۱–()[۱۹][۱]وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ مُرَّةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [۲] "مَا تَرَوْنَ فِي الشَّارِبِ وَالزَّانِي وَالسَّارِقِ؟ [۳]" - وَذَٰلِكَ قَبْلَ أَنْ تنزلَ فِيهِمُ الْحُدُودُ - [۴] قَالُوا: اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، [۵] قَالَ: "هُنَّ فَوَاحِشُ وَفِيهِنَّ عُقُوبَةٌ، [۶] وَأَسْوَأُ السَّرِقَةِ الَّذِي يَسْرِقُ مِنْ صَلَاتِهِ" [۷] قَالُوا: وَكَيْفَ يَسْرِقُ مِنْ صَلَاتِهِ يَا رَسُولَ اللّٰهِ؟ [۸] قَالَ: "لَا يُتِمُّ رُكُوعَهَا وَلَا سُجُودَهَا»". رَوَاهُ مَالِكٌ، وَرَوَى الدَّارِمِيُّ نَحْوَهُ.

**ترجمه:** [۱] نعمان ابن مره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ (صحابه رضي الله عنهم مخاطب کولو سره) وفرمايل [۲] د شرابيانو، زناکارو او غلا کونکو په باره کې ستاسو څه خيال دي (چې هغوې څومره قدر ګنهګاره دي)؟ [۳] حضور ﷺ دا پوښتنه د حدود دنازليدو څخه مخکې کړي وه [۴] صحابه و رضي الله عنهم عرض وکړو يا رسول الله ﷺ الله تعالى جل جلاله او رسول ښه پوهيږي، [۵] رسول الله ﷺ وفرمايل دا ګناه کبيره دي چې د هغې سزا هم شته [۶] او بدترينه غلا هغه غلا ده چې انسان يې په خپل لمانځه کې کوي [۷] صحابه و رضي الله عنهم عرض وکړو يا رسول الله ﷺ انسان په خپل لمانځه کې غلا څنګه کوي؟ [۸] وي فرمايل چې رکوع او سجده په پوره طور سره نه ادا کوي. (مالك، دارمي)

**حل اللغات:**- ① الشَّارِبِ: أَيْ: لِلْخَمْرِ: څکونکي د شرابو، ② الْحُدُودُ: شرعی سزا ګانې، ) فَوَاحِشُ: أَيْ: ذُنُوبٌ كَبَائِرُ: غټې ګناهونه، ③ عُقُوبَةٌ: سزاګانې او عذابونه.

**تسهيلات:- نوټ:**– دې حديث سره متعلق تسهيل د باب په اول کښې ذکرشوې دې.

## [۳۱/۱۴] بَابُ السُّجُودِ وَفَضْلِهِ

### د سجدې کيفيت اوفضيلت

**خلاصة الباب:-**

**فيه تسعة عشر حديثاً مشتملة على سبع مسائل:**

① أعضاء السجود السبعة: ۱-

② تعديل السجود: ۲، ۳، ۴، ۵، ۱۶، ۱۸-

③ التسبيحات في السجود: ۶، ۷-

④ فضيلة السجود: ۸، ۹، ۱۰، ۱۱-

⑤ كيفية السجود: ۱۲، ۱۳، ۱۹-

⑥ الذكر بين السجدتين: ۱۴، ۱۵-

⑦ كيفية الجلسة بين السجدتين: ۱۷-

[۱] اخرجه مالک في الموطا کتاب قصر الصلاة في السفر، باب العمل في جامع الصلاة (رقم- ۷۲)

**د سجدې لغوي او شرعي معنی:** په لغت کښې سجده دَ عاجزئی دَ ښکاره کولو اوسرټیټولوته وائی. په شرعی اصطلاح کښې سجده "وضع الوجه علی الارض علی طریق مخصوص" نوم دې.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## ۸۸۷- په اووه اندامونو سجده کول

۸۸۷-()[۱] عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ:[۲] «اُمِرْتُ أَنْ أَسْجُدَ عَلٰی سَبْعَةِ أَعْظُمٍ:[۳] الْجَبْهَةِ، وَالْیَدَیْنِ، وَالرُّکْبَتَیْنِ، وَأَطْرَافِ الْقَدَمَیْنِ،[۴] وَلَا نَکْفِتَ الثِّیَابَ وَلَا الشَّعْرَ»، مُتَّفَقٌ عَلَیْهِ.

**ترجمه:**[۱] ابن عباس رضي الله عنهما راوي دي چې رحمت عالم ﷺ وفرمايل[۲] ماته، د (جسم) په اوه هډوکو د سجدې کولو حکم راکړل شوې دې[۳] یعنی په تندي دواړو لاسونو، ګونډو او د دواړو پښو په پنجو[۴] او مونږ منع کړې شوي یو چې په لمانځه کې زمونږ کپړې او ویښتان راغونډ کړو. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:**- ① سَبْعَةِ أَعْظُمٍ: سبعة اووه ته وائ، او أَعْظُم جمع د عَظْم ده، هډوکی ته وائی، اووه هډوکی (ووه اندامونه مراد دی). ② الْجَبْهَة: تندې، ③ أَطْرَافِ الْقَدَمَیْنِ: د دواړو خپو ارخونه (پنجې یعنی ګوتې). ④ نَکْفِتَ: أی الضَّمُّ: راټولول.

**تسهیلات:**-

**قوله:** أُمِرْتُ أَنْ أَسْجُدَ عَلٰی سَبْعَةِ أَعْظُمٍ:

**په اووه اندامونو د سجدې حکم:**- په دې حدیث کښې خودلې شی چه په سجده کښې په زمکه باندې کوم کوم اندام کیخودل ضروری دی. ددې تفصیل دادې چه دَ فقهاؤ په دې اتفاق دې چه په سجده کښې دواړه لاسونه او دواړه زنګونونه په زمکه باندې کیخودل سنت دی. قرآن کریم کښې الله تعالی دَ سجدې کولو حکم ورکړې دې او سجده "وضع الوجه علی الارض" نوم دې.

**صرف په زنه د سجدې کولو حکم:**- په مخ کښې دویم اندام زنه ده مګر دَدې په زمکه کیخودو سره به دَ سجدې حکم پوره نه شی. یوخو په دې وجه چه دَ حضورپاک ﷺ نه ثابت نه دی او بل په دې وجه چه زنه په زمکه کیخودو سره تعظیم نه کیږی او سجده دَالله تعالی دَ تعظیم دَپاره مقرر کړې شوې ده.

[۱] اخرجه البخاری کتاب الاذان باب السجود علی الأنف (رقم-۸۱۲) ومسلم کتاب الصلوة باب أعضاء السجود، والنهی عن کف الشعر والثوب وعقص الرأس فی الصلاة (رقم- ۲۳۰ - (۴۹۰))

**صرف په انتګی د سجدې کولو حکم:-** اوس په مخ کښې څواعضاء دی په قرآن کښې د یوتعین موجودنه دې. نوکه په دې حکم باندې دعمل کولودپاره صرف انتګې په زمکه باندې کیخودې شی نو حکم به نه پوره کیږی څکه د انتګی په کیخودسره دقبلې نه مخ هم اوړی اود حضورپاک ﷺ نه داسې کول ثابت هم نه دی.

**صرف په تندی او پوزه د سجدې کولو حکم:-** صرف تندې او پوزه پاتې شوه دا په زمکه کیخودسره تعظیم هم دې اود حضوراکرم ﷺ نه ثابت هم دی د جمهور فقهاؤ په دې باندې اتفاق دې چه په سجده کښې پوزه اوتندې دواړه کیخودل افضل دی.

**په تندی او پوزه کښې په یو باندې سجده کولو کښې مذاهب:-**

البته په دې کښې اختلاف دې چه په یوباندې اکتفاکول جائز دی که نه؟

① د جمهور فقهاؤ په نیزسجده کښې تندې اوپوزه دواړه کیخودل ضروری دی که چرته چا په یو باندې اکتفاء اوکړه نومونځ ئی جائز نه دې.

② امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه "لاعلی التعیین"په دې کښې یواندام کیخودل فرض دی. اوس که چاصرف تندې په زمکه باندې په سجده کښې کیخودو نوسجده بغیرد کراهت نه جائز ده څکه چه بعضې روایاتو کښې صرف تندې مستقل کیخودل ثابت دی. (کمافی لمعات)په یوروایت کښې جائزمع الکراهت دې.

**صرف په پوزه باندې سجده کولو کښې مذاهب:-**

که چرې چاصرف پوزه کیخودسره سجده اوکړه .

① نود جمهور اوصاحبینو ټولو په نیزسجده جائز نه ده

② د امام ابوحنیفه رحمه الله نه دې باره کښې دوه روایتونه دی یودا چه سجده به کراهت سره جائز وی بل روایت دادې چه څان له پوزې سره سجده جائز نه ده او هم په دې باندې فتوی ده.

**نوټ:-** دا ټول اختلافات هغه وخت دی کله چه څه عذر نه وی. که چرې دچا څه عذر وی نوبیا به د عذر مطابق جواز وی.

**په سجده کښې د لاسونواو زنګونو په زمکه د کیخودو حکم:-** په حدیث کښې اووه اندامونوباندې سجده کولوذکردې لیکن باقی د اندامونوحیثیت داسې نه دې بلکه لاسونه او زنګونونه په زمکه باندې کیخودل مسنون دی. په دې خبره باندې بیا پوهه شئی چه دا بحث هغه وخت دې کله چه څه عذر نه وی دعذر په وخت ټول جائز دی.

**په سجده کښې د قدمونو او خپو کیخودلو حکم:-** اوس په سجده کښې د قدمونواو خپو کیخودو متعلق مسئله داده چه د سجدې په حالت کښې دواړه خپې په زمکه باندې کلکې کیخودل ضروری دی که په پوره سجده کښې دواړه خپې د زمکې نه اوچتې پاتې شی نوسجده به نه کیږی مونځ به فاسدشی اوکه یوه خپه اوچته کړه اودویمه په زمکه باندې وه نودا صورت مکروه دې.

**قوله: وَلَانَكْفِتَ:**

**د جامو او ويښتو راغونډولو ممانعت:** - كفت په وهلو سره راغونډولو په معنى كښې دې ويښته په يو ځيزسره ترلو ته كفت وئيلې شوې دې دا راغونډول منع دى. دې دپاره چه په سجده كښې كېږې او ويښته هم شريك شى اودا احتياط اونه كړى چه زمكې اوخاورې سره اولګى ويښته يا كپړې خرابې شى ځكه چه دَ خاورو طرف ته ټولو له تلل دى.

### ۸۸۸—په سجدې كښې د اطمينا ن حكم

۸۸۸—()[۲]۞وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۞" اعْتَدِلُوا فِي السُّجُودِ، ۞وَلَا يَبْسُطْ أَحَدُكُمْ ذِرَاعَيْهِ انْبِسَاطَ الْكَلْبِ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۞ حضرت انس رضي الله عنه راوي دي چې رحمت عالم ﷺ وفرمايل ۞ په سجده كې (په اطمينان سره) اوسئ ۞ او په تاسو كې دي هيڅوك (په سجده كې) خپل دواړه لاسونه د سپي په شان نه غوړوي. (بخاري، مسلم.)

**حل اللغات:** - ① اعْتَدِلُوا: د امر صيغه ده، أي أَنْ يَسْتَوِيَ فِيهِ: يعنى سجده بنه په آرام او سكون سره اداكوئ. ② انْبِسَاطَ الْكَلْبِ: أَيْ: كَافْتِرَاشِهِ: ځنګه چه سپې خپلې مخكنئ خپې په اوږدوالى خوره وى.

**تسهيلات: -**

**قوله: اعْتَدِلُوا فِي السُّجُودِ:**

**په سجده كښې د اعتدال تعريف:** - په سجده كښې اعتدال دادې چه دَ لاسونو ګوتې يوځائى كولوسره په زمكه باندې ښه مضبوطيا سره كيخودې شى ځنګلې دَ زمكې نه جدا وى او خيټه دَ فتونونو نه جدا اوساتى او په سجده كښې ښه په تسلئى سره دتسبيحات اووائى لكه ځنګه چه حديث سره متصل په دويم حديث كښې ذكركړې شوى دى.

**قوله: انْبِسَاطَ الْكَلْبِ:**

**دسپى پشان ناستې ځخه د ممانعت وجه:** - سپې چه كله په كوناټوباندې كينى نودَ اقعاء په صورت كښې كينى دَدې هم ممانعت دې. دغه شان كله چه سپې په سينه باندې كينى نومخكښې خپې په زمكه باندې مخې ته په عجيبه اندازكښې خورې كړې ايږدى دَدې نه مونځ ګذار منع كړې شوې دې. داغفلت او سستئى ښنبه هم ده اودغه شان كولوسره غفلت هم پيدا كيږى. انسباط ته په نورو روايتونو كښې افتراش السبع په نوم سره هم يادكړې شوې

---

[1] اخرجه البخاري في كتاب الاذان/ باب لا يفترش الزراعه في السجود... رقم الحديث ۳/ ۳۸۸ ومسلم في كتاب الصلوة/ باب الاعتدال في السجود... رقم الحديث ۱۱۳۰

دي دا ټول هم يوځيزدي.

**۸۸۹-د سجدې طريقه**

۸۸۹-()[۳]① وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: «قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②"إِذَا سَجَدْتَ فَضَعْ كَفَّيْكَ،③ وَارْفَعْ مِرْفَقَيْكَ» "، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① براء ابن عازب رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل② هر كله چې ته سجده كوې نو خپل دواړه لاسونه په زمكه ايږده③ او څنګلي د زمكې څخه اوچتې ساته. (مسلم.)

**حل اللغات:-** ① فَضَعْ: ايږده، ② مِرْفَقَيْكَ: څنګلې خپلې،

**تسهيلات:-**

**قوله:** وَارْفَعْ مِرْفَقَيْكَ:

**د څنګلوپورته كولود حكم مخاطبين:-** "وارفع" يعنى څنګلې دَ زمكې نه اوچتې ساته چه دَ انبساط او افتراش صورت رانه شي داحكم دَ سړودپاره دې.

**د ښځو دپاره په مونځ كښې د پردې كيفيت اختيارول:-** ښځو له پكاردى چه هغوى دې په سجده كښې ټول اندامونه راغونډ كړى زمكې سره دې اولګوى ځكه چه دَهغوى دَ پردې تقاضا هم دغه ده. په حديث شريف كښې دې ستر او پردې ته په توګه دَ قاعدې اوكليه اشاره فرمائيلې شوې ده چه هرهغه فعل ته شامل ده په كوم سره چه دَ پردې ضرورت وى

**د ښځودپاره د مونځ د مختلفو اركانو ادا كولو طريقه:-** ① په تكبيرتحريمه كښې لاسونه دَ اوګو او سينې پورې پوشان اوړل دَ پردې سبب دې لهذا دَ ښځودپاره هم دغه ماموربه دى

② په ركوع او سجده كښې اندامونه راغونډول دَ پردې سبب دى لهذا داماموربه دى.

③ دَ خپو ګيټې پټول دَ پردې سبب دې لهذا داماموربه دى

④ دَ سر وېښته پټول دَ پردې سبب دې لهذا ماموربه دى.

⑤ په لاس باندې لاس وهلوسره امام ته فتحه وركول سبحان الله په ځائى دَ پردې سبب دې لهذا ماموربه دى

**دښځو او سړو په مانځه كښې فرق:-** حالانكه دا ټول كارونه دَ سړو دَ مونځ دَ افعالو برعكس دى. معلومه شوه چه دَ ښځو اوسړو مونځ يوشان ګرځول مناسب نه دى ځكه چه په دواړو كښې فرق دې. دَ ښځو په مانځه كښې هرهغه صورت خپلولې شى په كوم كښې چه ځان خودنه نه وى.

(۱) اخرجه مسلم كتاب الصلوة باب الاعتدال فى السجود، ووضع الكفين على الأرض ورفع المرفقين عن الجنبين، ورفع البطن عن الفخذين فى السجود(رقم-۲۳۴ - (۴۹۴))

## ۸۹۰–د نبي عليه السلام د سجدې طريقه

۸۹۰–()[۳][۱] وَعَنْ مَيْمُونَةَ رضى اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "[۲]«كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَجَدَ جَافَى بَيْنَ يَدَيْهِ[۳] حَتَّى لَوْ أَنَّ بَهْمَةً أَرَادَتْ أَنْ تَمُرَّ تَحْتَ يَدَيْهِ مَرَّتْ» [۴]"، هَذَا لَفْظُ أَبِي دَاوُدَ، صَرَّحَ فِي: شَرْحِ السُّنَّةِ بِإِسْنَادِهِ. [۵] وَلِمُسْلِمٍ بِمَعْنَاهُ قَالَتْ: «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَجَدَ[۶] لَوْ شَاءَتْ بَهْمَةٌ أَنْ تَمُرَّ بَيْنَ يَدَيْهِ لَمَرَّتْ».

**ترجمه:**[۱] ام المؤمنين حضرت ميمونه رضي الله عنها فرمايي[۲] چې رسول الله ﷺ به چې سجدې ته تلو نو د خپلو دواړو لاسونو په مينځ کې به يې دومره فرق ساتلو[۳] چې که د بزي (چيلۍ) بچي په مينځ کې تيريدل غوښتل نو د حضور ﷺ د دواړو لاسونو د لاندې څخه تيريدي شو،[۴] دا الفاظ د ابوداؤد دي څنګه چې خپله بغوي په شرح السنة کې په خپل سند سره بيان کړي دي[۵] او مسلم دا حديث بالمعنٰي نقل کړي دي د هغې الفاظ دا دي چې بي بي ميموني رضي الله عنها وفرمايل چه رسول الله ﷺ به داسې سجده کوله[۶] چه که د بزي (چيلۍ) بچي د رسول الله ﷺ د لاسونو په مينځ کښې تيريدلې نو تيريدلې به شو.

**حل اللغات:**- ① جَافَى: أَيْ: أَبْعَدَ وَفَرَّقَ: يعنى جدا والې او فرق به ئې ساتلو ② بَهْمَةً: أَيْ وَلَدُ الضَّأْنِ: دګډې يا چيلئی بچي کله چه نوې پيدا شی هغه ته سخلة وائی کله چه په خپلو خپو باندې ځی هغه وخت هغه ته بهمة وائی.

**تسهيلات:**-

**قوله:** بَهْمَةً:

**په سجده کښې خيټه د زنګونانو څخه جدا ساتل:**– حضورپاک ﷺ به په سجده کښې خپله خيټه مبارکه دَ خپلو پنډو نه او څنګلې دَ زمکې نه په دومره فاصله باندې ساتلې که دَ لاندې نه دَ چليئی بچي تيريدل غواړی نو تيريدې شی.

**قوله:** هَذَا لَفْظُ أَبِي دَاوُدَ:

**د مصابيح په مصنف اعتراض:** په دې سره صاحب مشکوة په صاحب مصابيح باندې اعتراض کول غواړی چه هغه دا لازمی کړی دی چه په اول فصل کښې به دَ بخاری او مسلم روايت نقل کوی حالاتکه په دې حديث کښې الفاظ دَ ابوداؤد دی او په فصل اول کښې درج کړې شوې دې سره دَدې چه په معنوی اعتبار سره دا حديث مسلم ذکر کړې دې.

---

[۱] اخرجه مسلم كتاب الصلوة باب الاعتدال فى السجود، ووضع الكفين على الأرض ورفع المرفقين عن الجنبين، ورفع البطن عن الفخذين فى السجود(رقم- - ۲۳۷ - (۴۹۶) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها ،باب السجود(رقم- ۸۸۰) والنسائى كتاب التطبيق /باب التجافى فى السجود (رقم- ۱۱۰۹)

### ۸۹۱—په سجده کښې لاسونه جدا ساتل

۸۹۱—(۱)[۵] [۱] وَعَنْ عَبْدُ اللهِ بْنِ مَالِكٍ ابْنِ بُحَيْنَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: [۲] "«كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَجَدَ فَرَّجَ بَيْنَ يَدَيْهِ [۳] حَتَّى يَبْدُوَ بَيَاضُ إِبْطَيْهِ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] عبدالله ابن مالك ابن بحينه رضي الله عنه فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ چې به سجده کوله نو خپل دواړه لاسونه به يې دومره کشاده ساتل [۳] چې د بغلونو سفيدي (سپينوالي) به يې ظاهريدلي، بخاري مسلم.

**حل اللغات:**- ① يَبْدُوَ: أَيْ: يَظْهَرَ: ښکاريدلو به. ② إِبْطَيْهِ: د ابط تثنيه ده، ترخونو ته وائي.

**تسهيلات:**-

**قوله:** وَعَنْ عَبْدُ اللهِ بْنِ مَالِكٍ ابْنِ بُحَيْنَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ:

**دحديث په سند کښې يوه فني قاعده:**—په دې سند کښې يو فني خبره ده دکوم يادول چه ډير ضروري دی هغه خبره داده چه دَ عبدالله دَ پلار نوم مالك دې اودَ عبدالله دَ مور نوم بحينه دې. دلته عبدالله دَ مور او پلار دواړوطرف ته منسوب دې لکه څنګه چه عبدالله بن ابی ابن سلول دَ دواړو طرف ته منسوب دې. په دې سند کښې دا غلط فهمي پيدا کيږی چه کيدې شی مالك دَ بحينه ځوئی دې حالاتکه داسې نه ده. بحينه دَمالك ښځه ده اودَ عبدالله مور ده. محدثينو داسې سند کښې الف زياتول ابن سره ليکی. چنانچه دلته هم په مالك باندې تنوين لوستل پکاردی اوبيا الف زياتولوسره ونيل پکاردی. دې دَپاره چه دا معلومه شی چه ابن بحينه دَ عبدالله صفت دې. دا قاعده وړاندې تفصيل سره ليکلې ده.

بهرحال معلومه شوه چه داسې کيږی چه عبدالله کوم وخت حضورپاك ﷺ ليدلې وو هغه وخت دَ حضورپاك ﷺ په بدن مبارك باندې دَ قميص په ځائی څه څادروو دکوم دَ غاړو نه چه ترخونه ښکاريدل ګنی په قميص کښې دَ ترخونو سپينوالي نه ښکاری.

**د نبی کريم ﷺ حسن:**—دَ ترخونودَ سپينوالی نه داخبره معلومه شوه چه حضورپاك ﷺ ډير ښائسته وو ځکه چه ترخونه اکثر تور وی. دکوم سړی ترخونه چه پرقيدونکی وی دَ هغوی باقی بدن به څومره ښائسته او خوږ وی.

### ۸۹۲—په سجده کښې دعا لوستل

۸۹۲—(۲)[۶] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] "«كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي سُجُودِهِ:

(۱) اخرجه البخاری کتاب الصلوة باب يبدی ضبعيه ويجافی فی السجود(رقم-۳۹۰) ومسلم کتاب الصلوة ما يجمع صفة الصلاة وما يفتتح به ويختم به، وصفة الركوع والاعتدال منه، والسجود والاعتدال منه، والتشهد بعد كل ركعتين من الرباعية، وصفة الجلوس بين السجدتين،وفی التشهد الأول(رقم-۲۳۵ -(۴۹۵)والنسائی کتاب التطبيق/باب صفة السجود (رقم-۱۱۰۶)

(۲) اخرجه مسلم کتاب الصلوة باب ما يقال فی الركوع والسجود(رقم-۲۱۶ - (۴۸۳) وابو داود کتاب الصلاة، باب فی الدعاء فی الركوع والسجود (رقم-۸۷۸)

[۳] اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِي ذَنْبِي كُلَّهُ، [۴] دِقَّهُ وَجِلَّهُ، [۵] وَأَوَّلَهُ وَآخِرَهُ، وَعَلَانِيَتَهُ وَسِرَّهُ» "رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضی الله عنه فرمایي [۲] چې رسول الله ﷺ به په خپلي سجده کې دا دعا کوله [۳] اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِي ذَنْبِي كُلَّهُ دِقَّهُ وَجِلَّهُ وَأَوَّلَهُ وَآخِرَهُ وَعَلَانِيَتَهُ وَسِرَّهُ، اي الله زما ټول ګناهونه وبخښې [۴] واړه ګناهونه او لوئې ګناهونه [۵] مخکنې او وروستنې ګناهونه [۶] ښکاره او پټ ګناهونه. (مسلم)

**حل اللغات:** ① دِقَّهُ: أَيْ دَقِيقَهُ وَصَغِيرَهُ: دادَ دقيق نه دې دَ قليل په معنی کښې دې يعنی لږ، وړه ګناه، ② جِلَّهُ: أَيْ جَلِيلَهُ وَكَبِيرَهُ: دا دَ جليل نه دې دَ کثر په معنی کښې دې يعنی زياته يا لويه ګناه.

**تسهيلات:-**

**قوله: وَعَلَانِيَتَهُ وَسِرَّهُ:**

يعنی ښکاره اوپټ ګناهونه. دې نه مراددادې چه دَخلقودَ نظرنه کومه ګناه پټه وی هغه معاف کړې ګنی دَ الله تعالی نه خوڅه څيزپټ نه دې.

**ددعا په محل کښې پنځه احتمالات:-**

① په سجده کښې ئې لوستې وه

② نوافل کښې ئی لوستلې وه.

③ دَ تسبيحات نه پس ئی لوستلې وه

④ په فرائضو کښې لوستلې وه

⑤ دَتسبيحاتو په ځائی به ئی دا دعا لوستلې وی

**۸۳- دَ تهجد و دپاره دَ نبی کریم ﷺ دَ بسترې څخه پاسيدل**

۸۳-()[۷] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] «فَقَدْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً مِنَ الْفِرَاشِ، [۳] فَالْتَمَسْتُهُ، فَوَقَعَتْ يَدِي عَلَى بَطْنِ قَدَمَيْهِ وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ، وَهُمَا مَنْصُوبَتَانِ، [۴] وَهُوَ يَقُولُ: اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِرِضَاكَ مِنْ سَخَطِكَ، [۵] وَبِمُعَافَاتِكَ مِنْ عُقُوبَتِكَ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْكَ، [۶] لَا أُحْصِي ثَنَاءً عَلَيْكَ، أَنْتَ كَمَا أَثْنَيْتَ عَلَى نَفْسِكَ» "رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه صديقه رضی الله عنها فرمايي [۲] چې يوه شپه ما رسول الله ﷺ په بستره موجود اونه موندلو [۳] ما رسول الله ﷺ تلاش کولو چې زما لاس د حضور ﷺ د پښو سره ولګيدو (نو ما وليدل) چې حضور ﷺ دالله په دربار کې په سجده پروت وو او دواړه پښې مبارکې يې ولاړې وې [۴] او حضور ﷺ دا دعا کوله اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِرِضَاكَ مِنْ سَخَطِكَ

---

(۱) اخرجه مسلم كتاب الصلوة باب ما يقال فى الركوع والسجود(رقم-۲۲۲ - (۴۸۶) ومالک کتاب القرآن باب ما جاء فى الدعاء (رقم-۳۱) والترمذى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۴۹۳) والنسائى كتاب التطبيق/باب نوع آخر (رقم-۱۱۳۰)

وَبِمُعَافَاتِكَ مِنْ عُقُوبَتِكَ وَأَعُوذُبِكَ مِنْكَ لَا أُحْصِي ثَنَاءً عَلَيْكَ أَنْتَ كَمَا أَثْنَيْتَ عَلَى نَفْسِكَ، اي الله زه د پناه طلب کاریم ستا د رضا په ذریعه ستا د غیظ وغضب څخه (یعني د هغه افعالو څخه چې په ما یا زما په امت ستا د غضب ذریعه جوړه شي)[۵] او زه ستا څخه پناه غواړم ستا د معافي په ذریعه ستا د عذاب څخه[۶] او ستا څخه (یعني ستا د رحمت په ذریعه ستا د قهر څخه) زه ستا د تعریف شمیره او احاطه نشم کولي ته داسې یې څنګه چې تا خپل تعریف په پخپله کړي دي. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① فَقَدْتُ: أَيْ: طَلَبْتُ فَمَا وَجَدْتُ: فقد په معنی د ورکیدو سره دې یعنی ما تلاش کړو خوبیا مې نه موندلو. ②الفِرَاشِ: بستره، ③فَالْتَمَسْتُهُ: أَيْ: طَلَبْتُهُ بِالْيَدِ: اومې لټولو په خپل لاس سره. ④سَخَطِكَ: أَيْ: مِنْ فِعْلٍ يُوجِبُ سَخَطَكَ عَلَيَّ أَوْعَلَى أُمَّتِي: ستا دخفګان او غصې نه یعنی داسې کارنه چه هغه زما یا زما د امت دپاره ستا دغصې اوخفګان سبب جوړ شی، ⑤بِمُعَافَاتِكَ:دا د مبالغې په طور ذکرشوي دې ،أَيْ: بِعَفْوِكَ الْكَثِيرِ: یعنی ستا د ډیرې زیاتې معافۍ په ذریعه،⑥ عُقُوبَتِكَ: ستا د سزا او عذاب نه،⑦لَا أُحْصِي :أَيْ: لَا أُطِيقُ أَنْ أُثْنِيَ عَلَيْكَ كَمَا تَسْتَحِقُّهُ: شمیرلې نه شم یعنی زما دا طاقت نشته چه ستا دشان لائقه سره مناسب حمد اوثنا اوکړې شم.

**تسهیلات:-**

**قوله:وهوفي الْمَسْجِدِ:**

**دمسجد په مصداق کښې دوه احتمالات:-**

① دې نه مراد حجره کښې دَ سجدې ځائې هم کیدې شي

② په معنی دَ سجود یعنی سجده هم کیدې شي.

**فائده:-** په دې حدیث کښې واضح دلیل دې چه مس المرءة سره اودس نه ماتیږي.

**۸۹۳-سجده کښې دبنده الله تعالی ته نزدیکت**

۸۹۳-()[۸][۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[۲] "أَقْرَبُ مَا يَكُونُ الْعَبْدُ مِنْ رَبِّهِ وَهُوَسَاجِدٌ،[۳] فَأَكْثِرُوا الدُّعَاءَ» "رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[۱] ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] د بنده الله ته نزدې کیدل هغه وخت وي کله چې هغه په سجده کې وي[۳] نو تاسو په سجده کې زیاته دعا غواړئ. (مسلم.)

**تسهیلات:-**

**نوټ:-** د دې حدیث وضاحت په بل مقام کښې ذکرشوي دې.

(۱) اخرجه مسلم کتاب الصلوة باب ما یقال فی الرکوع والسجود(رقم-۲۱۵ - (۴۸۲) والنسائی کتاب التطبیق/اقرب ما یکون العبد من الله عز وجل (رقم-۱۱۳۷)

۸۱۵-د سجده تلاوت په وخت د شيطان ژړا کول

۸۱۵-()[۹]۱ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«إِذَا قَرَأَ ابْنُ آدَمَ السَّجْدَةَ فَسَجَدَ ۳ اعْتَزَلَ الشَّيْطَانُ يَبْكِي، ۴ يَقُولُ: يَا وَيْلَتِي أُمِرَ ابْنُ آدَمَ بِالسُّجُودِ، فَسَجَدَ، فَلَهُ الْجَنَّةُ، ۵ وَأُمِرْتُ بِالسُّجُودِ فَأَبَيْتُ، فَلِيَ النَّارُ» "، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ ابوهريره ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ هر كله چې ابن آدم (يعني مؤمن بنده) د سجدې آيت وايي او (ويونكي يا اوريدونكي) سجده كوي ۳ نو هغه وخت شيطان لعين په ژړا يو طرف ته اخوا شي ۴ او وايي چې اي حسرته ابن آدم ته د سجدې كولو حكم وركړل شو نو هغه سجده وكړه او (د دې په بدله كې) هغه د جنت حقدار دې ۵ او ماته د سجدې كولو حكم وشو نو ما (سجده نه كولو سره د پروردګار) نافرماني وكړه (نو د هغې په نتيجه كې) زه د اور حقدار شوم. (مسلم)

**حل اللغات:**- ① اعْتَزَلَ: أَي: انْصَرَفَ وَانْحَرَفَ: لرې شو، جدا شو، يو طرف ته شو.

**تسهيلات:**-

**قوله:** يَبْكِي:

**دسجده تلاوت په وخت دشيطان ژړا:**- يعنى كله چه انسان دَ تلاوت وخت كښي دَ سجدې آيت لوستلوسره سجده كوى نو شيطان لرې تختي او په چغو ژاړى او خپيمانتيا كوى چه دَ آدم ﷺ اولاد قرآن تلاوت كړو اوسجده ئى اوكړه اوماته چه كله دَ سجدې حكم اوكړې شو نوماانكاراوكړو.

**دشيطان د ژړا په سبب كښې دوه احتمالات:**-① دَ ابليس دا ژړا اوچغې صوري وهل ياخود حقيقت دَ اعتراف په توګه باندې دَ افسوس اوغم دَ وجې نه دى

② دَ مكرمچ په شان دَ دهوكې اوښكې توبه وى خكه چه نقل دې چه حضرت موسىٰ ﷺ ته ابليس اوونيل دَالله تعالى نه تپوس اوكړه چه زما توبه قبليدې شى كه نه؟ وئيلى شى چه الله تعالى موسى ﷺ ته اوفرمائيل چه شرط هم هغه دې چه حضرت آدم ﷺ ته به سجده كوى. كه اوس آدم ﷺ نشته نو دَهغه قبرته دې سجده اوكړى. وئيلى شى چه كله موسىٰ ﷺ ابليس ته اوونيل نوهغه جواب وركړو چه كله دَ ژوندى آدم مخې ته تيټ نه شوم نواوس به ئى قبرته څه سجده اوكړم.

**د مرګ په وخت كښې هم د ابليس دسجدې څخه انكار:**-يوه ضعيف قصه ده چه دَ ابليس دَ روح قبض كولودپاره فرښتې كله هغه پسې راځى نودې به دَمشرق مغرب او جنوب طرف

(۱) اخرجه مسلم كتاب الايمان باب بيان إطلاق اسم الكفر على من ترك الصلاة رقم ۱۳۳ - (۸۱) وابن ماجة، باب سجود القرآن (رقم-۱۰۵۲)

ته منډې وهی (دې خاتې پورې دا قصه په احادیثو کښې ده) کله چه فرښتې هغه قابو کړې نودې به دَ حضرت آدم علیه السلام په قبر باندې راګذار کړی دې دَپاره چه په هغه باندې سجده اوکړې شـی خـو دا خبیـث بـه دَ مـرګ پـه وخـت هـم سـر پورتـه اوچتـه وی دې دَپـاره چـه غیراختیاری توګه باندې هم دَ سجدې صورت جوړنه شی دومره سخت دښمن دې. نو دلته به دَ ده ژړا خو یا دَ تازه تازه سزا په توګه سره وی اویا به هم هغه دَ دهوکې ژړا دی لکه چه دې بین الاقوامی بې غیرت اوبین الاقوامی بې حیا او دهوکه باز دَ بدر دَمیدان نه دَ تختیدو په وخت ابوجهل ته وئیلی وو "انی اخاف الله رب العالمین".

### ۸۹۲- نبی علیه السلام سره د ملګرتیا ذریعه

۸۹۲-()[۱۰][۱]وَعَنْ رَبِيعَةَ بْنِ كَعْبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲]«كُنْتُ أَبِيتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، [۳]فَأَتَيْتُهُ بِوَضُوئِهِ وَحَاجَتِهِ، [۴]فَقَالَ لِي: "سَلْ"، فَقُلْتُ: أَسْأَلُكَ مُرَافَقَتَكَ فِي الْجَنَّةِ، [۵]قَالَ: "أَوَغَيْرَ ذٰلِكَ؟"، قُلْتُ: هُوَ ذَاكَ، [۶]قَالَ: فَأَعِنِّي عَلَى نَفْسِكَ بِكَثْرَةِ السُّجُودِ» "رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**:[۱] ربیعه ابن کعب رضی الله عنه فرمایي[۲] چې زه به د شپې د رسول الله ﷺ په خدمت کې ووم[۳] او د اودس اوبه او نور ضروریات (مثلًا مسواك جاء نماز وغیره) به مې پیش کول[۴] یوه ورځ رسول الله ﷺ وفرمایل چې (د دین ودنیا په څیزونو کې چې څه غواړې) وغواړه ما عرض وکړو یا رسول الله ﷺ زما خواست خو صرف دا دي چې په جنت کې مې ستا ملګرتیا نصیب شی[۵] حضور ﷺ وفرمایل (کومي مرتبي ته چې رسیدل غواړې دا خو ډیره لویه ده د دې څخه سوا) نور څه وغواړه ما عرض وکړو زما خواست خو صرف دا دي چې په جنت کې مې ستا ملګرتیا نصیب شی[۶] حضور ﷺ وفرمایل (نو دي مرتبي حاصلولو د پاره) ته په کثرت دسجدو سره په خپل ذات سره زما مدد کوه. (مسلم)

**حل اللغات**:- ① أَبِيتُ: مِنَ الْبَيْتُوتَةِ: یعنی شپه مې تیره کړه. ② مُرَافَقَتَكَ: أَيْ: كَوْنِي رَفِيقًا لَكَ إِلَى الْجَنَّةِ: چه په جنت کښې ستا ملګرې شم.

**تسهیلات**:-

**قوله: وَحَاجَتِهِ**:

یعنی دَ اودس دَپاره اوبه لوټه اودَ مانځه دَ پاره جائې نماز یا دَ حضورپاك علیه السلام دَ استنجاء دَپاره لوټې راوړل یا نور خدمت کول دا ټول "حاجته" یعنی په ضرورت کښې داخل دی.

**په جنت کښې د نبی علیه السلام د ملګرتیا سوال**:-دَ شپې دَدې مشقت والاخدمت اودَتابعدارئی نه خوشحالیدوسره رسول الله علیه السلام دَ صله په توګه اوفرمائیل چه اوغواړه څه غواړې. دې ربنتونی خادم اوعقیدت مند غلام اووئیل په جنت کښې ستاسو رفاقت غواړم.

[۱] اخرجه مسلم کتاب الصلوة باب فضل السجود والحث علیه (رقم) ۲۲۶ - (۴۸۹) والنسائی کتاب التطبیق/فضل السجود (رقم-۱۱۳۸)

حضورپاك ﷺ غوښتل چه داسې دَدې په ځائې بل څه دعا اوغواړي. یا حضورپاك ﷺ کیدې چه اندازه لګول اوغوښتل دَدې سړی دا مطالبه صرف یو جذباتی جذبې اظهارکول دی یاد دې خبرې شاته یوه رښتونی جذبه ده . لیکن دې رښتونی عاشق چه کله جواب ورکړو چه هم دغه سوال دې نوبیا حضورپاك ﷺ اوفرمائیل چه دعابه زه کوم خو ته ماسره دومره تعاون اوکړه چه په کثرت سره مونځونه کوه.

**د بزرګانو دعاګانو سره سره د عمل ضرورت:-** معلومه شوه چه دَ بزرګانودعاګانوسره سره دَ عمل هم ضرورت دې دانه ده چه صرف دَ دعاپه بنیاد خپل اعمال پریږدی اوصرف خواهشات او ارزوګانې کوی.هغه چاڅه ښه وثیلی دی چه چابی دَ تالې کولاوولودَپاره بیشکه ذریعه ده لیکن په لاس به ورله زور ورکولوسره چابی تااوول وی.

**۸۹۷-د سجدود کثرت فضیلت**

۸۹۷ -()[۱۱] ① وَعَنْ مَعْدَانَ بْنِ طَلْحَةَ، قَالَ: ② «لَقِيتُ ثَوْبَانَ مَوْلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ③ قُلْتُ: أَخْبِرْنِي بِعَمَلٍ أَعْمَلُهُ يُدْخِلُنِي اللهُ بِهِ الْجَنَّةَ، ④ فَسَكَتَ، ثُمَّ سَأَلْتُهُ، فَسَكَتَ، ثُمَّ سَأَلْتُهُ الثَّالِثَةَ، ⑤ فَقَالَ: سَأَلْتُ عَنْ ذٰلِكَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ⑥ فَقَالَ: عَلَيْكَ بِكَثْرَةِ السُّجُودِ لِلّٰهِ، ⑦ فَإِنَّكَ لَا تَسْجُدُ لِلّٰهِ سَجْدَةً إِلَّا رَفَعَكَ اللهُ بِهَا دَرَجَةً، ⑧ وَحَطَّ عَنْكَ بِهَا خَطِيئَةً، ⑨ قَالَ مَعْدَانُ: "ثُمَّ لَقِيتُ أَبَا الدَّرْدَاءِ، فَسَأَلْتُهُ، ⑩ فَقَالَ لِي مِثْلَ مَا قَالَ لِي ثَوْبَانُ» "رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① معدان بن طلحه (تابعي) رحمه الله فرمايي② چې ما د حضور ﷺ آزاد شوي غلام حضرت ثوبان رضي الله عنه سره ملاقات وکړو③ او هغه ته مي عرض وکړو چه ماته څه داسې عمل وښايه چې د هغې په وجه الله تعالی جل جلاله ما په جنت کې داخل کړي ④ ثوبان رضي الله عنه زما د سوال اوريدو سره چپ شو ما ورته دوباره عرض وکړو هغه بيا هم چپ وو په دريم ځل مې ورته بيا عرض وکړو⑤ نو هغه وفرمايل دا سوال ما د رسول الله ﷺ نه هم کړي وو⑥ نو زما د سوال په جواب کې يې فرمايلي وو چې ته په کثرت سره په بارګاه الهی کې سجده کوه⑦ ته چې يوه سجده د الله تعالی جل جلاله په حضور کې وکړې نو د هغې په وجه به الله تعالی جل جلاله ستا يوه درجه اوچتوی⑧ او يوه ګناه به دې کمه کوي⑨ معدان رحمه الله وايي بيا ما د ابودرداء رضي الله عنه سره ملاقات وکړو هغه څخه مي هم دا سوال وکړو⑩ کوم چې مې د ثوبان رضي الله عنه څخه کړي وو نو هغه هم هغه جواب راکړو کوم چې ثوبان رضي الله عنه راکړي وو. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① حَطَّ: رجوی به يعنی معاف کوی.

---

[1] اخرجه مسلم كتاب الصلوة باب فضل السجود والحث عليه (رقم) ۲۲۵ - (۴۸۸) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کثرة الرکوع والسجود(رقم-۳۸۸) والنسائی کتاب التطبیق/باب ثواب من سجد لله عز وجل سجدة(رقم-۱۱۳۹)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## ۸۹۸-د سجدي كولو كيفيت

۸۹۸-(۱)[۱۲] ۞عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: ۞"«رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَجَدَ ۞وَضَعَ رُكْبَتَيْهِ قَبْلَ يَدَيْهِ، ۞وَإِذَا نَهَضَ رَفَعَ يَدَيْهِ قَبْلَ رُكْبَتَيْهِ» " رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ

**ترجمه:** ۞ وائل ابن حجر رضي الله عنه فرمايي۞ چې ما رسول الله ﷺ وليدلو چې كله به يې د سجدې كولو اراده كوله۞ نو مخكې به يې خپلې دواړه ګونډې په زمكه لګولې بيا به يې دواړه لاسونه ايښودل۞ او كله چې به د سجدې څخه پورته كيدو نو اول به يې دواړه لاسونه پورته كول بيا به يې ګونډې پورته كولې، (ابوداؤد، ترمذي، نسايي، ابن ماجه. دارمي)

**حل اللغات:-** ① نَهَضَ: وَهُوَ الْقِيَامُ: اودريدلو او پاڅيدلو ته وائي.

**تسهيلات:- قوله:** إِذَا سَجَدَ وَضَعَ:

**سجدې ته دتلو او راتلو په وخت كښې يوه اصولي قاعده:-** علماؤ دَ سجدې اندامونه دَ سجدې په وخت په زمكه باندې كيخودل اودَ سجدې نه دَ پاسيدو دَ وخت باره كښې يواصول وضع كړې دى. هغه داسې چه كله سړې اودريږى نودَ هغه چه كوم اندام دَ قيام په وخت زمكې سره څومره نيزدې وى هم هغه دَ ټولو نه مخكښې په زمكه باندې كيخودل پكاردى. اودَ سړى چه كوم اندام دَ قيام په حالت كښې دَزمكې نه څومره لرې وى دَ سجدې نه دَ پاسيدو په وخت هغه دَ ټولونه مخكښې اوچتول پكاردى.

**دتندى اوپوزې په كيخودو كښې دوه اقوال:-** ① په دې اندامونو كښې بعضې علماؤ تندې او پوزه يو اندام ګرځولې دې لهذا په دې كښې دَتقديم اوتاخيرضرورت نشته دې. ..

② بعضې علماء فرمائى چه پوزه زمكې ته نيزدې ده لهذا دَ تلو په وخت دا اول اوچتول پكاردى. بهرحال دَدې كيفيت لحاظ ساتل هغه وخت دى كله چه څه عذر نه وى كه چرې عذر وى نوعذر خو عذر دې.

## ۸۹۹-په سجدې ته د تلو په وخت كښې د اوښ پشان كيفيت اختيارولو ممانعت

۸۹۹-(۲)[۱۳] ۞وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۞"«إِذَا سَجَدَ أَحَدُكُمْ فَلَا يَبْرُكْ كَمَا يَبْرُكُ الْبَعِيرُ ۞وَلْيَضَعْ يَدَيْهِ قَبْلَ رُكْبَتَيْهِ» " رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ، ۞قَالَ أَبُو

---

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب كيف يضع ركبتيه قبل يديه(رقم-۸۳۸) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها ،باب السجود(رقم-۸۸۲) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى وضع الركبتين قبل اليدين فى السجود(رقم-۲۶۸) والنسائى كتاب التطبيق/باب أول ما يصل إلى الأرض من الإنسان فى سجوده (رقم-۱۰۸۹)

(۲) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب كيف يضع ركبتيه قبل يديه(رقم-۸۴۰) والنسائى كتاب التطبيق/باب أول ما يصل إلى الأرض من الإنسان فى سجوده (رقم-۱۰۹۱)

سُلَيْمَانَ الْخَطَّابِيُّ: "حَدِيثُ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ أَثْبَتُ مِنْ هَذَا"، ⑤ وَقِيلَ: هَذَا مَنْسُوخٌ.

**ترجمه:** ① ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② هر کله چې په تاسو کې څوك سجده کوي نو د اوښ په شان دي نه کیني ③ بلکه هغه ته پکار دي چې د خپلو دوارو گونډو څخه مخکې دواړه لاسونه په زمکه کیږدي، ابوداؤد ،نسايي،دارمي ④ او ابو سلیمان خطابي ویلي دي د چه وائل ابن حجر حدیث د دې حدیث څخه زیات (صحیح) ثابت دي ⑤ او ویل شوي دي چې دا حدیث منسوخ دي.

**حل اللغات:** - ① يَبْرُكُ: أَيْ: لَا يَضَعُ رُكْبَتَيْهِ قَبْلَ يَدَيْهِ: یعنی خپل زنگونان به ئې د لاسونو نه مخکښې نه ایښودل. ② الْبَعِيرُ: اوښ.

**تسهیلات:** -

**سجده کښې کوم اندام په زمکه اول او کوم آخر کښې کیخودو کښې مذاهب:** -

سجدې ته دتلو په وخت کوم یو اندام مخکښې په زمکه کیخودل پکاردی او کوم یو په آخر کښې کیخودل پکاردی په دې باره کښې دعلماؤ اختلاف دې. خو دا اختلاف د اولی اوغیر اولی او افضلیت کښې دې په جواز اوعدم جواز کښې نه دې.

① دڅلورو آئمه حضراتو په نیز سجدې ته د تلو په وخت هم هغه معروف ترتیب دې چه کوم اندام زمکې ته ډیرنیږدې دې هغه به اول کیخودې شی او واپسئی کښې به د دې خلاف کولې شی لکه په تیرحدیث نمبر ۱۲ کښې چه ذکر دې.

② امام مالك رحمه الله او اوزاعی فرمائی چه سجدې ته د تلو په وخت ړومبې لاسونه په زمکه کیخودل بیا زنگونونه بیا لاسونه بیا پوزه بیا تندې

**د دویم فریق دلیل:** - د وائل بن حجر رضی الله عنه روایت د دوی مستدل دې چه بغیرد څه تاویل نه په خپل مقصد باندې واضح دلیل دې.

**داول فریق د دلیل جوابونه:** - ① دا روایت منسوخ دې او په صحیح ابن خزیمه کښې مصعب بن سعد رضی الله عنه روایت د دې دپاره ناسخ دې هغه فرمائی: "كنا نضع اليدين قبل الركبتين فأمرنا بوضع الركبتين قبل اليدين". (كما قال ابن خزيمه)

② د وائل بن حجر رضی الله عنه روایت قوی او ثابت دې اود حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت د محدثینو په نیز معلول دې لهذا د وائل رضی الله عنه روایت ته به په اصولی توگه ترجیح ورکولې شی.

**دابوهریره د روایت علتونه:** - ① د حضرت ابوهریره رضی الله عنه په روایت کښې یوعلت خودا دې چه امام ترمذی رحمه الله ددې غرابت خو بیان کړو اودا ئې معلوم اوگرځولو.

② دحضرت ابوهریره رضی الله عنه دا روایت هم دهغه د خپل یوروایت معارض دې. امام طحاوی رحمه الله په مضبوطوسندونو سره ددې روایت ذکر کړې دې اوهغه روایت بالکل د حضرت وائل

بن حجر رضی الله عنه دَ روايت په شان دي. اوګورئی شرح معانی الاثار ج۱ ص۱۷۵.

③ دَحضرت ابوهريره رضی الله عنه دَ روايت ړومبۍ حصه پخپله دَهغې دَ دويمې حصه سره معارض ده. ځکه چه په ړومبۍ حصه کښې "فلايبرك كما يبرك البعير" الفاظ دی حالانکه اوښ چه کله کينی نو اول زنګونه ایږدی بیاکینی. دَدې الفاظو نه پس "وليضع يديه قبل ركبتيه" الفاظ دَدې مخالف اومعارض دی. په دې وجه محدثين فرمائی چه دلته يوراوی ته بيانولوکښې وهم شوې دې اوهغه "يديه" په ركبتيه باندې مقدم کړې دي. که چرې اصل عبارت واخستې شی او رکبتيه مقدم کړې شی نودَ ابوهريره رضی الله عنه دَ روايت تعارض به په خپل مينځ کښې هم ختم شی اودَ وائل بن حجر رضی الله عنه روايت سره به ئی هم تعارض ختم شی. بهرحال په کوم روايت کښې چه دومره علتونه پټ پراته وی هغه دَ حضرت وائل رضی الله عنه دَ روايت مقابله نشی کولې.

④ دَحضرت ابوهريره رضی الله عنه روايت دَ معذوردَپاره دې او په دې کښې دَچا اختلاف نشته او معذوره حضرات هم داسې عمل کوی او دَهغوی نه بنه هم ښکاری دَ غيرمعذورنه دا عمل بالکل ښه نه لګی او سنت طريقه هم هغه وی چه په کتلوکښې هم ښه لګی.

دَ مشکوة په نسخه کښې هم صاحب مشکوة دَ حضرت ابوهريره رضی الله عنه دَ روايت دوه جوابونه ورکړی دی چه دا يا منسوخ دې يا معلول غيرقوی دې اودَ وائل رواي اثبت اوقوی دې.

**د دويم فريق دليل:** -زيربحث دَحضرت ابوهريره رضی الله عنه حديث د دوی مستدل دې. امام مالك رحمه الله فرمائی دَ ابوهريره رضی الله عنه دا حديث قولی دې او وائل بن حجر رضی الله عنه حديث فعلی دې او اوصول دادې چه کله دَ قول الرسول صلی الله علیه وسلم او فعل الرسول صلی الله علیه وسلم مقابل اوشی نو قول ته به ترجيح ورکولې شی.

**۹۰۰- د دواړو سجدو په مينځ کښې مسنون دعا**

۹۰۰- ()[۱۴][۱]وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ:[۲] "«كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ:[۳]اللّٰهُمَّ اغْفِرْلِي، وَارْحَمْنِي، [۴]وَاهْدِنِي، وَعَافِنِي، وَارْزُقْنِي»، رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:**[۱] ابن عباس رضی الله عنه فرمايي[۲] چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به د دواړو سجدو په مينځ کې دا دعا کوله:[۳] اللّٰهُمَّ اغْفِرْلِي وَارْحَمْنِي وَاهْدِنِي وَعَافِنِي وَارْزُقْنِي، اي الله ما وبخښې په ما رحم وکړي [۴] ماته هدايت وکړي د دواړو جهانو دبلاګانو او ظاهري او باطني امراضو څخه ما محفوظ اولري او ماته رزق عطا کړي. (ابوداؤد، ترمذي)

[۱] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب الدعاء بين السجدتين(رقم-۸۵۰) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها باب ما يقول بين السجدتين (رقم -۸۹۸) والترمذی كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما يقول بين السجدتين (رقم-۲۸٤)

**٩٠١–د نبی علیه السلام د دوؤ سجدو په منځ کښې دعا**

٩٠١–(١)[١٥] ١ وَعَنْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، ٢ «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ: ٣ "رَبِّ اغْفِرْلِي» ". رَوَاهُ النَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ١ حضرت حذيفه رضی الله عنه فرمايي ٢ چې رسول الله ﷺ به د دوارو سجدو په مينځ کې دا دعا کوله ٣ رَبِّ اغْفِرْلِيْ، يعنى اي زما پروردګاره ما وبخښې، (نسايي، دارمي)

**تسهيلات:** -

**قوله:** كَانَ يَقُولُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ:

**نوټ:** –دظاهر احاديثو څخه هم دا معلوميږي چې دنبی کريم ﷺ دا دعاګاني په فرضو او نوافلو دوارو کښې وې د احنافو په نيز په فرائضو کښې اوږدې دعـا ګـانې نـه دی کـول پکـار خو که مختصرې دعاګاني وی نو په هغې کښې څه قباحت نشته چې د مقتديانو د تنګيدو سبب نه وی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**٩٠٢–په سجده کښې د جلتی ممانعت**

٩٠٢–(٢)[١٦] ١ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ شِبْلٍ، قَالَ: ٢ «نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ نَقْرَةِ الْغُرَابِ ٣ وَافْتِرَاشِ السَّبُعِ، ٤ وَأَنْ يُوَطِّنَ الرَّجُلُ الْمَكَانَ فِي الْمَسْجِدِ ٥ كَمَا يُوَطِّنُ الْبَعِيرُ» "، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ١ عبدالرحمن ابن شبل رضی الله عنه فرمايي ٢ چې رسـول الله ﷺ د کارغـه پـشان مـنـو کـه وهلو ٣ او د درندګانو په شان لاسونه غوړولو څخه منع فرمايلي ده ٤ (او د دې څخـه يـې هـم منع فرمايلي ده چې) يو سړي پـه مـسجد کې ځـان لپـاره ځـاي مقرر کـړي ٥ څنګـه چې يـې اوښ مقرر کوي، (ابوداؤد، نسايي، دارمي)

**حل اللغات:** - ① نَقْرَة: وَضَعَ الْغُرَابُ مِنْقَارَهُ فِيمَا يُرِيدُ أَكْلَهُ: د خوراک دپاره د کارغه ټونګې وهل.
② افْتِرَاشِ السَّبُع: وَهُوَ أَنْ يَضَعَ سَاعِدَيْهِ عَلَى الْأَرْضِ فِي السُّجُودِ: څنګه چه ځناور خپلې مخکنۍ خپې په اوږدوالی خوره وی. ③ يُوَطِّنَ: ځان دپاره ځائ مقرر کوی.

**تسهيلات:** -

**قوله:** عن نَقْرَةِ الْغُرَابِ:

---

(١) اخرجه النسائی کتاب التطبيق/باب الدعاء بين السجدتين (رقم–١١٤٥) وابود اود کتاب الصلاة،باب ما يقول الرجل في رکوعه وسجوده(رقم–٨٧٤) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها ،باب ما يقول بين السجدتين (رقم –٨٩٧)

(٢) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة،باب صلاة من لا يقيم صلبه فی الرکوع والسجود(رقم–٨٦٢) والنسائی کتاب التطبيق/باب النهي عن نقرة الغراب (رقم١١١٢) وابن ماجة باب ما جاء فی توطين المکان فی المسجد يصلی فيه (رقم–١٤٢٩)

**په سجده کښې د عجلت ممانعت:**-مرغنې چه کله دانه راټولوي نو ټونګه وهي. دلته مراد دادې چه سجدې ته زر زر تلل او زر واپس راتلل منع دي داد کارغه د دانې راغونډولو په شان دي. په آرام او تسلئي سره عمل کول پکاردي.

**قوله:** وَافْتِرَاشِ السَّبُعِ: د دې تشريح په حديث نمبر ۸۸۸ کښې تيره شوې ده هغې ته رجوع اوکړئ.

**په مانځه کښې د حيواناتو هيئت اختيارولو ممانعت:**-

① افتراش السبع: د درنده پشان کيناستل.

② افتراش الكلب واقعاء الكلب د سپي پشان کيناستل

③ بروك البعير د اوښ په بشان کيناستل

④ التفات الثعلب د لومبړ پشان يوخوا بل خوا کتل.

⑤ نقرة الديك د چرګ پشان ټونګې وهل.

⑥ نقرة الغراب د کارغه پشان ټونګې وهل.

⑦ عقبة الشيطان د شيطان پشان په پوندو باندې ناسته کول

⑧ رفع الايدي كاذناب خيل شمس د اسونولکي اوچتول پشان کيفيت اختيارول

⑨ دبيح الحمار په رکوع کښې د خره په شان سرښکته کول

**قوله:** وَأَنْ يُوَطِّنَ الرَّجُلُ الْمَكَانَ:

**دمانځه دپاره په جمات کښې د يوځائې خاص کولو ممانعت:**-اوښ چه کوم ځائې کينې نوهم هغه ځائې دَخپل ځان دپاره خاص کولوسره بل اوښ هلته په کيناستو نه پريږدي. داسې په جمات کښې نه دي کول پکار چه يومونځ ګذار په جمات کښې دَخپل ځان دپاره يو ځائې خاص کړي چه بل څوك به هلته نه کينې دا مکروه اوممنوع دي. لکه چه په جماتونو کښې بعض نامور خلق داسې کوي يادَ نامور جوړيدو دپاره داسې کوي. جمات خو يو وقف ځائې دې کوم مونځ ګذار چه وړاندې راغلو هم هغه ته حق حاصل دې چه چرته کيناستل غواړي کينې دې.

**د مانځه دپاره د لباس خاص کولو حکم:** ملا حلواني رحمه الله فرمائي چه دغه شان دَ يومونځ ګذار دپاره دا هم ممنوع اومکروه دي چه هغه دَ مانځه دَ پاره يو خاص لباس او خاص کپړه متعين کړي اوداخيال کوي چه دې نه علاوه به په بله کپړه کښې مونځ نه کيږي.

**۹۰۳-د دواړو سجدو په منځ کښې د اقعاء څخه ممانعت**

۹۰۳-(۱)[۱۷] ① وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② يَا عَلِيُّ إِنِّي أُحِبُّ لَكَ مَا أُحِبُّ لِنَفْسِي، ③ وَأَكْرَهُ لَكَ مَا أَكْرَهُ لِنَفْسِي، ④ لَا تُقْعِ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

(۱) اخرجه الترمذي كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في كراهية الإقعاء بين السجدتين (رقم-۲۸۲)

**ترجمه:** [۱] حضرت علي كرم الله وجهه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] اي علي (رضي الله عنه) كوم شي چې زه د ځان د پاره محبوب ګنړم هغه شي ستا د پاره هم محبوب ګنړم[۳] او كوم شي چې د ځان د پاره نه خوښوم هغه شي ستا د پاره هم نه خوښوم[۴] د دوو سجدو په مينځ كې اقعاء مه كوه. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① لَاتُقْعِ: د اقعاء نه دي، الْإِقْعَاءُ أَنْ يُلْصِقَ أَلْيَتَيْهِ عَلَى الْأَرْضِ، وَيَنْصِبَ سَاقَيْهِ، وَيَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى الْأَرْضِ كَالْكَلْبِ: اقعاء دې ته وائي چې دواړه كناتې په زمكه پورې پيوست كړې اودواړه پنډۍ پورته كړې اودواړه لاسونولكه د سپي پشان په زمكه كيږدي.

**تسهيلات:** -

**قوله: لَاتُقْعِ:**

**د دواړو سجدو په مينځ كښې د اقعاء ممانعت:** -رسول الله ﷺ خود تولو جهانونو د پاره تول رحمت وو ليكن د خپل امت د پاره خو حضورپاك ﷺ "رؤف رحيم" وو. هم په دې رنړا كښې چه كوم څيز حضورپاك ﷺ د خپل ځان د پاره خوښ كړې هم هغه څيز ئې د امت د پاره خوښ كړې دې. اوكوم څيز ئې چه پخپله ناخوښه كړې دې د امت د پاره ئې هم ناخوښه كړې دې. بيا د اهل بيت معامله د عام امت په نسبت څه زيات خاص وه. كه امت ته ئې په رخصت باندې د عمل كولو اجازت وركړې دې نو اهل بيت ته ئې د عزيمت حكم وركړې. هم په دې سلسله كښې د حضرت على ﷺ سره دا مكالمه ده. د دې خلاصه دا ده چه د دوو سجدو په مينځ كښې د اقعاء نه بچ شه.

**داقعاء دوه صورتونه:** - ① د اقعاء مشهور صورت دادې چه د سجدو په مينځ كښې يا قعده كښې سړې په كوناټو باندې كينى او دواړه زنګونونه او پنډئ ولاړې وى او لاسونه ئې په زمكه باندې كيخودې وى. لكه څنګه چه سپې په زمكه باندې كينى د اقعاء صحيح اومشهوره معنى هم داده.

② بعضې علماؤ دې ته هم اقعاء وئيلې ده چه يو مونځ ګذار د سجدو په مينځ كښې يا د قعدې په حالت كښې داسې كينى چه د خپو پنجې په زمكه باندې كيږدى او په ګيټو باندې كوناټې كيږدى كينى او لاسونه ئې زنګونوسره په فتونونو باندې وى. بهرحال د اقعاء هر يو صورت په مانځه كښې مكروه دې ځكه چه دا د سپو او ليوه ګانوسره مشابهت دې.

**۹۰۳-په ركوع او سجده كښې د ملا ليغې ساتلو حكم**

۹۰۳-()[۱۸] [۱] وَعَنْ طَلْقِ بْنِ عَلِيٍّ الْحَنَفِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "لَا يَنْظُرُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ إِلَى صَلَاةِ عَبْدٍ [۳] لَا يُقِيمُ فِيهَا صُلْبَهُ بَيْنَ رُكُوعِهَا وَسُجُودِهَا» "، رَوَاهُ أَحْمَدُ.

---

(1) احمد فى المسند ٤/٢٢

**ترجمه:**[۱] طلق ابن علي حنفي رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] الله بزرگ او برتر د هغه بنده و لمانځه ته نه ګوري[۳] چې د خپل مونځ په سجده او رکوع کې خپله ملا نه سيده کوي. (احمد)

**حل اللغات:**- ① صُلْبَهُ: صلب ملا (شا) ته وائي.

**تسهيلات:-**

**قوله:** لَا يَنْظُرُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ:

**مونځ کښې د لاپرواهۍ سزا:** دَ رحمت په نظربه ورته الله تعالى نه ګوري اوپه مانځه کښې دَ رحمت نازليدل به په داسې سړي باندې نه نازليږي چه په مانځه کښې داسې بې پروائي کوي اودَ مانځ دَ آدابوخيال نه ساتي داسې عبادت دَ قبوليت اوچت مقام ته نه شي رسيدلې. بلکه دَ قبوليت دَپاره به الله تعالى دَدې طرف ته نه ګوري. چونکه سجده او رکوع دَ مانځه په ارکانوکښې دَ ټولو نه زيات اهم ارکان دى که په دې کښې نقص راشي نو پوره مونځ ناقص کيږي په دې وجه دَ سخت وعيدحکم راغلو.

**قوله:** لَا يُقِيمُ فِيهِمَا صُلْبَهُ بَيْنَ رُكُوعِهَا وَسُجُودِهَا:

**د تعديل ارکان اهميت:** دلته په قومه کښې ملانيغول اوتعديل ارکان په صحيح شان سره ادا کولو باندې تنبيه ده. "سجودها" يعنى په جلسه کښې په تسلئى سره کيناستل پکاردى هغه داسې چه ټول اندامونه په خپل ځائى راشي. [] المرقات: ۲/۶۲۲.

**۹۰۵- د دوارو لاسونو سجده کول**

۹۰۵-()[۱۹][۱] وَعَنْ نَافِعٍ، أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يَقُولُ [۲] "مَنْ وَضَعَ جَبْهَتَهُ بِالْأَرْضِ [۳] فَلْيَضَعْ كَفَّيْهِ عَلَى الَّذِي وَضَعَ عَلَيْهِ جَبْهَتَهُ، [۴] ثُمَّ إِذَا رَفَعَ فَلْيَرْفَعْهُمَا، [۵] فَإِنَّ الْيَدَيْنِ تَسْجُدَانِ كَمَا يَسْجُدُ الْوَجْهُ"، رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:**[۱] نافع رحمه الله راوي دي چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمايي[۲] چې کوم سړي چې خپل تندي په زمکه کيږدي (يعني سجده کوي)[۳] نو هغه ته پکار دي چې خپل دواړه لاسونه هم په زمکه هلته کيږدي چرته چې تندي يې ايښي دي[۴] بيا چې د سجدې څخه پورته کيږي نو خپل دواړه لاسونه دي هم اوچت کړي[۵] ځکه څنګه چې مخ سجده کوي د غسې دواړه لاسونه هم سجده کوي. (مالك)

**تسهيلات:-**

**قوله:** فَلْيَضَعْ كَفَّيْهِ عَلَى الَّذِي وَضَعَ:

**دسجدې کولو مسنون کيفيت:**-په مانځه کښې کله مونځ ګذارسجدې ته ځي نودَهغه ټول

(۱) اخرجه مالک فى الموطا کتاب قصر الصلاة فى السفر ، باب وضع اليدين على ما يوضع عليه الوجه فى السجود(رقم-۶۰) وابوداود کتاب الصلاة،باب أعضاء السجود (رقم-۸۹۲)

اندامونه په سجده کښې شرکت کوی نودَ لاسونو هم سجده کیږی. هم دا بنائی چه کله لاسونه سجده کوی نودا دَ تندی په مخې کښې داسې نیغ کیخودل پکاردی که دَ غوږونونه څه خیز پریوځی نوچه هغه دَ لاسونو په شاباندې پریوځی

**په سجده کښې دلاسونوکیخودو په محل کښې مذاهب:-**

①داحنافو په نیز نه دې لاسونه خیتې اواوګوسره وی اونه دې دَ سر نه وړاندې وی بلکه چه سریه مینځ کښې وی او لاسونه دَدې په کناروباندې وی. دَ احنافومسلك هم دغه دې لکه څنګه چه په دې حدیث کښې دی دغه شان کیخودل پکاردی.

② شوافع حضرات اوګوسره د لاسونو کیخودل بهتر ګرځوی.

**د اول فریق دلیل:-** ظاهر د حدیث دَ احنافو دلیل دې،

**په حدیث کښې تاویل:-** دَدویم فریق په حدیث تاویل کوی نورهغوی سره څه دلیل نشته هغه دا چه په دې حدیث کښې داخودلې شی چه څنګه ئې تندې په زمکه کیخودې دې هم دغه شان اوګوسره لاسونه هم دَ قبلې طرف ته ایږدئی دې دَپاره چه دَدې هم سجده اوشی.

## [۳۲/۱۵]بَابُ التَّشَهُّدِ

**د تشهد بیان**

**خلاصة الباب:-**

**فیه اثنا عشر حدیثاً مشتملة علی خمس مسائل:**

① کیفیة القعدة: ۱، ۵، ۸۔

② الإشارة بالسبابة: ۱، ۲، ۵، ۶، ۷، ۱۱۔

③ التشهد في القعدة: ۳، ۴، ۱۰۔

④ تعجیل القیام عن التشهد: ۹۔

⑤ إخفاء التشهد : ۱۲۔

**د تشهد لغوی معنی:-** تشهد په لغت کښې ګواهی ورکول ،ګواه جوړیدل او په عرف کښې کلمه شهادت وئیل دی.

**دتشهد شرعی تعریف:-** په شریعت کښې التحیات وئیلو ته تشهد وائی خکه چې په دې کښې د الله تعالی د وحدانیت او د نبی کریم صلی الله علیه وسلم رسالت ګواهی ورکولې شی.

**دتشهد پس منظر:-** تشهد په حقیقت کښې دالله تعالی او رسول الله په مینځ کښې هغه مکالمه ده کومه چې په شب معراج کښې د اووه آسمانونوڅخه پورته شوې وه.نبی کریم ﷺ اول اوفرمائل ((التحیات لله والصلوات والطیبات)) نو د الله تعالی د طرفه جواب ملاؤ شو((

السلام عليك ايها النبي ورحمة الله وبركاته)) نو رسول الله ﷺ په جواب کښي عرض اوکړو.((السلام علينا وعلى عباد الله الصالحين)) نو حضرت جبريل عليه السلام اوفرمائيل ((اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمدا عبده ورسوله)) د دې درې واړه مجموعې ته التحيات وائي.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## ۹۰۶–په تشهد کښې د لاسونو کېخودلو مسنون طريقه

۹۰۶ – ()[۱]۱ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ۲ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَعَدَ فِي التَّشَهُّدِ، ۳ وَضَعَ يَدَهُ الْيُسْرَى عَلَى رُكْبَتِهِ الْيُسْرَى، ۴ وَوَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى رُكْبَتِهِ الْيُمْنَى، ۵ وَعَقَدَ ثَلَاثَةً وَخَمْسِينَ، وَأَشَارَ بِالسَّبَّابَةِ.

**ترجمه:** ۱ ابن عمر رضی الله عنهما فرمايي ۲ چې رسول الله ﷺ چې به په تشهد (يعني په التحيات) کې کيناستلو ۳ نو خپل ګس لاس به يې په ګسه ګونډه ايښودو ۴ او خپل ښي لاس به يې په خپله ښي ګونډه ايښودو ۵ او خپل ښي لاس په مثل د درې پنځوس بندولو سره د شهادت په ګوتې سره به يې اشاره کوله

**حل اللغات:**- ① عَقَدَ: عقد په معنى د شمير سره دې، دلته هم د يو خاص عدد علامت جوړول مراد دی.

۹۰۷–()[۲]۱ وَفِي رِوَايَةٍ: «كَانَ إِذَا جَلَسَ فِي الصَّلَاةِ وَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ، ۲ وَرَفَعَ أُصْبُعَهُ الْيُمْنَى الَّتِي تَلِي الْإِبْهَامَ فَيَدْعُو بِهَا، ۳ وَيَدَهُ الْيُسْرَى عَلَى رُكْبَتِهِ، بَاسِطَهَا عَلَيْهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او د يو روايت الفاظ دا دي چې کله به حضور ﷺ (په قعده کې) کيناستل نو دواړه لاسونه به يې په خپلو ګونډو ايښودل ۲ او د خپل ښي لاس هغه ګوته چې بټې ګوتې ته نږدې ده (يعني د شهادت ګوته به يې) پورته کوله او د هغې سره به يې دعا غوښتله (يعني د هغې په پورته کولو سره د وحدانيت اشاره به يې کوله) ۳ او ګس لاس به يې په خپل ورون ايښودلو خلاص. (مسلم)

**حل اللغات:**- ① الْإِبْهَامَ: مټه ګوته، غټه ګوته. ② فَيَدْعُو بِهَا: أَيْ: يُهَلِّلُ: دعا به ئې غوښتله (يعني لا اله الا الله ويلو سره به ئې اشاره کوله). ③ بَاسِطَهَا: باسط د اسم فاعل صيغه ده أَيْ: نَاشِرَهَا: خورې. پرانستې (به ئې ايښودلو ګس لاس په زنګون باندې).

**تسهيلات:- قوله:** وَعَقَدَ ثَلَاثَةً وَخَمْسِينَ:

(۱) اخرجه مسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة باب صفة الجلوس فى الصلاة، وكيفية وضع اليدين على الفخذين (رقم ۱۱۵ - (۵۷۹)

(۲) اخرجه مسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة باب صفة الجلوس فى الصلاة، وكيفية وضع اليدين على الفخذين (رقم ۱۱۴ - (۵۷۹)

**په تشهد کښې په زنګونانو ګوتو کیخودلو په کیفیت کښې مذاهب:-**

① حضورپاك ﷺ دَ ۵۳ دَعدد نشان جوړکړو هغه داسې ده چه مثلاً تولې ګوتې ئې بندې کړې صرف دَ شهادت ګوته ئې کولاؤ پریخوده اودَ غټې ګوتې سر ئې دَ شهادت والا دَ ګوتې په بیخ کښې کیخوده دادَ درې پنځوس عدد دې اوهم دغه طریقه شوافع حضراتوخپله کړې ده کوم چه دَامام شافعي رحمه الله جدید قول دې.

② دَامام مالك رحمه الله په نیزدَ لاس ټولې ګوتې بندول اودَ شهادت په ګوته سره اشاره اوکړې شی

③ احنافو تسعین یعنی لس کم سل عدداختیارکړې دې هغه داسې چه خنصر بنصر هغه یعنی کچه ګوته اودې سره نیزدې ګوته ئې بنده کړه اودَ غټې ګوتې او مینځمې ګوتې حلقه ئې جوړه اودَ شهادت په ګوته سره ئې اشاره اوکړه هم دغه طریقه دَامام احمد رحمه الله هم ده اودَ امام شافعي رحمه الله قدیم قول هم دغه شان دې

④ دَ بعض روایاتونه څلورمه طریقه هم معلومه شوې ده هغه داسې چه ټولې ګوتې خورې کړې شی اودَ شهادت په وخت دَ شهادت ګوته سره اشاره اوکړې شی بعض احناف په دې طریقه هم عمل کوی.اووړاندې دَ مسلم شریف په روایت کښې هم دغه طریقه ذکرده.

**داحنافو په متونو کښې د اشاره بالسبابه عدم ذکر:-** د احنافو په ظاهر الروایة او متونو معتبرو کښې داشاره بالسبابه ذکر نه ملاویږی نه اثباتا او نه نفیا ، ددې په بناء بعضې متاخرین اشاره بالسابه غیر مسنون ګرځولې ده.بلکه خلاصه کیدانی خو دا بدعت ګرځولې ده.او بعضې حضراتو خو ډیر زیات د تشدد او انتهاء نه کار اخستې دې.او دې مسئله کښې ئې د بحث کولو نه پس تردې وئیلی دی چه (( ماراقول ابوحنیفه رحمه الله باید قول رسول الله ﷺ کافی نیست )) العیاذ بالله

**د اشاره بالسبابه مسنونیت:**—حال دادې چه واقعه داد ه چه داشاره بالسبابة په مسنون کیدو کښې یو زره هم شك نشته دې ځکه چه ددې روایتونه حد د شهرت ته رسیدلې دې ترکومې چه داحنافو د ظاهرالروایة په کتابونو د اشاره بالسبابة د عدم ذکر تعلق دې نو ددې په وجې په احادیث صحیحو عمل ترك کول څنګه صحیح نه دی.ځکه چه زیات نه زیات دا عدم ذکر دې او عدم ذکر عدم الشئ لره مستلزم نه وی.داشان پخپله امام محمد په موطا کښې ([1]) داشاره بالسبابة حدیث ذکر کړې دې او فرمائیلی ئې دی چه(( قال محمد و لصنیع رسول الله ﷺ نأخذ وهو قول ابی حنیفة)) ددې تصریح نه پس هیڅ قسم شبه نشی پاتې کیدې.

**دخلاصه کیدانی عدم اعتبار:**—پاتې شوه دخلاصه کیدانی خبره نو هغه د فقه حنفی څه

[1] ص،۱۰۸، ۱۰۹ باب العبث بالحصی في الصلاة وما یکره من تسویته ۱۲ مرتب

معتبر کتاب نه دي بلکه ددې مصنف هم غیر معروف دی ، علامه شامی په (( شرح عقود رسم المفتی )) کښې لیکی چه صرف ددې کتاب په کتلو فتوی ورکول جائز نه دی.

**د خلاصه کیدانی د مصنف په باره کښې د علمائو اقوال:** ①علامه ابن همام رحمه الله لیکی که دَ خلاصه کیدانی دَ مصنف په کلام کښې دَ تاویل گنجائش نه وي نو مونږ به په دغه سړی دکفرفتوی لګولې. تاویل داکیدې شی چه هغه دَ کاهل الحدیث لفظ استعمال کړې دی او اهل حدیث گونه تاووی.

② ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی که حسن ظن نه وي نودَ دغه سړی په کلام کښې دکفرخطره ښکاری. []المرقات.

**په اشاره بالسبابه کښې د مجدد الف ثانی رائې:-** په اصل کښې دمنکرین اشاره ته چه کوم شخصیت دفتوی د ټولو نه زیات تقویت ملاؤ شوي دې هغه حضرت مجدد الف ثانی رحمه الله دې.هغوئ په خپل کتاب مکتوبات کښې د اشاره بالسبابة دسنت کیدو نه انکار کړې دې او په دې ئې طویل بحث کړې دې چه دهغې خلاصه دا ده چه اشاره بالسابة احادیث مضطرب المتن دی ځکه چه داشارې د هیئتونو په بیان کښې سخت اختلاق موندې شی. او که د اضطراب په بناء احناف دقلتین حدیث رد کولې شی نو داشاره بالسبابة احادیث هم په دې بناء رد کیدې شی.

**د مجدد الف ثانی تفرد:-** څو داحنافو خبره داده چه دحضرت مجددد الف ثانی رحمه الله دجلالت قدر او د علو شان سره ددوی په دې مسئله کښې تائید نشی کیدې.(( لان الحق ان الحق لیس معه فی هذه المسئلة ))

**د مجدد الف ثانی د اضطراب د دعوې تردید:-** شاه ولی الله لکه حضرت شاه صاحب رحمه الله دحضرت مجددالف ثانی رحمه الله د استدلال په جواب ورکولو کښې فرمائی چه دهیئت د اشارې باره کښې چه روایتونو کښې کوم اختلاف دې هغې ته اضطراب نشی وئیلې کیدې ځکه چه اضطراب هله وی چه کله حدیث مبارك یو وی او د هغې په الفاظو کښې څه ناقابل تطبیق اختلاف موندې شی.او دلته دا صورت نشته دې ځکه چه دا اختلاف دیو حدیث دالفاظو اختلاف نه دې بلکه دمتعدد صحابه کرام رضی الله عنهم د روایتونو اختلاف دې.اوددې اختلاف په بناء د ټولو روایتونو دا قدرمشترك رد کیدې نشی چه اشاره فی التشهدمسنون ده.اوددې قدر مشترك ثبوت په شهرت سره هم دې.ددې نه سوا ددې په سنت کیدو اجماع هم ده.

**د مختلفو هیئتونووجه:**بیا ترڅو چه ددې د مختلفو هیئتونو تعلق دې په حقیقت کښې دواقعاتو او دزمانې اختلاف دې.چه کله دوی په یو هیئت سره اشاره کړېده او کله په بل هیئت سره.دې اصطلاح ته د محدثینو د اصطلاح مطابق اضطراب نه وئیلې کیږی.

**د اشاره بالسبابه د ټولو طريقو جواز:-** اوداشارې چه کوم هينتونه په احاديث مبارکاؤ کښې ثابت دى په هغې کښې په هر يو عمل کول جائز دى.خو خمونږ په نزد ترجيح دې ته حاصله ده چه د منځې اومينځنۍ ګوتې نه يو حلقه جوړه شى او په سبابه به اشاره اوکړې شى.

**داشاره بالسبابة مختلف کيفيتونه:** ①چه کله مونځ ګذار دکلمه شهادت مقام ته راورسى نو "لااله" نفى باندې دې ګوته اوچته کړى دې دپاره چه نفى قولى سره نفى عملى شامل شى.

② شوافع اوحنابله فرمائى چه "الاالله" اثبات باندې ګوته اوچتول بهتردى

③ دا هم جائزدى چه په قاعده باندې کيناستوسره سرې دښى لاس ګوتې د شهادت دپاره بنداوساتى

④ دا هم جائزدى چه په شهادت باندې رسيدوسره ګوتې بند کړى اوبيا اشاره اوکړى

⑤ د اشاره نه پس ګوته لاندې کيخودل هم جائز دى

⑥ د سلام پورې اوچته ساتل هم جائزدى. اوحلقه ماتول صحيح نه دى.

**۹۰۸-په مانځه کښې د ناستې طريقه**

۹۰۸-()[۲] [۱]وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الزُّبَيْرِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲]«كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَعَدَ يَدْعُو[۳] وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى فَخِذِهِ الْيُمْنَى،[۴] وَيَدَهُ الْيُسْرَى عَلَى فَخِذِهِ الْيُسْرَى،[۵] وَأَشَارَ بِأُصْبُعِهِ السَّبَّابَةِ،[۶] وَوَضَعَ إِبْهَامَهُ عَلَى أُصْبُعِهِ الْوُسْطَى،[۷] وَيُلْقِمُ كَفَّهُ الْيُسْرَى رُكْبَتَهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] عبد الله ابن زبير ﷺ فرمايي[۲] چې رسول الله ﷺ چې به په لمانځه کې التحيات ويلو د پاره کيناستو[۳] نو خپل ښي لاس به يي په خپل ښي ورون [۴] او خپل ګس لاس به يې په خپل ګس ورون اينبودلو[۵] او د شهادت په ګوتې سره به يې اشاره کوله[۶] او خپله بټه ګوته به يي په مينځني ګوتې اينبودله (يعني دغسې به يې حلقه جوړوله) او کله کله به خپل ګس لاس سره به ئې ګسه ګونډه نيوله. (مسلم)

**حل اللغات:-** ⑦ يُلْقِمُ: أَيْ: يُدْخِلُ رُكْبَتَهُ فِي رَاحَةِ كَفِّهِ الْيُسْرَى: يعنى په خپل ګس لاس سره به ئې ګسه ګونډه نيوله.

**تسهيلات:- قوله: إِذَا قَعَدَ يَدْعُو:**

يعنى هغوئ به تشهد وئيلو. امام طيبى رحمة الله عليه فرمائى چې دلته ئې د تشهدنه په دعا سره تعبير اوکړو ځکه چې په دې کښې دعائيه کلمات دى: السلام عليك ،او السلام علينا.

**د تعارض اشکال:** دې حديث پاك کښې راغلى دى چې نبى کريم ﷺ خپل ځنګونونه خپلو لاسونو سره مضبوط نيول. او ماقبل حديث پاك نه معلوميږى چې نبى کريم ﷺ به د ځنګونونو دپاسه لاسونه مبارك اينبودل؟

(۱) مسلم : كتاب المساجد ، باب صفة الجلوس فى الصلاة ١٤/ ٩٠ حديث : ١٣٣٦)

**داشكال دري جوابونه :-**

① اول حديث د سند لحاظ سره د دويم حديث د سند نه راجح دي.

② گوتې به ئې د زنگونونو په محاذاتو كېښې وي. خو راوی د قرب په وجه داشان ذكر كړی دی. ③ دا په احيانًا باندې محمودل دی چې كله كله به ئې زنگونو دپاسه لاس مبارك اېښوذلو او كله كله به ئې زنگونونه نيول. لهذا افضل دادې چې د زنگونونو دپاسه لاس كيخودلې شی ،حالت به د گوتو داشان وی چې په خپل حالت سره خورې وی.

**۹۰۹-د تشهد (التحيات) وئيلو طريقه**

۹۰۹-(۱)[۳] ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «كُنَّا إِذَا صَلَّيْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْنَا: ③ السَّلَامُ عَلَى اللّٰهِ قَبْلَ عِبَادِهِ، ④ السَّلَامُ عَلَى جِبْرَائِيلَ، ⑤ السَّلَامُ عَلَى مِيكَائِيلَ، ⑥ السَّلَامُ عَلَى فُلَانٍ، ⑦ فَلَمَّا انْصَرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ، ⑧ قَالَ: "لَا تَقُولُوا: السَّلَامُ عَلَى اللّٰهِ، فَإِنَّ اللّٰهَ هُوَ السَّلَامُ،

**ترجمه:** ① عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي ② كله چې به مونږ د رسول الله ﷺ سره مونځ كولو نو په قعده كې د التحيات په ځاي به مونږ دا كلمات ويل ③ اَلسَّلَامُ عَلَى اللّٰهِ قَبلَ عِبَادِهٖ اَلسَّلَامُ عَلٰى جِبْرِيْلَ اَلسَّلَامُ عَلٰى مِيْكَائِيْلَ اَلسَّلَامُ عَلٰى فُلَانٍ، په الله باندې سلام دې د هغه د بنده گانو باندې د سلام نه مخكې ④ په جبرائيل عليه السلام باندې سلام دې ⑤ په ميكائيل عليه السلام باندې سلام دې ⑥ او په فلان (يعني په فرشتو كې په يوي فرشتي باندې يا په انبياء وكې په يو نبي باندې) سلام دې ⑦ (يوه ورځ) چې رسول الله ﷺ د لمانځه ځخه فارغ شو نو مونږ ته متوجه كيدو سره يې وفرمايل ⑧ په الله باندې سلام مه وايئ ځكه چې الله (خو په پخپله) سلام دې (يعني د پروردگار ذات د ټول آفاتو او نقصاناتو ځخه محفوظ او سالم دې هغه بنده گانو ته د ټولو ظاهري او باطني آفاتو او نقصاناتو ځخه سلامتي وركوي نو د هغه د پاره او د هغه د طرف ځخه سلامتي ثابت ده ځكه د سلامتي دعا د هغه چا د پاره كول پكار دي چې هغه ته د نقصاناتو او آفاتو ويره وي او هغه د سلامتي محتاج وي)

① فَإِذَا جَلَسَ أَحَدُكُمْ فِي الصَّلَاةِ، فَلْيَقُلْ: ② التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ، وَالصَّلَوَاتُ، وَالطَّيِّبَاتُ، ③ السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهُ، ④ السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِينَ- ⑤ فَإِنَّهُ إِذَا قَالَ ذَلِكَ أَصَابَ كُلَّ عَبْدٍ صَالِحٍ فِي السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ- ⑥ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، ⑦ ثُمَّ لِيَتَخَيَّرْ مِنَ الدُّعَاءِ أَعْجَبَهُ إِلَيْهِ، ⑧ فَيَدْعُوهُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

(۱) اخرجه البخاری كتاب الاستذان باب التشهد فی الآخرة (رقم ۸۳۱) ومسلم كتاب الصلاة - كتاب الصلاة ، باب التشهد فی الصلاة (رقم) ۵۵ - (۴۰۲) وابوداود كتاب الصلاة،باب التشهد(رقم-۹۶۸) وابن ماجة كتاب اقامة الصلاة، والسنة فيها ،باب ما جاء فی التشهد (رقم-۸۹۹) والنسائی كتاب التطبيق /باب كيف التشهد الأول (رقم-۱۱۶۸)

**ترجمه:**[۱] نو كله چې په تاسو كښې څوک د لمانځه په قعده كښې كيني نو دا كلمات دې وايي[۲] التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللهِ الصَّالِحِيْنَ، ټول تعريفونه او بدني عبادتونه (يعني مونځ وغيره) او مالي عبادتونه (يعني زكوٰة وغيره) د الله تعالى ﷻ د پاره دي[۳] اې نبي ﷺ په تا دې سلام وي او د الله تعالى ﷻ رحمتونه او بركتونه وي[۴] او په مونږ دې هم سلام وي او د الله تعالى ﷻ په ټولو نيكانو بنده ګانو دې سلام (يعني سلامتي) وي[۵] رسول الله ﷺ وفرمايل چې كوم سړي چې دا كلمات وايي نو د دې بركت به د زمكې او آسمان هر نيک بنده ته رسي[۶] د دې وروسته رسول الله ﷺ دا كلمات په شهادتين ختم كړل (چې د ټولو اعمالو اصل او خلاصه ده چنانچې وي فرمايل) أَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ، زه د دې خبرې ګواهي وركوم چې د الله تعالى ﷻ څخه سيوا بل معبود نشته او ګواهي وركوم چې محمد (ﷺ) د هغه بنده او رسول دې[۷] (بيا يې دا وفرمايل چې) د دې څخه وروسته چې كومه دعا بنده ته ښه لګيږي هغه دې اختيار كړي[۸] او د الله نه دې سوال اوكړي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:**- ⑦ التَّحِيَّاتُ: جمع د تحية ده، ټول تعريفونه (دلته ترې لساني عبادتونه مراد دي). ⑧ الصَّلَوَاتُ: جمع د صلوة ده، ددې نه بدني عبادتونه (مونځ وغيره) مراد دي. ⑨ الطَّيِّبَاتُ: جمع د طيبة ده، ددې نه مالي عبادتونه (زكوة وغيره) مراد دي. ⑤ أَصَابَ: أَيْ: أَصَابَ ثَوَابَ هٰذَا الدُّعَاءِ أَوْ بَرَكَاتِهِ: يعني رسيږي ثواب او بركات ددې دعا. ⑥ لِيَتَخَيَّرْ: د باب تفعل نه دې، معنىٰ ئې ده: اختيار دې كړي.

**تسهيلات:**- **قوله:** التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ:

**درې الفاظ او درې توجيهات:**-

① "التَّحِيَّاتُ" نه مراد عبادتونه قولي چه دي.

② "وَالصَّلَوَاتُ" نه عبادتونه بدني مراد دي.

③ دَ "وَالطَّيِّبَاتُ" نه او عبادتونه مالي مراد دي.

**دتشهد مفهوم:**- مطلب داچه زما قولي عبادتونه خاص دَ الله تعالى دَپاره دي اوزما بدني عبادتونه هم دَ الله تعالى دَپاره دي اوزما مالي عبادتونه هم دَ الله دَپاره دي يعني دَهر قسم عبادتونه هم دَ هغه دَپاره دي.

**قوله:** اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ:

**د نبي عليه السلام په شب معراج كښې د الله تعالى سره مكالمه:**- حقيقت دادې چه خطاب په اصل كښې دَ الله تعالى دَ طرفه دې چه په شپه دَ معراج كښې حضورپاك ﷺ ته شوې دې. قصه داسې پيښه شوه چه په شپه دَمعراج كښې كله حضورپاك ﷺ ته دَ الله تعالى سره

د کلام کولو شرف حاصل شو نو الله تعالی اوفرمائیل چه کله یوحبیب بل حبیب له خی نو هغه څه تحفه اخلی ورځی تازما دپاره څه تحفه راوړلی ده. حضوریاک ﷺ په جواب کښې اوفرمائیل "التحيات لله الخ" دا جواب خودیر عظیم وو دَدې په بدله کښې الله تعالی اوفرمائیل "السلام عليك ايها النبي ورحمة الله وبركاته" دا خودیر لوئی اعزاز او اکرام او انعام وو په دې وجه حضوریاک ﷺ خپل امت په دې کښې شامل کولوسره اوفرمائیل "السلام علينا وعلى عباد الله الصالحين" دا دَ امت لو یه همدردی وه اودا پوره مکالمه ډیره مناسب وه په دې باندې جبرائیل امین دَ نبی دَ شان اعتراف کولوسره اوفرمائیل "اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمدا عبده ورسوله" دې پوره مکالمې ته کتلوسره څوك دا وئیلی شی چه دا خطاب زمونږ دَ طرف نه دې په حقیقت کښې مونږ دا مکالمه نقل کوو کومه چه په شپه دَمعراج کښې دَ الله تعالی په حضور کښې شوې.

**په سلام کښې د خطاب صیغې استعمالولو وجه:** - عمدة القاری کښې علامه بدرالدین عینی رحمه الله فرمائی په اصل کښې حضوریاک ﷺ دا کلام هغه صحابه کرامو ته اوخودلو کوم چه دَ حضوریاک ﷺ مخې ته وو. بیا دا کلام هغه صحابه کرامو واخستلو کوم چه غائب وو اودغه شان دا سلسله په غائبینو کښې روانه شوه. دَدې کلام مطلب هم دادې چه دا صیغه دَ حاضر اوناظر دَعقیدې لاندې نه ده بلکه دا په توګه دَ نقل او حکایت ده. علامه سیوطی رحمه الله او نور محدثین لکه کرمانی رحمه الله وغیره نقل کړی دی چه کله دَ حضوریاک ﷺ وصال اوشو نو صحابه کرامو به دې ځائی کښې "السلام على النبي" وئیلو په کوم چه دَ حاضر سره خطاب په ځائی دَ غائب خطاب دې.

**قوله: الصَّالِحِينَ:**

**د صالحين مصداق:** - دَدې قید لګولوسره هغه ټول خلق خارج شو کوم چه صالح نه وی بلکه غیرصالح وی. علماء فرمائی چه صالح سړې هغه دې چه دَ خالق اومخلوق حقوق په ځائی راوړی اودَ دواړو خیال ساتی.

څومره لویه خوش قسمتی ده دَ هغه خلقو چه صالحان دی ځکه چه دَ دنیا اولیاء الله اودَ حرمین شریفین دَ ائمه او فضلاء دعاګانې هغوی ته په مفتوکښې ملاویږی صرف چه دوی صالحان جوړشی.

**۹۱۰- د رسول الله خپل امت ته د تشهد تعلیم ورکول**

۹۱۰- (١)[٣] ① وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ② «كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

(١) اخرجه مسلم كتاب الصلاة ، باب التشهد في الصلاة (رقم) ٦٠ - (٤٠٣) والترمذی كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء في التشهد(رقم-٢٩٠)

يُعَلِّمُنَا التَّشَهُّدَ[٣] كَمَا يُعَلِّمُنَا السُّورَةَ مِنَ الْقُرْآنِ،[٤] فَكَانَ يَقُولُ: التَّحِيَّاتُ الْمُبَارَكَاتُ[٥] الصَّلَوَاتُ الطَّيِّبَاتُ لِلّٰهِ،[٦] السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهُ،[٧] السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِينَ،[٨] أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ[٩] وَلَمْ أَجِدْ فِي " الصَّحِيحَيْنِ "، وَلَا فِي الْجَمْعِ بَيْنَ الصَّحِيحَيْنِ: " سَلَامٌ عَلَيْكُمْ " وَ" سَلَامٌ عَلَيْنَا " بِغَيْرِ أَلِفٍ وَلَامٍ،[١٠] وَلٰكِنْ رَوَاهُ صَاحِبُ " الْجَامِعِ " عَنِ التِّرْمِذِيِّ.

**ترجمه:**[١] عبد الله ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي[٢] چې رسول الله ﷺ به مونږ ته تشهد داسې ښودلو [٣] څنګه چې به يې راته د قرآن يو سورت ښودلو [٤] دغسې به يې ويل: اَلتَّحِيَّاتُ الْمُبَارَكَاتُ الصَّلَوَاتُ الطَّيِّبَاتُ لِلّٰهِ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهُ اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِيْنَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُوْلُ اللّٰهِ، ټول برکتناک تعريفونه[٥] او ټول مالي او بدني عبادتونه د الله د پاره دي[٦] اې نبي ﷺ په تا سلام او د الله رحمتونه او برکتونه دي وي[٧] په زمونږ دي هم سلام وي او د الله په نيکو بنده ګانو دي هم سلام وي[٨] زه د دې خبرې ګواهي ورکوم چې د الله څخه سوا بل معبود نشته او ګواهي ورکوم چې محمد ﷺ د الله رسول دي، مسلم،[٩] او د مشکوٰة مؤلف فرمايي چې ما نه خو په صحيحين (په بخاري مسلم کې) او نه په جمع بين صحيحين کې لفظ سَلَامٌ عَلَيْكَ او سَلَامٌ عَلَيْنَا بغير الف لام موندلې دي[١٠] البته داسې صاحبِ جامع الاصول د ترمذي په حواله نقل کړي دي.

**تسهيلات:-**

**قوله: يُعَلِّمُنَا التَّشَهُّدَ:**

**درې مشهور تشهدات:-** قعده اولى واجب ده او قعده آخيره په مونځ کښې فرض ده. په دې دواړو قعدو کښې تشهد وئيلى کيږي. اوس سوال دادې چه دَ تشهد باره کښې لس روايتونه موجود دي په کوم کښې چه دَ مختلف تشهداتو ذکر دې. ليکن په مشهورو روايتونو کښې درې تشهد مشهور دي.

① تشهد بن مسعود رضي الله عنه ② تشهد ابن عباس رضي الله عنهما

③ تشهد عمر فاروق رضي الله عنه. چونکه په تشهد کښې دَ الله تعالى وحدانيت دَ ښه نه په ښه طريقه او انداز کښې ثابتول مقصود وي نو صحابه کرامو په مختلفو الفاظو کښې دا پيش کړي دي. هم دغه وجه ده چه دَ ټولو علماؤ په دې باندې اتفاق دې چه دَ صحابه کرامو په دور کښې به مختلف تشهدات لوستلې کيدل او مختلفو صحابه کرامو مختلف تشهدات وو دغه ټول جائز دي. په جواز او عدم جواز کښې اختلاف نه دې البته افضل غير افضل او اولى او غير اولى کښې اختلاف راغلې دې خبره صرف دَ ترجيحاتو ده. (الکاشف: ٢/٤٢٢).

**دَ افضل تشهد په تعيين کښې مذاهب:-**

①امام شافعي رحمه الله دَ ابن عباس رضي الله عنهما تشهد ته افضل وئيلې دې او هغې ته ئې ترجيح

ورکړې ده.

② حضرت امام مالک رحمه الله دَ حضرت عمرفاروق رضي الله عنه تشهدته ترجيح ورکړې ده کوم چه په موطاکښې دې. دَدې تشهد صيغې دَ تشهدابن عباس رضي الله عنهما په شان دې.

③ امام ابوحنيفه رحمه الله دَ حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه تشهدته ترجيح ورکړې ده. اوحنابله هم احنافوسره دی.[المرقات: ۶۳۰/۲الکاشف: ۴۲۲/۲]

**د تشهد ابن مسعود د ترجيح وجوهات:** - ائمه احناف اوحنابله دَ عبدالله بن مسعود رضي الله عنه تشهدته دَ یوڅو وجوهاتو دَ وجې ترجيح ورکړې ده:

① اول وجه امام ترمذی رحمه الله اعتراف کړې دې چه دَتشهدباره کښې دَ جمهور صحابه تابعين عمل دَ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دَتشهدمطابق دې اودا حديث په خپل مطلب بنې دَ ټولونه زيات اصح او واضح دې.

② دَخلقو دَ تعليم دَپاره حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه په منبر نبوی باندې هم دغه تشهدوئيلوسره اورولې دې.

③ دَتشهد ابن مسعود رضي الله عنه دَ الفاظوپه نقل کولوباندې دَ ټول ائمه حديث توافق اواتفاق دې.

④ حضورپاک صلی الله علیه وسلم پخپله خله مبارک باندې حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ته حکم ورکړو چه دَدې تشهد تعليم وړاندې امت ته ورکړه. بلکه حضورپاک صلی الله علیه وسلم په ډير اهتمام سره دَ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه لاس نيولوسره په دې تشهد باندې پوهه کړو. چنانچه دا حديث "مسلسل باخذاليد" په نوم سره مشهوردې. حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دَ خپل شاګردلاس نيولوسره اوخودلو. تردې چه دَ امام ابوحنيفه رحمه الله استاذ حماد رحمه الله دَ امام صاحب رحمه الله لاس نيولوسره دَدې تشهدتعليم ورکړو.

⑤ دَ حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په تشهد کښې تجدد عمل دې ځکه چه په دې کښې دوه ځل واؤ سره دکلام ذکرکړې شوې دې يعنی "التحيات لله والصلوة والطيبات لله" دَدې برعکس په نور تشهد کښې عطف نشته بلکه هم يوه جمله ده کومه چه صفاتوسره ذکرده.

⑥ دَ عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دَ تشهد دَټولو نه لويه وجه دَ ترجيح دَمعراج حديث دې. چرته چه حضورپاک صلی الله علیه وسلم دَ الله تعالی په وړاندې پخپله داکلمات ادا کړی دی کوم چه دَ عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په روايت کښې دی.

**عقل حيرانوکې واقعه:** - دلته علماؤ يو زړه راښکونکې قصه ليکلې ده چه يوکلی وال حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله له راغلو او سوال ئې اوکړو "بِوَاوٍاَوْبِوَاوَيْنِ" امام صاحب رحمه الله جواب اوفرمائيل چه "بواوين" "فقال بارك الله فيك كما بارك فی لاولا نعم ولی" دَ مجلس حاضرين په دې خبرو اترو باندې پوهه نه شو اودَ امام صاحب نه تپوس اوکړو چه دې کلی وال دَ څه تپوس اوکړو

او تاسو څه جواب ورکړو نو هیڅ پوهه نه شو. امام صاحب ورته اوفرمائیل چه دې سړی تپوس اوکړو چه زه کوم یوتشهد وایم آیا هغه اووایم په کوم کښې چه یو واؤ دې یا هغه اووایم کوم کښې چه دوه واؤونه دی. ما هغه ته جواب ورکړو چه دَ ابن مسعود رضی الله عنه والا تشهد وایه په کوم کښې چه دوه واؤونه دی. په دې باندې هغه دعااوکړه چه الله تعالی دې تادَ زیتون دَ ونې په شان مبارك کړی چه نه شرقی ده اونه غربی ده. په دې کښې دې طرف ته اشاره ده ﴿مِنْ شَجَرَةٍ مُّبٰرَكَةٍ زَيْتُوْنَةٍ لَّا شَرْقِيَّةٍ وَّلَا غَرْبِيَّةٍ﴾ [سورت النور: ۳۴]

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## ۹۱۱- داشارې په وخت مسبحې ګوتې ته حرکت ورکول

۹۱۱-()[۵]۱ عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ۲ «ثُمَّ جَلَسَ، فَافْتَرَشَ رِجْلَهُ الْيُسْرَى، ۳ وَوَضَعَ يَدَهُ الْيُسْرَى عَلَى فَخِذِهِ الْيُسْرَى، ۴ وَحَدَّ مِرْفَقَهُ الْيُمْنَى عَلَى فَخِذِهِ الْيُمْنَى، ۵ وَقَبَضَ ثِنْتَيْنِ، وَحَلَّقَ حَلْقَةً، ۶ ثُمَّ رَفَعَ أُصْبُعَهُ، ۷ فَرَأَيْتُهُ يُحَرِّكُهَا يَدْعُو بِهَا». رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ

**ترجمه:** ۱ وائل بن حجر رضی الله عنه فرمايي ۲ چې بيا [رسول الله صلی الله علیه وسلم د سجدې څخه سر پورته کولو سره] داسې کيناستلو چې خپله ګسه خپه يې وغوړوله ۳ او ګس لاس يې په ګس ورون کينبودلو او ښي لاس په ښي ورون باندې، ۴ او څنګلې يې جدا وساتلې (يعني څنګلې يې په ورنونو داينبودلو په وخت د اړخ سره يو ځای نه کړې) ۵ او دواړه ګوتې (يعني خچې ګوته او هغې ته نژدې ګوته بندولو سره (د حنفي مذهب مطابق د مينځ ګوتې او د ښتې ګوتې حلقه) جوړه کړه ۶ بيا رسول الله صلی الله علیه وسلم د شهادت ګوته اوچته کړه ۷ او ما وليدل چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به هغه ګوتې لره حرکت ورکولو او په هغې سره به يې اشاره (دتوحيد) کوله. (ابوداؤد، دارمي)

**حل اللغات:-** ① فَافْتَرَشَ: خوره ئې کړه، اوئې غوړوله، ② حَدَّ: أَيِ الْمَنْعُ وَالْفَصْلُ بَيْنَ الشَّيْئَيْنِ: جدا ئې اوساتله، ③ مِرْفَقَهُ: مرفق څنګل ته وائی. ④ قَبَضَ: بندې ئې کړې (يعنی کچه ګوته او ورسره خواکښې ګوته). ⑤ حَلَّقَ: حلقه يعنی ګول دائره ئې جوړه کړه (يعنی مينځنۍ او دَ غټې ګوتې سرونه ئې يو ځایٔ کړل).

**تسهيلات:-** **قوله:** وَحَلَّقَ حَلْقَةً:

### د حلقې په کيفيت کښې مذاهب:-

① د احنافو په نيز به په تشهد کښې د اشارې کولو په وخت د ستين په شکل حلقه جوړوی.

② د شوافعو په نيز به حلقه په شکل د خمسين کښې جوړوی.

[1] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب كيف الجلوس فى التشهد(رقم-۹۵۷) والنسائى كتاب السهو/باب قبض الثنتين من أصابع اليد اليمنى وعقد الوسطى والإبهام منها(رقم-۱۲۶۸)

**د اول فریق دلیل:** - دوی وړاندې دَحضرت ابن عمر رضي الله عنهما حدیث نمبر ۱ نه استدلال کړې دې په کوم کښې چه دَ درې پنځوس عدد خودلې شوې دې.

**د دویم فریق دلیل:** - په زیر بحث حدیث کښې چې د حلقې کوم صورت ښودلې شوې دې. هم دغه طریقه دَ احنافو په نیز راجح ده او هم دغه عدد تسعین دې

**د علم الاعداد اهمیت:** - دا خبره یاد ساتل پکار دی چه دَ اهل حساب په نیزدَ گوتو اشارو او کیخودو سره دَ خاص عدد طرف ته اشاره کیږی. دَ اکائی دَپاره ځان له اشاره او دهائی دَپاره ځان له اشاره وی. دَ سینکړې دَپاره جدا اودَ هزار دَ پاره جدا اشاره وی. یا دا فن دَ تولو نه په ښه طریقه سره "تقریرات رافعی" کښې بیان کړې شوې دې دکوم چه اوږده تفصیلات دی بهرحال دَ گوتې اوچتولونه پس دَدې په تاوولو کښې اختلاف شته دې.

**د گوتې په تاوولو کښې مذاهب:** -

① امام مالک رحمه الله فرمائی کله چې سړې په تشهد کښې دَ شهادت گوته اوچته وی نوبیا دا په حرکت کښې ساتل پکار دی ترهغه وخته پورې چه سلام اوگرځوی.

② جمهور فقهاء فرمائی چه دَ گوتې اوچتولونه پس دا تاوول نه دی پکار یادې اوچته اوساتی یادې ښکته کولو سره په پتون باندې کیږدی تاوول نه دی پکار.

**د اول فریق دلیل:** - زیر بحث حدیث حضرت وائل بن حجر رضي الله عنه د دوی مستدل دې. په کوم کښې چه دَ "یحرکها" الفاظ دی.

**د دویم فریق دلیل:** - دَحضرت عبد الله بن زبیر رضي الله عنه روایت د دوی مستدل دې په کوم کښې چه دَ "لایحرکها" الفاظ راغلی دی.

**د اول فریق د دلیل جواب او تطبیق بین الروایات:** - دَ وائل بن حجر رضي الله عنه په روایت کښې "یحرکها" مطلب دا نه دې چه گوته اوچتولو سره به تاووله او حرکت به ئی ورکولو بلکه مطلب دادې چه دَ اشاره کولودَپاره چه به ئی کله گوته اوچتوله نو هم دا اوچتول ئی "یحرکها" سره تعبیر کړې دی. امام بیهقی رحمه الله دَ وائل بن حجر رضي الله عنه دا روایت کله چه په سنن بیهقی کښې روایت کړو نودَدې نه پس ئی دَ وائل بن حجر رضي الله عنه اوعبد الله بن زبیر رضي الله عنه دواړو روایتونو کښې تطبیق ورکولودَپاره ارشاد اوفرمائیلو "فیحتمل ان یکون المراد بالتحریک "الاشارة بها" لاتحریر تحریکها فیکون موافقا لروایة ابن الزبیر" یعنی په دې کښې دا احتمال دې چه دَ گوتې تاوولونه مراد اشاره کول وی تاوول نه وی نودَ وائل بن حجر رضي الله عنه او ابن زبیر رضي الله عنه په خپل مینځ کښې موافق کیږی. (بیهقی ج۲ص۱۳۲)

### ۹۱۲–د اشارې په وخت د ګوتې د حرکت نفی

۹۱۲–(۱)[۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الزُّبَيْرِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُشِيرُ بِأُصْبُعِهِ إِذَا دَعَا، [۳] وَلَا يُحَرِّكُهَا»، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، [۴] وَزَادَ أَبُو دَاوُدَ: وَلَا يُجَاوِزُ بَصَرُهُ إِشَارَتَهُ.

**ترجمه:** [۱] عبد الله ابن زبير رضي الله عنه فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ چې به (په قعده کې) دعا کوله (يعني کلمه شهادت به يي ويله) نو په خپلې ګوتې سره به يي اشاره کوله [۳] ليکن هغه به يي نه خوځوله، ابوداؤد، نسايي، [۴] او ابوداؤد دا الفاظ هم نقل کړي چې د حضور ﷺ نظر به د اشارې د ګوتې څخه تجاوز نه کولو.

**تسهيلات:-**

**قوله:** وَلَا يُحَرِّكُهَا:

**دعدم تحرک سبابه دليل:-** دا حديث واضح دليل دې چه دَتحريک سبابه ذکر چه دَدې نه په وړاندې حديث کښې راغلې دې هغه يا مؤل دې يا موقوف دې او عدم تحريک صراحت سره ثابت دې او دا حديث په امام مالک رحمه الله باندې حجت دې.

**قوله:** وَلَا يُجَاوِزُهُ إِشَارَتَهُ.

**د مذکوره عبارت په مطلب کښې درې اقوال:-** ① دَ حضورپاک ﷺ نظر به دَهغوی دَ اشاره بالسبابه نه وړاندې تجاوز نه کولو بلکه دَ قعده په وخت به دَ حضورپاک ﷺ نظر هم مخې ته وو.

② دَ حضورپاک ﷺ نظر مبارک اشاره بالسبابه باندې لګيدلې وودې دَپاره چه دَ توحيد مضمون ښه په زړه او دماغو باندې ورجذب کړی. عام شارحينو هم دغه دويمه معنی اخستې ده.

③ دَ حضورپاک ﷺ نظر مبارک هغه وخت به دَ آسمان طرف ته نه تلو په کوم سره چه دا تاسر ملاويدلو چه حضورپاک ﷺ په ګوته سره اشاره فرمائی چه الله تعالی په اسمانونو کښې دې په کوم سره چه دَ جهت احتمال پيدا کيږی کوم چه تجسم ته مستلزم دې او دې سره حدوث لازم دی دکوم نه چه الله تعالی پاک دې.

### ۹۱۳–په يوې ګوتې سره اشاره کول

۹۱۳–(۲)[۷] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «إِنَّ رَجُلًا كَانَ يَدْعُو بِأُصْبُعَيْهِ، [۳] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَحِّدْ أَحِّدْ"»، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ"

[۱] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة، باب الإشارة فی التشهد (رقم-۹۹۰)

[۲] اخرجه الترمذی باب (رقم-۳۵۵۷) والنسائی كتاب المواقيت/تعجيل المغرب (رقم-۵۲۰)

**ترجمه**: [۱] ابوهریره رضی الله عنه فرمایي[۲] چې یو سړي په تشهد کې (د شهادت) په دواړو ګوتو سره اشاره کوله[۳] رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل چې په یوه ګوته سره اشاره کوه په یوه ګوته سره اشاره کوه. (ترمذي، نسايي، بیهقي.)

**حل اللغات**:- ① أَحِّدْ أَحِّدْ: أَيْ: أَشِرْ بِأُصْبُعٍ وَاحِدَةٍ: یعنی په یوه ګوته سره اشاره کوه (ځکه ته چه دچا نه دعاکوې هغه یو دې).

**تسهیلات**:-

**قوله**: أَحِّدْ أَحِّدْ:

**د رجلاً مصداق**: دَ ابوداؤد او نسائی په روایت کښې داوضاحت موجود دې چه حضرت سعدبن ابی وقاص رضی الله عنه په کلمه شهادت کښې دَدواړو لاسونو دَ شهادت ګوتې سره اشاره فرمائیله. کیدې شي چه داخیال ئی وی چه دَدې په اثبات کښې اضافه اوشي. حضورپاك ﷺ چه کله اوکتلو نودَدې عمل نه ئی منع کړو اوحکم ئی ورکړو چه دَیو وحدانیت دَ اثبات دَپاره دَیوې ګوتې اشاره کوه.

**۹۱۳- په قعده کښې په لاسونو د تکیه لګولو ممانعت**

۹۱۳-(۸)[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [۲] «نَهَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَجْلِسَ الرَّجُلُ فِي الصَّلَاةِ [۳] وَهُوَ مُعْتَمِدٌ عَلَى يَدِهِ»، رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُوْدَاوُدَ، [۴] فِي رِوَايَةٍ لَهُ: «نَهَى أَنْ يَعْتَمِدَ الرَّجُلُ عَلَى يَدَيْهِ إِذَا نَهَضَ فِي الصَّلَاةِ».

**ترجمه**: [۱] ابن عمر رضی الله عنه فرمایي[۲] چې رسول الله ﷺ د دې څخه منع فرمایلې ده چې یو سړي دې په لمانځه کې داسې کیني [۳] چې په خپل لاس تکیه لګولو (یعنې لاسونو لګولو سره) کیني، احمد ابوداؤد، [۴] او په بل روات کې دا الفاظ دي چه رسول الله ﷺ د دې څخه هم منع کړې ده چې انسان (په لمانځه کې دې) د خپلو لاسونو په سهارا ودریږي.

**حل اللغات**:- ① مُعْتَمِدٌ: أَيْ: مُتَّكِئٌ عَلَى يَدِهِ: چه په لاس ئې زور راوړلې وی او ناست وی. ② نَهَضَ: أَيْ: قَامَ: اودریدلو به.

**تسهیلات**:-

**قوله**: وَهُوَ مُعْتَمِدٌ:

**په تشهد کښې د لاسونو د ګوتو کیښودلو محل**:- دَدې مطلب دادې چه کله سړې په قعده کینې نو هغه له خپل لاسونه په زمکه نه دی کیښودل پکار، بلکه دواړه لاسونه دې په پتونانو باندې کیږدی چه دَ ګوتوسرونه په زنګونوباندې راشی په زمکه باندې کیښودل حضورپاك ﷺ منع کړی دی.

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة، باب کراهية الاعتماد على اليد في الصلاة (رقم-۹۹۲)

قوله: إِذَا نَهَضَ فِي الصَّلَاةِ

**قيام ته د اودريدو په وخت زمکه باندې لاسونولګولوکښې مذاهب:-**

دويمه خبره په دې حديث کښې دابيان کړې شوه چه کله سړې دَ سجدې وغيره نه پاسي نو هغه له پکاردی چه په زمکه باندې اډه اونه لګوی دې نه هم حضورپاك ﷺ منع فرمائيلې ده.

① شوافع حضراتو دَ جلسه اوقعده نه په زمکه د لاس لګول سنت ګڼړی.

② امام احمد رحمه الله فرمائی چه بغيردَ عذرنه که يوسړې لاس لګولوسره پاسيدل غواړی نو پاسيدې شی. يعنی څه ګناه يا کراهت په کښې نشته.

③ دَ امام ابوحنيفه رحمه الله مسلك دا دې چه دَ قيام طرف ته دَ پاسيدو په وخت په زمکه باندې لاس کيخودل نه دی پکار اوکه چاته څه عذر وی نو شرعًا صاحب عذر معذور دې هغه چه څه کوی نومجبوردې.

**د اول فريق (شوافع) دليل:-** د دوی مستدل ۷۹۴ نمبر حديث دې. په کوم کښې چې د لاس لګولو ذکر دې.

**د دريم فريق دلائل:-** ① زيربحث حديث د دوی مستدل دې.

② حديث نمبر ۹۱۵ راروان حديث هم د دوی مستدل دې.

**نوټ:-** دَدې مسئله پوره تفصيل هم په دې حديث نمبر ۷۹۶ کښې تير شوې دې.

**۹۱۵-په اوله قعده کښې قيام ته تلوارکول**

| ۹۱۵-()[۹][۱]وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ:[۲]«كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ[۳]كَأَنَّهُ عَلَى الرَّضْفِ حَتَّى يَقُومَ»، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ. |
|---|

**ترجمه:**[۱] عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي[۲] چې رسول الله ﷺ به په اولني دوه رکعاتو (يعني په اولني قعده) کې (د تشهد د پاره) دومره کيناستلو[۳] لکه چې حضور ﷺ په ګرم کاڼي باندې ناست دي او (زر به) پاڅيدلو، (ترمذي، ابوداؤد، نسايي)

**حل اللغات:-** ① الرَّضْفِ: د رَضْفَة جمع ده، وَهِيَ حِجَارَةٌ مُحْمَاةٌ عَلَي النَّارِ: ګرم کاڼړی ته وائی.

**تسهيلات:- قوله:** كَأَنَّهُ عَلَى الرَّضْفِ:

**دتشبيه مطلب:-** مطلب دادې چې اول التحيات لنډ وواو بغيرددعاګانو نه به وو. نو د التحيات نه پس به زر تر زره اودريدل وو. لکه چې ګرم کاڼړی باندې ولاړ وی. څکه چې په ګرم کاڼړی باندې څوك زيات نشی کيناستې زر اودريږی.

---

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة، باب في تخفيف القعود (رقم - ۹۹۵) والنسائي كتاب الحيض والاستحاضة/ باب ما جاء في مقدار القعود في الركعتين الأولين (رقم-۳۶۶)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## ۹۱۶- د التحیات مختلف الفاظ

۹۱۶-()[۱۰] [۱] عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَلِّمُنَا التَّشَهُّدَ [۳] كَمَا يُعَلِّمُنَا السُّورَةَ مِنَ الْقُرْآنِ: [۴] "بِسْمِ اللّٰهِ، وَبِاللّٰهِ، [۵] التَّحِيَّاتُ لله وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ، [۶] السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهُ، [۷] السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِينَ، [۸] أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، [۹] أَسْأَلُ اللّٰهَ الْجَنَّةَ، [۱۰] وَأَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنَ النَّارِ» "رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت جابر ﷜ فرمایي [۲] چې رسول الله ﷺ به مونږ ته تشهد داسي ښودلو [۳] څنګه چه به يې راته د قرآن یو سورت ښودلو [یعني څنګه چې په اعتبار د قراءت سره د قرآن الفاظ مختلف دي دغه رنګه د تشهد الفاظ هم مختلف دي چنانچې په دي روایت کې د تشهد الفاظ داسې دي]: [۴] بِسْمِ اللّٰهِ وَبِاللّٰهِ التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ الصَّلَوَاتُ الطَّيِّبَاتُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهُ اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِيْنَ أَشْهَدُ اَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ أَسْأَلُ اللّٰهَ الْجَنَّةَ وَأَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ النَّارِ، د الله په نوم او د الله په توفیق سره شروع کوم [۵] او ټول تعریفونه او مالي او بدني عبادتونه الله لره دي [۶] اي نبي ﷺ په تا دي سلام وي او د الله رحمتونه او برکتونه دي وي [۷] او په مونږ او د الله په نیکانو بنده ګانو دي هم سلام وي [۸] او زه د دې خبرې ګواهي ورکوم چې د الله څخه سوا بل معبود نشته او ګواهي ورکوم چې محمد ﷺ د الله بنده او د هغه رسول دی [۹] زه د الله څخه د جنت خواست کوم [۱۰] او د دوزخ څخه د الله پناه غواړم. (نسايي)

**تسهیلات:-**

**قوله:** بِسْمِ اللّٰهِ، وَبِاللّٰهِ، التَّحِيَّاتُ لَهُ:

**دحضرت جابر رضی الله عنه تشهد:-** ددې حدیث مبارك حاصل دادې چې دا دعا ده او په دې کښې د تشهد بیان دی. کوم چې تشهد دجابر ﷜ دی. په دې کښې د امرصیغه نشته دې، دا به تاسو په دامر صیغې سره کله هم ملاؤ نشی کوم چې تشهد د ابن مسعود کښې دی.

## ۹۱۷- د شیطان په تکلیف کښې د شهادت په ګوته د اشارې کردار

۹۱۷-()[۱۱] [۱] وَعَنْ نَافِعٍ، قَالَ: [۲] «كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ، إِذَا جَلَسَ فِي الصَّلَاةِ وَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ [۳] وَأَشَارَ بِإِصْبَعِهِ وَأَتْبَعَهَا بَصَرَهُ، [۴] ثُمَّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَهِيَ أَشَدُّ عَلَى الشَّيْطَانِ مِنَ الْحَدِيدِ" يَعْنِي السَّبَّابَةَ»، رَوَاهُ أَحْمَدُ.

---

[۱] اخرجه النسائی کتاب التطبیق/باب نوع آخر من التشهد (رقم-۱۱۷۵)

[۲] اخرجه احمد فی المسند رقم (۱۱۹/۲)

**ترجمه:**[١] نافع رحمه الله فرمايي چې ابن عمر رضي الله عنه چې به کله په لمانځه (يعني په قعده) کې کيناستلو نو خپل دواړه لاسونه به يې په خپلو ګونډو ايښودل او (د شهادت) په ګوتې سره به يې (د وحدانيت) اشاره کوله او نظر به يې په ګوته ساتلو او ويل به يې چه رحمت عالم نبي مکرم ﷺ فرمايلي دي چه (دا د شهادت ګوته) په شيطان باندې د اوسپنې څخه زياته سخته ده يعنې د شهادت په ګوتې سره د وحدانيت اشاره کول په شيطان باندې د نيزې وغيره ويشتلو څخه زياته سخته ده. (احمد)

**حل اللغات:-** ① أَتْبَعَهَا بَصَرَهُ: خپل نظر به ئې په ګوتو يا په اشاره باندې ساتلو. ② الْحَدِيدِ: اوسپنه.

**تسهيلات:-**

**قوله:** لَهِيَ أَشَدُّ عَلَى الشَّيْطَانِ مِنَ الْحَدِيدِ:

**د اشارې بالسبابه فائده:-** يعني دا اشاره د شيطان دپاره د اوسپنې د حملې نه زياته سخت ده، ځکه دې اشارې سبابه سره ئې د الله تعالى توحيد بيان کړو او دهغه د شرک ئې نفي اوکړه

**٩١٨-تشهد په پټ آواز سره د لوستلو مسنونيت**

٩١٨-( )[١٣][١]وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ،[٢]كَانَ يَقُولُ مِنَ السُّنَّةِ إِخْفَاءُ التَّشَهُّدِ، رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، [٢]وَقَالَ هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:**[١] ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي[٢] چې تشهد (يعني التحيات) په قلار آواز سره ويل سنت دي، ابوداؤد ترمذي، او ترمذي ويلي دي چې دا حديث حسن غريب دي.

**حل اللغات:-** ① إِخْفَاءُ التَّشَهُّدِ: تشهد (يعنى التحيات) په رو آواز سره ونيل.

**تسهيلات:-**

**قوله:** مِنَ السُّنَّةِ:

**دسنت څخه مراد:-** دلته د سنت څخه اصطلاحى معنى مراد نه ده بلکه سنت په معنى دطريقې د نبى کريم ﷺ دې.اود نبى کريم ﷺ، طريقه عامه وى اصطلاحى واجب ، سنت اومستحب ټولوته شامليږى دانه دى ګڼړل پکار چې تشهد په پټه ونيل سنت دى بلکه دا واجب دى.

**قوله:** إِخْفَاءُ التَّشَهُّدِ:

**په تشهد باندې عدم جهر کول:-** دا دنبى کريم ﷺ طريقه وه چې تشهد په پټ ونيل. ددې مطلب دا نه دې چې تشهد په رو ونيل سنت دى. بلکه تشهد په رو رو ونيل واجب دى.

.........

[١] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب إخفاء التشهد (رقم-٩٨٦)

# [۳۳/۱۶]بَابُ الصَّلَاةِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفَضْلِهَا]

**په حضور پاک ﷺ باندې د درود ویلو فضیلت**

**خلاصة الباب: -**

**فيه عشرون حديثاً مشتملة على ست مسائل:**

① كيفية الصلاة على النبي صلى الله عليه وسلم : ۱، ۲، ۱۴، ۱۸.

② فضيلة الصلاة علي النبي: ۳، ۴، ۵، ۱۰، ۱۱، ۱۷، ۱۸، ۱۹.

③ إبلاغ السلام إلى النبى ﷺ : ۶، ۷.

④ إبلاغ الصلوة إلي النبى ﷺ : ۸، ۱۶.

⑤ الوعيد لمن لا يصلى على النبى ﷺ : ۹، ۱۵.

⑥ الصلوة على النبي سبب إجابة الدعاء: ۱۲، ۱۳، ۲۰.

قال الله تعالى ﴿إِنَّ اللّٰهَ وَمَلٰٓئِكَتَهٗ يُصَلُّوْنَ عَلَى النَّبِيِّ ۚ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا صَلُّوْا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا﴾ [احزاب: ۵۶]

**قوله: الصَّلَاةِ:**

**د صلوة لغوی او شرعی معنی:** په لغت کښې دعا، استغفار، رحمت او حسن الثناء ته وئیلې شی. دَ صلوة نسبت کـه دَالله تعالی طرف تـه اوکړې شـی نـودې نـه دَ رحمت کامله نزول مراددې. که دَدې نسبت دَ فرښتو طرف ته اوکړې شی نو استغفار مراد اخستې شی او که دَدې نسبت انسانانو او جناتو طرف او کړې شی نودې نه بیا دعا مراد وی. او که دَدې نسبت وُحوش او طیور طرف ته او کړې شی نودې نه به تسبیح او تهلیل مراد اخستې شی.

**د درود شریف حکم:** - پوره عمر کښې یوځل درود لوستل په هر مسلمان باندې فرض دی دَ قرآن پاك پورتنې آیت په دې باندې دال دې. په هر مجلس کښې چه دَ رسول الله ﷺ نوم په اول ځل باندې واخستې شی نو یوځل درود لوستل واجب دی که دوباره واخستې شی نو درود لوستل مستحب او سنت دی. په رسول الله ﷺ باندې درود شریف لوستل مقصود بالذات دی او بالتبع په نورو انبیاء کرامو او آل او صحابه باندې لوستل جائزدی. په مستقل توګه باندې په بل سړی باندې صلوة او سلام وئیل جائزنه دی. بلکه بعض محققینو صلوة دَ حضور پاك ﷺ دَ پاره خصوصیات کښې شمیرلې دې او سلام نـی دَ ټولو انبیاء کرامو دَ پاره عام ګرځولې دې او بالتبع صلوة په نورو انبیاء کرامو باندې هم لوستلې شی.

**د غیرالنبی دپاره د صلاة او سلام د استعمال حکم:** - لمعات شرح مشکوة ج۳ص ۱۸۸ باندې شیخ عبدالحق ﷫ دَ کلام نه معلومیږی چه صلوة او سلام نه که چرې صرف دعا

مراد واخستې شي يعنى دَدې لغوى معنى مراد واخستې شي نوبيا دَ انبياء نه علاوه دَ نورو دَ پاره هم وئيلى شى لكه چه حضورپاك ﷺ "اللهم صل على آل ابى اوفى" او "اللهم صل على عمرو بن العاص" لوستلي دي دا ټول دَ دعا او رحمت په توګه وو دَ درود په توګه نه وو. هم دغه صورت حال دَ لفظ ﷺ هم دې.

**په مانځه کښې د درود شريف وئيلو په حکم کښې مذاهب:-**

① امام شافعی رحمه الله فرمائى چه التحيات کښې هم درود وئيل فرض دى اوتشهدنه پس پس دَسلام نه وئيل هم فرض دى البته دَامام احمد رحمه الله يوقول امام شافعی رحمه الله سره هم دې.

② دَ امام ابوحنيفه رحمه الله معتمد قول او دَ جمهورو مسلك دا دې كه يوسړې په يومجلس کښې دَ رسول الله ﷺ نوم مبارك واؤرى نو يوځل درود وئيل واجب دى دې نه پس درود وئيل مستحب دى اودَ التحيات اوتشهد نه پس درود لوستل سنت دى.

**داول فريق اول دليل:-** ① دَ قرآن كريم دَ درود والاآيت د دوى مستدل دې.

**داول فريق د اول دليل دوه جوابونه:-** ① دَهغې نه ئې هم استدلال كړې دې. ليكن دا استدلال واضح نه دې په آيت کښې دَمطلق درود ذكر دې مانځه سره خاص نه دې نه دَ هرځل وئيلوخبره ده.

② د دې آيت ځخه دويم فريق هم فرضيت د درود ثابتوى خو په عمر کښې يوځل وئيل فرض ګڼرى.او په خصوصى توګه دَ تشهدنه پس وړاندې دَ سلام نه سنت مؤكده دې.

**داول فريق دويم دليل:-** ② په احاديثو کښې دَ درود چه كوم فضائل ذكر دى هغه ټول د دوى مستدلات دى.

**داول فريق د دويم دليل جواب:-** په احاديثو کښې دَ درود دَ فضيلت بيان دې دَ درود لوستلو ترغيب دې دادَفرضيت دليل نه دې.

**د دويم فريق دليل:-** نبى كريم ﷺ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ته صرف دَ تشهد په لوستلو اوفرمائيل "اذاقلت هذااوفعلت هذافقد تمت صلوته" دلته دَ درود لوستلونه بغير صرف دَ تشهد پورې لوستل يا په دغه اندازه باندې كيناستوباندې مونځ مكمل او جائزګرځولې شوې دې.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**۹۱۹- په آخرى قعده کښې د درود وئيلو طريقه**

۹۱۹-()[۱] ① «عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، قَالَ: ② لَقِيَنِي كَعْبُ بْنُ عُجْرَةَ، فَقَالَ: ③ أَلَا أُهْدِي لَكَ هَدِيَّةً سَمِعْتُهَا مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ④ فَقُلْتُ: بَلَى، فَأَهْدِهَا لِي، فَقَالَ: ⑤ سَأَلْنَا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

[۱]) اخرجه البخارى احاديث الانبياء باب قول الله تعالى: «واتخذ الله إبراهيم خليلا_ [النساء: ۱۲۵](رقم-۳۳۷۰) ومسلم كتاب الصلاة . باب الصلاة على النبى صلى الله عليه وسلم بعد التشهد (رقم- ۶۶ - (۴۰۶)

وَسَلَّمَ فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللهِ كَيْفَ الصَّلَاةُ عَلَيْكُمْ أَهْلَ الْبَيْتِ؟ [۶] فَإِنَّ اللهَ قَدْ عَلَّمَنَا كَيْفَ نُسَلِّمُ عَلَيْكَ، [۷] قَالَ: "قُولُوا: اللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ، [۸] كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ وَعَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ، [۹] إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ». [۱۰] اللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ [۱۱] كَمَا بَارَكْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ وَعَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ [۱۲] إِلَّا أَنَّ مُسْلِمًا لَمْ يَذْكُرْ عَلَى إِبْرَاهِيمَ فِي الْمَوْضِعَيْنِ.

**ترجمه:** [۱] عبد الرحمٰن بن ابي ليلى رحمه الله (تابعي) فرمايي [۲] چې د حضرت كعب ابن عجره (صحابي) رضي الله عنه سره زما ملاقات وشو نو هغه وفرمايل [۳] چې زه تا ته هغه شي د هديه په طور پيش نه كړم چې ما د رحمت عالم ﷺ څخه اوريدلي دي [۴] ما عرض وكړو چې ماته هغه هديه ضرور را كړه نو هغه وفرمايل [۵] مونږ څو صحابو رضي الله عنهم د حضور ﷺ څخه سوال وكړو چې يا رسول الله ﷺ په اهل بيت نبوت باندې مونږ درود څنګه وليږو؟ [۶] الله تعالى جل جلاله خو دا مونږ ته ښودلي دي چې په تا باندې سلام څنګه وليږو؟ [۷] رسول الله ﷺ وفرمايل داسې وايئ: اللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ الخ (اې الله په محمد ﷺ او په آل د محمد ﷺ باندې رحمت نازل كړې [۸] څنګه چې تا په ابراهيم عليه السلام او په آل ابراهيم عليه السلام باندې رحمت نازل كړي وو [۹] بيشكه ته بزرګ او برتر يې [۱۰] اې الله په محمد ﷺ او په آل د محمد ﷺ باندې بركت نازل كړې [۱۱] څنګه چې تا په ابراهيم عليه السلام او په آل د ابراهيم عليه السلام باندې بركت نازل كړي وو بيشكه ته بزرګ او برتر يې. [بخاري مسلم، [۱۲] خو د مسلم په روايت كې دوه ځايه د على ابراهيم الفاظ نشته.

**حل اللغات:** - ① هَدِيَّةٌ: تحفه، عطيه.

**تسهيلات:** - **قوله:** كَيْفَ نُسَلِّمُ:

**افضل درود:** يعنى په التحيات كښې "السلام عليك ايها النبى ورحمة الله وبركاته" الفاظ وسره الله تعالى دَ سلام وئيلو طريقه اوخودله يعنى په معراج كښې الله تعالى پخپله په رسول الله ﷺ باندې سلام اووئيل اودَ صلوة طريقه نى ورته پخپله اوخودله څكه چه په قرآن پاك كښې دَ صلوة اوسلام دواړو وئيلو حكم دې. په دې باندې حضورپاك ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه درود ابراهيمى وايئ. علماؤ ليكلى دى چه په ټولو درودونو كښې هم دغه درود افضل دې كوم چه په مانځه كښې درود ابراهيمى وئيلې شى دكوم دَ وئيلونه چه بريليان تقريبًا محروم دى.

**قوله:** كَيْفَ الصَّلَاةُ عَلَيْكُمْ أَهْلَ الْبَيْتِ:

**د اهل دوه معانى:** - ① آل اهل اوعيال يعنى بال بچ ته وائى ② ال تابعدار ته هم وائى.

**د آل په تعيين كښې اقوال:** -

① آل محمد ﷺ نه هغه اهل بيت مراد دى دَ چادَپاره چه صدقه اخستل حرام دى.

② دَ آل محمد ﷺ نه تابعدار او حكم منونكى خلق مراد دى اوهرمؤمن متقى دَ حضورپاك

ﷺ آل دي.

۳ دَ آل محمد ﷺ نه صرف دَ نبي كريم ﷺ اهل وعيال مراد دی.

۴ فخرالدين رازی رحمه الله فرمائی دَ حضورپاك ﷺ ازواج مطهرات اودَ هغوی اولاد په اهل بيت كښې شامل دی. مطلب دا چه ازواج مطهرات دَ اهل بيت په اول مفهوم كښې شامل دی دې نه پس نور خلق په دې كښې شامل كړې شوی دی. ازواج مطهرات خو خپل پخپله اهل بيت دی.

قوله: عَلَى إِبْرَاهِيمَ:

**د ابراهيم عليه السلام د تخصيص وجوهات:** په حديث كښې درود سره دَ حضرت ابراهيم تخصيص كړې دې

۱ حضرت ابراهيم عليه السلام دَ حضورپاك ﷺ بالخصوص جدامجد دې او

۲ حضرت ابراهيم عليه السلام على الاطلاق جدالانبياء دې.

۳ دَ حضورپاك ﷺ شريعت محمدی په اصولی توګه دَدين ابراهيمي تابع دې. نودَ مكې خلقو به خان ته ابراهيمی وئيل او په څه قابل غور عبادتونو كښې به ئې دَدې تابعداری كوله.

**د تشبيه يوه قاعده:-**

دَتشبيه قاعده داده چه دَ ادنیٰ تشبيه اعلیٰ سره وركولې شی دې دَپاره چه ادنیٰ مشبه دَ كامل مشبه سره ملاؤ كړې شی.

**اشكال:-** كه مذكوره قاعده دلته په درود كښې اومنلې شی نو په دې سره دَ اسلام هغه عقيده متاثر كيږی په كوم كښې چه دافيصله شوې چه محمد رسول الله ﷺ دَټولو انبياء نه افضل او بزرګ دې؟

**دَاشكال څلورجوابونه:-** ۱ دلته په كماصليت كښې دكاف لفظ مقحم يعنی زياتی دې نوبياخودَ تشبيه خبره ختمه شوه.

۲ تشبيه كښې اعلیٰ سره دَ ادنیٰ تشبيه قاعده اكثريه ده. قاعده كليه نه ده لهذا مذكوره صورت دَدې قاعدې لاندې نه دې.

۳ دلته تشبيه په نفس صلوة كښې ده كيفيت اوكميت دَ صلوة كښې نه ده. په نورو الفاظو كښې دلته اشتراك فی النوع دې چه په حضوراكرم ﷺ باندې دې نوع صلوة وی په دې كښې بحث نشته چه كوم يونوع اتم دې اوكوم نوع غيراتم دې.

۴ مشبه به اقویٰ اعلیٰ او افضل كيدل ضروری نه دی بلكه اوضح، اظهر او اعرف كيدل ضروری دی هم په دې وجه الله تعالی دَ خپل نور الهی تشبيه طاقچې اوقنديل كښې كيخودې شوې چراغ او ډيوې سره داسې وركړې. ﴿مَثَلُ نُورِهِ كَمِشْكَوٰةٍ فِيهَا مِصْبَاحٌ ۖ الْمِصْبَاحُ فِي زُجَاجَةٍ ۖ الخ﴾ [سورت نور: ۳۴]

## ۹۲۰- په آخری قعده کښې د درود شریف لوستل

۹۲۰-(١)[٢] ① وَعَنْ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: ② «قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ كَيْفَ نُصَلِّي عَلَيْكَ؟ ③ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "قُولُوا: ④ اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَأَزْوَاجِهِ وَذُرِّيَّتِهِ ⑤ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ، ⑥ وَبَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَأَزْوَاجِهِ وَذُرِّيَّتِهِ، ⑦ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ، ⑧ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابو حمید ساعدي رضی الله عنه فرمایي ② چې صحابه و رضی الله عنهم عرض وکړو یا رسول الله (صلی الله علیه وسلم) مونږ په تا باندې درود څنګه لیږو؟ ③ حضور صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل چه داسې وایئ ④ اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَأَزْوَاجِهِ وَذُرِّيَّتِهِ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ وَبَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَأَزْوَاجِهِ وَذُرِّيَّتِهِ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ، اې الله په محمد صلی الله علیه وسلم او د هغه په پاکو بیبیانو باندې او د هغه په اولاد باندې رحمت نازل کړې ⑤ څنګه چې تا په ابراهیم علیه السلام باندې رحمت نازل کړې وو ⑥ او په محمد صلی الله علیه وسلم او د هغه صلی الله علیه وسلم په پاکو بیبیانو باندې او د هغه په اولاد باندې برکت نازل کړې ⑦ څنګه چې تا په براهیم علیه السلام باندې برکت نازل کړې وو ⑧ بیشکه ته بزرګ اوبرتر يې. (بخاري، مسلم)

**تسهیلات:-**

**قوله:** وَأَزْوَاجِهِ:

**د درود الفاظ او مختلفې صیغې:** -دَ درود الفاظ اودَ دې صیغې په مختلف اندازکښې راغلې دی لکه څنګه چه د مشکوة په احادیثو کښې هم مختلف صیغې راغلی دی. علماؤ دَ دې متعلق کتابونه لیکلی دی. څه صیغې دَ احادیثونه ثابتې دی اوڅه دَ بزرګانو دَ معمولاتونه نقل دی. بهرحال کومې صیغې چه دَ شان نبوی منافی نه وی دَ هغې اختیارول دَ زیات برکت سبب دې. علماء لیکی چه درود ابراهیمی دَ ټولو نه افضل دې.

## ۹۲۱- د درود شریف لوستلو فضیلت

۹۲۱-(٢)[٣] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② " «مَنْ صَلَّى عَلَيَّ وَاحِدَةً; صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ عَشْرًا» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② کوم سړي چې په ما یو

---

[1] اخرجه البخاری احادیث الانبیاء باب قول الله تعالی: ﴿واتخذ الله إبراهیم خلیلا﴾ [النساء: ١٢٥](رقم-٣٣٦٩) ومسلم کتاب الصلاة . باب الصلاة علی النبی صلی الله علیه وسلم بعد التشهد (رقم- ٦٦ - (٤٠٧)

[2] اخرجه مسلم کتاب الصلاة . باب الصلاة علی النبی صلی الله علیه وسلم بعد التشهد (رقم- ٧٠ - (٤٠٨) والترمذی کتاب الوتر/باب ما جاء فی فضل الصلاة علی النبی صلی الله علیه وسلم (رقم- ٤٨٥) والنسائی کتاب السهو/باب الفضل فی الصلاة علی النبی صلی الله علیه وسلم (رقم- ١٢٩٦) والدارمی کتاب الصلاة/باب: فی فضل الصلاة علی النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-٢٨١٤)

خل درود ولیږي الله تعالی ﷻ په هغه لس خله رحمت نازلوي. (مسلم)

**تسهيلات:- قوله:** صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ عَشْرًا:

**داشکال:-** درود لوستونکی دَ الله تعالی نه دَ رسول الله ﷺ دَ پاره یو درود لیکلو دعا اوغوښتله نودَ حضورپاك ﷺ دَپاره خو یو درود شو اودَ درود لوستونکی دَپاره لس درود شو. په دې کښې خو په نبی علیه السلام باندې یورحمت اوپه امتی باندې لس رحمتونه شو.

**داشکال دوه جوابونه:-** ① دې امت ته په یوه نیکئی باندې دَ لسو نیکو ثواب ملاوېږی نودَدې اصولو مطابق دلته هم په یو درود وئیلو باندې هم په بني علیه السلام باندې لس رحمتونه نازلیږی.

② شیخ عبدالحق رحمه الله دا جواب هم ورکړې دې چه ممکن دی دَالله تعالی دَ طرف نه دَ حضورپاك ﷺ دَپاره یوخصوصی درود زمونږ دَ زرګونو درودونونه زیات غوره وی لکه چه یوه مرغلره دَ زرګونو دراهم نه افضل وی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### ۹۲۲–د یو درود لوستلو کمال

۹۲۲–()[۳] ① عَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ: "② «مَنْ صَلَّى عَلَيَّ صَلَاةً وَاحِدَةً؛ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ عَشْرَ صَلَوَاتٍ، ③ وَحُطَّتْ عَنْهُ عَشْرُ خَطِيئَاتٍ، ④ وَرُفِعَتْ لَهُ عَشْرُ دَرَجَاتٍ» "، رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت انس رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② کوم سړي چې په ما یو خل درود لیږي الله تعالی ﷻ په هغه لس رحمتونه نازلوي ③ اود هغه لس ګناهونه معاف کوي ④ او (د تقرب الي الله په سلسله کي) د هغه لس درجي اوچتوی. (نسایي)

**حل اللغات:-** ① حُطَّتْ: دمجهول صیغه ده، بِمَعْنَى كُفِّرَتْ: رجیږی، معاف کیږی. ② خَطِيئَاتٍ: ګناهونه.

**تسهيلات:-**

**قوله:** صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ:

**د صلاة په معنی کښې دوه اقوال:-** ① دلته د صلوة څخه مراد بخشش دي

② صلاة په معنی د تعظیم دي.

**قوله:** عَشْرَ صلوات:

**د لس د عدد څخه مراد:-** حدیث پاك کښې د لس عدد د کثرت خودلو دپاره دي تحدید تري مراد نه دي.

---

[1] اخرج النسائي كتاب السهو/باب الفضل في الصلاة على النبي صلى الله عليه وسلم (رقم-۱۲۹۷)

### ۹۲۳–د قیامت په ورځ نبی علیه السلام ته د نزدیکت ذریعه

۹۲۳–(¹) [۵]① وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ: ②" «أَوْلَى النَّاسِ بِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَكْثَرُهُمْ عَلَيَّ صَلَاةً» "،رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:**① ابن مسعود رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل② د قیامت په ورځ به په خلقو کې ماته د ټولو ځخه زیات نزدې هغه خلق وي چې په ما باندې زیات درود لیږي.(ترمذي)

**حل اللغات:**- ① أَوْلَى النَّاسِ :أَيْ:أَقْرَبُهُمْ: ډیر نزدې،ډیر غوره په خلقو کښې.

**تسهیلات:**-

**قوله:** أَوْلَى النَّاسِ بِي:

**په کثرت درود د معیت دحاصلیدو وجه:**–اي اقرب الناس یعنی یوځائی اوسیدلو او معیت په حواله سره ماته دټولو نه زیات نیزدې به هغه خلق وی چه دزیات نه زیات درود وائی ځکه چه کثرت درود دکثرت یاد دلیل دې اوکثرت یاد دَ محبت دلیل دې اودَ محبت صله معیت دې په دې وجه به په جنت کښې ورسره وی.

**په حدیث کښې د بشارت مصداق:**ابن حبان رحمه الله دَ دې حدیث وضاحت کښې لیکلی دی چه دَ حضورپاک ﷺ دَ دې اوچت بشارت مصداق محدثین دی ځکه چه دَمحدثینو جماعت حدیث خودلوسره دَ ټولو نه زیات درود وائی.

### ۹۲۴–د فرشتوپه ذریعه نبی علیه السلام ته دامت سلام رسول

۹۲۴–(²)[۶]① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②" «إِنَّ لِلّٰهِ مَلَائِكَةً سَيَّاحِينَ فِي الْأَرْضِ ③يُبَلِّغُونِي مِنْ أُمَّتِي السَّلَامَ» "،رَوَاهُ النَّسَائِيُّ،وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:**① ابن مسعود رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل② د الله تعالی جل جلاله ډیري فرشتي په زمکه کې سیاحت کوي (ګرځي)③ چه زما د امت سلام ماته رسوي، (نسایي،دارمي)

**حل اللغات:**- ① سَيَّاحِينَ :أَيْ: سَيَّارِينَ بِكَثْرَةٍ: ډیري ګرځیدونکې.

**تسهیلات:**-

**قوله:** مَلَائِكَةً سَيَّاحِينَ:

**د فرښتو یو ګشت کونکې جماعت:**– یعنی دَ فرښتو یوګشتی جماعت دې چه صرف په دې

¹) اخرج الترمذی کتاب الوتر/باب ما جاء فی فضل الصلاة علی النبی صلی الله علیه وسلم (رقم- ٤٨٤)

²) اخرج النسائی کتاب السهو/باب السلام علی النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-١٢٨٢) والدارمی کتاب الصلاة/باب: فی فضل الصلاة علی النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-٢٨١٦)

باندې مقرر دی چه د دنیا په کوم یو گوټ کښې څوك سړې په رسول الله ﷺ باندې درود وائی هغه فرښتې دا درود حضورپاك ﷺ ته رسوی. اوس د دې ترتیب څنگه دې دا هم الله تعالی بهترپیژنی د تگ راتگ سلسله هم کیدې شی. اود برقی نظام په شان هم کیدې شی. د ټیلی فون په طرز باندې هم څه سلسله کیدې شی داهیڅ گران نه دی. د دې حدیث تعلق هغه اشخاص سره دې چه لرې لرې علاقو کښې درود وائی لیکن کوم خلق چه د حضورپاك ﷺ روضه مبارکه سره خواکې درود وائی هغه پخپله نبی کریم ﷺ اوری د هغې د رسولو ضرورت نه وی لکه چه په راتلونکی حدیث کښې راروان دی.

**د حدیث نه مستنبط شوی فوائد:** ① نبی کریم ﷺ هرځائی حاضر اوناظر نه دې گنی د فرښتو د دې نظام قائم کولو څه ضرورت نه وو

② حضورپاك ﷺ ته په قبرمبارك کښې حیات جاودانی حاصل دې.

③ اوهم د دې ځائی نه داخبره هم ثابته شوه چه حضورپاك ﷺ غیب دان نه وو گنی په مینځ کښې د دې واسطو څه ضرورت وو.

**نبی علیه السلام ته د درود لیگونکی نوم اخستل:** -بعض روایاتو کښې راځی فرښتې د درود لوستونکی د حضورپاك ﷺ په وړاندې د هغه نوم هم اخلی چه دا درود د فلانکی ځوئی د فلانکی د طرف نه دې.

**۹۲۵-د نبی علیه السلام سلام لیږونکی ته جواب ورکول**

۹۲۵-()[۷] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ " «مَا مِنْ أَحَدٍ يُسَلِّمُ عَلَيَّ ٣ إِلَّا رَدَّ اللّٰهُ عَلَيَّ رُوحِي، حَتَّى أَرُدَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ» " رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي: "الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ".

**ترجمه:** ١ ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ هر کله چې یو سړي په ما سلام لیږي ٣ نو الله تعالی جل جلاله زما روح ماته واپس کوي تر دي چې زه د هغه د سلام جواب ورکوم، (ابوداؤد ،بیهقي)

**تسهیلات:** - **قوله:** رَدَّ اللّٰهُ عَلَيَّ رُوحِي:

**په حیات النبی باندې اشکال:** -د اهل سنت والجماعت دا یو مسلمه عقیده ده چه حضورپاك ﷺ په خپل قبرکښې حیات دې اود مرگ د تحقق نه پس الله تعالی حضورپاك ﷺ ته حیات جاودانی ورکړې دې. مسئله هم دغه ده چه حیاة الانبیاء کرام کښې د چا څه قابل ذکر اختلاف نشته دې. لیکن د دې حدیث نه معلومیږی چه د حضورپاك ﷺ حیات مستمره او دائمی نه دې بلکه بعض وخت د سلام د جواب د پاره په جسد اطهر کښې روح راواپس کولې شی نوبیا حضورپاك ﷺ جواب ورکوی؟

[1]) اخرجه ابوداود کتاب المناسک ،باب زیارة القبور (رقم- ۲۰۴۱)

**۵ اشکال جوابونه:-**

دَدې سوال علماء کرامو او شارحین حدیث مختلف جوابونه ورکړي دي.
علامه سیوطي رحمه الله تقریبًا پنځلس جوابونه ورکړي دي مګر په اصل کښې دوه یا درې جوابونه داسې دي کوم چه کافي هم دي او زړه ته هم لګي.

① دَ روحي چه کوم لفظ دې دَدې نه مراد نطق دې یعني رد الله علی نطقي. (کذا قال ابن حجر رحمه الله في فتح الباري)

② الارد الله علی روحي چه کومه جمله ده دا په حقیقت کښې حال واقع دې او دَقاعده مطابق دلته قد محذوف دې اصل عبارت داسې دي "الاوقد رد الله علی روحي" یعني څوك هم چه سلام وړاندې کوي نو حالت داوي چه الله تعالی زما روح واپس کړې وي. (کذا قال البیهقي وابن حجر والسیوطي)

③ دَ حضورپاك ﷺ روح مبارك هروخت دَ تجلیات الهیه مشاهده کښې په ملاء اعلی کښې مشغول وي او حضورپاك ﷺ په مکمل توګه باندې دې طرف ته متوجه وي خو چه قبرسره څوك سلام پیش کوي نو دَ جواب دَپاره روح راواپس کولې شي نو بیا حضورپاك ﷺ جواب ورکوي.

**په دریم جواب باندې اشکال:-** په دې جواب باندې دا اشکال دې چه په حضورپاك ﷺ باندې هروخت دَ اطراف عالم نه سلام پیش کولې شي نو بیا دَ انفصال روح څه تصور کیدې شي؟

**د بحث خلاصه:-** بهرحال دادَ عالم برزخ معامله ده بهترهم دغه ده چه دَلټون نه بغیر دا اومنلې شي چه حضورپاك ﷺ دَ سلام جواب ورکوي. نیزدې خلقوته په اوریدو سره ورکوي اودَ لرې نه سلام دَ فرښتو په ذریعه رسیږي او حضورپاك ﷺ جواب ورکوي لکه چه په راتلونکې حدیث کښې راځي.

**۹۲۶- نبي علیه السلام ته د امت سلام رسیدل**

۹۲۶-(¹)[۸] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [۲] "«لَا تَجْعَلُوا بُيُوتَكُمْ قُبُورًا، [۳] وَلَا تَجْعَلُوا قَبْرِي عِيدًا، [۴] وَصَلُّوا عَلَيَّ، فَإِنَّ صَلَاتَكُمْ تَبْلُغُنِي حَيْثُ كُنْتُمْ» "، رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضي الله عنه فرمایي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي [۲] چې خپل کورونه د قبرونو په شان مه ساتئ [۳] او زما په قبر د اختر (پشان میله) مه جوړوئ [۴] او تاسو په ما درود لیږئ هر چیرته چې تاسو یئ ستاسو درود ماته رارسیږي. (نسایي)

**حل اللغات:-** ① تَبْلُغُنِي: أَيْ: يُوَصِّلُونَ: رارسولې کیږي ماته.

¹) اخرجه ابوداود کتاب المناسک /باب زیارة القبور (رقم- ۲۰۴۲)

**تسهيلات:- قوله:** لَا تَجْعَلُوا بُيُوتَكُمْ قُبُورًا:

**د کورنو څخه قبرونه نه جوړولو په مفهوم کښې درې اقوال:-** ① خپل مړی په کورنو کښې مه خښنه وئي ځکه چه د تدفين دپاره عام قبرستان مقرر دې حضور اکرم ﷺ د حضرت عائشه صديقه رضی الله عنها په حجره مبارکه کښې ځکه دفن کړې شو چه د انبياء په خصوصيات کښې يو دا هم دې چه چرته د نبی انتقال اوشی هم هلته دې خښ کړې شی. د رسول الله ﷺ انتقال د حضرت عائشه رضی الله عنها په حجره مبارکه کښې شوې وو په دې وجه هم هلته د حضور پاك ﷺ تدفين اوشو.

② په خپلو کورونو کښې داسې مه کيږئی چه نه په دې کښې مونځ وی نه عبادت وی نه ذکر اذکار وی لکه چه په قبرونو کښې مړی وی چه صرف پراته وی بلکه تاسو د کور ماحول د عبادت ماحول جوړ کړئی دې دپاره چه په کورونو کښې برکتونه راشی او ستاسو عبادت ته په کتلو سره ستاسو اولاد هم عادت شی. د دې صورت به داوی چه د فرائض نه علاوه نوافل او ذکر اذکار په کورونو کښې کوئی.

③ قبرستان خپل کور مه جوړه وئی چه هلته لاړ شئی او منجاوران شئی او هم هلته خائی جوړ کړئی ځکه چه په دې سره د زيارة القبور مطلب فوت کيږی کوم چه رقت قلب دې بلکه کله کله زيارت کول پکار دی دې دپاره چه عظمت او احترام ئی باقی پاتې شی. ملاعلی قاری رحمه الله نور هم مطلبونه ليکلی دی مګر د حديث د ظاهری کلام نه داسې معلوميږی چه رومبی معنی زياته واضح او راجح ده.

**قوله:** وَلَا تَجْعَلُوا قَبْرِي عِيدًا:

**د قبر مبارک څخه د اختر جوړولو مفهوم:-** مطلب دادې چه زما د قبر نه د ميلې خائی مه جوړه وئی په دې باندې د اختر په شان منظر مه جوړه وئی چه هلته لهو ولعب د زيب او زينت مظاهره وی او د کيف او سرور مظاهرې وی. دغه شان را يو خائی کيدل د غفلت سبب او د بې ادبئی سبب دې لکه چه يهوديان او نصاری دغه شان کونکی را روان دی.

**قوله:** وَصَلُّوا عَلَيَّ:

**اشکال:-** شيخ عبد الحق رحمه الله لمعات کښې ليکی چه کله حضور پاك ﷺ په روضه اطهر باندې د داسې راجمع کيدو نه منع فرمائيلې نو يو قدرتی سوال پيدا کيږی چه قبر شريف سره يو خائی کيدو سره درود او سلام پيش کول مقصود وی د دې نه ئی څنګه منع کړل او که چرې منع شو نو بيا به څه کوی درود او سلام به څنګه پيش کوی؟

**د اشکال جواب:-** د دې جواب په دې جمله سره ورکړې شو چه تاسو چرته هم وئی هم د هغه خائی نه درود او سلام وړاندې کوئی ستاسو درود ماته را رسولې شی د دې فکر مه کوئی يعنی حضوری بالاقوال والقلوب کافی دې حضور بالابدان په خائی دا قولی حاضری کافی.

اوشافي اوګڼړئي.

**٨٢٧- په نبي عليه السلام د درود نه ليږلو وعيد**

٨٢٧-()[٩] ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② " «رَغِمَ أَنْفُ رَجُلٍ ذُكِرْتُ عِنْدَهُ فَلَمْ يُصَلِّ عَلَيَّ ③ وَرَغِمَ أَنْفُ رَجُلٍ دَخَلَ عَلَيْهِ رَمَضَانُ ④ ثُمَّ انْسَلَخَ قَبْلَ أَنْ يُغْفَرَ لَهُ» ⑤ وَرَغِمَ أَنْفُ رَجُلٍ أَدْرَكَ عِنْدَهُ أَبَوَاهُ الْكِبَرَ أَوْ أَحَدُهُمَا ⑥ فَلَمْ يُدْخِلَاهُ الْجَنَّةَ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه راوي دي ② چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چه د هغه سړي پوزه دي په خاورو ولړل شي چې د هغه مخکې زما ذکر وشي او هغه په ما درود ونه ليږي ③ او د هغه سړي پوزه دي په خاورو ولړل شي چې په هغه باندې د رمضان (د روژي) مياشت راشي ④ او د هغه د بخښني څخه مخکې تيره شوه ⑤ او د هغه سړي پوزه دي په خاوري ككړ شي چې مور وپلار يا په هغوئ كې يو د هغه په مخكې بوډا شي ⑥ او هغوئ هغه په جنت کې داخل نه كړي. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① رَغِمَ: مَعْنَاهُ لُصِقَ بِالرَّغَامِ وَهُوَ التُّرَابُ، أَيْ: ذَلَّ وَهَانَ: يعنی دَ هغه سړی پوزه دې په خاورو ككړه شی دَ چا مخې ته چه زما نوم راشی اوهغه درود اونه وائی، يعنی هغې دې ذليله او سپک شی. ① انْسَلَخَ: أَيْ: انْتَهَى: ختمه شی، تيره شی.

**تسهيلات:-** قوله: وَرَغِمَ:

**درې قسمه خلقو ته د حضور پاک صلی الله عليه وسلم بد دعا:-**

① **درود شريف نه ويونكې:**-مطلب دا چه په اول ځل كله نوم راشی نو دورد وئيل واجب دی هغه دا اوونه وئيل يا بار بار راتلو باندې درود اونه وئيل دا سره دَدې چه مستحب دی ليكن دَ مطلق وعيد تعلق هم دنيا سره دې دآخرت دَ وعيد ذكرنشته دې ځكه چه پوزه په خاور ككړيدو سزا هم دَدنيا ده. دې نه معلومه شوه چه بار بار درود وئيل واجب نه دی بلكه مستحب دی.

② **په رمضان كښې د الله تعالى څخه غفلت كونكې:**-بل دَ هغه سړی پوزه دې په خاورو ككړه وی په چاباندې چه دَ رمضان په دَ رحمتونو والاميا‌شت راشی اوتيره هم شی ليكن دا سړې دَ جنت تلو مستحق جوړنه شی ځكه چه هغه دَ رمضان حق ادا نه كړو.

③ **دمورپلارپه خدمت كښې كوتاهی كونكې:**-دريم دَهغه سړی پوزه دې په خاورو ككړه شی چه دَ خپل مور پلار نه يو يا دواړه دَ بوډاوالی په حالت كښې اووينی اودې دَهغوی داسې خدمت او قدر اونه كړی دكوم په وجه چه دې جنت ته داخل شی يعنی چه دَهغوی دَ خدمت نه كولو په وجه دَ جنت مستحق جوړنه شی نوداسړې ډير لوئی بدبخته دې.

[1] اخرج الترمذی كتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم /باب (رقم - ٣٥٤٥)

## ۹۲۸-د درود وسلام فضيلت

۹۲۸-(١)[۱۰] [۱] وَعَنْ أَبِي طَلْحَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، «أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَ ذَاتَ يَوْمٍ [۲] وَالْبِشْرُ فِي وَجْهِهِ، فَقَالَ: [۳] "إِنَّهُ جَاءَنِي جِبْرِيلُ، فَقَالَ: [۴] إِنَّ رَبَّكَ يَقُولُ: أَمَا يُرْضِيكَ يَا مُحَمَّدُ [۵] أَنْ لَا يُصَلِّيَ عَلَيْكَ أَحَدٌ مِنْ أُمَّتِكَ إِلَّا صَلَّيْتُ عَلَيْهِ عَشْرًا، [۶] وَلَا يُسَلِّمُ عَلَيْكَ أَحَدٌ مِنْ أُمَّتِكَ [۷] إِلَّا سَلَّمْتُ عَلَيْهِ عَشْرًا»؟" رَوَاهُ النَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابو طلحه ﵁ فرمايي چې يوه ورځ رسول الله ﷺ (صحابه و ﷺ ته) تشريف راوړو [۲] او هغه وخت د حضور ﷺ په مخ مبارك خوشحالي ظاهريده حضور ﷺ (د صحابو ﷺ د پوښتني ځخه وروسته يا د پوښتني نه مخكې) وفرمايل [۳] ماته جبرائيل ﵇ راغلي وو هغه ويل [۴] چې ستا پروردګار فرمايي اي محمد (ﷺ) آيا ته (ﷺ) په دې خبره راضي نه يې [۵] چې ستا (ﷺ) په امت کې څوك په تا درود ليږي زه به په هغه لس ځله رحمت نازلوم [۶] او څوك چې ستا په امت كې په تا سلام ليږي [۷] زه به په هغه لس ځله سلام وليږم، (نسايي، دارمي)

**حل اللغات:**- ① الْبِشْرُ: أَيْ: آثَارُ الْفَرَحِ وَالسُّرُورِ: د خوشحالي آثار.

**تسهيلات:**- **قوله:** وَالْبِشْرُ فِي وَجْهِهِ:

**د نبی علیه السلام په امت باندې شفقت:**-نبي كريم ﷺ په خپل امت باندې ډير زيات مشفق او مهربان وو. او اكثر به ئې دخپل امت دپاره فكر كولو او د امت په غم كښې به غمګين وو. خو هركله چې د حضرت جبرائيل عليه السلام په ذريعه ورته دا زيرې وركړې شو نو د حضرت نبي كريم ﷺ مخ مبارك د خوشحالۍ نه ږرقيدو. بيا نبي اكرم ﷺ دا زيرې د خپلو صحابه كرامو په واسطه پورا امت ته اورسولو.

**قوله:** إِلَّا صَلَّيْتُ عَلَيْهِ عَشْرًا:

**د الله تعالى د طرفه د سلام په مطلب كښې دوه اقوال:**-① د الله تعالى د سلام نه مراد د فرښتو په ذريعه سلام ليږل دي

② د دالله تعالى د طرفه د سلام مطلب د آفتونو نه سلامتيا ده.

## ۹۲۹-د درود او سلام په كثرت سره د ليږلو ترغيب

۹۲۹-(٢)[۱۱] [۱] «وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي أُكْثِرُ الصَّلَاةَ عَلَيْكَ، [۳] فَكَمْ أَجْعَلُ لَكَ مِنْ صَلَاتِي؟ [۴] فَقَالَ: "مَا شِئْتَ"، قُلْتُ: الرُّبُعَ؟ [۵] قَالَ: "مَا شِئْتَ، فَإِنْ زِدْتَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ، [۶] قُلْتُ:

---

[1] اخرج النسائى كتاب السهو/باب الفضل فى الصلاة على النبى صلى الله عليه وسلم (رقم- ۱۲۹۵) والدارمى كتاب الصلاة/باب: فى فضل الصلاة على النبى صلى الله عليه وسلم (رقم-۲۸۱۵)

[2] اخرج الترمذى كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم- ۲۴۵۷)

النِّصْفَ، قَالَ: "مَا شِئْتَ، ⑦ فَإِنْ زِدْتَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ"، قُلْتُ: فَالثُّلُثَيْنِ؟ ⑧ قَالَ: "مَا شِئْتَ، فَإِنْ زِدْتَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ" ⑨ قُلْتُ: أَجْعَلُ لَكَ صَلَاتِي كُلَّهَا؟ ⑩ قَالَ: "إِذًا تُكْفَى هَمَّكَ، وَيُكَفَّرُ لَكَ ذَنْبُكَ»" رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: ① ابي ابن كعب رضي الله عنه فرمايي ② چې ما عرض وكړو يا رسول الله ﷺ زه په تا په كثرت سره درود ليږم ③ (يعني په كثرت سره درود استول غواړم نو اوس راته ته ﷺ اووايه چې) خپلي دعا د پاره چې ما كوم وخت مقرر كړي دي په هغې كې څومره وخت به تا د درود ليږلو د پاره مخصوص كړم؟ ④ حضور ﷺ ورته وفرمايل څومره چې ستا زړه غواړي ما عرض وكړو آيا څلورمه حصه (وخت مقرر كړم)؟ ⑤ حضور ﷺ وفرمايل څومره چې ستا زړه غواړي كه زيات وخت مقرر كړي نو ستا د پاره بهتره ده ⑥ ما عرض وكړو آيا نيم وخت مقرر كړم؟ وي فرمايل څومره چې ستا زړه غواړي ⑦ كه زيات مقرر كړي نو ستا د پاره بهتره ده ما عرض وكړو د ورځي دوه حصي وخت مقرر كړم وي ⑧ فرمايل څومره چې ستا زړه غواړي كه د دې څخه زيات مقرر كړي نو ستا د پاره بهتره ده ⑨ ما عرض وكړو بنه ده زه د خپلي دعا ټول وخت ستا ﷺ د درود د پاره مقرروم ⑩ حضور ﷺ وفرمايل بس اوس به داستا كفايت وكړي (ستا د دين ودنيا مقاصد به پوره كړي) او ستا گناه به معاف شي. (ترمذي)

**حل اللغات**: - ① هَمَّكَ: حاجات او ضروريات (يعنى د دين او دنيا ټول ضروريات او مقاصد مراد دي). ② يُكَفَّرُ: أي يُغْفَرُ لَكَ: اوبه رژوى يعنى اوبه ئې بخښي.

**تسهيلات**: - **د امت دپاره خوشخبري:**

**قوله**: أُكْثِرُ الصَّلَاةَ:

**دحديث په مطلب كښې دوه اقوال**: - ① مطلب دادې چه زه دَ زيات نه زيات درود ليږلو اراده لرم تاسو دَهغې حد متعين كړئى چه زه دومره ځل وايم

② مطلب دادې چه يارسول الله! زه دَخپل ذات دَپاره ډيره دعا كوم اوس زه غواړم چه دَدعا په دغه وختونو كښې په تاسو باندې درود اووايم. لهذا هم تاسو راته مقرر كړئى چه څومره وايم.

**درود شريف ته د وخت وركولو څلور درجې:**

① دَدې په جواب كښې حضورپاك ﷺ اوفرمائيل چه څومره دې زړه غواړي وايه ته پخپله په خپلو وختونو باندې پوهيږې دَ خان دَپاره مقرر كړه.

② په دې باندې صحابى اوفرمائيل چه څلورمه حصه وخت مقرر كړم حضورپاك ﷺ تحديد اونه فرمائيلو بلكه وئى فرمائيل چه څومره غواړې اوكه زيات كولې شې نو زياته بهتره ده.

③ صحابى دَ نيم وخت تپوس اوكړو نو حضورپاك ﷺ هم هغه جواب وركړو بيا صحابى دَدريمې حصې تپوس اوكړو نو حضورپاك ﷺ بيا هم هغه جواب وركړو.

④ په دې باندې ابی بن کعب رضی الله عنه اوفرمائيل زه خپل ټول وخت په درود کښې صرف کول غواړم.

**د کثرت درود فوائد:** - ① په دې باندې نبی مکرم ﷺ اوفرمائيل چه که داسې دې اوکړل نوستاد دنيا ټول ضرورتونه به پوره کړې شی

② اوستا ټول ګناهونه به معاف کړې شی. د دې حديث نه معلومه شوه چه د درود ويلو بيشميره فائدې دی د دين اودنيا ټول ضرورتونه پوره کيږی. د شمير اوتعداد هيڅ حد او څه شرط نشته دې.

**دابی بن کعب معمول:** - حضرت ابی بن کعب ﷺ خپل اوراد او وظائف ټول وختونه د درود دپاره وقف کړل. په دې باندې د حضورپاک ﷺ د طرف نه ددغه انعام زيرې ملاؤ شو چه دپوره امت دپاره بشارت او زيرې دې.

## ۹۳۰- د درود څخه وروسته د غوښتلي دعا قبوليت

٩٣٠-()[١٢] ① وَعَنْ فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: ② «بَيْنَمَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَاعِدٌ إِذْ دَخَلَ رَجُلٌ فَصَلَّى، ③ فَقَالَ: اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي وَارْحَمْنِي، ④ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "عَجِلْتَ أَيُّهَا الْمُصَلِّي، ⑤ إِذَا صَلَّيْتَ فَقَعَدْتَ، فَاحْمَدِ اللهَ بِمَا هُوَ أَهْلُهُ، ⑥ وَصَلِّ عَلَيَّ، ثُمَّ ادْعُهُ"،

**ترجمه:** ① فضاله بن عبيد ﷺ فرمايي ② چې (يوه ورځ) رسول الله ﷺ ناست وو ناڅاپه يو سړې راغې هغه مونځ وکړو ③ بيا يې دا دعا وغوښتله اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ وَارْحَمْنِيْ (اې الله ما وبخښې او په ما رحم وکړې ④(د دې په اوريدو) رسول الله ﷺ ورته وفرمايل اې مونځ کونکيه تا (د دعا ترکيب ترک کولو سره) تلوار وکړو ⑤ [بيا يې ورته وفرمايل] هر کله چې ته مونځ وکړې نو (د لمانځه څخه وروسته د دعا د پاره) کينه او د الله تعريف وکړه څنګه تعريف چې دهغه لائق دې ⑥ او په ما درود وليږه بيا چې ته څه غواړې د الله څخه يې وغواړه (لکه چې رسول الله ﷺ هغه ته د دعا آدب او طريقه وروښودل)

① قَالَ: ثُمَّ صَلَّى رَجُلٌ آخَرُ بَعْدَ ذَلِكَ، ② فَحَمِدَ اللهَ، وَصَلَّى عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ③ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "④ أَيُّهَا الْمُصَلِّي، ادْعُ تُجَبْ»" ,رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَرَوَى أَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ نَحْوَهُ.

**ترجمه:** ① حضرت فضاله ﷺ وايي چه د هغه څخه وروسته يو بل سړي مونځ وکړو ② (په آخر کي) هغه د الله تعالی ﷻ تعريف هم بيان کړو او په حضور ﷺ يې درود هم وليږلو [او هغه دعا ونه غوښتله] ③ حضور ﷺ هغه ته وفرمايل ④ اې مونځ کونکيه دعا هم وغواړه قبوله به شي. (ترمذي، ابوداؤد، نسايي)

[1] اخرج الترمذی کتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب (رقم-۲٤٧٦)

**تسهيلات: - قوله: عَجِلْتَ:**

**په عجلت او سرعت کښې فرق: -** عَجِلْتَ: جلتی دې اوکړه (ددې په معنی کښې بل لفظ سرعت هم دې دواړو کښې فرق دادې چه سرعت اکثر د خير او د نيکئ په کارونو کښې استعماليږی او عجلت صرف د شر په ځای کښې استعماليږی).

**۹۳۱-د دعا د قبليدو د پاره درود لوستل**

۹۳۱-()[۱۳] ۱ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: ۲ «كُنْتُ أُصَلِّي وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ مَعَهُ، ۳ فَلَمَّا جَلَسْتُ بَدَأْتُ بِالثَّنَاءِ عَلَى اللهِ تَعَالَى، ۴ ثُمَّ الصَّلَاةِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ۵ ثُمَّ دَعَوْتُ لِنَفْسِي، ۶ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "سَلْ تُعْطَهُ، سَلْ تُعْطَهُ"» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ عبدالله ابن مسعود ﷺ فرمايي ۲ چې (يوه ورځ) ما مونځ کولو او رسول الله ﷺ تشريف فرماوو حضرت ابوبکر ﷺ او حضرت عمر ﷺ هم ورسره حاضر وو ۳ نو (د لمانځه ښخه وروسته) چې کله زه کيناستم او د الله جل شانه تعريف بيانول مې شروع کړل ۴ بيا مې په حضور ﷺ درود ولېږلو ۵ د هغه ښخه وروسته (د خپل ديني او دنياوي مقاصدو د پاره مې) دعا وغوښتله ۶ (د دې ليدلو سره) رسول الله ﷺ راته وفرمايل غواړه يه دربه کړل شی غواړه دربه کړل شي (يعني دعا غواړه ضرور به قبليږي). (ترمذي)

**تسهيلات: -**

**قوله: ثُمَّ الصَّلَاةِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:**

**د دعا د قبوليت دپاره د درود شريف وئيل: -** ځيني وائی چې شايد ددې نه مراد حضرت ابن مسعود ﷺ وی. لکه څنګه چې راتلونکی حديث کښې راځی. حاصل د حديث دا دی چې حضور ﷺ ددعا آداب خودلی دی چې دمونځ نه پس اول دالله تعالی تعريف بيان کړئی، بيا درود اووائي، بيا دعا اوکړي نو الله تعالی به ستاسو دعا قبوله کړی.

**د مونځ نه پس په جمات کښې لږه ناسته کول: -** ابن مسعود ﷺ فرمائی چې دې حضراتو مونځ کړې وو او مسجد کښې ناست وو. او ما مونځ کولو نه پس دعا اوکړه. نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې حمد او درود نه پس کومه دعا اوغوښتلې شی نوالله تعالی به هغه قبلوی. دې نه معلومه شوه چې مونځ نه پس لږ ساعت په مسجد ناسته سنت ده.

[۱] اخرج الترمذی کتاب السفر/باب ما ذکر فی الثناء علی الله، والصلاة علی النبی صلی الله عليه وسلم قبل الدعاء (رقم-۵۹۳)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## ۹۳۲- د درود لوستلو ترغيب

۹۳۲-()[۱۴] ۱ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَكْتَالَ بِالْمِكْيَالِ الْأَوْفَى ۳ إِذَا صَلَّى عَلَيْنَا أَهْلَ الْبَيْتِ ; فَلْيَقُلْ: ۴ اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ النَّبِيِّ الْأُمِّيِّ، ۵ وَأَزْوَاجِهِ أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ، وَذُرِّيَّتِهِ، وَأَهْلِ بَيْتِهِ، ۶ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ، ۷ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ» "، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ ابوهريره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ کوم سړي ته چې دا خوښ وي (يعني د هغه دا خواهش وي) چې هغه ته پوره (او د زيات څخه زيات) ثواب حاصل شي ۳ نو هغه ته پکار دي چې زمونږ په اهل بيت باندې دې داسې درود وليږي ۴ اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ النَّبِيِّ الامي وَأَزْوَاجِهِ أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ وَذُرِّيَّتِهِ وَأَهْلِ بَيْتِهِ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ، (اې الله تعالى جل جلاله په محمد ﷺ باندې چې نبي امي دي ۵ د حضور ﷺ په بيبيانو مبارکو چې د ټولو مؤمنانو ميندې دي او د حضور ﷺ په اولاد واهل بيت باندې رحمت نازل کړې ۶ څنګه چې تا په ال د ابراهيم عليه السلام باندې رحمت نازل کړې وو ۷ بيشکه ته بزرګ او برتر يې. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① سَرَّهُ: أَيْ: أَعْجَبَهُ وَأَحَبَّ: يعنى دائي خواهش وى او خوښه ئې ګنړې.

② يَكْتَالَ بِالْمِكْيَالِ: عِبَارَةٌ عَنْ نَيْلِ الثَّوَابِ الْوَافِي، أَيْ: يُعْطَى الثَّوَابَ: يعنى زيات ثواب حاصل کړى.

**تسهيلات:-** **قوله:** الْأُمِّيِّ:

**مخکنى کتابونو کښې د حضور پاک صلى الله عليه وسلم مشهور لقب:** -دَ رسول الله ﷺ دير نومونه دى څه نومونه داسې هم دى چه دَ حضورپاک ﷺ په خصوصيات او صفات په بنياد باندې دى. پخوانو کتابونو کښې دَ حضورپاک ﷺ مشهور لقب او مشهور تعارف "النبى الامى" وو دَ کوم ذکرچه په تورات او انجيل کښې وو او دَيهوديانو اونصارىٰ په ژبو باندې عام وو. په قرآن کريم کښې دَ حضورپاک ﷺ دَپاره دا لقب دوه ځل استعمال کړې شوې دې. سورت اعراف آيت نمبر۱۵۴ او ۱۵۷ کښې "النبى الامى" مبارك لقب ذکر دې. دَ "أُمِّيِّيْنَ" لفظ په قرآن کريم کښې درې ځل راغلې دې دکوم نه چه اهل عرب او اهل مکه مراد اخستې دى.

**د لفظ امى تحقيق:** - "امى" دَ ام طرف ته منسوب دې دې نه مراد هغه سړې دې چه ليکل اولوستل نه پيژنى، حضورپاك ﷺ ته امى هم په دې اعتبارسره وائى چه هغوى دَ پيدائش نه پس نه دَ يو استاذ په وړاندې شاګردى کړې اونه چرته يو مکتب ته تللې. څلويښت

[1] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب الصلاة على النبي صلى الله عليه وسلم بعد التشهد (رقم- ۹۸۲)

کالوپورې حضورپاك ﷺ هم دغه شان پاتې دې ځنګه چه هغوی ﷺ د پیدائش په وخت وو. بیا الله تعالی نیغ په نیغه الله تعالی هغوی ﷺ خپل شاګرد جوړ کړو او حضورپاك ﷺ ته ئې ټول علوم د شریعت ورعطا کړل. د وحی په سلسله کښې جبرائیل آمین صرف واسطه وه هغه د حضورپاك ﷺ استاذ نه وو هم دغه تعلیم اوتربیت طرف ته اشاره کولوسره حضورپاك ﷺ ارشاد فرمائیلې "ادبني ربي فاحسن تاديبي" رسول الله ﷺ الله تعالی د غیرد شاګردئی نه د دې د پاره محفوظ ساتلې دې د پاره چه د خراب باطن خلق په حضورپاك ﷺ باندې دا اعتراض اونه کړی چه ده د فلانکی نه زده کړه کړې او اوس د نبوت خبرې کوی. لکه چه حضورپاك ﷺ د شاګردئی د پاره الله تعالی د خپل ځان د پاره خاص کړې د بل چا د تربیت ئې په هغوی کښې ګډوډوالې نه دې پریخودې.

### ۹۳۳-په درود نه لیږونکی باندې د بخیل اطلاق

۹۳۳-(')[۱۵] ۱ وَعَنْ عَلِيٍّ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«الْبَخِيلُ الَّذِي مَنْ ذُكِرْتُ عِنْدَهُ ۳ فَلَمْ يُصَلِّ عَلَيَّ» "رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، ۴ وَرَوَاهُ أَحْمَدُ عَنِ الْحُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- ۵ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ۱ حضرت علي کرم الله وجهه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ بخیل هغه سړي دي چې د هغه په مخکې زما ذکر وشي (یعني زما نوم واخستل شي) ۳ او هغه په ما درود ونه لیږي، ترمذي، ۴ دا حدیث امام احمد رحمه الله د حسین ابن علي رضی الله عنه څخه نقل کړي دي ۵ او ترمذي ویلي دي چې دا حدیث حسن صحیح غریب دي.

**تسهیلات:-** **قوله: الْبَخِيلُ"**

- **حقیقی او اصلی بخیل:** -یو خود مال بخیل وی کوم چه عام انسانان پیژنی اوهغه بخیل منی. لیکن یو حقیقی بخیل وی کوم چه عام انسانان نه پیژنی. د هغه تعارف حضورپاك ﷺ په دې حدیث مبارك کښې اوکړو چه اصل بخیل هغه دې د چا په مخکښې چه زما نوم واخستې شی او هغه درود اونه وائی. دا اصل بخیل ځکه دې چه درود وئیلو باندې د هغه د جیب نه څه پیسه وغیره نه ځی اونه څه مشقت وی اوفائده ئې ډیره زیاته ده خوبیا هم دغه سړې په دې کښې د بخل او کنجوسئی نه کار اخلی.

### ۹۳۴-د درود شریف نبی علیه السلام ته رسیدل

۹۳۴-(')[۱۶] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«مَنْ صَلَّى عَلَيَّ عِنْدَ قَبْرِي سَمِعْتُهُ، ۳ وَمَنْ صَلَّى عَلَيَّ نَائِيًا أُبْلِغْتُهُ» "، رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي: "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

---

[1] اخرج الترمذی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم - ۳۵۴۶)

[2] اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم (۱۵۵۳)

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] کوم سړي چې زما د قبر سره ودریږي او په ما درود اووائي نو زه هغه اورم[۳] او کوم سړي چې د لرې ځخه په ما درود رالیږي نو هغه ماته رارسول کیږي (بیهقي)

**حل اللغات:** - ① نَائِيًا: أَيْ: مِنْ بَعِيدٍ: د لرې نه، ② أُبْلِغْتُهُ: أَيْ: أُعْلِمْتُهُ: رارسولې شی ماته،

**تسهیلات:** - **قوله:** عِنْدَ قَبْرِي:

**د حیات النبی صلی الله علیه وسلم دلیل:** دَدې حدیث پاك نه یوه داخبره واضحه شوه چه حضورپاك ﷺ په خپل قبرکښې حیات دې اودرود اوسلام پخپله اوری. دَدې تفصیل د حدیث نمبر ۹۲۵ په شرح کښې تیر شوې دې.

**۹۳۵ – په یو ځل درود شریف وئیلو اویا ځله د فرشتو بنده دپاره استغفار غوښتل**

۹۳۵ – ()[۱۷] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [۲] مَنْ صَلَّى عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاحِدَةً، [۳] صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَمَلَائِكَتُهُ سَبْعِينَ صَلَاةً، رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] عبدالله ابن عمر رضي الله عنه فرمایي کوم سړي[۲] چې په رسول الله ﷺ یو ځل درود لیږي[۳] په هغه الله تعالی جل جلاله او د هغه ملائکي ۷۰ (اویا) ځله رحمت لیږي. (احمد)

**تسهیلات:** -

**قوله:** سَبْعِينَ صَلَاةً:

**اشکال:** - د مخکنو احادیثوځخه معلومه شوه چې د یو درود په ځائې الله تعالی لس رحمتونه نازلوی او په دې حدیث کښې د اویا رحمتونو ذکر دې؟

**داشکال جواب:** - په ظاهره داسې ښکاریږی چه دا ثواب دَ جمعه مبارکې ورځ سره خاص دې ځکه چه دې نه وړاندې مرفوع احادیثوکښې دَ یودرود لس چنده زیات ثواب بیان کړې شوې دې. دَ جمعه باره کښې په روایاتوکښې راغلی دی چه دَجمعه په ورځ دَ اعمالو ثواب اویا چنده زیاتیږی اودَ جمعه په ورځ یوحج دَ اویاؤ حجونو برابر وی.

**حدیث الباب د مرفوع په حکم کښې:** - دَدې حدیث دَ الفاظونه معلومیږی چه داموقوف دې اوداَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما اثر دې مګر داسې نه دی ځکه چه دَ فضائلو په ابواب کښې یوحدیث یوسړې خپل طرف نه بیانولې نه شی ځکه چه دَ علماء متفقه فیصله ده چه "والفضائل لاتوخذ بالقیاس" (تحفة الاحوذی ج ۱۰ ص ۲۶۴) یعنی فضائل په قیاس کولوسره نه شی بیانولې. لامحاله حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما داحدیث دَ حضورپاك ﷺ نه اوریدو سره بیان کړې وی نودا روایت دَ مرفوع حدیث په حکم کښې دې.

[1] اخرجه احمد في المسند ۱۸۷/۲

۹۳۶- په درود سره د نبی علیه السلام د شفاعت وجوب

۹۳۶-(¹)[۱۸] [۱] وَعَنْ رُوَيْفِعٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [۲] "«مَنْ صَلَّى عَلَى مُحَمَّدٍ وَقَالَ: [۳] اللَّهُمَّ أَنْزِلْهُ الْمَقْعَدَ الْمُقَرَّبَ عِنْدَكَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ; [۴] وَجَبَتْ لَهُ شَفَاعَتِي» "، رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] حضرت رویفع رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړي چې په محمد ﷺ درود ولیږي او (د درود لیږلو څخه وروسته دا هم) اووائي [۳] اللَّهُمَّ أَنْزِلْهُ الْمَقْعَدَ الْمُقَرَّبَ عِنْدَكَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، (اي پروردګاره محمد ﷺ ته په هغه مقام ځاي ورکړي چه ستا په نيز مقرب دي د قيامت په ورځ) [۴] نو د هغه د پاره زما شفاعت واجبيږي. (احمد)

**حل اللغات:-** ① الْمَقْعَدَ الْمُقَرَّبَ: هُوَ الْمَقَامُ الْمَحْمُودُ: د الله تعالى سره په جنت کښې نزدې مقام، ددې نه مراد مقام محمود دې په کوم کښې چه به حضورپاک ﷺ دَ محشر په ورځ دَ شفاعت کبرىٰ دَپاره په سجده کیږي

**تسهیلات:-**

قوله: وَجَبَتْ لَهُ شَفَاعَتِي:

**د شفاعت دوجوب درود:**-دا درود يوخاص درود دې کوم چه خواص لولي اودَ کوم چه عجيبه اثرات دي. "وجبت له شفاعتي" يعنې دې درود سره شفاعت واجب کیږي.

**د شفاعت عظمت:**-دَ شفاعت قدر باندې تاسو داسې پوهيدلې شئ مثلاً چه په يوغيرملکی ائيرپورټ باندې سړې حيران او پريشان ولاړوی ناڅاپې يوسرکاري سړې راشي او وائي چه دادَ سرکار سړې دې دې ويناکولوسره هغه دَلاس نه اونيسي او په اعزاز سره دَټولو قوانينونه بالادَ بادشاه خصوصي مهمان خانې ته بوځي او هلته حصار شي. دغه شان چه سړې په ميدان حشر کښې حيران اوپريشان ولاړوی دَحساب کتاب ټول مشکلات مخې ته وی اوناڅاپې دَرسول عربي ﷺ قاصد راشي اوقانوني افسرانوته اووائي چه دادَ محمدعربي سړې دې دا ويناکولوسره دې دَلاس نه اونيسي جنت ته ئې بوځي اوشاهي مهمان جوړولوسره په شاهي مهمان خانه کښې حصارکړی دادَ شفاعت پس منظردې الله تعالى دې مونږ ته نصيب کړي. آمين.

۹۳۷- د درود په صله کښې د الله تعالى رحمت

۹۳۷-(²)[۱۹] [۱] وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «خَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى دَخَلَ نَخْلًا [۳] فَسَجَدَ، فَأَطَالَ السُّجُودَ [۴] حَتَّى خَشِيتُ أَنْ يَكُونَ اللهُ تَعَالَى قَدْ تَوَفَّاهُ، [۵] قَالَ: فَجِئْتُ أَنْظُرُ، فَرَفَعَ رَأْسَهُ، [۶] فَقَالَ: "مَا لَكَ؟" فَذَكَرْتُ لَهُ ذَلِكَ، [۷] قَالَ: فَقَالَ: "إِنَّ جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَالَ لِي: أَلَا أُبَشِّرُكَ

¹) اخرجه احمد في المسند ۱۰۸/۴

²) اخرجه احمد في المسند ۱۹۱/۱

أَنَّ اللهَ عَزَّوَجَلَّ يَقُولُ لَكَ: [٨]مَنْ صَلَّى عَلَيْكَ صَلَاةً، صَلَّيْتُ عَلَيْهِ، [٩]وَمَنْ سَلَّمَ عَلَيْكَ، سَلَّمْتُ عَلَيْهِ» "، رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:**[١] عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه فرمایي[٢] چې (یوه ورځ) رسول الله ﷺ (د مسجد یا مکان څخه) وتلو سره د خورماؤ په یو باغ کې داخل شو[٣] او هلته (په بارګاهٔ الهی کې) په سجده شو او په سجده کې یې دومره اوږدوالي وکړو (یعني دومره یې سجده اوږده کړله) [٤] چې زما سره ویره پیدا شوه چې (الله دې نه کړي) الله تعالی خو حضور ﷺ وفات کړي نه وي[٥] نو زه د حضور ﷺ لیدلو ته راغلم چې اوګورم چه آیا حضور ﷺ ژوندي دي یا وفات شوي دي[٦] حضور ﷺ زما (د پښو کښیهاري اوریدلو سره) خپل سر مبارك (د زمکې څخه) راپورته کړو [٧] و وي فرمایل څه وشو؟ (یعني داسې څه خبره پیښه شوه چې په تا باندې (د خوف او د غم علامت خور شوي دي) بیا ما ورته صورت حال ذکر کړو[٧] راوي وایي (د دې څخه وروسته) رسول الله ﷺ وفرمایل چې جبرائیل علیه السلام ماته اوویل آیا زه تاته دا زیری درنه کړم چې الله بزرګ وبرتر فرمایي[٨] کوم سړي چې په تا درود لیږي زه به په هغه رحمت لیږم[٩] او کوم سړي چې په تا سلام لیږي زه به په هغه سلام لیږم. (احمد)

**حل اللغات:-** ① نَخْلًا: أَيْ: بُسْتَانَ نَخْلٍ: ددې نه د کهجورو باغ مراد دي.

**تسهیلات:-**

**توله:** فَأَطَالَ السُّجُودَ:

**دسجدې په مصداق کښې دوه اقوال:-**① د دې څخه د نفلو سجده مراد ده
② د دې څخه مستقله سجده مراد ده. او دا معنی زیاته ظاهر ده.

**توله:** حَتَّى خَشِيتُ أَنْ يَكُونَ اللهُ تَعَالَى قَدْ تَوَفَّاهُ:

**د عبدالرحمن بن عوف د ویرې وجه:-** حدیث کښې عبدالرحمن ابن عوف رضي الله عنه د خپل زړه ویره ظاهره کړه، او دا د تعجب سبب نه دې څکه چې د انبیاء کرامو علیهم السلام د مونځ په حالت کښې وفات کیدل ممکن دی. لکه څنګه چې حضرت سلیمان علیه السلام مرګ ته نزدې وو، دواړو لاسونو کښې ئې همسا نیولې وه، او په هغه همسا باندې ئې زنه اینښودې وه او ناست وو. او په دې حالت کښې ئې روح پرواز اوکړو. او په دې حالت کښې یو کال پورې ناست وو.

**۹۳۸- د دعا د قبولیت دپاره درود ویل**

۹۳۸-(۱)[۲۰] [١]وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: [٢]إِنَّ الدُّعَاءَ مَوْقُوفٌ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ، [٣]لَا يَصْعَدُ مِنْهُ شَيْءٌ [٤]حَتَّى تُصَلِّيَ عَلَى نَبِيِّكَ، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

[1] اخرج الترمذی کتاب الوتر/باب ما جاء فی فضل الصلاة علی النبی صلی الله علیه وسلم (رقم- ۴۸۶)

**ترجمه:**[۱] اميرالمؤمنين حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه فرمايي[۲] چې دعا تر هغه وخته پورې د آسمان او زمکې په مينځ کې معلقه وي[۳] او د هغې څخه هيڅ شي پورته نه خيږي [۴] تر څو پورې چې ته په خپل نبي ﷺ باندې درود ونه ليږې. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① مَوْقُوفٌ: رازوړنده ايساره وى. ② لَايَصْعَدُ: پورته نه خيژى يعنى نه قبليږى.

**تسهيلات:-**

**قوله:** إِنَّ الدُّعَاءَ مَوْقُوفٌ:

**د درود په برکت د دعا قبليدل:-** يعنى تر کومې پورې چه په حضورپاك ﷺ باندې درود اونه وئيلې شى هيڅ دعا نه قبليږى. کله چه درود اووئيلې شى نو نودعا په هغې باندې سوريدوسره په درگاه دَ الله رب العزت کښې دَ قبوليت درجه حاصلولوسره رسيږى.

**د ميږى واقعه:-** وئيلى شى چه دَ يو ميږى شوق پيدا شوچه دَبيت الله زيارت اوکړى دَهغه دَپاره دَ چا دَ ذريعې نه بغيردَ په سوونو ميلونو لرې رسيدل محال وو. ناڅاپى يوکوتره راغله ميږې دَهغې پنځو اوخپو پورې انختلو او فورى بيت الله ته اورسيدو.

**ددعا په اول اوآخر کښې درود وئيل:-** حصن حصين کښې ليکلى دى چه حضرت شيخ ابوسلمان دارانى رحمه الله اوفرمائيل چه کله تاسو دَ الله تعالى په مخکښې دَخپل څه حاجت دَ پوره کولودَپاره لاسونه دَدعا دَپاره خواره کړې نو شروع په حضورپاك ﷺ باندې دَ درود نه کوه اودَ دعا ختمول هم په درود سره کوه يعنى اول او آخر په حضورپاك ﷺ باندې درود وايه مينځ کښې دعا غواړه ځکه چه الله تعالى په خپل فضل اوکرم سره درود قبلوى. نودَ الله تعالى دَ شان کريمى تقاضا ده چه کله هغه دواړه درودونه قبول کړى نومينځ کښې به دعا نه پريږدى بلکه هغه به هم قبوله کړه.

**فائده: د درود شريف قبوليت:-** بعضې علماؤ ليکلى دى چه دَ انسان په اعمالوکښې درود داسې عمل دې چه دَ الله تعالى په نيز قبول اوهم قبول دې درود کله نه رد کيږى په دې شرط چه صحيح درود وى اودَ ځان خودلودَپاره نه وى.

# [۳۴/۱۷]بَابُ الدُّعَاءِ فِي التَّشَهُّدِ

**د تشهد نه پس د دعا ولیلو بیان**

**خلاصة الباب:-**

**فيه تسعة عشر حديثاً مشتملة على ثماني مسائل:**

① الدعاء في آخر الصلوة: ۱، ۲، ۳، ۴، ۱۱، ۱۶، ۱۷.
② كيفية السلام: ۵، ۱۲، ۱۸.
③ الإقبال على القوم بعد الصلوة: ۶، ۹.
④ الانصراف عن الصلوة: ۷، ۸، ۱۳، ۹.
⑤ عدم قيام القوم قبل قيام الإمام: ۱۰، ۱۵.
⑥ الدعاء بعد الصلوة المكتوبة: ۹، ۱۱.
⑦ تحول الإمام عن موضع الإمامة: ۱۴.
⑧ من ينوي في التسليم: ۱۹.

**د ترجمة الباب وضاحت:**

**د فی په لفظ کښې دوه احتمالات:-** ① په ترجمة الباب مطلب دا دې چې په قعده اخیره کښې کوم څه وئیلی شی په هغې کښې تشهد هم دې او دَ تشهد نه پس دعا هم ده.
② کښې دَ دې لفظ "فی" استعمال به صحیح شی یا دَ "فی" لفظ "بعد" په معنی کښې دې "اي باب الدعا بعد التشهد" دغه شان به مقصود صحیح شی.

**په مانځه کښې دخلقو خبرو سره مشابه الفاظو سره د دعا کولو حکم:-** د درود څخه روسته چې کومې دعاګانې غوښتلې شی دهغه داسې الفاظ دې داسې نه وی کوم چې دَ خلقو دَ خبرو سره مشابهت وی یعنی یوسړې دې دا دعانه غواړی "اللهم زوجني فلانة" دې سره به مونځ خراب شی. په احادیثو کښې چه کومې دعاګانې راغلی دی هغه دَ ټولونه ښه دی هم هغه وئیل پکار دی.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**۹۳۹- په تشهد کښې د نبی علیه السلام دعا**

۹۳۹-()[۱] عَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- قَالَتْ: [۲]«كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُو فِي الصَّلَاةِ-

[1] اخرجه البخاری کتاب الاذان باب الدعاء قبل السلام (رقم- ۸۳۲) ومسلم کتاب المساجد و مواضع الصلاة باب ما يستعاذ منه في الصلاة )(رقم) ۱۲۹ - (۵۸۹) وابوداود کتاب الصلاة،باب الدعاء في الصلاة (رقم-۸۸۰) والنسائي کتاب السهو/باب التعوذ في الصلاة نوع آخر(رقم-۱۳۱۰)

يَقُولُ: ③" اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ، ④وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ ⑤وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَفِتْنَةِ الْمَمَاتِ، ⑥اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْمَأْثَمِ وَمِنَ الْمَغْرَمِ "، ⑦فَقَالَ لَهُ قَائِلٌ: مَا أَكْثَرَ تَسْتَعِيذُ مِنَ الْمَغْرَمِ! ⑧فَقَالَ: "إِنَّ الرَّجُلَ إِذَا غَرِمَ: حَدَّثَ فَكَذَبَ، ⑨وَوَعَدَ فَأَخْلَفَ» "، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① د مؤمنانو مور بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي② چې رسول الله ﷺ به په لمانځه کې د تشهد څخه وروسته دا دعا غوښتله: ③ اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَفِتْنَةِ الْمَمَاتِ اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْمَأْثَمِ وَالْمَغْرَمِ، اې الله زه د قبر د عذاب څخه ستا پناه غواړم④ او د مسيح دجال د فتنې څخه ستا پناه غواړم ⑤ او د ژوند د فتنو څخه او د مرګ د فتنو څخه ستا د پناه طلبګار يم⑥ اې پروردګاره زه په تا سره د ګناهونو څخه او د قرض څخه پناه غواړم⑦ (د راوي بيان دي چې د حضور ﷺ دا دعا اوريدو سره) يو ويونکي اوويل چه ستا ﷺ د قرض څخه ډيره پناه غوښتل د لوي تعجب خبره ده⑧ حضور ﷺ وفرمايل هر کله چې سړي قرضداره وي نو خبري جوړوي او دروغ وايي⑨ او چې وعده کوي نو وعده خلافي کوي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:**- ① فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَفِتْنَةِ الْمَمَاتِ: يعنى دَ ژوند او د مرګ دَ فتنې نه ستا پناه غواړم. ② الْمَأْثَمِ: دا لفظ خودَ ظرف مکان صيغه ده مطلب داچه دَداسې ځايونونه پناه غواړم کوم چه دګناهونو ذريعه جوړيږي يا دا لفظ مصدر ميمي دې کوم چه دګناه په معنى کښې دې. مطلب دا چه دګناهونونه ستا پناه غواړم اودَ ګناهونو دَ مواقع او اسباب نه ستا پناه غواړم. ③ الْمَغْرَمِ: مغرم اوغرامه تاوان او قرض ته وائي. ④ حَدَّثَ: خبرې کوي⑤ فَأَخْلَفَ: مخالفت کوى (په وعده کښې).

**تسهيلات:- قوله: مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ:**

**عيسى عليه السلام ته د مسيح ويلو وجوهات:-** ① مسيح دَمسح نه دې دکوم معنى چه ده لاس راښکل اوحضرت عيسى عليه السلام به په بيمارانوباندې لاس راښکلو نوهغوى به جوړيدل. په دې وجه هغوى ته مسيح اوويلې شو.

② حضرت عيسى عليه السلام ته خکه مسيح وائى چه هغه مبارك دې اوپه عبرانى ژبه کښې مسيحا دَ مبارك په معنى کښې دې.

③ هغوى ته مسيح په دې وجه هم وائى چې په آخره زمانه کښې چې هغه راشي نوهغه به ټوله دنيا باندې حکومت کوى اوګويا چې ټوله زمکه به مسح کوى.

**دجال ته د مسيح ويلو دوي وجهې:-** ① دجال به ممسوح العين وى يَعنى ستر ګه به ئې کانړې وى خکه ورته مسيح وائى.

② دجال ته مسيح خکه وائى چه هغه به څلويښتو ورځو کښې ټولې دنيا ته لاس اوړى او په ټولو طرفونوکښې به ګرځى بغيردَ مکې مکرمې اومدينې منورې نه

**فائده:-** کله چې مسيح مطلق ذکر شى نو دهغې څخه به حضرت عيسى عليه اسلام مراد

وي او چه کله دجال دپاره دَ مسيح لفظ استعماليږي نو هغې سره دَ دجال لفظ لګول ضروري دی دې دپاره چه حضرت عيسیٰ علیه السلام مسيح سره ئې التباس رانه شي.

•ومن الفتنة المحيا" دژوند فتنه داده چه سړي دَ نيغې لارې دَ هدايت نه بې لارې کيدو سره دګمراهئ په لار روان شي او راپريوځي او دَ برداشت نه بهرمصيبتونو کښې راګيرشي. په کوم کښې چه دَ آخرت هيڅ فائده نه وي.

**قوله: وَفِتْنَةِ الْمَمَاتِ:**

**دمرګ د فتنې درې مصداقات** ① دَ مرګ فتنه داده چه دَ زنکدن په حالت کښې شيطان العين دَ انسان په زړه کښې قسم قسم وسوسې اچوي اوکله انسان دَ ايمان دَ دولت نه محروم کوي او دَهميشه عذاب کښې اخته کوي.

② دَمرګ نه پس په قبرکښې دَمنکر نکير سوال جواب په کوم کښې چه سړي ګډوډ شي او صحيح جواب ورنه کړې شي اودَقبر په عذاب کښې راګيرشي داهم دَمرګ فتنه ده

③ حشر اونشر هم دَمرګ فتنه ده.

**قوله: وَمِنَ الْمَغْرَمِ:**

**د قرض په مصداق کښې دوه احتمالات:** - ① هغه قرض مراد دې چه قرض ئې واخستو مګر دَ ادا کولوئې هيڅ نيت نه وي.

② دې نه هغه قرض مراد دې چه دَعياشئ، نافرمانئ او بدمعاشئ دپاره اخستې شوې وي او دَ ورکولوخيال ئې نه وي

**استثنائي صورت:** - ليکن که يو سړي دَنيک مقصد دپاره قرض اخلي اودَ اداکولوصورت ئې هم شته اواراده ئې هم ده نودَ داسې قرض دپاره دا وعيد نه دې.

**د قرض اخستلو نقصانات:** - ① دَ قرض دَ اخستلو وخت کښې سړي اکثر دَ دړغو بهانې اوخبرې جوړولوسره قرض حاصلوي دا اخروي نقصان دې

② چه دَاداکولووخت راشي نو هغه وعده کوي اوخلاف ورزی کوي.

**دقرض اخستل د نفاق د دوؤ خصلتونوته دعوت ورکول:** - ① دَ قرض اخستلو په وخت چه کله سړي دَ اداکولودَ وخت وعده خلافي کوي.نو په هغه کښې دَمنافق يو صفت راځي

② اوکله چه دروغ وائي نو دَمنافق دويم صفت په کښې راشي په دې وجه دَ قرض نه پناه غوښتلې شوې ده. خکه چه په دې سره دَ آخرت ډير نقصان کيږي.

**د شپږو مهلکاتو نه د پناه غوښتلو وجه:** - په دې حديث شريف کښې رسول الله ﷺ دَ شپږو مهلکاتو نه پناه غوښتې ده خکه چه داځيزونه ډير لوئې تباه کونکې دی. که چرې په دې کښې دَ يو په فتنه کښې سړي راګيرشي نودنيا اوآخرت به ئې برباد شي. نو حضورپاک ﷺ امت ته تعليم ورکړو چه تاسو داسې پناه غوارئ.

٩٣٠- د مونځ څخه روسته د بعضې څيزونو څخه پناه غوښتل

٩٣٠-(١)[٢] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ " «إِذَا فَرَغَ أَحَدُكُمْ مِنَ التَّشَهُّدِ الْآخِرِ ٣ فَلْيَتَعَوَّذْ بِاللَّهِ مِنْ أَرْبَعٍ: ۴ مِنْ عَذَابِ جَهَنَّمَ، وَمِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ ٥ وَمِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ، ٦ وَمِنْ شَرِّ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ» "، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ هر كله چې په تاسو كې يو سړي په لمانځه كې د آخري تشهد (يعني التحيات) څخه فارغ شي ٣ نو هغه ته پكار دي چې هغه د څلورو څيزونو څخه د الله تعالى جل جلاله د پناه طلبگار شي ۴ ① د دوزخ عذاب نه ② د قبر عذاب نه ٥ ③ د ژوند او د مرگ د فتنې نه ٦ ④ د مسيح د جال د شر څخه. (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذَا فَرَغَ أَحَدُكُمْ مِنَ التَّشَهُّدِ الْآخِرِ:

**دسلام څخه روسته دعا غوښتل:** -دَحديث دَ ظاهري الفاظونه معلوميږي چه دا دعا هم په مانځه كښې ده البته دَ قعده اخيره دَ تشهد اوسلام په مينځ كښې ده. دَ سلام نه پس دا دعامنع نه ده ليكن دَحديث مطلب دانه دي چه دا دعا دَمانځه نه پس ده. دَدې حديث نه دا هم معلومه شوه چه دَ سلام نه وړاندې معروف دعاگانو نه علاوه څه بل څه دعا هم غوښتلې شي.

٩٣١- صحابو ته د مذكوره دعا تعليم

٩٣١-(٢)[٣] ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - ٢ «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُعَلِّمُهُمْ هَذَا الدُّعَاءَ ٣ كَمَا يُعَلِّمُهُمُ السُّورَةَ مِنَ الْقُرْآنِ، ۴ يَقُولُ: " قُولُوا: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ جَهَنَّمَ، ٥ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ، ٦ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ، ٧ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ» "، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما راوي دي ٢ چې رسول الله ﷺ به مونږ (صحابو او اهل بيت رضي الله عنهم) ته دا دعا داسې ښودله ٣ څنگه چې به رسول الله ﷺ مونږ ته د قرآن يو سورت ښودلو ۴ رسول الله ﷺ به فرمايل چې (دا دعا داسې) وايئ اللَّهُمَّ...الخ (اي الله زه د جهنم د عذاب څخه ستا پناه غواړم ٥ د قبر د عذاب څخه ستا پناه غواړم ٦ او د مسيح دجال د فتنې څخه ٧ او د ژوند د فتنو څخه او د مرگ د فتنو څخه ستا پناه طلب كوم) (مسلم)

[١] اخرجه البخاري كتاب الاذان باب التعوذ من عذاب القبر (رقم- ١٣٧٧) ومسلم كتاب المساجد و مواضع الصلاة باب ما يستعاذ منه في الصلاة )(رقم) ١٣٠ - (٥٨٨) وابوداود كتاب الصلاة، باب ما يقول بعد التشهد (رقم- ٩٨٣) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها ،باب ما يقال بعد التشهد والصلاة على النبي صلى الله عليه وسلم (رقم- ٩٠٩)

[٢] اخرجه مسلم باب ما يستعاذ منه في الصلاة )(رقم) ١٣٤ - (٥٩٠) وابوداود كتاب الصلاة، باب ما يقول بعد التشهد (رقم- ٩٨٤)

**تسهيلات:-**

**نوټ:**-د دې حديث تشريح ۹۰۳۹ نمبر حديث په شرح کښې تيره شوې ده.

**۹۳۲-د تشهد او درود څخه وروسته دعا کول**

۹۳۲-()[۳]۱ وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: ۲«قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ عَلِّمْنِي دُعَاءً أَدْعُو بِهِ فِي صَلَاتِي، ۳قَالَ: "قُلْ: اللّٰهُمَّ إِنِّي ظَلَمْتُ نَفْسِي ظُلْمًا كَثِيرًا، ۴وَلَا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا أَنْتَ، ۵فَاغْفِرْ لِي مَغْفِرَةً مِنْ عِنْدِكَ، ۶وَارْحَمْنِي، إِنَّكَ أَنْتَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**۱ امير المؤمنين حضرت ابوبكر صديق رضی الله عنه فرمايي۲ چې ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ ما ته يوه داسې دعا وښايه چې زه يې په خپل لمانځه کې (د تشهد او درود څخه وروسته) اووايم۳ حضور ﷺ راته وفرمايل دا دعا وايه اللّٰهُمَّ إِنِّيْ ظَلَمْتُ نَفْسِيْ ظُلْمًا كَثِيْرًا وَلَا يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ إِلَّا أَنْتَ فَاغْفِرْلِيْ مَغْفِرَةً مِنْ عِنْدِكَ وَارْحَمْنِيْ إِنَّكَ أَنْتَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ، (اې پروردګاره ما په خپل نفس ډير ظلم کړي دي۴ او ستا څخه علاوه بل څوک ګناهونه نه شي بخښلي۵ ته ما وبخښې په خپل خاص بخښنې سره۶ او په ما رحم وکړې بيشکه ته بخښونکي او رحمت کونکي يې. (بخاري،مسلم)

**تسهيلات: قوله:** عَلِّمْنِي دُعَاءً أَدْعُو بِهِ فِي صَلَاتِي:

**د دعا تعليم ورکول:**-ددې حديث نه معلومه شوه چې نبی کريم ﷺ به اهتمام سره د دعاګانو تعليم ورکولو.

**قوله:** اللّٰهُمَّ إِنِّي ظَلَمْتُ نَفْسِي ظُلْمًا كَثِيرًا:

**په مانځه کښې دظلم دوه قسمونه:**-مونځ کښې کوم يو ظلم دې؟ جواب: دظلم دوقسمونه دی. ① ارتکاب معصيه سره ظلم

② عبادت لره کما ينبغی د نه کولو ظلم. دې ځائې کښې دويمه معنی مراد ده.

**د حديث په باب الدعاء في التشهد کښې د راوړلو څخه مقصود:**- ظاهر دادی چې څنګه دمونځ کولو حق دې هغه شان حق نشی ادا کيدې. که صاحب د مشکاة دا روايت باب الدعاء فی التشهد کښې نه وې بيان کړې وې نو مونږ دا وئيلې شو چې دا دعا د مونځ څخه روسته وئيل پکاردی.ليکن چونکه صاحب مشکاة دا حديث په دې باب کښې راوړې دې او دې طرف ته ئې اشاره کړې ده چې يا ئې وئيلی دی چې دا په مونځ کښې وئيل افضل دی. نوښه به وو.

[۱] اخرجه البخاری کتاب الاذان باب الدعاء قبل السلام (رقم- ۸۳۴) ومسلم کتاب الذکر والدعاء باب استحباب خفض الصوت بالذکر (رقم) ۴۸ - (۲۷۰۵) والترمذی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب (رقم- ۳۵۳۱) والنسائی کتاب السهو/باب نوع آخر من الدعاء (رقم-۱۳۰۲)

۹۳۳-د سلام ګرځولو طريقه

۹۳۳-()[۵]١ وَعَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِيهِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: ٢ «كُنْتُ أَرَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَلِّمُ عَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ يَسَارِهِ ٣ حَتَّى أَرَى بَيَاضَ خَدِّهِ»، رَوَاهُ مُسْلِمٌ

**ترجمه:** ١ عامر ابن سعد (تابعي) رحمه الله د خپل پلار بزرګوار (حضرت سعد ابن ابي وقاص رضي الله عنه) څخه روايت کوي چې هغه (يعني سعد رضي الله عنه) وفرمايل ٢ چې ما به ليدل چې رسول الله ﷺ به خپل ښي او ګس (طرف ته دا رنګه) سلام ګرځولو ٣ چې ما به د حضور ﷺ د بارخوګانو (رخسار) سپين والي ليدلو. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① بَيَاضَ خَدِّهِ: أَيْ: صَفْحَةَ وَجْهِهِ: يعنى د مخ د رخسار سپينوالي اوښانست.

**تسهيلات:- قوله:** حَتَّى أَرَى بَيَاضَ خَدِّهِ:

**په سلام کښې د مخ ګرځولو اندازه:-** يعنى نبى کريم ﷺ به په سلام کښې دومره مخ ګرځولو چې روستو صف کښې صحابه کرامو به د نبى کريم ﷺ د مخ مبارک سپينوالي ليدلو. د ښى طرف والا صحابه کرامو به د ښى مخ مبارک او د ګس طرف والو صحابه کرامو به د ګس مبارک سپينوالي ليدلو.

۹۳۴-د مونځ څخه روسته د امام مقتديانو ته مخ راګرځول

۹۳۴-()[۶]١ وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ٢ «كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى صَلَاةً، ٣ أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ»، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ١ سمره ابن جندب رضي الله عنه فرمايي ٢ چې رسول الله ﷺ چې به د لمانځه څخه فارغ شو ٣ نو زمونږ طرف ته به يي خپل مخ مبارک متوجه کړو او کيناستلو به. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① أَقْبَلَ عَلَيْنَا: أَيْ يَصْرِفُ وَجْهَهُ: حضورپاک ﷺ به د مونځ د فارغيدونه پس د مقتديانو طرف ته مخ راګرځولو سره کيناستو.

**تسهيلات:- قوله:** أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ:

**د تعارض اشکال:-**

① وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى صَلَاةً، أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ»، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

په دې حديث کښې د قوم طرف ته متوجې کيدو سره د کيناستو بيان دي

② وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْصَرِفُ عَنْ يَمِينِهِ»، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

[۱] اخرجه مسلم فى صحيح رقم الحديث ۱۱۶/ ۵۸۲ والنسائى فى السنن رقم الحديث ۱۳۱۷ وابن ماجة رقم الحديث ۹۱۵

[۲] اخرجه البخارى كتاب الاذان باب يستقبل الإمام الناس إذا سلم (رقم- ۸۴۵) وابن ماجة باب اتباع سنة الخلفاء الراشدين المهديين (رقم-۴۴) والنسائى كتاب السهو/باب النهى عن مبادرة الإمام بالانصراف من الصلاة (رقم-۱۳۶۳)

په دې حدیث کښې ښی طرف ته د راګرځیدو ذکر دی.

④وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: «لَا يَجْعَلْ أَحَدُكُمْ لِلشَّيْطَانِ شَيْئًا مِنْ صَلَاتِهِ يَرَى أَنَّ حَقًّا عَلَيْهِ أَنْ لَا يَنْصَرِفَ إِلَّا عَنْ يَمِينِهِ لَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَثِيرًا يَنْصَرِفُ عَنْ يَسَارِهِ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

په دې حدیث کښې ګس طرف ته د مخ راګرځولو ذکر دی.

په دې درې واړه روایاتو کښې تعارض ښکاری؟

**په درې طریقو سره د روایاتو په مینځ کښې تطبیق:-** ① که صحابه کرامو ته به څه فرمائیل وو یا د هغوئ نه به څه تپوس کول وو نو نبی کریم ﷺ به هغوئ طرف ته مخ کولو او کیناستل به.

② که ښی طرف ته به تلل نو ښی طرف ته به ئې مخ کړو او ناسته به ئې اختیار کړه.

③ که حجرې مبارکې ته به تلل وو نو ګس طرفته به ئې مخ کړواو ناسته به ئې اختیار کړه.

**۹۳۵–د امام په ښي طرف راګرځیدل**

۹۳۵–(¹)[۷]①وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ②«كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْصَرِفُ عَنْ يَمِينِهِ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت انس رضی الله عنه فرمایي② چې رسول الله ﷺ به د لمانځه څخه د فارغیدو نه وروسته (کله کله به) خپل ښي طرف ته تاویدلو سره کیناستلو. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① يَنْصَرِفُ: یعنی مقتدیانو طرف ته به ئې مخ راګرځولو.

**تسهیلات:-** د دې حدیث تشریح په حدیث نمبر ۹۴۴ کښې تیره شوې ده.

**قوله: يَنْصَرِفُ عَنْ يَمِينِهِ:**

**د سلام څخه روسته په ښي طرف مقتدیانو ته د راګرځیدو حکم:-** د مونځ څخه فارغیدو نه پس په ښی طرف کیناستل لازمی ګنړل او دا عقید لرل چې دې سره ثواب ملاویږی ،اوکه په ښی طرف ناسته اختیار نه کړې شی نو دې سره ثواب نه ملاویږی ،دا د شیطان حصه ده . اوکه دا ضروری نه ګنړی او عقیده نه لری نو بیا جائز دی.

**۹۳۶–د امام ښي اړخ طرف ته راګرځیدل**

۹۳۶–(²)[۸]①وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: ②«لَا يَجْعَلْ أَحَدُكُمْ لِلشَّيْطَانِ شَيْئًا مِنْ

[1] اخرجه مسلم کتابصلاة المسافرین وقصرها باب جواز الانصراف من الصلاة عن الیمین، والشمال (رقم- ۶۰ - (۷۰۸) والنسائی کتاب السهو/باب الانصراف من الصلاة (رقم-۱۳۵۹)باب الانصراف من الصلاة (رقم- ۱۳۵۹)

[2] اخرجه البخاری کتاب الاذان باب الانفتال والانصراف عن الیمین والشمال (رقم- ۸۵۲) و مسلم کتابصلاة المسافرین وقصرها باب جواز الانصراف من الصلاة عن الیمین، والشمال (رقم- ۵۹ - (۷۰۷) وابوداودکتاب الصلاة،باب کیف الانصراف من الصلاة (رقم- ۱۰۴۲) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، باب الانصراف من الصلاة (رقم- ۹۳۰) والنسائی کتاب السهو/باب الانصراف من الصلاة (رقم-۱۳۶۰)باب الانصراف من الصلاة (رقم- ۱۳۶۰)

صَلَاتِهِ ۳ يَرَى أَنَّ حَقًّا عَلَيْهِ أَنْ لَا يَنْصَرِفَ إِلَّا عَنْ يَمِينِهِ ۴ لَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَثِيرًا يَنْصَرِفُ عَنْ يَسَارِهِ»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي ۲ چې په تاسو كې دي هيڅوك په خپل لمانځه كې د شيطان حصه نه مقرروي ۳ چه دا شي لازم ونيسي چې (د لمانځه ځخه وروسته به) هميشه ښي طرف ته را گرځي ۴ ځكه چې ما ليدلي دي چې رحمت عالم ﷺ به اكثر كس طرف ته هم گرځيدلي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① يَرَى: أَيْ: يَظُنُّ أَحَدُكُمْ أَوْ يَعْتَقِدُ: څوک دا گمان او اعتقاد اوساتي. ② أَنَّ حَقًّا: أَيْ: وَاجِبًا: چه دا واجب او لازم اوگرځوي.

**تسهيلات:** - قوله: عَنْ يَسَارِهِ:

**يو مستحب امر لازم گرځولو حكم:** - يعني يو مستحب عمل لازم كول په خپل عمل كښي دَ شيطان دَپاره حصه جوړول دي. دَمقتديانو طرف ته يا دَ پاسيدو په وخت حضورپاك ﷺ به ښي اوكس دواړو طرفو باندې تاويدو سره عمل كړې دې. اوس كه يو سړې داگنړي چه ښي طرف ته تاويدوسره عمل كولوكښې زيات فضيلت دې اوهم دائې په خپل خان لازم كوي نودې سړي يو مباح اومستحب امر ته دَ واجب او لازم درجه وركړه كوم چه ناجائز او بدعت دې اوهم دغه كار سره په خپل مونځ كښي دَ شيطان دَپاره حصه جوړول دي. افسوس چه اهل بدع په دې حديث باندې يونظر اچولي او په دې باندې عمل كولي او په غيرلازم بلكه نوى ايجاد كړې شوې څيزونو باندې عمل كولو باندې اصرار نه كولې.

**۹۳۷- د مانځه ځخه وروسته دعا كول**

۹۳۷- ()[۹] ۱ وَعَنِ الْبَرَاءِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ ۲ «كُنَّا إِذَا صَلَّيْنَا خَلْفَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْبَبْنَا أَنْ نَكُونَ عَنْ يَمِينِهِ ; ۳ يُقْبِلُ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ، ۴ قَالَ: فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: "رَبِّ قِنِي عَذَابَكَ يَوْمَ تَبْعَثُ ۵ - أَوْ تَجْمَعُ - عِبَادَكَ» "، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ حضرت براء رضي الله عنه فرمايي ۲ مونږ چې به په رسول الله ﷺ پسې مونځ كولو نو دا به مو خوښوله چې د حضور ﷺ ښي طرف ته يو ۳ چې حضور ﷺ (د سلام په وخت د ټولو ځخه مخكې) زمونږ طرف ته متوجه شي ۴ براء رضي الله عنه وايي چه ما د حضور ﷺ ځخه (د سلام ځخه وروسته د دعا په طور) دا اوريدلي دي چې رَبِّ قِنِي عَذَابَكَ يَوْمَ تَبْعَثُ عِبَادَكَ أَوْ تَجْمَعُ عِبَادَكَ، (اي پروردگاره ما د خپل عذاب ځخه په هغه ورځ وساتي چې ته خپل بندگان

[1] اخرجه مسلم كتاب صلاة المسافرين وقصرها باب استحباب يمين الإمام (رقم- ٦٢ - (٧٠٩)) وابوداود كتاب الأدب/باب ما يقال عند النوم (رقم- ٥٠٤٥) وابن ماجة كتاب الدعاء /باب ما يدعو به إذا أوى إلى فراشه (رقم-٣٨٧٧) والترمذى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم- ٣٣٩٨)

راوپورته کړي[۵] يا خپل بندګان جمع کړي، (مسلم)

**حل اللغات**- ① قِنِي: أَيِ: احْفَظْنِي: بچ کړه ما، يعنی حفاظت مې اوکړه ② تَبْعَثُ: ته به راپورته کوې، ته به راجمع کوې

**تسهيلات:-**

**قوله: يُقْبِلُ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ:**

**د نبی کريم ﷺ بنی طرف ته د راګرځيدو اکثريت:**-ددې حديث نه معلوم شو چې ښی طرف ته به انصراف زيات وو په دې وجه به صحابه کرام زيات ښی طرف ته کيناستل.

**قوله: رَبِّ قِنِي عَذَابَكَ:**

**د نبی کريم ﷺ د عذاب څخه په پناه غوښتو کښې دوه اقوال:-**

① د نبی کريم ﷺ دا پورته دعا لوستل په تواضع او عاجزئ باندې محمول دی

② نبی کريم ﷺ مقصد امت ته تعليم ورکول وو، چې خلق دې دمونځ څخه پس دادعا لولي.

**لطيفه:**- داخبره دې واضحه وی چې د هرمسجد ښي طرف افضل وی خود مسجد نبوی کس طرف افضل دې ځکه چې دا نبی کريم ﷺ روضې ته زيات نزدې دې.

**قوله: يَوْمَ تَبْعَثُ- أَوْتَجْمَعُ -عِبَادَكَ:**

**د راوی شک:**- دې دواړو الفاظونو کښې راوی ته شك دې چې يوم تبعث ئې فرمائيلی دی او که تجمع عبادك ئې فرمائيلی دی.

**۹۳۸-د مانځه د فراغت څخه روسته دامام د پاسيدو څخه روسته پاسيدل**

۹۳۸-()[۱۰][۱] وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- قَالَتْ:[۲] «إِنَّ النِّسَاءَ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُنَّ إِذَا سَلَّمْنَ مِنَ الْمَكْتُوبَةِ قُمْنَ،[۳] وَثَبَتَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ صَلَّى مِنَ الرِّجَالِ مَا شَاءَ اللهُ،[۴] فَإِذَا قَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ الرِّجَالُ» رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ فِي بَابِ الضَّحِكِ، إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى.

**ترجمه:**[۱] بي بي ام سلمه رضي الله عنها فرمايي[۲] چې د رسول الله ﷺ په مبارکه زمانه کې چې ښځو به (د سړو سره په جماعت سره مونځ وکړو نو) د فرض لمانځه د سلام ګرځولو سره به سمدستي زنانه پاڅيدلي او خپلو کورنو ته به تلي[۳] او حضور ﷺ به د نورو سړو سره چې په لمانځه کې به شامل وو تر څومره وخته پورې چې به الله تعالی ﷻ ته منظوره وه ناست به وو[۴] بيا چې حضور ﷺ به ودريدو نو ټول سړي به ودريدل (او خپلو خپلو کورنو ته به ولاړل). (بخاري) او د جابر رضي الله عنه حديث به په بَابِ الضَّحِكِ کې ذکر کړو انشاءالله

**حل اللغات**:- ① عَهْدِ: أَيِ: زَمَانِهِ: دعهد نه مراد دلته زمانه او وخت دې. ② قُمْنَ: نو اودريدلې او

[1]) اخرجه البخاری کتاب الاذان باب خروج النساء إلی المساجد بالليل والغلس(رقم-۸۶۶)

پاڅیدلې به (چه خپلو کورونو ته لاړې شي). ③تَبَتَ: په خپل حال به ناست وو.

**تسهیلات:- قوله: قُمْنَ "**

**د مانځه څخه پس د ښځو او د رېدل او تلل:** -یعنی چه ښځو به سلام ګرځولو نو فوری به اودریدې او سړی به ناست وو. دې دپاره چه په لاره کښې د ښځو او سړو ګډوډوالې اونه شی.

**مسجدنبوي ته د ښځو د حاضرېدو شرطونه:-**

نبی علیه السلام چې زنانو ته په جمعې کښې د شرکت اجازت ورکړې وو نو د احادیثو څخه معلومیږی چې هغوی ته دا هدایات شوی وو.

① خوانې ښځې دې نه راځی پخې ښځې هم صرف سحر، ماښام او ماسخوتن کښې په تیاره کښې راځی

② دَ لباس خودنه دې نه کوی

③ عطردې نه لګوی

④ په ډیره پرده کښې دې راځی

⑤ دَ سړو دَ پاسیدونه مخکښې دې ځی.

**د زنانوٌ مسجد نبوی ته مونځونو دپاره د حاضریدو وجوهات:-**

① د نبی آخرزمان په اقتداء کښې مونځ کول.

② د دین تعلیمات زده کول.

③ په عباداتو کښې شریکیدو سره دَ عباداتو نقشه معلومول

**په روستو زمانه کښې د ښځو جماتونو ته د تلو ممانعت:**-چونکه په هغه وخت کښې هرطرف ته خیر وو. دَ قرآن دَ نزول وخت وو. نبی آخرزمان موجود وو. دَ صحابه کرامو په شان دَ فرښتو جماعت وو دَ خیرالقرون دور وو. په دې وجه هرقسم تحفظ حاصل وو. لیکن دَ نن صبا دَ فتنونه په دې ډك دور کښې دَدې اجازت نه شی ورکولې. پخپله دَ صحابه کرامو په دورکښې حضرت عائشه ﷺ دَ ممانعت فتوی ورکړې وه لکه چه وړاندې راغی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**۹۳۹—حضرت معاذ ته د هر مانځه څخه روسته د دعا حکم کول**

۹۳۹—(¹)[۱۱]①عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ:②أَخَذَ بِيَدِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: «إِنِّي لَأُحِبُّكَ يَا مُعَاذُ» ③فَقُلْتُ: وَأَنَا أُحِبُّكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ④قَالَ: فَلَا تَدَعْ أَنْ تَقُولَ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ:⑤رَبِّ

[1]) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة باب فى الاستغفار (رقم- ۱۵۲۲) والنسائى كتاب السهو /باب بنوع آخر من الدعاء (رقم-۱۳۰٤) و مالک فى الموطا كتاب الشعر باب ما جاء فى المتحابين فى الله (رقم-۱٦)

أَعِنِّي عَلَى ذِكْرِكَ وَشُكْرِكَ وَحُسْنِ عِبَادَتِكَ» "، رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ ;[٦]إِلَّا أَنَّ ابَادَاوُدَ لَمْ يَذْكُرْ: قَالَ مُعَاذٌ: وَأَنَا أُحِبُّكَ.

**ترجمه:**[١] معاذ ابن جبل رضي الله عنه فرمايي[٢] چې (يوه ورځ) رسول الله ﷺ زما لاس په خپل لاس مبارك كې اخستو سره وفرمايل اې معاذ زه تاسره مينه لرم[٣] ما عرض وكړو يا رسول الله ﷺ زه هم تاسو سره مينه لرم[۴] رسول الله ﷺ وفرمايل (چې هر كله ته زما سره مينه لرې نو) د هيڅ لمانځه وروسته دا دعا مه پريږده:[٥] رَبِّ اعِنِّي عَلَى ذِكْرِكَ وَشُكْرِكَ وَحُسْنِ عِبَادَتِكَ» اې پروردګاره ته په خپل ذكر، خپل شكر او خپل ښه عبادت كې زما مدد وكړې، دا روايت احمد، ابوداؤد او نسايي نقل كړي دي،[٦] خو ابوداؤد د معاذ ﷺ دا الفاظ وَأَنَا أُحِبُّكَ نه دي نقل كړي.

**حل اللغات:-** ① فَلَاتَدَعْ: أَي فَلَاتَتْرُكْ: مه پريږده، ② دُبُرَ: أَيْ: عَقِبَهَا وَخَلْفَهَا: يعنى روستو. ③ أَعِنِّي: زما مدد اوكړه.

**تسهيلات:-** **قوله:** أَخَذَ بِيَدِي

**دفعلى اوقولى حديث اجتماع:-** دا حديث په يو وخت كښې هم فعلى او هم قولى دې. ځكه چې د معاذبن جبل لاس نيول دا فعلى شو. او«ان تقول في الخ» پورې قولى شو.

**۹۵۰- د مانځه څخه د سلام ګرځولو مسنون طريقه**

۹۵۰-()[۱۳][١] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ:[٢] «إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُسَلِّمُ عَنْ يَمِينِهِ: " السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ "[٣] حَتَّى يُرَى بَيَاضُ خَدِّهِ الْأَيْمَنِ،[۴] وَعَنْ يَسَارِهِ " السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ "[٥] حَتَّى يُرَى بَيَاضُ خَدِّهِ الْأَيْسَرِ»، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ،[٦] وَلَمْ يَذْكُرِ التِّرْمِذِيُّ: حَتَّى يُرَى بَيَاضُ خَدِّهِ.

**ترجمه:**[١] عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي[٢] چې رسول الله ﷺ به خپل ښي طرف ته السلام عليكم ورحمة الله (يعني په تاسو دې د الله سلامتي او رحمت وي) ويلو سره سلام ګرځولو[٣] تر دې چې د حضور ﷺ د ښي رخسار مبارك سپينوالي به په نظر راتلو[۴] او خپل ګس طرف ته به يې هم السلام عليكم ورحمة الله ويلو سره سلام ګرځولو[٥] تر دې چې د حضور ﷺ د ګس رخسار مبارك سپينوالي به په نظر راتلو، ابوداؤد، ترمذي، نسايي، [٦] ترمذي په خپل روايت كې حتي يُرٰي بياض خده الفاظ نه دي ذكر كړي

**حل اللغات:-** ① بَيَاضُ خَدِّهِ: أَيْ: صَفْحَةَ وَجْهِهِ: يعنى د مخ د رخسار سپينوالي اوښائست.

[1]) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب فى السلام (رقم- ۹۹۶) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب ما جاء فى التسليم فى الصلاة (رقم- ۲۹۵) والنسائى كتاب السهو/كيف السلام على الشمال؟ (رقم-۱۳۲۳)كيف السلام على الشمال؟ (رقم- ۱۳۲۳)

۹۵۱—()[۰] ١ وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ.

**ترجمه:** ١١ او ابن ماجه دا روایت د عمار ابن یاسر رضی الله عنه څخه نقل کړي دي.

**تسهیلات:** -

**قوله:** حَتَّى يُرَى بَيَاضُ خَدِّهِ الْأَيْسَرِ:

**په اعتدال سره مقتدیانوته مخ راګرځول:** -نبي کریم ﷺ به سلام سره خپل مخ مبارك داسې ګرزولو چې د حضور مبارك د مخ سپین والي به ښکاریدو ،یعنی نه به ئې دومره مخ اړولو چې بالکل روستی مخ واوړی او نه به ئې دومره کم مخ مبارك ګرزولو چې ګنی هډو مخ ئې ګرزولې نه دي. بلکه درمیانه طریقه به ئې اختیاروله. او دې کښې امت دپاره ډیره آسانتیا ده.

### ۹۵۲—د مانځه د فراغت څخه روسته کس طرف ته راګرځیدل

۹۵۲—(۲)[۱۳] ١ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ٢ «كَانَ أَكْثَرُ انْصِرَافِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ صَلَاتِهِ إِلَى شِقِّهِ الْأَيْسَرِ إِلَى حُجْرَتِهِ»، رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** ١ عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه فرمایي ٢ چې رسول الله ﷺ به د لمانځه څخه وروسته اکثر په کس طرف خپلې حجرې طرف ته ګرځیدلو ، (شرح السنة)

**حل اللغات:** - ① انْصِرَاف: راګرځیدل، راتاویدل، ② شِق: شق طرف ته وائی.

**تسهیلات:** - **قوله:** إِلَى شِقِّهِ الْأَيْسَرِ:

**نوټ:** — د دې حدیث تشریح په حدیث نمبر ۹۴۴ کښې تیره شوې ده.

### ۹۵۳—د فرضو څخه وروسته د سنتو د پاره ځائې بدلول

۹۵۳—(۳)[۱۴] ١ وَعَنْ عَطَاءٍ الْخُرَاسَانِيِّ، عَنِ الْمُغِيرَةِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " ٢ «لَا يُصَلِّي الْإِمَامُ فِي الْمَوْضِعِ الَّذِي صَلَّى فِيهِ ٣ حَتَّى يَتَحَوَّلَ» "، ٤ رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَقَالَ: عَطَاءٌ الْخُرَاسَانِيُّ لَمْ يُدْرِكِ الْمُغِيرَةَ.

**ترجمه:** ١ عطاء خراساني رحمه الله د حضرت مغیره رضی الله عنه څخه روایت نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ امام دې هغه ځاي مونځ نه کوي کوم ځاي چې (اوس يې) مونځ کړي دي

[1] اخرجه مسلم كتاب المساجد و مواضع الصلاة باب السلام للتحليل من الصلاة عند فراغها وكيفيته (رقم) ۱۱۹ - (۵۸۲) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها ،باب التسليم (رقم-۹۱۶)

[2] اخرجه البغوى فى شرح السنة رقم الحديث ۷۰۲

[3] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب الإمام يتطوع فى مكانه (رقم- ۶۱۶) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة/باب ما جاء فى صلاة النافلة حيث تصلى المكتوبة (رقم- ۱۴۲۸)

[۳]بلکه د هغه ځاي څخه دي اخوا تـه شي، [۴]دا روايت ابـوداؤد نقـل کړي دي او ويلي يـې دی چې د عطـا خراسـاني رحمه‌الله ملاقـات د حضـرت مغيـره رضی‌الله‌عنه سـره (ثابـت) نـه دي (نـو دا حديث منقطع دي).

**حل اللغات:-** ① يَتَحَوَّلَ: أَيْ: يَنْتَقِلَ إِلَى مَوْضِعٍ: يعنی چه بل ځای ته اخوا شی.

**تسهيلات:-** **قوله:** حَتَّى يَتَحَوَّلَ:

**د ځاي بدلول د امام او مقتدي دواړو دپاره:-** په دې حديث شريف کښې دا خودلې شی چه کوم ځائی يوسړی فرض مونځ کړي دي هم هلته دې سنت نه کوی بلکه دَ دغه ځائی نه دې لږ شان اخواشی ځائی بدلولوسره بل ځائی سنت کول پکاردی. دلتـه داخبره پـه ذهـن کښې ساتل پکاردی چه داحکم صرف دَ امام نه دې بلکه دَ امـام اومقتـدی ټولو فـرائض کونکـودَ پاره هم دغه حکم دې.

**د ځائي بدلولو دوه وجوهات:-** ① په ځائی بدلولوسره به دَ صفونو نظام ګډوډشی نو نوی راتلونکی خلق په پوهيږی چه جمع شوي ده. که چرې داسې اونه کړې شـی او دَ فرائضو پـه شان په صفونو کښې ټول ولاړوی نو نوی راتلونکی خلق به دا ګڼړی چه لا فرض مونځ په جمع نه دې شوې.

② چې دَ مونځ ګذاردَپاره دوه ځايونه جدا جدا دَ ده دَ عبادت ګواه جوړيږی

**د ځائي بدلولو د مسئلې په متعلق کښې دوه اقوال:-** ① ملاعلی قـاری رحمه‌الله فرمـائی دَ بعض علماؤ قول دې چه دَځائی بدلولو داحکم دَهغه مونځونودَپاره دې پـه کـوم کـښې چـه دَ فرائضونه پس سـنت وی اوکومومونځونوپـسې چـه سنت نـه وی لکـه سـحر اومـازيګر هلتـه داحکم نه دې.

② دَ بعض نورو علماؤ وينا ده دَ فرائضو دَ ټولو مونځونونه پس ځائی بدلول پکـاردی اوکـه رش وی اوتنګی وی نوځائی بدلول څه فرض يا واجب نـه دی. اودَ سـحر اومـازيګر نـه پـس دَ ځائی بدلولو څه مقصد اومطلب هم نشته اوڅه فائده هم نشته.

**۹۵۳- د نبی عليه السلام څخه وړاندې دا نصراف کولو ممانعت**

۹۵۳-(۱)[۱۵] [۱]وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - [۲]«أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَضَّهُمْ عَلَى الصَّلَاةِ، [۳]وَنَهَاهُمْ أَنْ يَنْصَرِفُوا قَبْلَ انْصِرَافِهِ مِنَ الصَّلَاةِ»، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] انس رضی‌الله‌عنه فرمايي[۲] چې رسول الله ﷺ به صحابه رضی‌الله‌عنهم ته د لمانځه کولو رغبت ورکولو[۳] او هغوي به يي ددې خبري څخه منع کـول چې هغـوي د لمانځـه څخـه وروسـته د

۱) اخرجه ابوداود باب فيمن ينصرف قبل الإمام (رقم- ۶۲۴)

حضور ﷺ څخه مخکي لاړ شي. (ابوداؤد)

**تسهیلات:-**

**قوله: وَنَهَاهُمْ أَنْ يَنْصَرِفُوا قَبْلَ انْصِرَافِهِ مِنَ الصَّلَاةِ:**

**د مذکوره جملي په مطلب کښي څلور اقوال:-**

① دنبی کریم دا طریقه اختیارول خکه وو چي په سړو او ښځو کښي اختلاط نه وی کمار.

② د نبی کریم دا طریقه اختیارول خکه وو چي حضور ﷺ سره په ناسته کښي صحابه کرامو نور صحبت حاصل کړی.

③ د نبی کریم دا طریقه اختیارول خکه وو چي د نبی کریم ﷺ څخه مخکښي سلام نه ګرزوئی.

④ دپورته کیدو نه د مسبوق پورته کیدل مراد دی، چي مسبوق دې ترې هغه وخته پورې نه پورته کیږی تر کومې چې نبی کریم ﷺ دواړه سلامونه نه وی ګرزولی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**۹۵۵-د تشهد څخه وروسته مسنون دعا**

۹۵۵-(¹)[۱۲][۱]عَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: [۲]«كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي صَلَاتِهِ: [۳] " اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الثَّبَاتَ فِي الْأَمْرِ، [۴] وَأَسْأَلُكَ الْعَزِيمَةَ عَلَى الرُّشْدِ، [۵] وَأَسْأَلُكَ شُكْرَ نِعْمَتِكَ، [۶] وَحُسْنَ عِبَادَتِكَ، [۷] وَأَسْأَلُكَ قَلْبًا سَلِيمًا، وَلِسَانًا صَادِقًا، [۸] وَأَسْأَلُكَ مِنْ خَيْرِ مَا تَعْلَمُ، [۹] وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا تَعْلَمُ، [۱۰] وَأَسْتَغْفِرُكَ لِمَا تَعْلَمُ» " رَوَاهُ النَّسَائِيُّ، وَرَوَى أَحْمَدُ نَحْوَهُ.

**ترجمه:** [۱] شداد بن اوس رضی الله عنه فرمایي [۲] چي رسول الله ﷺ به په خپل مانځه کښي (تشهد څخه وروسته) دا دعا کوله: [۳] اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الثَّبَاتَ فِي الْأَمْرِ وَالْعَزِيمَةَ عَلَى الرُّشْدِ وَأَسْأَلُكَ شُكْرَ نِعْمَتِكَ وَحُسْنَ عِبَادَتِكَ وَأَسْأَلُكَ قَلْبًا سَلِيمًا وَلِسَانًا صَادِقًا وَأَسْأَلُكَ مِنْ خَيْرِ مَا تَعْلَمُ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا تَعْلَمُ وَأَسْتَغْفِرُكَ لِمَا تَعْلَمُ، (اي الله زه ستا څخه په دین کي ثابت قدمي غواړم [۴] او د راه راست (سیده لاري) د قصد سوال کوم [۵] او زه ستا څخه ستا د نعمت د شکر سوال کوم [۶] او ستا د عبادت د حسن خواست کوم [۷] او ستا څخه قلب سلیم او رښتیني ژبه غواړم [۸] او ستا څخه هغه خیر غواړم چي ته یي پیژني [۹] او د هغه بدي څخه پناه غواړم چي تا ته معلومه ده [۱۰] او د هغه ګناهونو معافي غواړم چي تاته معلوم دي، (نسایي، احمد)

**حل اللغات:-** ① الثَّبَاتَ: مضبوط والي، ثابت قدمی، ② الْعَزِيمَةَ: د زړه قصد او مضبوطي ارادې ته وائي. ③ الرُّشْدِ: نیغه لار، د هدایت لار.

¹) اخرجه النسائی کتاب السهو /باب بنوع آخر من الدعاء (رقم-۱۳۰٤)

تسهیلات:-

قوله: وَحُسْنَ عِبَادَتِكَ:

**دعبادت د حسن څخه مراد:**-د حسن عبادت څخه هغه احسان مراد دې کوم چې په حدیث جبریل کښې راغلی دې چې ته د الله تعالی داسې عبادت کوه لکه چې ته الله تعالی وینې اوکه داسې نشې کولې نو دا تصور کوه چې الله تعالی تا وینی.

قوله: وَالْعَزِيمَةَ عَلَى الرُّشْدِ:

**داستقامت عظمت:**-ددې مطلب د صحیح لارې قصد کول دی. چې اې الله تعالی! ماته ددې توفیق راکړې چې تا دهدایت کومه لاره خودلې ده ،په هغې باندې همیشه دپاره ثابت قدمی رانصیب شی ،او هدایت د خپل ژوند یو لازمی حصه اوګرزوم ،ځکه چې استقامت ډیر لوی انعام دې.

قوله: وَأَسْأَلُكَ قَلْبًا سَلِيمًا:

**د قلب سلیم تعریف:**-قلب سلیم هغه زړه ته وائی کوم چې د غلطو عقائدو ،کمزورو خیالاتو او خرابو اعتقاداتو او نظریاتو نه پاك وی. او په دې کښې د نفسانی خواهشونو څه میلان نه وی.

قوله: وَأَسْأَلُكَ مِنْ خَيْرِ مَا تَعْلَمُ:

**د ناخبره ګناه حکم:**- یعنی ډیر داسې خیر دی چې هغه مونږ شر ګنړو، یا دهغې نه مونږ خبر نه یو،او ډیر شرونه داسې دی دکوموڅخه چې مونږ خبر یویا دهغې نه بې خبره یو. ددې مذکوره دعا حاصل دادې چې اې الله تعالی! ستا عطاء دې زمونږ په طلب باندې نه وی ،ستا په کرم سره وی. او دغه شان اې الله تعالی! کومه ګناه چې زمونږ نه شوې ده او هغه ستاپه علم کښې ده نو مونږ دهغې هم معافی غواړو.

٩٥٦-د تشهد څخه روسته یوه بهترینه وینا

٩٥٦-()[۱۷] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي صَلَاتِهِ بَعْدَ التَّشَهُّدِ: [۳] "أَحْسَنُ الْكَلَامِ كَلَامُ اللهِ، [۴] وَأَحْسَنُ الْهَدْيِ هَدْيُ مُحَمَّدٍ» ". رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] د جابر رضی الله عنه څخه روایت دې [۲] چې رسول الله ﷺ به په خپل لمانځه کې د التحیات څخه وروسته فرمایل [۳] چې بهترین کلام کلام دالله دې [۴] او بهترینه طریقه د رسول الله ﷺ طریقه ده. (دا نسایي روایت کړي دي)

**حل اللغات:**- ① أَحْسَنُ الْكَلَامِ: ښائسته او غوره خبرې،

② أَحْسَنُ الْهَدْيِ: أَيِ السِّيرَةِ وَالطَّرِيقَةِ: یعنی ښائسته سیرت او طریقه (کوم سره چه هدایت ملاویږی).

[1]) اخرجه النسائی کتاب السهو/باب نوع آخر من الذکر بعد التشهد (رقم- ۱۳۱۱)

**تسهيلات:** -

**قوله:** يَقُولُ فِي صَلَاتِهِ بَعْدَ التَّشَهُّدِ:

**د تشهد څخه روسته يله مسنون دعا:** - دې خاني د تشهد نه پس يعنى د درود شريف نه پس د يوې بلې دعـا ذكر دې.دا دعـا پـه نوافلوباندې محمول ده څكـه چې فرائـضو كښې خو اختصـار مقصود وى

## ۱۵۷ـ ښي طرف ته لږغوندې راكږخېدل

۱۵۷ـ(۱)[۱۸][۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ:[۲] «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَلِّمُ فِي الصَّلَاةِ تَسْلِيمَةً تِلْقَاءَ وَجْهِهِ،[۳] ثُمَّ يَمِيلُ إِلَى الشِّقِّ الْأَيْمَنِ شَيْئًا» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:**[۱] بي بي عائـشه صـديقه ﷺ فرمـايي[۲] چې رسـول الله ﷺ بـه پـه لمانځـه كې خپلې مخې طرف ته يو سلام ګرځولو[۳] بيا به يې لږ شان ښي طرف ته ګرځولـو، دا رنګـه بـه رسول الله ﷺ سلام پوره كولو، (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① تِلْقَاءَ وَجْهِهِ: أَيْ: يَبْدَأُ بِالتَّسْلِيمِ مُحَاذَاةَ وَجْهِهِ: يعنى مخ په قبله به ني د سلام ګرځول شروع كول. ② يَمِيلُ: مائل كيدلو به، راكږخېدلو به، ③ الشِّقِّ الْأَيْمَنِ: شق طرف ته وانى يعنى ښى طرف ته (به راكږخېدلو). ④ شَيْئًا: أَيْ: يَسِيرًا: لږ شان.

**تسهيلات:** -

**قوله:** تِلْقَاءَ وَجْهِهِ:

په مونځ كښې دَ سلام متعلق دوه اهم مسئلې دى.

### د خروج من الصلاة په حكم كښې مذاهب: -

① دَ جمهورو او ائمه ثلاثه په نيز لفظ سلام فرض دې

② دَ احنافو په نيزواجب دې. دَدې مسئلې پوره بحث كتاب الطهارة كښې تيرشوې دې.

### د سلام په طريقه او تعداد د سلام كښې مذاهب: -

① دَمالكيه مسلك دادې چه دَامام اومنفرد دَپاره يويوخل سلام ونيـل سنت دى چه نه ښى طرف ته دې اونه ګس طرف ته دې بلكه دَمخ طرف ته سـلام كـول مـسنون دى. دَدې حضراتو په نيز دَ مقتدى دَپاره درې سلامونه مـسنون دى. يـو مخې طرف تـه دويـم ښـى طـرف تـه او دريم ګس طرف ته.

② احناف، شوافع او حنابله يعنى دَ جمهورو پـه نيـز مونځ ګذار كـه امـام وى اوكـه مقتـدى وى دَ ټولو دَپاره دَمونځ نه وتل په وخت دوه سلامونه مسنون دى.

(۱) اخرجه الترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه أيضا (رقم - ۲۹۶)

**داول فریق دلیل:** - زیر بحث د حدیث عائشه صدیقه رضي الله عنها د دوی مستدل دې چه په خپل مطلب باندې واضح دلیل دې.

**داول فریق د دلیل جواب:** - دَحضرت عائشه رضي الله عنها دَ وینا مطلب دادې چه حضوراکرم ﷺ دَ سلام الفاظ هغه وخت شروع کول کوم وخت چه به ئې مخ مبارک دَ قبلې طرف ته وو. او بیا به ئې هم دغه آواز کښې مخ مبارک ښي او ګس طرف ته تاوولو نودوه سلامونه کیدل. دا مطلب نه دې چه دَ اول نه تر آخره پورې به هم سلام وو او مخې طرف ته به وو.

**د دویم فریق دلیل:** - هغه ټول دلائل دَ دویم فریق دلائل دي په کوم کښې چه دَ دوو سلامونو تصریحات دي او "عن یمینه وعن یساره" الفاظ په واضحه توګه موجود دي.

**۱۵۸ - په امام باندې د سلام نیت کول**

۱۵۸ -()[۱۹] [۱] وَعَنْ سَمُرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَرُدَّ عَلَى الْإِمَامِ [۳] وَنَتَحَابَّ، [۴] وَأَنْ يُسَلِّمَ بَعْضُنَا عَلَى بَعْضٍ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] حضرت سمره رضي الله عنه فرمایي [۲] چې رسول الله ﷺ مونږ ته حکم راکړې دې چې زمونږ د سلام ګرځولو په وخت د امام د سلام د جواب نیت وکړو [۳] مونږ په خپلو کې محبت او ساتو [۴] او یو بل ته سلام کوو. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① وَنَتَحَابَّ: مونږ یو بل سره محبت اوساتو.

**تسهیلات:** -

**په حدیث کښې درې احکام:**

**قوله:** ① أَنْ نَرُدَّ عَلَى الْإِمَامِ:

**په سلام کښې دمقتدی دنیت درې صورتونه:** - چه کله مقتدی سلام ګرځوی نوهغه دې دا نیت اوکړی چه زه دَامام دَ سلام جواب ورکوم.

① کوم مقتدیان دَامام ښی طرف ته ولاړوی هغه به په اول سلام کښې خپل ښی طرف ته مونځ ګذارو اوکرام الکاتبین فرښتو نیت کوی

② کله چه ګس طرف ته سلام اوګرځوی نودَا مام صاحب دَ سلام دَ جواب نیت دې اوکړی اوکوم مقتدیان چه دَ امام ګس طرف ته ولاړوی هغوی دې په ښی طرف سلام ګرځولو کښې دَ امام دَ سلام دَ جواب نیت اوکړی. او دَ ګس طرف دَ مونځ ګذارو نیت دې اوکړی.

③ کوم مقتدی چه بالکل امام پسې ولاړوی هغه دې په دواړو سلامونو کښې دَامام دَ سلام دَ جواب نیت اوکړی لکه څنګه چه امام صاحب هم دَ دغه شان نیت کولوپابند دې باقی په

[1]) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة،باب الرد علی الإمام (رقم - ۱۰۰۱) ابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها ،باب رد السلام علی الإمام (رقم - ۹۲۲)

ګس اوښې طرف کښې دَ فرښتو نیت په هرسلام کښې پکاردې دَ جنات دَ نیت ضرورت نشته اونه دَهغه انسانانو دَنیت ضرورت شته کوم چه په مانځه کښې شامل نه وی.

۲ **قوله:** وَنَتَحَابَّ:

**په خپل مینځ کښې د مینې محبت ساتل:**-دادویم حکم دې دَدې مطلب دادې چه مونږ ته حضورپاک ﷺ فرمائیلی دی چه مونږ په خپل مینځ کښې یوبل سره محبت اوکړو او بغض او دښمنی اونه ساتو اوتولوسره په خو اخلاقوسره مخ شو.

۳ **قوله:** وَأَنْ يُسَلِّمَ بَعْضُنَا:

**په مانځه کې د سلام نیت کول:**-په مانځه کښې دَ یوبل دَ سلام نیت اوکړو دَدې صورت وړاندې لیکلې شوې دې چه مقتدی دَ سلام ګرځولو په وخت دَ یوبل دَ سلام نیت به څنګه کوی.

په دې باب کښې هغه احادیث بیانولې شی دکومونه چه مانځه پسې دعا وردونو اووظائفو فضیلت اواهمیت معلومیږی. دَ ذکرلفظ عام دې کوم چه وظائف او دعاګانوټولوته شامل دې. دا مسئله څه غورطلب غوندې ده چه کومو فرائضو نه پس چه سنت وی دَهغې نه پس مونځ ګذار د اورادو اودعاګانوکولودَپاره دَڅومره ساعت دَپاره کیناستې شی.

## [۳۵/۱۸] بَابُ الذِّکْرِ بَعْدَ الصَّلَاةِ

### د مونځ نه پس د ذکر بیان

**خلاصة الباب:-**

**فیه ثمانیة عشر حدیثاً مشتملة علی أربع مسائل:**

۱ الذکر بعد الصلوة المکتوبة: ۱، ۷، ۸، ۹،۱۱، ۱۲، ۱۳،۱۵، ۱۶، ۱۷، ۱۸-

۲ الدعاء بعد المکتوبة: ۲، ۳، ۴، ۵، ۶-

۳ الترغیب فی الدعاء بعد الصلوة المکتوبة: ۱۰-

۴ الأمر بالفصل بین المکتوبة والسنة: ۱۴-

**دسنت بعدیه نه پس د وظائفودپاره په کیناستو کښې اقوال:**-۱ دَاحنافودَعلماؤ نه صاحب درمختار لیکلی دی چه فرض مونځ کولونه پس په سنتوکښې تاخیرکول مکروه دی صرف "اللهم انت السلام" آخره پورې په اندازه کیناستل ثابت دی. فقهاء داخبره هم لیکلې ده چه دَ سنتو کولودَپاره دَ فرائضوپه ختمولوباندې زر پاسیدل پکاردی.

۲ دَ علامه حلوانی رحمه الله قول دادې چه دَ وردونو او وظائف لوستلودَپاره دَفرض اوسنتو په مینځ کښې وقفه کولوکښې هیڅ بدی نشته هم دا قول څه نورو فقهاؤ هم لیکلې دې.

**دمفتی کفایت الله رحمه الله قول:**-مفتی الهند مفتی کفایت الله رحمه الله خپل نفیس کتاب "النفائس المرغوبة فی الادعیة بعد المکتوبة" کښې لیکلی دی "اللهم انت السلام" روایت کښې حضرت

عائشه رضی الله عنها په وخت کښې حصرنه دې خودلې اونه حضرت عائشه رضی الله عنها څه وخت متعين کړې دې بلکه حضرت عائشه رضی الله عنها په دې روايت کښې "اللهم انت السلام" دَ مقدار اندازه خودلې ده نو په دې اندازه اومقدار کښې نورې دعاګانې هم راتلې شي دکومو ذکرچه په احاديثو کښې راغلې دې په دې کښې هيڅ منافات نشته دې اونه اختلاف شته.

**په قولونو کښې تطبيق:**- علامه حلبی رحمه الله دَ فقهاء په کلام کښې په دې معمولی شان اختلاف کښې تطبيق ورکړې دې په دې تطبيق سره هم په دواړو اقوالو کښې څه اختلاف باقی نه پاتې کيږی. هغوی فرمائی چه صاحب دَ درمختار تاخير مکروه ليکلې دې که دا دَ مکره تحريمی په ځائی مکروه تنزيهی واخستې شی نومسئله به دَ اولی او غيراولی پاتې شی مطلب به دا شی چه په سنتو کښې تاخير کول بهترنه دی. اودَ علامه حلوانی رحمه الله دَ قول مطلب به داشی چه دَ وظائفو لوستلو په غرض سره په سنتو کښې تاخيرکولو کښې هيڅ مضائقه نشته دې ليکن مناسب اوبهتر هم دغه دی چه تاخير اونه کړې شی. بهرحال دَفرائضو اوسنتو په مينځ کښې دَ وظائف لوستلو ګنجائش شته دې.

**سنت بعديه څخه پس د دعا حکم:**-فقهاء ليکلی دی چه دَ فرضو کولو نه پس دَ سنتو دَپاره صفونه ماتول ډير بهتردی صفونه جوړولو سره سنت او نوافل نه دی کول پکار څه وړاندې روستو کيدل پکاردی. امام صاحب له هم پکاردی چه دَ خپلې مصلې نه لږ شان اخوا اودريږی دې دَپاره چه دَ چا دا شک اونه شی چه خلق فرضو کښې ولاړدی. "بعدالمکتوبة" دَ کومو دعاګانوذکر چه په احاديثو کښې پس دَ فرضونه په الفاظو سره راغلې دې نودَ سنتو کولونه پس هم هغه وظائف کولې شی. ځکه چه بعدالسنن هم بعدالمکتوبة دې سنت کولو سره دَ فرض بعديت ختميږی نه. په دې توجيه سره به ډيرزيات اشکالات ختم شی ځکه چه دَ فرائضونه پس چه کوم اوږده وردونو ذکر په احاديثو کښې راغلې دې هغه په دې وخت کښې په آسانئی سره کولې شی اومزه دا چه هم بعدالفرض به وی نور تفصيلات به وړاندې دَاحاديثو په ضمن کښې راځی.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**۹۵۱- د مانځه په ختميدو الله اکبر ويل**

۹۵۱-(۱)[۱] «عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا -، قَالَ: [۲] كُنْتُ أَعْرِفُ انْقِضَاءَ صَلَاةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالتَّكْبِيْرِ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

۱) اخرجه البخاری کتاب الاذان باب الذکر بعد الصلاة (رقم- ۸۴۲) ومسلم کتاب المساجد و مواضع الصلاة باب الذکر بعد الصلاة (رقم) ۱۲۰ - (۵۸۳) وابوداود کتاب الصلاة باب التکبير بعد الصلاة (رقم- ۱۰۰۲) والنسائی کتاب السهو/ باب التکبير بعد تسليم الإمام (رقم-۱۳۳۵)

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي[۲] چې ما به د رسول الله ﷺ د لمانځه ختميدل د حضور ﷺ د الله اکبر ويلو څخه پيژندل.

(بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① أعْرِفُ: مابه پيژندل. ② انْقِضَاءَ: أي: انْتِهَاءَهَا: يعنى ختميدل (د مونځ د نبى عليه السلام).

**تسهيلات:** -

**قوله:** أعْرِفُ انْقِضَاءَ:

**حد اعتدال په درجه کښې د ذکر بالجهر جواز:** -

حضرت ابن عباس رضي الله عنهما چونکه وړوکې وو په دې وجه به په کور کښې وو ليکن دَهغوى هوښيارتوب ته اوګوره چه څنګه به ئې صحيح اندازه لګوله. چونکه دهغوى کور جمات سره وو نوچه کله به جمع ختمه شوه اودَ تکبيرآواز به راوچت شو نوهغوى ته به معلوميدله چه جمع اوشوه. دغه شان معمولي آواز اوچتول چه دَ انساني دَ قدرتي نظام لاندې وى په هغې کښې هيڅ کلام نشته دې. اوهرځائى کښې دَ اهل حق په جماتونو کښې داسې کيږى اوکيدل هم پکاردى. دَ جمع نه فارغيدو وخت کښې خلق ډير وى نوکه چرې هغوى په مزه آوازونوسره هم دَ الله تعالى ذکر او يا استغفار کوى نوبيائى هم آواز اوچت اويدې شى او په جمات کښې راتنبيږى. خلاصه دا چه دَ اعتدال دَحده پورې په جهر سره ذکر ثابت دې

**په ذکر بالجهر کښې د مبالغې ممانعت:** - ليکن دَحد نه تجاوز ثابت نه دې بلکه په عامو وختونو کښې هم دَدې ممانعت راغلې دې. بعضې علماء وائى چه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دکوم تکبير خبره کوى دادَ ايام منٰى خبره وه او ايام تشريق کښې تکبيرات په اوچت آواز سره ونيل دَ امت متفقه مسئله ده.

**۹۲۰–د فرض مونځ څخه روسته نبى عليه السلام د ناستې مقدار**

۹۲۰–()[۲] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَلَّمَ [۳] لَمْ يَقْعُدْ إِلَّا مِقْدَارَ مَا يَقُولُ: [۴] اللّٰهُمَّ أَنْتَ السَّلَامُ وَمِنْكَ السَّلَامُ [۵] تَبَارَكْتَ يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي[۲] چې رسول الله ﷺ چې به کله (د فرض لمانځه) سلام وګرځولو[۳] نو صرف د دې دعا په قدر به کيناستلو: [۴] اللّٰهُمَّ أَنْتَ السَّلَامُ وَمِنْكَ السَّلَامُ تَبَارَكْتَ يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ (اي الله ته سالم يي (يعني د ټول عيوب څخه پاك يي) او ستا

[۱] اخرجه مسلم كتاب المساجدو مواضع الصلاة/باب استحباب الذكر بعد الصلاة وبيان صفته (رقم- ۱۳۶ - (۵۹۲) وابوداود كتاب الصلاة،باب ما يقول الرجل إذا سلم (رقم- ۱۵۱۲) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، باب ما يقال بعد التسليم (رقم- ۹۲٤) والنسائى كتاب السهو/باب الذكر بعد الاستغفار (رقم-۱۳۳۸) كتاب السهو/باب الذكر بعد الاستغفار (رقم-۱۳۳۸) والدارمى كتاب الصلاة/باب القول بعد السلام (رقم-۱۳۸۷) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما يقول إذا سلم (رقم- ۲۹۸)

څخه (د بنده ګانو د ټول آفاتو څخه) سلامتي ده ۵ ته برکت والایې اي بزرګي او بخشش والا. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① أَنْتَ السَّلَامُ: ته سالم یې. أَيْ مِنَ الْمَعَايِبِ وَالْحَوَادِثِ وَالتَّغَيُّرِ وَالْآفَاتِ: یعنی د ټولو عیبونو، حوادثو، اود تغیر او آفتونونه پاک یې).

**تسهیلات:** - قوله: لَمْ يَقْعُدْ إِلَّا مِقْدَارَ مَا يَقُولُ:

**د مانځه څخه وروسته د کیناستلو مقدار:** - ددې حدیث څخه حصر معلومیږي چې نبی کریم ﷺ به د سلام ګرزولو نه پس صرف دومره کیناستل څومره وخت کښې چې دا دعا لوستلې کیږي «اللَّهُمَّ أَنْتَ السَّلَامُ وَمِنْكَ السَّلَامُ، تَبَارَكْتَ ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ»

**۹۶۱ — د مانځه څخه وروسته استغفار او دعا کول**

۹۶۱ — (۳) [۱] وَعَنْ ثَوْبَانَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا انْصَرَفَ مِنْ صَلَاتِهِ [۳] اسْتَغْفَرَ ثَلَاثًا، وَقَالَ: [۴] "اللَّهُمَّ أَنْتَ السَّلَامُ، وَمِنْكَ السَّلَامُ، تَبَارَكْتَ يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ» "، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ثوبان رضی الله عنه فرمایي [۲] چې رسول الله ﷺ چې به د خپل لمانځه څخه فارغ شو [۳] نو (مخکې) به یې درې ځله استغفار کولو بیا به یې دا دعا ویله: [۴] اللَّهُمَّ أَنْتَ السَّلَامُ وَمِنْكَ السَّلَامُ تَبَارَكْتَ يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ (مسلم)

**تسهیلات:** -

قوله: يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ:

**د ذی الجلال او والاکرام مفهوم:** - د ذی الجلال څخه د فاسقانو نه بدل اخستونکې، او د اکرام څخه مراد نیکانو ته انعام ورکوونکې دې.

**په دې دعا کښې د بعضې کلماتو د زیادت تردید:** - ددې حدیث پاك نه معلومه شوه چې ((والیك یرجع السلام فحینا ربنا بالسلام وادخلنا دار السلام)) دا الفاظ د حدیث نه ثابت نه دی بلکه دا روسته چا اضافه کړی دی

**په روایتونو کښې د تعارض اشکال:** - دې په ماقبل روایت کښې صرف د اللهم انت السلام الخ ذکر وو چې نبی کریم ﷺ به صرف دا دعا کوله او دومره مقدار به کیناستلو او دلته ورسره د استغفار اضافه شوې ده. په دواړو رایاتو کښې تعارض دې؟

**دتعارض درې جوابونه:** - ① ماقبل حدیث کښې د راوی تصرف دې. ځکه چې نسائی شریف کښې دا الفاظ دی چې نبی کریم ﷺ به دا الفاظ ونیل.

---

[۱] اخرجه مسلم کتاب المساجد و مواضع الصلاة/باب استحباب الذکر بعد الصلاة وبیان صفته (رقم- ۱۳۵ - (۵۹۱) والدارمی کتاب الصلاة/باب القول بعد السلام (رقم-۱۳۸۷)

② د رومی حدیث مطلب دادي چي د مونځ په حالت کښې ناسته به دومره مقدار پورې وه کومه کښې چي اول روایت کښې ده. او که زیاته ناسته به ئې کوله نو د مونځ والا حالت به ئې بدلولو.

③ د کومو مونځونو نه پس چي سنت نشته دي، نو هغه اعمالو سره نورعملونه به ئې هم کول ،خوچي د کومو فرائضو نه پس سنت مؤکده شته دي نوهغي کښې به ئې دفرائضو نه پس مختصر دعاګانې وئیلې.

### ۹۶۳- د فرض مانځه څخه ورسته کلمه توحید ویل

۹۶۳-()[۳] ① وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، ② «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ مَكْتُوبَةٍ: ③ "لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، ④ لَهُ الْمُلْكُ، وَلَهُ الْحَمْدُ، وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، ⑤ اللّٰهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ، ⑥ وَلَا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ، ⑦ وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① مغیره ابن شعبه رضی الله عنه فرمایي ② چي رسول الله ﷺ به د فرض لمانځه څخه وروسته دا دعا کوله: ③ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ اللّٰهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ وَلَا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ. (د الله څخه سوا بل معبود نشته هغه ایکي یو دي هیڅوك د هغه شریك نشته ④ د هغه د پاره بادشاهت دي د هغه د پاره هر قسم تعریف دي او هغه په هر شي قادر دي ⑤ اي الله کوم شي چي تا ورکړي وي د هغې څوك رد کولو والا نشته ⑥ او کوم شي چي تا منع کړي وي څوك د هغې ورکولو والا نشته ⑦ او دولتمند د خپل دولت په وجه باندې ستا د عذاب څخه نشي بچ کیدي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① دُبُر: أَيْ: عَقِبَ: روستو، ② مَكْتُوبَةٍ: أَيْ: فَرِيضَةٍ: فرض مونځ، ③ ذَا الْجَدِّ: أَيْ: صَاحِبَ الْحَظِّ فِي الْعِبَادَةِ: په عبادت کښې حصه دار. یعنی عبادتګذار ③ الْجَدُّ: مال ،عهده، وغیره.

**تسهیلات:** -

**قوله: وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ:**

**د الجد ترکیب اومفهوم:** - وَلَا يَنْفَعُ "دَ دې صیغې فاعل دَ "الجد" لفظ دي اودادلته دَ دولت په معنی کښې دي او "ذَا الْجَدِّ" نه مالدار او دولت مند سړي مراد دي. دا لفظ دَلاینفع دَپاره مفعول به دي. "منك" اي من عذابك.

---

[1] اخرجه البخاری کتاب الاذان /باب الذکر بعد الصلاة (رقم- ۸٤٤) و مسلم کتاب المساجد و مواضع الصلاة/ باب ما يقول إذا رفع رأسه من الركوع (رقم) ۲۰۵ - (٤٧٧) وابوداود کتاب الصلاة،باب ما يقول الرجل إذا سلم (رقم- ۱۵۰۵)وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة/باب ما جاء في القراءة في صلاة الليل (رقم- ۱۳٤۹) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما يقول إذا سلم (رقم- ۲۹۹) والنسائى كتاب السهو/باب عدد التهليل والذكر بعد التسليم (رقم- ۱۳٤۱) والدارمی کتاب الصلاة/باب القول بعد السلام (رقم-۱۳۸۹)

**قوله: دُبُرِكُلِّ صَلَاةٍ:**

**د دبر كل صلاة په مطلب كښې دوه اقوال:-**

① دَ سنتونه پس به ئې دا دعا لوستله دا هم دَ فرض نه پس ده.

② دَ فرض سلام سره متصل به ئې وئيلو

**۹۶۳-د سلام ګرځولو څخه روسته د الله تعالى تسبيح بيانول**

۹۶۳-()[۵]① وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الزُّبَيْرِ-رضي اللهِ عَنْهُ-قَالَ:② «كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَلَّمَ مِنْ صَلَاتِهِ③ يَقُولُ بِصَوْتِهِ الْأَعْلَى: "لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ،④ لَهُ الْمُلْكُ، وَلَهُ الْحَمْدُ،⑤ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ،⑥ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ،⑦ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، وَلَا نَعْبُدُ إِلَّا إِيَّاهُ،⑧ لَهُ النِّعْمَةُ، وَلَهُ الْفَضْلُ،⑨ وَلَهُ الثَّنَاءُ الْحَسَنُ،⑩ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ،⑪ وَلَوْكَرِهَ الْكَافِرُونَ» "رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**① او حضرت عبد الله ابن زبير رضي الله عنه فرمايي② چې رحمت عالم ﷺ به چه کله د خپل لمانځه څخه سلام وګرځولو③ نو (د سلام څخه بعد) په بلند آواز سره به يې دا کلمات ويل: لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَلَا نَعْبُدُ إِلَّا إِيَّاهُ لَهُ النِّعْمَةُ وَلَهُ الْفَضْلُ وَلَهُ الثَّنَاءُ الْحَسَنُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ وَلَوْكَرِهَ الْكَافِرُونَ (د الله څخه بغير هيڅ معبود نشته هغه يوازي دي څوك د هغه شريك نشته④ د هغه د پاره بادشاهي ده او هر قسم تعريف هغه لره دي⑤ او په هر شي قادر دي⑥ د ګناهونو څخه بچ کيدل او د عبادت کولو قوت يوازي د الله تعالى جل جلاله په مدد سر دي⑦ د الله څخه سوا بل معبود نشته مونږ د هغه عبادت کوو⑧ او د الله د طرفه (په بندګانو) نعمتونه او احسان دي⑨ او د الله تعالى دپاره ښکلي ثنا ده⑩ د الله څخه سوا بل معبود نشته مونږ د الله د پاره د هغه بندګي خالص کونکي يو⑪ اګر که کافران دا بد ګڼي. (مسلم)

**حل اللغات:**- ① النِّعْمَةُ: هر قسم تعريف د الله د پاره دي. ② الْفَضْلُ: بزرګی، برتری، ③ الثَّنَاءُ: تعريفونه، صفتونه، ④ مُخْلِصِينَ: خالص کونکی يو (ريا کونکی نه يو).

**تسهيلات:- قوله:-يَقُولُ بِصَوْتِهِ الْأَعْلَى:**

**د حديث څخه په ذکر بالجهر استدلال او د هغې تضعيف:**-د دې نه معلوميږی چې کله به ئې سلام اوګرزولو نو په اوچت آواز سره به ئې دا کلمات وئيل. د دې نه هم د مونځ نه پس ذکر بالجهر معلوم شو. د دې دوارو حديثونو نه د دې زمانې بعضې حضرات استدلال کوی چې د مونځ د فارغيدو نه پس په اوچت آواز سره دې ذکر اوکړې شی. حالانکه ائمه اربعه کښې هيڅوك هم بعد الصلوة د ذکر بالجهر قائل نه دی.

[1] اخرجه مسلم كتاب المساجد و مواضع الصلاة باب استحباب الذكر بعد الصلاة وبيان صفته (رقم- ۱۳۹ - (۵۹٤) وابوداود كتاب الصلاة،باب ما يقول الرجل إذا سلم (رقم- ۱۵۰۶) والنسائی كتاب السهو/باب عدد التهليل والذكر بعد التسليم (رقم- ۱۳٤۰)

## ۹۶۳- د مانځه څخه وروسته د بعضې څیزونو څخه تعوذ غوښتل

۹۶۳-()[۱] [۱] وَعَنْ سَعْدٍ- رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- [۲] أَنَّهُ كَانَ يُعَلِّمُ بَنِيهِ هَؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ، [۳] وَيَقُولُ: «إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَتَعَوَّذُ بِهِنَّ دُبُرَ الصَّلَاةِ: [۴] " اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْجُبْنِ، [۵] وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ الْبُخْلِ، [۶] وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ أَرْذَلِ الْعُمُرِ، [۷] وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الدُّنْيَا، وَعَذَابِ الْقَبْرِ» "، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] د حضرت سعد ﷛ په بلوه کې روایت دی [۲] چې هغه به خپل اولاد ته د دعا دا الفاظ ښودل [۳] او فرمایل به یې چې رسول الله ﷺ به د خپل لمنځونو څخه وروسته د دې الفاظو په ذریعه پناه غوښتله: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْجُبْنِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ الْبُخْلِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ أَرْذَلِ الْعُمُرِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الدُّنْيَا وَعَذَابِ الْقَبْرِ [۴] اې الله زه د بزدلۍ څخه ستا پناه غوارم [۵] د بخل څخه ستا د پناه طلب ګاریم [۶] د ناکاره عمر څخه ستا د پناه خواستګار یم [۷] او د دنیا د فتنې او د قبر د عذاب څخه (یعني د هغه څیزونو څخه چې د قبر د عذاب سبب دي) ستا پناه غوارم. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① أَرْذَلِ الْعُمُرِ: أي الهَرَمَ: بوډاتوب (داسې بوډاتوب چه انسان ډیر کمزورې شي او عقل ئې کم شي چه دالله په نعمتونو کښې صحيح فکر نه شي کولې).

**تسهيلات:-**

**قوله: مِنَ الْجُبْنِ:**

**د بزدلۍ څخه پناه غوښتل:-** حضورپاك ﷺ بار بار دَ بزدلئی نه پناه اوغوښتله دَدې په وجه صرف هغه خلق پوهیږي دَچاچه دَ جهاد سره تعلق وی که هغه عوام وی اوکه علماء وی خکه چه کوم سړي بزدل وی هغه نه خپل عزت بچ کولې شي او نه دَخپل مذهب عظمت بچ کولې شي بلکه په مزه مزه دا بزدلی دومره زیاتیږي چه هغه سړې جهادخو څه چه دَ جهاد دَ وجود نه انکارکوی. او په هغې کښې قسم قسم تاویلونه کوی څکه چه دَجهادپه میدان کښې بهادرسړي ورکوزیدې شي دا دَبزدلانوکارنه دې.

**د بخل څخه پناه غوښتل:-** دغه شان معامله دَ بخل نه پناه غوښتلو ده څکه چه کوم سړې کنجوس شوم وی هغه دَخپلوانو حقوق دَخپو لاندې کوی نه پخپله خوراك کولې شي اونه غتې او ورې متیازې پخپله کولې شي نه کپړې پخپله اچولې شي اونه ئی کوزولې شي بلکه دَ کور غورزیدلی څیزونه کوړا کبار په شان پاتې کیږي.

---

[۱] اخرجه البخاری کتاب الجهاد والسیر باب التعوذ من عذاب القبر (رقم- ۶۳۶۴) ومسلم باب التعوذ من العجز والکسل وغیره (رقم- ۵۱ - (۲۷۰۶) وابن ماجة کتاب الدعاء /باب ما تعوذ منه رسول الله صلی الله علیه وسلم (رقم- ۳۸۴۴) والترمذی باب فی دعاء النبی صلی الله علیه وسلم وتعوذه فی دبر کل صلاة (رقم- ۳۵۶۷) والنسائی کتاب الاستعاذة/باب الاستعاذة من أرذل العمر (رقم- ۵۴۹۶)

## ۹۶۵—د مانځه څخه وروسته تسبيح او د هغې فضيلت

۹۶۵—( )[۷] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: [۲] «إِنَّ فُقَرَاءَ الْمُهَاجِرِينَ أَتَوْا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا: [۳] قَدْ ذَهَبَ أَهْلُ الدُّثُورِ بِالدَّرَجَاتِ الْعُلَى، [۴] وَالنَّعِيمِ الْمُقِيمِ، [۵] فَقَالَ: "وَمَا ذَاكَ؟" [۶] قَالُوا: يُصَلُّونَ كَمَا نُصَلِّي، وَيَصُومُونَ كَمَا نَصُومُ، [۷] وَيَتَصَدَّقُونَ وَلَا نَتَصَدَّقُ، [۸] وَيُعْتِقُونَ وَلَا نُعْتِقُ؛

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضي الله عنه فرمايي [۲] چې (يوه ورځ) فقراء مهاجرين د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړو [۳] چې [يا رسول الله ﷺ] دولتمند خلقو زمونږ څخه مخکې والي يوړو په بلند درجاتو (يعني ثواب، قرب الهي او رضاء حق) سره [۴] او دائمي نعمت (يعني د جنت په نعمت حاصلولو) سره [يعني هغوې د خپل مال او دولت په وجه لوي ثواب حاصلوي او د جنت د نعمتونو مستحق کيږي او مونږ خو د غربت او افلاس په وجه د درجاتو په بلندي کې د هغوئ څخه وروسته پاتې کيږو] [۵] حضور ﷺ ورته وفرمايل دا څنګه؟ [۶] هغوئ عرض وکړو چه هغوئ داسې مونځ کوي څنګه چې مونږ مونځ کوو او هغوئ داسې روژې نيسي څنګه چې مونږ روژې نيسو [۷] (په دې اعمالو کې خو مونږ او هغوئ برابر يو ليکن د مال او زرو په وجه) هغوې صدقه او خيرات کوي او (د غربت او افلاس په وجه) مونږ صدقه او خيرات نشو کولي [۸] هغوې غلامان آزادوي او مونږ غلامان نشو آزادولي (دغسې هغوئ د دې اعمالو د ثواب حقداره شي او مونږ محروم پاتې کيږو د دې اوريدو سره)

**حل اللغات:-** ① الدُّثُور: أي أَهْلُ الْأَمْوَالِ: دثور د دثر جمع ده، ډير مال ته وائي. ② النَّعِيمِ: أَيْ: الْعَيْشِ: د نعمتونو نه عيش او عشرت مراد دي. ③ الْمُقِيمِ: أَيْ: الدَّائِمِ: هميشه (د جنت هميشوالي او نعمتونه مراد دي).

[۱] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَفَلَا أُعَلِّمُكُمْ شَيْئًا تُدْرِكُونَ بِهِ مَنْ سَبَقَكُمْ [۲] وَتَسْبِقُونَ بِهِ مَنْ بَعْدَكُمْ، [۳] وَلَا يَكُونُ أَحَدٌ أَفْضَلَ مِنْكُمْ، [۴] إِلَّا مَنْ صَنَعَ مِثْلَ مَا صَنَعْتُمْ؟". [۵] قَالُوا: بَلَى يَا رَسُولَ اللّٰهِ [۶] قَالَ: "تُسَبِّحُونَ، وَتُكَبِّرُونَ، وَتَحْمَدُونَ دُبُرَ كُلِّ صَلَاةٍ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ مَرَّةً"،

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ ورته وفرمايل آيا زه تاسو خلقو ته يوه داسې خبره نه درښايم چې په هغې عمل کولو سر تاسو د هغه خلقو درجاتو ته ورسيږي [۲] کوم چې ستاسو څخه مخکې اسلام راوړي دي او د هغه خلقو د مرتبې څخه زيات شی چې ستاسو څخه وروسته دي (يعني ستاسو څخه وروسته يې اسلام راوړي دي يا ستاسو څخه وروسته پيدا کيږي) [۳] او (د مالدارو خلقو څخه) هيڅ سړي به ستاسو څخه بهتر نه وي [۴] بغير د هغه سړي څخه چې ستاسو په شان عمل وکړي (يعني مالدار خلق که زما په ښودل شوي خبره باندې ستاسو په

[1] اخرجه البخارى كتاب الاذان باب الذكر بعد الصلاة (رقم- ۸۴۳)، و مسلم كتاب المساجد و مواضع الصلاة وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، باب ما يقال بعد التسليم (رقم- ۹۲۷) والنسائى كتاب السهو/نوع آخر (رقم-۱۳۵۳)

شان عمل وکړي نو بيا د مرتبې په اعتبارسره به هغه ستاسو څخه بهتر وي، ٥ فقراؤ عرض وکړو يا رسول الله ﷺ بهتر ده وفرمايه (هغه څه خبره ده؟) ٦ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل تاسو د هر لمانځه وروسته سبحان الله، الله اکبر او الحمد لله ٣٣ ځله وايئ.

**حل اللغات:**- ④ تُدْرِكُونَ : رالاندې به کړئ، ورته به اورسيږئ، ⑤ تَسْبِقُونَ : ستاسونه مخکښې شوي دي (په اسلام راوړلو کښې).

١ قَالَ أَبُو صَالِحٍ: فَرَجَعَ فُقَرَاءُ الْمُهَاجِرِينَ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا: ٢ سَمِعَ إِخْوَانُنَا أَهْلُ الْأَمْوَالِ بِمَا فَعَلْنَا، فَفَعَلُوا مِثْلَهُ، ٣ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ذٰلِكَ فَضْلُ اللهِ يُؤْتِيهِ مَنْ يَشَاءُ»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ، ٤ وَلَيْسَ قَوْلُ أَبِي صَالِحٍ إِلَى آخِرِهِ إِلَّا عِنْدَ مُسْلِمٍ، ٥ وَفِي رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ: "«تُسَبِّحُونَ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ، وَتَحْمَدُونَ عَشْرًا، وَتُكَبِّرُونَ عَشْرًا» ٦ "بَدَلَ: "ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ".

**ترجمه:** ١ (د حديث يو راوي) ابو صالح فرمايي چې (څو ورځې وروسته) فقراء مهاجرين (بيا) د حضور ﷺ په خدمت مبارك کې حاضر شو او عرض يې وکړو چې يا رسول الله ﷺ ٢ زمونږ دولت مندو ورونو زمونږ د عمل حال واوريدلو اوهغوئ هم هغسې کوي څنګه چې مونږ يې کوو (دغسې هغوئ بيا زمونږ څخه افضل شو) ٣ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل دا د الله تعالى جَلَّ جَلَالُهُ فضل دي چاته چې يې غواړي ورکوي. (بخاري مسلم)

٤ د روايت آخري الفاظ چې د ابو صالح قول دي يوازې مسلم رحمه الله نقل کړي دي ٥ او د بخاري رحمه الله په يو روايت کې دا دي چې هر لمانځه وروسته لس لس ځله سبحان الله، الحمد الله او الله اکبر وايئ. ٦ د ٣٣ ځله ويلو په ځاي.

**تسهيلات:**-

**قوله:** ذٰلِكَ فَضْلُ اللهِ يُؤْتِيهِ مَنْ يَشَاءُ:

**د چا دمقابلې قدرت نه لرلو په صورت کښې حسد نه کول:**- يعنى ترکومې پورې چه سړې په عبادت او نيکوکارونوکښې مقابله کولې شي نو کول پکاردي ليکن چرته چه دَ مقابلې ګنجائش نه وي بيا دَ ضد حسد او دښمنئ ضرورت نشته دې لکه هغه وړاندېوالي دَ الله تعالى دَ تقدير حصه ګڼړلوسره دا وئيل پکاردی چه دادَ الله تعالى خصوصى مهربانى ده په دې کښې مونږ هيڅ نه شو وئيلې.

دَدې حديث نه په ظاهره معلوميږی چه عبادت کونکې مالدار اوتول وظائف خپلونکې دولت مند دَ فقير نه افضل دې. په دې باره کښې به دَمشکوة په آخرى ابواب کښې ان شاء الله کلام کيږی.

**د شاکر مالدار اوصابر غريب په افضليت کښې اختلاف:**- ① جنيد بغدادی رحمه الله او نور اهل الله دَ فقر فاقې او فقيرئی دَ افضليت قائل دی.

④ شیخ سعدی بابا رحمه الله دَ گلستان کتاب په آخره کښې دَ یوفقیرزاهد سره په دې مسئله کښې خپله مناظره نقل کړې ده. باباسعدی رحمه الله دَ شاکرمالدار دَ فضیلت قائل دې. ابن عطاء رحمه الله هم شاکرمالدار ته افضل وائی

**داول قول ترجیح:** -زیر بحث حدیث کښې سره دَدې چه ذلك فضل الله فرمانیلې شوې دې لیکن دَ فقیر په نسبت دَ مالدار دپاره خطرې هم زیاتې دی. علماء لیکی چه دَمالدارانودا فضیلت جزئی دې اوفقیرانوته کلی فضیلت حاصل دې.

**۹۲۲-د مانځه څخه وروسته تسبیحات لوستل**

۹۲۲-()[۸] [۱] وَعَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «مُعَقِّبَاتٌ لَا يَخِيبُ قَائِلُهُنَّ - أَوْ فَاعِلُهُنَّ - [۳] دُبُرَ كُلِّ صَلَاةٍ مَكْتُوبَةٍ: [۴] ثَلَاثٌ وَثَلَاثُونَ تَسْبِيحَةً، [۵] وَثَلَاثٌ وَثَلَاثُونَ تَحْمِيدَةً، [۶] وَأَرْبَعٌ وَثَلَاثُونَ تَكْبِيرَةً» [1]، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] کعب ابن عجره رضی الله عنه فرمایي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] چه د ویلو د پاره څو کلمات دي چې (د حصول ثواب څخه) محروم نه پاتې کیږي د هغې ویونکي یا وي فرمایل چه کونکي دهغه کلماتو [۳] د هر فرض لمانځه وروسته (او هغه کلمات دا دي) [۴] سبحان الله ۳۳ ځله [۵] الحمدلله ۳۳ ځله [۶] او الله اکبر ۳۴ ځله ویل. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① مُعَقِّبَاتٌ: أَيْ: كَلِمَاتٌ يَأْتِي بَعْضُهَا عَقِبَ بَعْضٍ: دَعقب نه دې دَ یونه پس دَ بل راتلوته معقبات وائی. ② لَا يَخِيبُ: أَيْ: لَا يَخْسَرُ: نه ناأمیده کیږی، نه تاوانی کیږی. ③ مَكْتُوبَةٍ: أَيْ: مَفْرُوضَةٍ: فرض مونځ، ④ تَسْبِيحَةً: سبحان الله وئیل، ⑤ تَحْمِيدَةً: الحمد لله وئیل. ⑥ تَكْبِيرَةً: الله اکبر وئیل.

**تسهیلات:** -

**قوله: مُعَقِّبَاتٌ:**

**د معقبات په مصداق کښې مختلف اقوال:** - ① هغه عمل چې د هغې په لیکلوهره فرښته پیش قدمی کوی او غواړی چې نورې فرښتې روستو پریږدی.

② مونځ پسې وظیفه.

③ هغه کلمات چې پرله پسې وئیلې کیږی.

④ هغه وظیفې چې د هغې د وئیلو انجام ښه وی.

**قوله: لَا يَخِيبُ قَائِلُهُنَّ:**

**دعدم خیابت معنی:** -ددې مطلب دادې چې څوك دا كلمات وائی نو هغه په لږ محنت سره ډیره منافع حاصلوی.

[1] اخرجه مسلم كتاب المساجد و مواضع الصلاة/ باب استحباب الذكر بعد الصلاة وبيان صفته (رقم) ۱۴۶ - (۵۹۷) والنسائی كتاب السهو/نوع آخر من عدد التسبيح (رقم-۱۳۴۹)

۹۶۷- د هر مانځه ځخه روسته د تسبيحاتو وظيفه كول

۹۶۷- (¹) [۹] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «مَنْ سَبَّحَ اللّٰهَ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ، ③ وَحَمِدَ اللّٰهَ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ، ④ وَكَبَّرَ اللّٰهَ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ، ⑤ فَتِلْكَ تِسْعَةٌ وَتِسْعُونَ، ⑥ وَقَالَ: تَمَامَ الْمِائَةِ: لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ، وَلَهُ الْحَمْدُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ. ⑦ غُفِرَتْ خَطَايَاهُ ⑧ وَإِنْ كَانَتْ مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ» "رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت ابوهريره ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② كوم سړي چې د هر لمانځه وروسته سبحان الله ۳۳ ځله اووائي ③ الحمد لله ۳۳ ځله ④ الله اكبر ۳۴ ځله اووائي ⑤ چې مجموعي عدد يي ۹۹ شو ⑥ او د سلو ۱۰۰ عدد پوره كولو د پاره يو ځل لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، اووائي ⑦ نو د هغه ټول ګناهونه بخښل كيږي ⑧ اګر كه د سمندر د ځګ برابر (يعني ډير زيات) وي (مسلم)

**حل اللغات:-** ① تَمَامَ الْمِائَةِ: أَيْ: فِي وَقْتِ تَمَامِ الْمِائَةِ: كله چه سل پوره شي. ② زَبَدِ: زګ ته وائي (كوم چه د سمندر د چپو په وخت د ابو دپاسه جمع كيږي).

**تسهيلات:-** قوله: وَقَالَ: تَمَامَ الْمِائَةِ:

**تعارض:**-د كعب بن عجره رضى الله عنه په حديث كښې د تسبيح او تحميد ځخه روسته څلورديرش ځله تكبير ويلو ذكر دې. اوپه دې حديث د ابوهريره كښې د تسبيح اوتحميد ځخه پس د درې ډيرش ځله تكبير وئيلو ذكر دې

**دتعارض جواب:-** هيڅ تعارض نشته كله دې څلور ديرش ځل دې الله اكبر وائى. لكه ځنګه چې ماقبل حديث كښې تير شوى دى. اوكله دې درې ديرش ځل الله اكبروائى وريسې دې دا دعا غواړى په دې طريقه په احاديثو كښې تطبيق راغلو. يعنى دا دواړه وظيفې په تعدد باندې حمل دى. چې كله به نبى ﷺ يو شان عمل كولواوكله به ئې بل شان عمل كولو.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

۹۶۸- د دعا د قبوليت وختونه

۹۶۸- (²) [۱۰] ① عَنْ أَبِي أُمَامَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ② قِيلَ: «يَا رَسُولَ! أَيُّ الدُّعَاءِ أَسْمَعُ؟ ③ قَالَ: جَوْفُ اللَّيْلِ الْآخِرُ، ④ وَدُبُرُ الصَّلَوَاتِ الْمَكْتُوبَاتِ» "رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

¹) اخرجه مسلم كتاب المساجد و مواضع الصلاة/ باب استحباب الذكر بعد الصلاة وبيان صفته (رقم) ۱۴۶ - (۵۹۷) ومالک كتاب القرآن باب ما جاء فى ذكر الله تبارک وتعالى (رقم-۲۲) والنسائى كتاب السهو/باب نوع آخر (رقم-۱۳۵۴) والترمذى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم- ۳۴۶۶) ومالک فى الموطا كتاب القرآن باب ما جاء فى ذكر الله تبارک وتعالى (رقم-۲۲)

²) اخرجه الترمذى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب (رقم- ۳۴۹۹)

**ترجمه:** [۱] ابو امامه رضی الله عنه فرمايي[۲] چې عرض وشو يا رسول الله ﷺ کوم وخت دعا زياته قبليږي؟[۳] حضور ﷺ وفرمايل د شپې په آخري حصه کې (يعني د سحر په وخت کې)[۴] او د فرض لمونځونو څخه وروسته. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① أَسْمَعُ: أَيْ: أَقْرَبُ إِلَى الْإِجَابَةِ: قبوليت ته زياته نزدې. ② جَوْفُ اللَّيْلِ الْآخِرُ: هُوَ وَسْطُ النِّصْفِ الْآخِرِ مِنَ اللَّيْلِ: د شپې د آخرى نيمې حصې منځ.

**تسهيلات:** -

**قوله:** وَدُبُرَ الصَّلَوَاتِ الْمَكْتُوبَاتِ:

**فرض مونځ څخه پس د دعا اولاس اوچتولو ثبوت:** -حضرت ابو امامه رضی الله عنه فرمانی چې ما نبی کريم ﷺ ته عرض اوکړو چې کومه يوه دعا اقرب الى الاجابت ده ،نو نبی کريم ﷺ اوفرمانيل چې کومه د شپې په آخرى حصه کښې اوکړې شى اوکومه چې د فرض مونځونو څخه روسته اوکړې شى. نو د ابو امامه ددې حديث څخه د عبارت النص په طور دا خبره معلومه شوه چې د فرض مونځ نه پس دعا مباح نه بلکه مطلوب ده. ځکه چې دا اقرب الى الاجابت وى. او د اکثرو دعاګانو په آدابو کښې دى چې لاس اوچتول او دعاغوښتل ،لهذا فرض مونځ نه پس لاس اوچتول او دعا غوښتل ثابت شو.

**په دعا کښې د لاس پورته کولو دلائل:** -

① په مشکاة کښې د حضرت عائشې رضى الله عنها څخه په حديث نمبر ۱۵۰۸ کښې دا الفاظ منقل دى ((ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ، فَلَمْ يَتْرُكِ الرَّفْعَ حَتَّى بَدَا بَيَاضُ إِبْطَيْهِ))

② عن سهيل بن سعد عن النبى ﷺ قال.....يجعل اصبعيه حذاء منكبيه ويدعوا

③ وعن السائب اذا دعا رفع يديه مسح وجهه بيديه.

**استدلال:** -ددې نه معلوم شو چې دعا کښې لاس اوچتول دا د دعا آداب دى. ددې دليلونو باوجود فرض مونځ نه پس لاس اوچتول اودعا کول ،دې ته بدعت وئيل ټيک نه دى.

**۹۲۹- د مانځه وروسته د معوذاتو وئيلو حکم**

۹۲۹-()[۱][۱]وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲]«أَمَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَقْرَأَ بِالْمُعَوِّذَاتِ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ»، رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي: "الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ".

**ترجمه:** [۱] عقبه ابن عامر رضی الله عنه فرمايي[۲] چې رسول الله ﷺ ماته حکم راکړي وو چې زه د هر لمانځه وروسته معوذات وايم، (احمد ،ابوداؤد ،نسايي ،بيهقي)

[۱] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب فى الاستغفار (رقم- ۱۵۲۳) والترمذى كتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى المعوذتين (رقم- ۲۹۰۳) والنسائى كتاب السهو/باب الأمر بقراءة المعوذات بعد التسليم من الصلاة (رقم-۱۳۳٦)

**حل اللغات:-** ① الْمُعَوِّذَاتِ: جمع د معوذة ده دلته تري مراد سورة کافرون، سورة اخلاص او سورة فلق او سورة الناس دی.

**تسهيلات:- قوله: بِالْمُعَوِّذَاتِ:**

**د معوذتين او معوذات مصداق:-** په روایاتو کښې دوه قسمه الفاظ راغلی دی.

① معوذتين: داد تثنيې صيغه ده مراد ترينه آخرې دوه سورتونه دی سورة فلق او سورة الناس.

② معوذات: څنګه چه په دې روايت کښې راغلی دی دلته ترې مراد سورة کافرون، ورة اخلاص او سورة فلق او سورة الناس دی.

**په سورة کافرون او اخلاص د معوذات د اطلاق وجه:-** په معوذاتو کښې په سورة کافرون او اخلاص باندې تغليبا د معوذات اطلاق شوې دې او د اطلاق وجه ئې داده چه په دې دواړو سورتونو کښې د شرک نه د براءت اعلان دې او معنًا په کښې تعوذ هم دې.

**۹۷۰- د صبا بيګاه کښې د ذکر کولو فضيلت**

۹۷۰-() [۱۲] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«لَأَنْ أَقْعُدَ مَعَ قَوْمٍ يَذْكُرُونَ اللَّهَ [۳] مِنْ صَلَاةِ الْغَدَاةِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ - [۴] أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أُعْتِقَ أَرْبَعَةً مِنْ وَلَدِ إِسْمَاعِيلَ، [۵] وَلَأَنْ أَقْعُدَ مَعَ قَوْمٍ يَذْكُرُونَ اللَّهَ [٦] مِنْ صَلَاةِ الْعَصْرِ إِلَى أَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ - [۷] أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أُعْتِقَ أَرْبَعَةً»"، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] حضرت انس رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] چه د يو داسې جماعت سره زما ناسته وي چې د الله په ذکر کې مشغول وي [۳] د سحر د لمانځه څخه تر نمر ختو پورې [۴] زما په نيز د حضرت اسماعيل عليه السلام اولاد څخه د څلورو غلامانو د آزادولو څخه بهتر دي [۵] او په داسې خلقو کې زما ناسته چې د الله جل جلاله په ذکر کې مشغول وي [٦] د مازيګر د لمانځه څخه تر نمر پريوتو پورې [۷] زما په نيز د دې څخه بهتر دي چې زه څلور غلامان آزاد کړم. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① صَلَاةِ الْغَدَاةِ: أي: الصُّبْحِ: د سحر مونځ، ② أُعْتِقَ: چه زه آزاد کړم.

**تسهيلات:-**

**په عجمو د عربو فضيلت:-** دعجم په نسبت عرب افضل دی په دې وجه د ولد اسماعيل تخصيص اوشو. دَدې حديث نه دَ اوږد ذکر الله ثبوت ملاويږي دادَهغه مونځونو نه پس ذکر دې چرته چه سنت نه وي.

[۱] اخرجه ابوداود کتاب العلم باب في القصص (رقم-۳٦٦۷)

۹۷۱ – د صبا د مانځه څخه روسته د حج او عمرې ثواب حاصل

۹۷۱–() [۱۳] [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «مَنْ صَلَّى الْفَجْرَ فِي جَمَاعَةٍ، [۳] ثُمَّ قَعَدَ يَذْكُرُ اللهَ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، [۴] ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ - [۵] كَانَتْ لَهُ كَأَجْرِ حَجَّةٍ وَعُمْرَةٍ»، [۶] قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «تَامَّةٍ تَامَّةٍ تَامَّةٍ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت انس ﷛ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم سړي چې د سحر مونځ په جماعت سره وكړي [۳] او تر نمر ختو پورې د الله په ياد (ذكر) كې مشغول وي [۴] بيا دوه ركعاته مونځ وكړي [۵] نو هغه ته د حج او عمرې پشان ثواب حاصليږي [۶] د راوي بيان دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل د پوره حج او عمرې د پوره حج او عمرې د پوره حج او عمرې ثواب به ورته حاصليږي. (ترمذي)

**حل اللغات:**- ① تَامَّةٍ تَامَّةٍ تَامَّةٍ: تكرار د تاكيد دپاره دي، تامة د حَجَّةٍ دپاره صفت دي معنى ئې ده پوره حج.

**تسهيلات:**- **قوله:** حَجَّةٍ وَعُمْرَةٍ:

**د ثواب دوه قسمونه:**- ① يو اصل ثواب وى اصل ثواب خودَ نور چا په نيك عمل كولو سره ملاويږي شي

② يو زياتى او فضل ثواب وى. د ثواب دا قسم ثواب صرف هم هغه سړى ته ملاويږي چه په اصل عمل كښې محنت كولو سره عمل كوى

**د مثال په رنړا كښې وضاحت:**- مثلاً يو سړې ذكر كوى او دَ نمر دَ راختلو پورې دَ الله تعالى په ذكر كښې مشغول پاتې كيدو سره هغه دوه ركعته دَ اشراق مونځ او كړو هغه ته دَ حج او عمرې اصل ثواب ملاويږى كوم چه دَ الله تعالى په نيز مقرر او معين دي. يو سړې حج او عمرې له پخپله ځى محنت او مشقت برداشت كوى. خرچه كوى او په هغې كښې چه كوم زياتى ثواب دې نو دا ثواب خو به هم هغه ته ملاويږى څوك چه پخپله دَ حج او عمرې سفر او كړى. هم دغه شان نورا عمال هم قياس كول پكار دى.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

۹۷۲ – د فرض او سنت مونځ په مينځ كښې وقفه كول

۹۷۲–() [۱۴] [۱] وَعَنِ الْأَزْرَقِ بْنِ قَيْسٍ قَالَ: [۲] «صَلَّى بِنَا إِمَامٌ لَنَا يُكْنَى أَبَا رِمْثَةَ، [۳] قَالَ: صَلَّيْتُ هَذِهِ الصَّلَاةَ، أَوْ مِثْلَ هَذِهِ الصَّلَاةِ مَعَ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، [۴] قَالَ: وَكَانَ أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - يَقُومَانِ فِي

[۱] اخرجه الترمذي كتاب السفر/باب ذكر ما يستحب من الجلوس فى المسجد بعد صلاة الصبح حتى تطلع الشمس (رقم - ۵۸۶)

[۲] اخرجه ابوداود باب في الرجل يتطوع فى مكانه الذى صلى فيه المكتوبة (رقم - ۱۰۰۷)

الصَّفِّ الْمُقَدَّمِ عَنْ يَمِينِهِ ٥ وَكَانَ رَجُلٌ قَدْ شَهِدَ التَّكْبِيرَةَ الْأُولَى مِنَ الصَّلَاةِ ٦ فَصَلَّى نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ سَلَّمَ عَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ يَسَارِهِ ٧ حَتَّى رَأَيْنَا بَيَاضَ خَدَّيْهِ ٨ ثُمَّ انْفَتَلَ كَانْفِتَالِ أَبِي رِمْثَةَ -يَعْنِي نَفْسَهُ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ازرق بن قيس فرمايي ٢ چې (يوه ورځ) زمونږ امام چې د هغه كنيت ابو رمثه رضي الله عنه وو مونږ ته مونځ راكړو ٣ (د لمانځه څخه وروسته يې) بيا وفرمايل ما (يوه ورځ) دا مونځ يا د دې پشان مونځ د رسول الله ﷺ سره وكړو ٤ ابو رمثه رضي الله عنه وايي چې (په هغې كې) ابوبكر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه (هم) د حضور ﷺ ښي طرف ته په اول صف كې ولاړ وو ٥ يو سړي (د شا څخه راغې) د لمانځه په تكبير اولى كې شريك شو ٦ رسول الله ﷺ مونځ وكړو او د سلام په وخت يې خپل مخ مبارك دومره وګرځوو ٧ چې مونږ يې د رخسار مباركو سپينوالي وليدلو ٨ بيا حضور ﷺ د ابورمثه رضي الله عنه (يعني زما په شان راګرځيدو سره كيناستلو

**حل اللغات:-** ① انْفَتَلَ: أي انْصَرَفَ: راوګرځيدو.

١ فَقَامَ الرجل الَّذِي أَدْرَكَ مَعَهُ التَّكْبِيرَةَ الْأُولَى مِنَ الصَّلَاةِ يَشْفَعُ ٢ فَوَثَبَ إِلَيْهِ عُمَرُ، فَأَخَذَ بِمَنْكِبَيْهِ ٣ فَهَزَّهُ، ثُمَّ قَالَ: اجْلِسْ ٤ فَإِنَّهُ لَمْ يُهْلِكْ أَهْلَ الْكِتَابِ ٥ إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَكُنْ بَيْنَ صَلَاتِهِمْ فَصْلٌ ٦ فَرَفَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَصَرَهُ ٧ فَقَالَ: "أَصَابَ اللَّهُ بِكَ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ" رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ هغه سړي چې په تكبير اولى كې شريك شوې وو ودريدلو دوه ركعاته مونځ يې شروع كړو ٢ حضرت عمر رضي الله عنه (د دې ليدو سره) سمدستي راپاڅيدو او هغه سړي يې د دواړو اوږو څخه ونيولو ٣ وني خوزولو ورته يې وفرمايل كينه ٤ څكه اهل كتاب (يعني يهود او نصارى) څكه د هلاكت په كنده كې وغورځيدل ٥ چې هغوئ به د خپلو لمونځونو په مينځ كې هيڅ فرق نه كولو ٦ (د حضرت عمر رضي الله عنه د دې خبرې اوريدو سره) رسول الله ﷺ نظر مبارك راپورته كړو ٧ او دا يې اوفرمائيل اي د خطاب خويه الله حق ته ورسولې (يعني تا رشتيا اووئيل) (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ② فَوَثَبَ: أي: قَامَ بِسُرْعَةٍ: په جلتئ سره ورپاڅيدو. ③ فَهَزَّهُ: أي: حَرَّكَهُ: اوني خوزولو. ④ فَصْلٌ: أي: فَرْقٌ: جدائى.

**تسهيلات:-**

**قوله:** قَدْ شَهِدَ التَّكْبِيرَةَ الْأُولَى:

**د فرض مونځ څخه روسته د نفلو دپاره د اودريدو حكم:** -يعنى دا سړي مسبوق نه وو چه فوت شوي باقى مونځ اداكولو دپاره زر پاسيدو بلكه دا مدرك وو اود مانځه نه فارغ شوي وو اوبغيرد وقفه كولونه زر د نوافل كولو دپاره اودريدو.

**قوله:** لَمْ يَكُنْ بَيْنَ صَلَاتِهِمْ:

**د فرض اونفل په مينځ کښې د فصل درې طريقې:-**

① په ذکراذکار سره فصل راوستل

② د ځائې په بدلولوسره فصل راوستل

③ د جمات څخه بهرپه وتلوسره فصل راوستل.

**په عدم فصل بين الفرض والنفل کښې د هلاکت د وعيدوجه:-** په عدم فصل سره د نوافلو اوفرائضو په مينځ کښې د اختلاط خطره وه. يعنې چې کله خلق په داسې اهتمام او تادئې سره دغه شان عمل کوي نود څه وخت نه پس به عام خلق ګنړي چه دا نوافل هم په فرائضو کښې داخل دي دا هم فرض دي. دا عقيده خطرناك او د هلاکت موجب ده.

**۹۷۳-د مانځه څخه وروسته تسبيح وليل**

۹۷۳ -()[۱۵]① وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ②«أُمِرْنَا أَنْ نُسَبِّحَ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ،③ وَنَحْمَدَ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ،④ وَنُكَبِّرَ أَرْبَعًا وَثَلَاثِينَ،⑤ فَأُتِيَ رَجُلٌ فِي الْمَنَامِ مِنَ الْأَنْصَارِ،⑥ فَقِيلَ لَهُ: أَمَرَكُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تُسَبِّحُوا فِي كُلِّ صَلَاةٍ كَذَا وَكَذَا؟⑦ قَالَ الْأَنْصَارِيُّ فِي مَنَامِهِ: نَعَمْ،⑧ قَالَ: فَاجْعَلُوهَا خَمْسًا وَعِشْرِينَ، خَمْسًا وَعِشْرِينَ،⑨ وَاجْعَلُوا فِيهَا التَّهْلِيلَ،⑩ فَلَمَّا أَصْبَحَ غَدَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَخْبَرَهُ،⑪ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ فَافْعَلُوا» "رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:**① زيد ابن ثابت رضي الله عنه فرمايي② چې مونږ ته حکم شوې دي چې مونږ دي د هر لمانځه وروسته وايو سبحان الله ۳۳ خله③ الحمد لله ۳۳ خله④ او الله اکبر ۳۴ خله⑤ حضرت زيد رضي الله عنه فرمايي چې يو ورځ يو انصاري يوه فرشته په خوب کښې وليده⑥ فرشتې هغه انصاري ته اوويل چې رسول الله ﷺ تاسو ته حکم درکړې دي چې تاسو د هر لمانځه څخه وروسته دومره خله تسبيح وايئ؟⑦ هغه انصاري په خوب کې اوويل چې هو⑧ فرشتې اوويل د دې درې وارو کلماتو (د ويلو) تعداد ۲۵، ۲۵ مقرر کړئ⑨ او د دې سره لااله الاالله هم ۲۵ خله مقرر کړئ (چې د سلو عدد پوره شي)⑩ هر کله چې سحر شو نو هغه انصاري د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شو او د خپل خوب څخه يې حضور ﷺ خبر کړو⑪ حضور ﷺ وفرمايل په دې عمل کوئ. (احمد ،نسايي، دارمي)

**حل اللغات:-** ① اَلْمَنَامِ: خوب. ② التَّهْلِيلَ: لااله الاالله، ③ غَدَا: أَيْ: أَوَّلَ النَّهَارِ: د ورځ اول وخت.

**تسهيلات:-** **قوله:** فَافْعَلُوا:

**د فافعلوا څخه مراد:-** يعنې ماچه څه خودلي دي هغه شان تسبيحات هم لولئ اوتاسو په خوب کښې چه څه اوليدل او فرښتې دراوخودل هغه هم لوله داداَلله تعالى ذکردې هيڅ

---

[1] اخرجه النسائي كتاب السهو/باب نوع آخر من عدد التسبيح (رقم- ۱۳۵۰)

پابندی نشته دي.

**د تسبيحاتو په تعداد کښې د کمی او اضافې حکم:** -علامه شمس الدين رحمه الله التعليق الفصيح شرح مشکوة المصابيح کښې ج۲ ص۷ باندې دَ تسبيحات ۳۳ دَتعداد متعلق ليکلی دی چه په شريعت کښې کوم عدد واقع دې دَهغې نه په کم باندې مطلوب فضيلت او مطلوب ثواب حاصليږی خوکه يوسړې مطلوبه شمير سره لوستل کوی او په دې باندې اضافه کوی اودکم په خاتی زيات لوستل کوی نوهغه ته به هم هغه ثواب حاصليږی کوم چه په فضيلت کښې معين اومقرردې.

### ۹۷۳-دآية الكرسي فضيلت

۹۷۳-()[۱٦] [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَعْوَادِ هَذَا الْمِنْبَرِ يَقُولُ: [۳] "«مَنْ قَرَأَ آيَةَ الْكُرْسِيِّ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ [۴] لَمْ يَمْنَعْهُ من دُخُولَ الْجَنَّةِ إِلَّا الْمَوْتُ، [۵] وَمَنْ قَرَأَهَا حِينَ يَأْخُذُ مَضْجَعَهُ، [٦] آمَنَهُ اللَّهُ عَلَى دَارِهِ وَدَارِ جَارِهِ، [۷] وَأَهْلِ دُوَيْرَاتٍ حَوْلَهُ» "، رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ"، وَقَالَ: إِسْنَادُهُ ضَعِيفٌ.

**ترجمه:** [۱] امير المؤمنين حضرت علي کرم الله وجهه فرمايي [۲] چې ما د رسول الله ﷺ نه د لرګي په دې منبر دا اوريدلي دي [۳] چې کوم سړي د هر لمانځه وروسته آيت الکرسي اووائي [۴] هغه جنت ته د تلو څخه د مرګ څخه علاوه بل هيڅ شي نشي منع کولي [۵] او کوم سړي چې (آيت الکرسي) د خپل خواب ګاه (د خوب ځاي) ته د تلو په وخت (يعني د اوده کيدو په ) وخت اووائي [٦] نو الله تعالی جل جلاله هغه ته د هغه په مکان کې او د هغه د ګاونډی په مکان کې (يعني کوم مکانات چې د هغه د مکان سره څنګ په څنګ وي) [۷] او د هغه په شاوخوا مکاناتو کښې (اګر که د هغه مکان سره متصل نه وي) امن ورکوي دا روايت بيهقي په شعب الايمان کې نقل کړي دي او ويلي يې دی چې د دې اسناد ضعيف دي.

**حل اللغات:**- ① أَعْوَادِ: د عود جمع ده لرګی ته وائی. ② مَضْجَعَهُ: أَيْ: مَكَانَهُ لِلنَّوْمِ: دخوب ځائې (دلته تري د خوب نه مخکښې وخت مراد دې). ③ آمَنَهُ اللَّهُ: أَيْ: جَعَلَهُ آمِنًا: محفوظ به ئې کړی (دهر شرنه). ④ دُوَيْرَاتٍ: جمع د دُوَيْرَةٌ ده، دا تصغير دې د دَارٌ.

**تسهيلات:** -

**قوله:** لَمْ يَمْنَعْهُ دُخُولَ الْجَنَّةِ إِلَّا الْمَوْتُ:

**په مرګ د پردې د اطلاق وجه:** -دحديث څخه به ظاهره معلوميږی چې د جنت اوبنده په مينځ کښې مرګ پرده ده. حالانکه پرده ژوند دې. خو په اصل کښې دَدې کلام مقصد دادې چه دَ بنده او جنت په مينځ کښې يوه پرده ده. يوطرف ته جنت دې اوبل طرف ته حيات يعنی

() اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ۲۳۹۵

ژوند دې په مينځ كښې دَ مرگ پرده زوړند ده څنګه چه دغه پرده اخوا شوه سړې به جنت ته لاړشي. هم دغه وجه ده چه دَ مرگ باره كښې ونيلې شوي دي چه "الموت تحفة المؤمن" اوداهم ونيلى شوي دى "الموت جسر يوصل الحبيب الى الحبيب"

**۹۷۵—د سحر او ماښام د مانځه څخه روسته د کلمه توحید لوستل**

۹۷۵—()[۱۷]۞ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ غَنْمٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ:۞ " «مَنْ قَالَ قَبْلَ أَنْ يَنْصَرِفَ وَيَثْنِيَ رِجْلَيْهِ مِنْ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ وَالصُّبْحِ:۞ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ،۞ لَهُ الْمُلْكُ، وَلَهُ الْحَمْدُ،۞ بِيَدِهِ الْخَيْرُ، يُحْيِي وَيُمِيتُ،۞ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ،۞ عَشْرَ مَرَّاتٍ،۞ كُتِبَ لَهُ بِكُلِّ وَاحِدَةٍ عَشْرُ حَسَنَاتٍ،۞ وَمُحِيَتْ عَنْهُ عَشْرُ سَيِّئَاتٍ،۞ وَرُفِعَ لَهُ عَشْرُ دَرَجَاتٍ،۞ وَكَانَتْ لَهُ حِرْزًا مِنْ كُلِّ مَكْرُوهٍ،۞ وَحِرْزًا مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ،۞ وَلَمْ يَحِلَّ لِذَنْبٍ أَنْ يُدْرِكَهُ إِلَّا الشِّرْكُ۞ وَكَانَ مِنْ أَفْضَلِ النَّاسِ عَمَلًا،۞ إِلَّا رَجُلًا يَفْضُلُهُ، يَقُولُ أَفْضَلَ مِمَّا قَالَ» "، رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:**۞ عبد الرحمن ابن غنم راوي دي چې رسول الله ﷺ به فرمايل۞ كوم سړي چې د سحر او ماښام د لمانځه څخه وروسته (د لمانځه) د ځاى څخه د ودريدو څخه مخكې او پښې راتاؤ ولو څخه مخكې (يعني څنګه چې د التحيات د پاره كيني په دې هيئت سره) دا كلمات اووائي:۞ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ بِيَدِهِ الْخَيْرُ يُحْيِي وَيُمِيتُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، دالله څخه سوا بل معبود نشته هغه ايكي يو دي د هغه څوك شريك نشته۞ د هغه د پاره بادشاهت دي او د هغه د پاره ټول تعريفونه دي۞ د هغه په لاس كې خير دي هغه چې چا ته غواړي ژوندي كوي او چا ته چې غواړي مرگ ورته وركوي۞ او هغه په هر شي قادر دي،۞ لس خله (يعنى دا كلمات لس خله اووائي) ۞ نو هغه د پاره د هر خل په بدله كې لس نيكي ليكل كيږي ۞ او د هغه لس گناهونه معاف كيږي۞ او د هغه (په مرتبه كي) لس درجي اوچتيږي۞ او دا كلمات د هغه د پاره د هر خراب شي نه دحفاظت سبب گرځي ۞ او د شيطان مردود (رټلي شوي) څخه د امان باعث جوړيږي [يعنى نه خو په هغه د څه ديني او دنيوي آفت او بلا اثرغورځيږي او نه مردود شيطان په هغه حاوي كيدي شي]۞ او د شرك څخه علاوه هيڅ گناه (د توفيق استغفار او پروردگاره د رحمت په وجه) هغه په هلاكت كې نه اچوي (يعني كه په شرك كې مبتلا شي نو بيا د دې عظيم عمل په وجه يې بخشش هم نه كيږي)۞ او هغه سړي به د عمل په اعتبارسره په خلقو كې د ټولو څخه بهتر وي۞ سوا د هغه سړي څخه چې د هغه څخه زيات افضل عمل كوي (يعني د هغه سړي څخه افضل نشي كيدي چا چې دا كلمات) د هغه څخه زياتي ويلي وي. (احمد)

**حل اللغات:**- ① وَيَثْنِيَ: أَيْ: يَعْطِفَهُمَا وَيُغَيِّرَهُمَا عَنْ هَيْئَةِ التَّشَهُّدِ: خپې راتاؤ كړى اودهغې هيئت ته تغير

[1] اخرجه احمد في المسند ۴/۲۲۷

ورکړې چې د تشهد د ناستې کیفیت ئې ختم شی. ② مُحِيَتْ: ورانولې شی (یعنی معاف کولې شی). ③ حِرْزًا: أَيْ: حِفْظًا: امن، حفاظت.

۹۷۶-()[۰] ① وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ نَحْوَهُ عَنْ أَبِي ذَرٍّ إِلَى قوله: "إِلَّا الشِّرْكَ" ② وَلَمْ يَذْكُرْ: "صَلَاةَ الْمَغْرِبِ" "وَلَا" بِيَدِهِ الْخَيْرُ"، ③ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① دا روایت امام ترمذي رحمه الله هم د ابوذر رضي الله عنه څخه یوازي الا الشرک پورې نقل کړي دي دغسې د هغه په روایت کښې د صلواة المغرب او د بیده الخیر الفاظ منقول نه دي او هغه ویلي دي چې دا حدیث حسن صحیح غریب دي.

**تسهیلات:-**

**نوټ:-** د ترجمې اوپه هغې کښې د اضافي قیوداتو په وجه د حدیث مطلب واضح دې د مزید تشریح ضرورت به نه وي.

## ۹۷۷-د سحر د مانځه څخه روسته د ذکر فضیلت

۹۷۷-(¹)[۱۸] ① وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، ② «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ بَعْثًا قِبَلَ نَجْدٍ، ③ فَغَنِمُوا غَنَائِمَ كَثِيرَةً، ④ وَأَسْرَعُوا الرَّجْعَةَ، ⑤ فَقَالَ رَجُلٌ مِنَّا لَمْ يَخْرُجْ: ⑥ مَا رَأَيْنَا بَعْثًا أَسْرَعَ رَجْعَةً، ⑦ وَلَا أَفْضَلَ غَنِيمَةً مِنْ هَذَا الْبَعْثِ، ⑧ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَلَا أَدُلُّكُمْ عَلَى قَوْمٍ أَفْضَلَ غَنِيمَةً، وَأَفْضَلَ رَجْعَةً؟ ⑨ قَوْمًا شَهِدُوا صَلَاةَ الصُّبْحِ، ⑩ ثُمَّ جَلَسُوا يَذْكُرُونَ اللَّهَ حَتَّى طَلَعَتِ الشَّمْسُ، ⑪ فَأُولَئِكَ أَسْرَعُ رَجْعَةً، وَأَفْضَلُ غَنِيمَةً» " ⑫ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَحَمَّادُ بْنُ أَبِي حُمَيْدٍ الرَّاوِي ضَعِيفٌ فِي الْحَدِيثِ.

**ترجمه:** ① امیر المؤمنین حضرت عمر فاروق رضي الله عنه فرمايي ② چې (په یوه موقعه) رسول الله صلی الله علیه وسلم یو لښکر د نجد طرف ته ولیږلو ③ هغه لښکر (د فتح او کامیابي څخه وروسته) ډیر زیات مال غنیمت حاصل کړو ④ او ډیر زر (مدیني ته) واپس راغي ⑤ په مونږ کې یو سړي چې د لښکر سره نه وو تللي هغه اوویل ⑥ مونږ هیڅ داسې لښکر نه دي لیدلي چې د دې لښکر پشان دومره زر واپس راغلي وي ⑦ او خپل ځان سره يي دومره مال غنیمت هم راوړي وي ⑧ (د دې په اوریدو) رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل آیا ره تاسو ته د یو داسې جماعت په باره کې ونه ښایم چې په مال غنیمت کې او په زر واپس راتلو کې د دې لښکر څخه هم زیات وي ⑨ (نو واوري) هغه جماعت هغه دي چې د سحر د لمانځه (په جماعت) کې حاضر شوي وي ⑩ او بیا تر نمر ختو پورې ناست وي د الله جل جلاله ذکر کوي ⑪ دا هغه خلق دي چې په زر واپس راتلو اومالِ غنیمت راوړلو کې د هغوئ څخه زیات دي، ⑫ دا روایت ترمذي رحمه الله

¹) اخرجه الترمذی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب (رقم-۳٤۷٤)
²) اخرجه الترمذی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب (رقم-۳٤۷٤)

نقل کړي دي او ويلي يي دي چې دا حديث غريب دي او د دې يو راوي حماد ابن ابي حميد ضعيف دي

**حل اللغات:-** ① بَعَثَ: أَيْ: أَرْسَلَ: اوئې ليږلو. ② بَعْثًا: أَيْ: جَمَاعَةً: لښکر، جماعت، ③ أَسْرَعُوا الرَّجْعَةَ: أَيِ: الرُّجُوعَ إِلَى الْمَدِينَةِ: ډير زر واپس راغلل (مديني ته).

**تسهيلات:-**

**قوله:** يَذْكُرُونَ اللَّهَ:

**صرف په اسم ذات ،،الله،، سره د ذکر کولو په حکم کښې اختلاف:-** ① بعضې لونی علماء مثلاً شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله طرف ته منسوب دی چه هغه مفرد اسم ذات ذکر کول ثابت نه منی او فرمائی چه دَدې مفهوم مبتداء يا خبر ملاوولونه بغير مکمل نه دې لهذا لفظ الله سره څه نور يوځائی کولوسره ذکر کول پکاردی. ليکن نورعلماء جمهور سلفاً خلفاً مفرد اسم ذات ذکر سبب دَ برکت او ثواب ګنړی.

② علامه شمس الدين رحمه الله ليکلی دی چې دَ قرآن کريم دَ ډيرو زياتو آياتونونه دَمفرد اسم ذات دَ ذکرثبوت ملاويږی مثلاً ﴿اذْكُرُوا اللَّهَ ذِكْرًا كَثِيرًا﴾ [سورة الاحزاب: ۴۱] وغيره په دې آياتونوکښې دَ اسم مفرددَ ذکربيان اوثبوت دې.

علامه فرمائی چه دَ قرآن نه دا مسئله ثابته وه په دې وجه صحابه کرامو په احاديثوکښې دَدې دَ ذکرکولواهتمام اونه کړو. بلکه په حديث کښې هم صرف الله وئيلو ته ذکر وئيلې شوې دې. په يو حديث کښې دی چه ترکومې پورې په دنياکښې څو الله الله کونکي موجود وی قيامت به نه راځی.

## [۳۶/۱۹] بَابُ مَا لَا يَجُوزُ مِنَ الْعَمَلِ فِي الصَّلَاةِ وَمَا يُبَاحُ مِنْهُ]

**په مونځ کښې د جائز او ناجائز څيزونو بيان**

**خلاصة الباب:-**

**فيه ثلاثة وثلاثون حديثاً مشتملة على خمس مسائل:**

① الأمور المنهية في الصلوة وهی تسعة:

، جواب السلام: ۲، ۱۲، ۲۳-

- تسوية التراب عند السجود: ۳، ۳۲ -

. الخصر: ۴، ۲۴-

/ الالتفات: ۵، ۱۶، ۱۸-۰ رفع البصر إلى السمآء: ۶-، قول ها: ۲

عدم التشبيك: ۱۵- ۳ عدم النفخ: ۲۳- ۳ عدم الكلام: ۱-

② الأمور الجائزة فی الصلوة وهی ثمانية:
, تسوية الحصى في السجود مرة: ٣.
- حمل الصبی: ٧.
. الأخذ بيد واحد: ٢٨.
/ النظر إلى المكتوب . البكاء من خشية الله ، قتل الأسودين ٢
مشي بعض الخطوات ٣ تبريد الحصى
③ بعض آداب الصلاة: ٨، ١٣، ١٤، ١٠، ١٧.
④ بعض الأمور الشيطانية في الصلاة: ٨، ١٣، ٢٠.
⑤ حکم بعض الأحداث فی الصلوة: ٢٧، ٢٨، ٢٩، ٣٠.

**ترجمة الباب کښې د لايجوز مفهوم:** په دې خبره باندې ښه خان پوهه کول پکار دی چه بعض اعمال او افعال داسې دی په کوم سره چه مونځ فاسد کیږی او بعض اعمال داسې دی چه په هغې سره مونځ مکروه کیږی او بعض اعمال هغه دی چه دَ مونځ په حالت کښې مباح دی دَدې ټولو تفصیلات دَفقه کتابونوکښې ذکر دی دلته په عنوان کښې "لایجوز" لفظ عام دې که هغه دَ اعمال مفسدات دَ قبیل نه وی یادَ مکروهات دَ قبیلې نه وی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### ٩٧٨—په مانځه کښې اتبوشی کولکی ته دیرحمک الله ویلو حکم

٩٧٨—([1])[١] عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ الْحَكَمِ، قَالَ: [٢] «بَيْنَا أَنَا أُصَلِّي مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٣] إِذْ عَطَسَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ، [٤] فَقُلْتُ: يَرْحَمُكَ اللهُ، فَرَمَانِي الْقَوْمُ بِأَبْصَارِهِمْ، [٥] فَقُلْتُ: وَاثُكْلَ أُمِّيَاهُ مَا شَأْنُكُمْ تَنْظُرُونَ إِلَيَّ؟ [٦] فَجَعَلُوا يَضْرِبُونَ بِأَيْدِيهِمْ عَلَى أَفْخَاذِهِمْ، [٧] فَلَمَّا رَأَيْتُهُمْ يُصَمِّتُونَنِي، لَكِنِّي سَكَتُّ،

**ترجمه:** [١] معاویه بن حکم رضي الله عنه فرمایي[٢] چې (یوه ورځ) ما د رسول الله ﷺ سره مونځ کولو[٣] چې (د لمانځه په مینځ کې) ناڅاپه په جماعت کې یو سړي ته نوړي (اتبوشې) ورغلي[٤] ما (په جواب کی) یرحمك الله اوویل (د دي په اوریدو سره) خلقو ماته سیده سیده کتل شروع کړل (چې په لمانځه کې د نوړي (اتبوشی) جواب ورکوي)[٥] ما اوویل مور دي درباندې وژاړي تاسو خلق ماته سیده سیده ولي ګوري[٦] خلقو (زما دا خبره اوریدو سره زما د چپ کولو او د تعجب د اظهار د پاره) په خپلو ورنو خپل لاسونه وهل شروع کړل[٧] (هر

[1]) اخرجه مسلم كتاب المساجد و مواضع الصلاة/ باب تحريم الكلام فى الصلاة، ونسخ ما كان من إباحته (رقم- ٥٣٧) وابوداود كتاب الصلاة/باب تشميت العاطس فى الصلاة (رقم-٩٣٠) والنسائى كتاب السهو/الكلام فى الصلاة (رقم-١٢١٨)

كله چي) ما وليدل چي خلق ما چپ كول غواړي (نو ماته ډيره غصه راغله ځكه چي ماته د دي خپل فعل د خرابي علم نه وو) ليكن زه چپ شوم.

**حل اللغات:**- ① عَطَسَ: انتوشي، پرنجي اوكړو، ② وَاثُكْلَ أُمِّيَاهُ: أي فِقْدَانُ الْمَرْأَةِ وَلَدَهَا: ښځه چه خپل بچي ورک کړي. ثکل د ثاء په ضمه سره هلاکت، مرګ او د خوني يا محبوب څيز ورکيدو د پاره استعمالولي شي. اصل کښي چه ښځي نه کله خپل بچي ورك شي په هغه موقع باندي ونيلي شي.

۱ فَلَمَّا صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ فَبِأَبِي هُوَ وَأُمِّي مَا رَأَيْتُ مُعَلِّمًا قَبْلَهُ وَلَا بَعْدَهُ أَحْسَنَ تَعْلِيمًا مِنْهُ، ۳ فَوَاللهِ مَا كَهَرَنِي وَلَا ضَرَبَنِي، ۴ وَلَا شَتَمَنِي، قَالَ: ۵ "إِنَّ هَذِهِ الصَّلَاةَ لَا يَصْلُحُ فِيهَا شَيْءٌ مِنْ كَلَامِ النَّاسِ، ۶ إِنَّمَا هِيَ التَّسْبِيحُ، وَالتَّكْبِيرُ، وَقِرَاءَةُ الْقُرْآنِ" ۷ أَوْ كَمَا قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ،

**ترجمه:** ۱ كوم وخت چي رسول الله ﷺ مونځ وكړلو ۲ (نو زه څه اووايم) زما مور پلار دي په ده (ﷺ) قربان شي ما خو داسي ښه تعليم وركونكي نه د حضور ﷺ څخه مخكي څوك ليدلي او نه مي وروسته وليدلو ۳ قسم په الله نه خو حضور ﷺ زه ورټلم نه يي ووهلم ۴ او نه يي راته بد رد اوويل (هو دومره يي) وفرمايل ۵ چي په لمانځه كي د انسان خبري كول مناسب نه دي ۶ مونځ خو تسبيح او تكبير او د قرآن ويلو نوم دي ۷ يا د دي په شان الفاظ يي وفرمايل (يعني راوي ته شك دي چي حضور ﷺ دا الفاظ فرمايلي وو يا د دي په شان نور الفاظ وو)

**حل اللغات:**- ③ مَا كَهَرَنِي: أي: مَا قَهَرَنِي وَزَجَرَنِي: څه قهر او غصه ني راباندي اونه كړه. كهر فتح يفتح نه دي ځنډل او تريو تندي كيدل چاسره په سپكه طريقه پيش كيدلو ته واني.

۱ قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي حَدِيثُ عَهْدٍ بِجَاهِلِيَّةٍ، ۲ وَقَدْ جَاءَنَا اللهُ بِالْإِسْلَامِ، ۳ وَإِنَّ مِنَّا رِجَالًا يَأْتُونَ الْكُهَّانَ، ۴ قَالَ: "فَلَا تَأْتِهِمْ"، ۵ قُلْتُ: وَمِنَّا رِجَالٌ يَتَطَيَّرُونَ، ۶ قَالَ: "ذَاكَ شَيْءٌ يَجِدُونَهُ فِي صُدُورِهِمْ فَلَا يَصُدَّنَّهُمْ"، ۷ قَالَ: قُلْتُ: وَمِنَّا رِجَالٌ يَخُطُّونَ، ۸ قَالَ: "كَانَ نَبِيٌّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ يَخُطُّ، ۹ فَمَنْ وَافَقَ خَطَّهُ فَذَاكَ»، رَوَاهُ مُسْلِمٌ، ۱۰ قوله لَكِنِّي سَكَتُّ، هَكَذَا وجدت فِي "صَحِيحِ مُسْلِمٍ" وَكِتَابِ "الْحُمَيْدِيِّ"، ۱۱ وَصُحِّحَ فِي "جَامِعِ الْأُصُولِ" بِلَفْظَةِ: كَذَا، فَوْقَ: لَكِنِّي.

**ترجمه:** ۱ ما عرض وكړو چي يا رسول الله ﷺ زه يو نوي مسلمان شوي يم (تر اوسه پوري د دين ټول احكام ماته معلوم نه وو) ۲ خو مونږ الله تعالى جَلَّ جَلَالُهُ د اسلام په دولت مشرف كړو (نو د دين ټول احكام به زده كړم بيا ما عرض وكړو چي) ۳ په مونږ كي ډير خلق كاهنانو (نجوميانو) لره ورځي (په دي باره كي څه حكم دي؟) ۴ حضور ﷺ وفرمايل تاسو هغوئ ته هيڅ كله مه ورځي ۵ ما عرض وكړو په مونږ كښي ډير خلق بدفالي (هم) كوي ۶ حضور ﷺ وفرمايل دا يو داسي شي دي چي هغوي يي په خپلو زړونو كي بيامومي (يعني دا د هغوئ وهم او د ذهن اختراع يعني پيدا كرده شي دي چي د كارونو په نفع او نقصان كي هيڅ اثر نه لري) هغوي لره د خپل كار څخه منع كيدل نه دي پكار ۷ معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي ما

بیا عرض وکړو چې په زمونږ کې بعضې خلق خطونه (کرښې) راکاږي [او د هغې په ذریعه هغوې د غیب خبرې ښایي]⁸ رسول الله ﷺ وفرمایل په انبیاؤ کې یو نبي وو چې خط به یي راکښلو⁹ نو د کوم سړي خط راکښل چې د هغه نبي د خط راکښلو موافق شي نو هغه ته هغه خبره حاصلیږي، مسلم،¹⁰ د مشکوٰة مؤلف فرمایي چې د حدیث الفاظ لکِنِّي سَكَتُّ مې په صحیح مسلم او کتاب حمیدي کښې داسې لیدلي دي¹¹ البته صاحبِ د جامع الاصول لفظ د لکِنّي دپاسه کذا لیکلو سره د دې د صحت طرف ته اشاره کړې ده.

**حل اللغات:-** ④ حَدِيثُ عَهْدٍ بِجَاهِلِيَّةٍ: أَيْ: جَدِيدُهُ: یعنی زه دَجاهلیت زمانې سره بالکل نیزدې یم، اوس مې اسلام قبول کړې دې نوې مسلمان شوې یم. ⑤ الْكُهَّانَ: د کَاهِنٍ جمع ده، کاهن هغه سړې دې دَ چاچه ارواح خبیثه او جنات اوشیاطین سره تعلق وی. ⑥ يَتَطَيَّرُونَ: أَي التَّفَاؤُلُ بِالطَّيْرِ: دا لفظ الطیرة نه دې یعنی بدفالی نیول ⑦ يَخُطُّونَ: دا دَ خط راخکلو په معنی کښې دې.

**تسهیلات:-**

**قوله:** مِنْ كَلَامِ النَّاسِ:

**دکلام الناس تعریف:-**

دلته دې دا نښی وئیلې چې تسبیحات خو هم په ژبه ادا کیږی اوبه دې باندې هم تکلم کیږی نوبیا په دې باندې ولې مونځ نه ماتیږی ځکه چې تسبیحات سره دَدې چه کلام دې لیکن په دې کښې دَ خلقوسره مخامخ کیدلوارادہ نه وی نوځکه په دې باندې د کلام الناس اطلاق نښی کیدې البته که تسبیحات هم د تخاطب په اراده سره اووئیلې شی نو بیا به پرې مونځ ماتیږی.

**قوله:** حَدِيثُ عَهْدٍ بِجَاهِلِيَّةٍ:

**د مونځ راګرځولو حکم نه ورکولو وجه:-** هم دغه وجه وه چه حضورپاك ﷺ هغه ته دَمونځ راګرځولو حکم ورنه کړو ګنی دَ چا په انتروشی او الحمدلله اویرحمك الله سره جواب ورکولو کښې خطاب دې او په مونځ کښې خطاب کولوسره مونځ فاسدیږی. (کذا قال النووی ابن الهمام)

**قوله:** الْكُهَّانَ:

**د کاهن د غیبو په خبرود دعوی کولو وجه:-** جنات اوشیطانان دَ دروغو خبرې راوړی هغوی ته ئی ښائی اوکله چه په سلو خبروکښې یوه خبره رښتیاشی نوداکاهنان په هغې باندې خپله کهاته چلوی او دَعلم غیب دعوی کوی. په جاهلیت کښې دَدوی ډیر زور وو اوس هم څه ناڅه شته. تفصیل به دَ تسهیلات په آخره که ژوند وفا وکړه راشی

**قوله:** يَجِدُونَهُ:

**په شك کښې د پریوتو ممانعت:-** یعنی یوشك اووهم دې په دغه وهم پرستنی کښې

پریوتلوسره سړې شکې کیږی او په هرکار کښې ترددوالې کوی او دَ منحوس اوغیرمنحوس په چکروکښې پریوتلوسره خپل کار بندولوسره دکارنه پاتې شی.اودا وهم اودا شك اودا وهم پرستی هغه سړې په تردد کښې اچولوسره هغه دَخپل کارنه منع کړی بلکه دا عقیده اولری چه هرڅه دَ الله تعالی دَحکم لاندې دی هم په هغه توکل کولوسره خپل کاراوکړی.

**قوله: يَخُطُّونَ:**

**د رمل په ذریعه د غیبو خبرورکول:** -لکه څنګه چه دَ کهانت اوعلم نجوم په ذریعه بعض خلق دَ غیب خبرې ته دَ رسیدو کوشش کوی. دغه شان "رمل" په ذریعه سره داکوشش وی چه یوېتې اوغیب خبرې ته دَ دغه عمل په ذریعه اورسی. چنانچه عمل رمل دَهغه عمل نوم دې په کوم کښې چه کرښې راخکلو سره بیا حساب لګولو دَ یوې پټې خبرې پورې دَ رسیدلو کوشش کولې شی.

**قوله: نَبِيٌّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ:**

**دنبی په مصداق کښې دوه اقوال:** - ① دا حضرت ادریس علیه السلام وو. ② داحضرت دانیال علیه السلام وو.

**قوله: يَخُطُّ خَطًّا**

**صراحتاً د علم رمل د حرمت حکم نه لګولو درې وجوهات:** - دنورو نصوصو څخه معلومیږی چې د رمل په ذریعه د غیبو خبر ورکول ټیک نه دی خو په دې حدیث کښې نبی کریم ﷺ صراحتاً د دې څخه ممانعت نه دې کړې خود صراحت ممانعت خبرنه ورکول د درې خبرو په وجه کیدې شی.

① حضورپاك ﷺ په صراحت سره په علم رمل باندې رد نه دې فرمائیلې څکه چه دَدې تردید په زد کښې هغه نبی راتلې شو چه داعمل به ئې دَ معجزې په توګه کولو بلکه حضورپاك ﷺ په حکیمانه اندازسره یوه قاعده بیانولوسره دَدې عمل ممانعت هم په ذهن کښې راغلو اودَ هغه نبی په حق کښې څه بې ادبی هم اونه شوه.

② علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه حضورپاك ﷺ دلته دَ تعلیق بالمحال په ذریعه داکار منع کړې دې یعنی دَ کوم سړی خط چه دَهغه نبی دَخط سره موافق شو نوهم هغه به صحیح وی اوبنکاره خبره ده چه څوك وئیلی شی چه زما راخکلې کرښې هغه شان دی څنګه چه دَهغه نبی وو. اول خودا موافقت حاصلول محال دی څوك دَدې دعوی نه شی کولې.

③ دَ خط په ذریعه کوم څه کیدل هغه دَ هغه نبی معجزه وه اودَ یوبل سړی کرښه راخکل معجزه نه ده لهذا دَ یوسړی په دې عمل کښې لګیدل بالکل بې فائدې لغو اوباطل دی.

**قوله: بِلَفْظَةِ: كَذَا:**

**د محدثینو په نیز یو قاعده:** - دَمحدثینو په نیزقاعده داده چه چرته په یوه کلمه کښې شك واقع شی اومحدثین دَدې دَ صحت طرف ته اشاره کول غواړی نوهغه لفظ کذا په دغه کلمه

باندې دَ صحت دَعلامت په توګه لیکی. په دې حدیث کښې دَ لکنی لفظ دَمسلم او حمیدی په کتابونو کښې وو مګر په مصابیح کښې دا لفظ نه وو نوصاحب دَ جامع الاصول په لکنی باندې کذا اولیکلو یعنی دا لفظ هم دغه شان دی. (قربان شم دَ محدثینو دَ احتیاط نه)

**۹۷۱–په مانځه کښې د سلام جواب ورکولو ممانعت**

۹۷۱–(١)[٢] ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: ② «كُنَّا نُسَلِّمُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي الصَّلَاةِ، ③ فَيَرُدُّ عَلَيْنَا، ④ فَلَمَّا رَجَعْنَا مِنْ عِنْدِ النَّجَاشِيِّ سَلَّمْنَا عَلَيْهِ، ⑤ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْنَا، ⑥ فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ كُنَّا نُسَلِّمُ عَلَيْكَ فِي الصَّلَاةِ، فَتَرُدُّ عَلَيْنَا، ⑦ فَقَالَ: "إِنَّ فِي الصَّلَاةِ لَشُغْلًا"»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه فرمایي ② چې رسول الله ﷺ به په لمانځه کې وو او مونږ به ورته سلام کولو ③ نو حضور ﷺ به زمونږ د سلام جواب راکولو ④ بیا څه ورځې وروسته چې مونږ د نجاشي دخوا نه راغلو او د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شونو هغه وخت حضور ﷺ مونځ کولو (د معمول مطابق) زمونږ حضور ﷺ ته سلام وکړو ⑤ لیکن حضور ﷺ زمونږ د سلام جواب رانه کړو ⑥ حضور ﷺ چې کوم وخت مونځ ختم کړو نو مونږ عرض وکړو یا رسول الله ﷺ مونږ به تاته ﷺ په لمانځه کې سلام کولو نو تا ﷺ به جواب راکولو نن تا ﷺ جواب ولې رانه کړو؟ ⑦ حضور ﷺ وفرمایل مونځ خو خپله یو لوي شغل دي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:-** ① لَشُغْلًا: أَيْ: مَانِعًا مِنَ الْكَلَامِ: یعنی دَمونځ خپل اعمال دی کوم چه په دې کښې دننه وی دَ دغه اعمالونه علاوه په مانځه کښې نور ګنجائش نشته دې. (لهذا سلام کلام کول منع دی)

**تسهیلات:-**

**قوله: فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْنَا"**

**په مانځه کښې د خبرو وغیره مختلف مراحل:-** ① دَاسلام په شروع کښې په مانځه کښې خبرې کول جائز وې بیا هغه موقوف شوې نو سلام اوکلام دواړه منع کړې شو.

② مګر امام پسې دَ قرأت کولو اجازت وو بیاهغه موقوف شو

③ مګر دَ فاتحې وئیلو اجازت وو بیا دَ احنافو په نیز هغه هم موقوف شو او ﴿ وَقُومُوا لِلّٰهِ قَانِتِينَ﴾ ای ساکتین باندې عمل پاتې شو. راتلونکی باب السهو کښې به په دې باندې کلام کیږی.

**قوله: النَّجَاشِيِّ"**

**د بادشاهانو القاب:-** دا دَ حبشې یو عادل بادشاه وو روستومسلمان شو.

---

[١] اخرجه البخاری کتاب الجمعة /باب هجرة الحبشة (رقم- ٣٨٧٥) ومسلم کتاب المساجد و مواضع الصلاة/ باب تحريم الكلام فی الصلاة، ونسخ ما كان من إباحته (رقم- ٣٤ - (٥٣٨) وابوداود کتاب الصلاة/باب رد السلام فی الصلاة (رقم-٩٢٣)وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب المصلی يسلم عليه كيف يرد (رقم-١٠١٩)

① دَ حبشې دَ هرپادشاه به هم دا لقب وو
② دَ مصر دَ بادشاه لقب به فرعون وو
③ دَ ترکو دَ بادشاه لقب خاقان وو
④ دَ یمن دَ بادشاه لقب تبع وو
⑤ دَ روم دَ بادشاه لقب قیصر
⑥ دَ فارس دَ بادشاه لقب کسرىٰ وو
⑦ دَ هندوستان دَ بادشاه لقب راجه وو.

**۹۸۰–په مانځه کښې د سجدې د پاره د خاوره برابرولو حکم**

۹۸۰–()[۳] ⟦۱⟧ «وَعَنْ مُعَيْقِيبٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الرَّجُلِ ⟦۲⟧ يُسَوِّي التُّرَابَ حَيْثُ يَسْجُدُ؟ ⟦۳⟧ قَالَ: إِنْ كُنْتَ فَاعِلًا فَوَاحِدَةً» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ⟦۱⟧ حضرت معیقیب د رسول الله ﷺ څخه د هغه سړي په باره کې روایت کوي چې هغه دخان باره کې د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه کړي وه ⟦۲⟧ چې زه (په مونځ کې) د سجدې د ځاي څخه خاوره برابروم د دې څه حکم دي ؟ ⟦۳⟧ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل که ته برابرول ضروري وګڼې نو صرف یو ځل داسې کوه. (بخاري، مسلم)

**د حضرت معیقیت مختصر تعارف**

حضرت معیقیب ﷺ دَ حضرت سعیدبن ابی العاص ﷺ آزاد کړې شوې غلام وو هغوی دَ حضورپاك ﷺ په شاه مبارکه باندې مهرنبوت بشکل کړې وو. دَ بیت المال په خدمت باندې مامور وو او دَهغوی وفات ۴۰ هجری کښې شوې.

**حل اللغات:-** ① يُسَوِّي: برابروله به ئې. ② التُّرَابَ: خاوره.

**تسهیلات:-** **قوله: فَوَاحِدَةً"**

**په مانځه کښې د سجدې د ځائې څخه د کانړی اخوا کولو حکم:**– فقهاء احناف لیکی که په حالت دَمانځه کښې دَسجدې ځائی هوارنه وی یا په دغه ځائی کښې کانړی وی په کوم سره چه سجده کول ګران وی نو کانړی اخواکول جائز دی لیکن یو ځل یا دوه ځل جائز دی دې نه زیات نه. په دې حدیث سره دَهغه حضراتو دَپاره لويه تنبیه ده چاچه مونځ لویه ګنړلې ده او په دې کښې دَ یوبل په جیبونو کښې لاس اچولو سره تښو پیپر راؤباسی او پوزه پاکوی. دَعربستان او جزیرۀ عرب دَمسلمانانو نه دَمونځ ادب تقریبًا وتلې دې چه لوبوتوقوسره ئی کوی. (إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ)

[1]) اخرجه البخاری کتاب الجمعة/ باب مسح الحصا فی الصلاة (رقم- ۱۲۰۷)ومسلم کتاب المساجد و مواضع الصلاة/ باب کراهة مسح الحصی وتسوية التراب فی الصلاة (رقم) ۴۹ - (۵۴۶)

### ۹۸۱—په مانځه کښې د تخصر (په تشو لاس کېښودلو) ممانعت

۹۸۱—(۱)[۳] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رضِىَ اللهِ عَنْهُ- قَالَ: ۲ «نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْخَصْرِ فِي الصَّلَاةِ»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ ابوهریره رضي الله عنه فرمایي ۲ چې رسول الله ﷺ په لمانځه کې د خصر (په تشو لاس ایښودلو) څخه منع فرمایلي ده. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:-** ① الْخَصْرُ: وَضْعُ الْيَدِ عَلَى الْخَاصِرَةِ: اختصار اوخصر په ډوډی او اړخ باندې لاس کیخودو په معنی کښې دې.

**تسهیلات:-**

**په مانځه کښې په تشو د لاس کیخودلو د ممانعت وجوه:-** ① په میدان محشر کښې هغه خلق کوم چه به دوزخیان وی هغوی به هم په دغه شکل باندې ولاړ وی په دې وجه دَهغوی دَ مشابهت نه منع کړې شو. او په یوحدیث کښې راغلی دی چه لاسونه په ډوډی باندې کیخودو سره به دوزخیال دَ آرام حاصلولو کوشش کوی. لکه څنګه چه یوسړې ډیر ستړې شی نوهغه دواړه لاسونه په ډوډو باندې کیخودو سره یوه اوږده ساه واخلی.

② چه کله نبی مکرم ﷺ ممانعت اوفرمائیل نودَ تپوس کولو اودَ سوال کولو ضرورت پاتې نه شو هم دغه دَ تپولو نه لویه وجه ده چه حضورپاك ﷺ منع کړی دی.

③ داسې حالت دَ ډیرزیات کبر دې په دې وجه مونځ ګذار دَدې نه منع کړې شو. بل دَ مونځ نه بهرهم په داسې کبرژن انداز سره دَمسلمانانو دَپاره اودریدل دکراهت نه خالی نه دی.

④ دَ اهل النار نه مراد یهود دی هغه خلق په دنیاکښې هم دغه شان په ډوډی باندې لاسونه کیخودو سره اودریږی. مونځ ګذار دَهغوی دَ مشابهت نه منع کړې شو.

### ۹۸۲—په مانځه کښې د اخوا دیخوا کتلو ممانعت

۹۸۲—(۲)[۵] ۱ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ۲ «سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الِالْتِفَاتِ فِي الصَّلَاةِ، ۳ فَقَالَ: "هُوَ اخْتِلَاسٌ يَخْتَلِسُهُ الشَّيْطَانُ مِنْ صَلَاةِ الْعَبْدِ"»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ د مؤمنانو مور بي بي عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمایي ۲ چې د رسول الله ﷺ څخه په لمانځه کې اخوا دیخوا د کتلو په باره کې پوښتنه وشوه (چې آیا د دې سره مونځ ماتیږي

---

[1] اخرجه البخاری کتاب الجمعة/ باب الخصر فی الصلاة (رقم- ۱۲۲۰) ومسلم کتاب المساجد و مواضع الصلاة/ باب کراهة الاختصار فی الصلاة (رقم- ۴۶ - (۵۴۵) وابوداو کتاب الصلاة،باب الرجل یصلی مختصرا (رقم-۹۴۷) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی النهی عن الاختصار فی الصلاة(رقم-۳۸۳) والنسائی کتاب الافتتاح/باب النهی عن التخصر فی الصلاة (رقم-۸۹۰) والدارمی باب: النهی عن الاختصار فی الصلاة (رقم-۱۴۶۸)

[2] اخرجه البخاری کتاب الاذان/ باب الالتفات فی الصلاة (رقم- ۷۵۱) وابوداود کتاب الصلاة،باب الالتفات فی الصلاة (رقم-۹۱۰) والنسائی کتاب السهو/باب التشدید فی الالتفات فی الصلاة (رقم-۱۱۹۶)

كه نه؟)٣ حضور ﷺ وفرمايل دا غافله كولو سره تښتول دي چې شيطان يې د بنده د لمانځه څخه تښتوي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:-** ① الإلتِفَات: يو خوا بل خوا كتل ② الخِتِلَاسُ: أي: اسْتِلَابٌ وَأَخْذٌ بِسُرْعَةٍ: دباب افتعال نه اختلاس اوچتول او يوڅيز ډير زر اوچتولو په معنى كښې دې.

**تسهيلات:-**

**توله:** هُوَ اخْتِلَاسٌ"

**د اختلاس مفهوم:-** مطلب دا چه كله سړې په مانځه اودريږي اواخوا ديخوا ګورى اود مونځ د آداب خيال نه ساتى نوشيطان مردود د سړى مونځ اوچت كړى. اوس د ده مونځ كامل نه پاتې كيږي.

**د التفات درې صورتونه اودهر يوحكم:-** ① كه د سټ تاوولوسره دې سينه اوبدن هم د قبيلې نه تاؤ شو نو په دې صورت كښې مونځ فاسديږي.

② چه مونځ ګذار سټ تاوولوسره اخوا ديخوا ګورى. چه د قبلې نه دې كله مخ واوړى نودا صورت مكروه اوممنوع دې.

③ صرف د ستر ګو په ګوټونو كښې اخوا ديخوا اوګورى اوسټ يا سر تاؤ نه كړى نودا صورت خلاف اولى دې. ځكه چه د مونځ د آدابونه دادى چه نظر دې د سجدې په ځائى باندې وى.

**٩٨٣-په مانځه كښې د دعا په وخت آسمان طرف ته د كتلو ممانعت**

٩٨٣-()[٦] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ "«لَيَنْتَهِيَنَّ أَقْوَامٌ عَنْ رَفْعِهِمْ أَبْصَارَهُمْ عِنْدَ الدُّعَاءِ فِي الصَّلَاةِ إِلَى السَّمَاءِ، ٣ أَوْ لَتُخْطَفَنَّ أَبْصَارُهُمْ»"، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ خلق دي په لمانځه كې د دعا په وخت خپل نظر د آسمان طرف ته پورته كولو څخه منع شي ٣ ګينې د هغوئ نظر به وتښتول شي. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① لَتُخْطَفَنَّ: أَيْ: لَتُسْلَبَنَّ: اختطاف په زور د اخستلو په معنى كښې دې.

**تسهيلات:- توله:** لَتُخْطَفَنَّ:

**په مانځه كښې آسمان طرف ته د كتلو كراهت:-** په دې سره په دې حديث كښې رسول الله

[1] اخرجه البخارى كتاب الاذان/ باب رفع البصر إلى السماء فى الصلاة (رقم-٧٥٠) ومسلم كتاب الصلاة، باب النهى عن رفع البصر إلى السماء فى الصلاة (رقم- ١١٨ - (٤٢٩) والنسائى كتاب السهو/النهى عن رفع البصر إلى السماء فى الصلاة (رقم-١١٩٣) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب الخشوع فى الصلاة (رقم-١٠٤٥)والدارمى كتاب الصلاة /باب: كراهية رفع البصر إلى السماء فى الصلاة (رقم-١٣٣٩)

ﷺ دَ مانځه دَ آدابونه يو ادب دا ارشاد اوفرمائيلو چه دَ مانځه په التحيات کښې دَ دعا په وخت نظر آسمان طرف ته نه دی اوچتول پکار

**د کراهت دوه وجوهات:-** ① دا دَ بې ادبئ موجب هم دی. ځکه چه دعا دَ عاجزئ حالت دې او آسمان ته کتل دَ عاجزئ خلاف دی. په يو روايت کښې راغلی دی چه حضورپاك ﷺ به مانځه کښې دَ دعا په وخت به داسې نظر اسمان طرف ته اوچتولو خو چه کله آيت (الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ صَلَاتِهِمْ خٰشِعُوْنَ) نازل شونو حضورپاك ﷺ بيا نظر هم ښکته ساتلو. [مؤمنون الايه: ۲]

② په دې سره په ظاهره دا وهم پيدا کيږی چه دَ الله تعالی دَ پاره په آسمانونو کښې يو مقرر مکان دې په کوم سره چه به جسميت ثابت شي او جسميت سره حدوث لازم دی.

### ۹۸۳- د نبی عليه السلام خپله نمسی په مانځه کښې په اوږه کينول

**۹۸۳-()[٤]** [۱] وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَؤُمُّ النَّاسَ وَأُمَامَةُ بِنْتُ أَبِي الْعَاصِ عَلَى عَاتِقِهِ، [۳] فَإِذَا رَكَعَ وَضَعَهَا، [۴] وَإِذَا رَفَعَ مِنَ السُّجُودِ أَعَادَهَا»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابو قتاده رضی الله عنه فرمايي [۲] چې ما ليدلي دي چې رسول الله ﷺ (يوه ورځ خلقو ته مونځ ورکولو او د حضور ﷺ لمسي امامه بنت ابي العاص د حضور ﷺ په اوږه مبارکه ناسته وه [۳] حضور ﷺ چې به رکوع کوله نو امامه به يې کينوله [۴] او دسجدې نه چې به پاڅيدلو نو هغه به يې په خپله اوږه کينوله. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:-** ① يَؤُمُّ: امامتی ئې کوله، مونځ ئې ورکولو خلقوته. ② وَضَعَهَا: کوزوله به ئې (دخپلې اوږې نه). ③ أَعَادَهَا: يعنی دوباره به ئې پورته کوله او په اوږه به ئې کينوله.

**تسهيلات:-**

**قوله:** وَأُمَامَةُ بِنْتُ أَبِي الْعَاصِ:

**د حضرت امامه مختصر تعارف:-** امامه دَ حضورپاك ﷺ نمسئی ده چه دَ حضرت زينب بنت رسول ﷺ زوجه ابوالعاص لور ده.

**اشکال:** نبی عليه السلام حضورپاك ﷺ په فرض مونځ کښې وو ځکه چه دَ "يؤم الناس" الفاظ په دې باندې دليل دی. نو په فرض مونځ کښې داسې عمل څنګه جائز شو کوم چه په ظاهره عمل کثير دې او حضورپاك ﷺ پخپله دَ دې نه منع فرمائيلې ده.

**داشکال درې جوابونه:** ① حضورپاك دَ څه وقتی مجبورئ نه داسې کړی او دَ وقتی مجبورئ عارضی عمل چه يو خل نيم اوکړ ي شی هغه دَ امت دَ پاره مستمره مسنون قاعده

---

[۱] اخرجه مسلم کتاب المساجد و مواضع الصلاة/ باب جواز حمل الصبيان فی الصلاة (رقم-٤٢ - (٥٤٣) والنسائی کتاب السهو/حمل الصبايا فی الصلاة ووضعهن فی الصلاة (رقم-۱۲۰۵)

نه جوړيږي.
④ وړوکي ماشوم يا ماشومه اوچتول عمل کثير کښې داخل نه دی. علماء احناف ليکلي دي چه دَماشوم اوچتولوسره مونځ نه فاسد کيږي. اوکه ښځې بچې له پينې ورکړې نو مونځ به ئې فاسد شي اصل مدار په عمل قليل اوکثير باندې دي.
⑤ دا دَ هغه وخت خبره وه کوم وخت چه په مونځ کښې دَ ډيرو کارونو کولو ګنجائش وو.
**تنبيه**: بعضې خلق دې حديث ته په کتو سره ماشومان جمات ته راولي او په اوږو باندې اوچتولوسره مونځ کوي. دادَ هغه خلقو په حديث باندې دَ نه پوهيدو دليل دې سره دَدې چه هغوی ځپل ځان ته اهل حديث وائي.

## ۹۸۵—دآسويلي په وخت د خلې بندول

۹۸۵—()[۸]① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② " «إِذَا تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ فِي الصلاة فَلْيَكْظِمْ مَا اسْتَطَاعَ ; ③ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَدْخُلُ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ① ابو سعيد خدري رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هر کله چې په تاسو کې چا ته په لمانځه کې آسويلي (اوړمي) راشي نو هغه ته پکار دي چې حتي الامکان (تر خپله وسه پورې) هغه بندي کړي ③ ځکه چې (د آسويلي (اوړمي) په وخت) شيطان (په خله کې) ننوځي. (مسلم)

**حل اللغات**:- ① تَثَاءَبَ: آسويلي، اوړمي ② فَلْيَكْظِمْ: أَيْ: يُمْسِكْ وَيَمْنَعْ: بند دې کړي، منع دې کړي (آسويلي چه خوله ئې کهلاؤ نه شي).

۹۸۶—()[۹]① وَفِي رِوَايَةِ الْبُخَارِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: ② " «إِذَا تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ فِي الصَّلَاةِ فَلْيَكْظِمْ مَا اسْتَطَاعَ ③ وَلَا يَقُلْ: هَا، فَإِنَّمَا ذَلِكُمْ مِنَ الشَّيْطَانِ يَضْحَكُ مِنْهُ» ".

**ترجمه**: ① او د بخاري په روايت کې دا الفاظ دي ② هر کله چې په تاسو کې چا ته په لمانځه کې آسويلي راشي نو حتي الامکان هغه منع کول پکار دي ③ او ها دي نه کوي (ځنګه چې د آسويلي په وخت بې اختيار د خلې ځخه دا لفظ ها وځي) ځکه چې دا د شيطان د طرف ځخه دي او هغه په دې سره خاندي.

**تسهيلات**:- **قوله**: إِذَا تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ:

**شيطان ته د تثاءب د نسبت وجه**:- ډير خوراك، ثقل بدن اوسستئ دَ وجې نه اسويلي

---

[1] اخرجه مسلم کتاب الزهد والرقائق/ باب تشميت العاطس، وكراهة التثاؤب (رقم) ۵۷ - (۲۹۹۵) وابوداود کتاب الأدب/باب ما جاء في التثاؤب (رقم-۵۰۲۷) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في كراهية التثاؤب في الصلاة (رقم-۳۷۰)

[2] اخرجه مسلم کتاب الزهد والرقائق/- باب تشميت العاطس، وكراهة التثاؤب (رقم) ۵۶ - (۲۹۹۴) وابوداود کتاب الأدب/باب ما جاء في التثاؤب (رقم-۵۰۲۸)

راځي او په عبادت کښې د سستئی او غفلت ذریعه جوړیږی. په دې سره شیطان خوشحالیږی په دې وجه د اسویلی په نسبت د شیطان طرف ته کړې شوې دې. د انټروشی او اسویلی په وخت شکل ورانیږی د کوم په کتو چه شیطان خاندی. چه ګوره دې مکروه انسان او مکروه شکل د وجې نه د الله تعالی د دربارنه رټلې شوې یم.

**د انټوشی دفع کولو علاج:-** ① اسلام دَدې علاج دا خودلې دې چه مونځ ګذار له پکاردی چه خپله خله بنده کړی دې دَپاره چه د شیطان د وسوسو لار بنده شی.

② د انټروشی او اسویلی لرې کولودَپاره یوصورت داهم دې چه په زړه کښې داخیال راولی چه حضورپاك ﷺ ته کله هم انټوشی (انټروسی) نه وو راغلې.

**۱۸۷-د نبی علیه السلام په مانځه کښې د پیری رانیولو اراده کول**

۹۸۷-()[۹] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «إِنَّ عِفْرِيتًا مِنَ الْجِنِّ تَفَلَّتَ الْبَارِحَةَ لِيَقْطَعَ عَلَيَّ صَلَاتِي، [۳] فَأَمْكَنَنِي اللَّهُ مِنْهُ، فَأَخَذْتُهُ [۴] فَأَرَدْتُ أَنْ أَرْبِطَهُ عَلَى سَارِيَةٍ مِنْ سَوَارِي الْمَسْجِدِ [۵] حَتَّى تَنْظُرُوا إِلَيْهِ كُلُّكُمْ، [۶] فَذَكَرْتُ دَعْوَةَ أَخِي سُلَيْمَانَ: [۷] "رَبِّ هَبْ لِي مُلْكًا لَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ مِنْ بَعْدِي، [۸] فَرَدَدْتُهُ خَاسِئًا» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چي (یوه ورځ) رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] نن شپه په جناتو (پیریانو) کې یو دیو (یعني یو سرکش شیطان) ماته راغې چې زما په لمانځه کې خلل واچوي [۳] خو الله تعالی جل جلاله زه په هغه حاوي (غالبه) کړم نو ما هغه ونیولو [۴] او غوښتل مي چې په مسجد (نبوي) کې یوي ستنې سره یې وتړم [۵] چې تاسو ټول خلق یې ووینې [۶] بیا ما ته د خپل ورور سلیمان علیه السلام دا دعا رایاده شوه: [۷] رَبِّ هَبْ لِيْ مُلْكًا لَا يَنْبَغِيْ لِأَحَدٍ مِّنْ بَعْدِيْ، اي پروردګاره ماته داسې بادشاهي عطا کړي چې زما څخه وروسته د بل چا د پاره نه وي، [۸] نو ما هغه ذلیله پريښودلو. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات** - ① عِفْرِيتًا: أَيْ: خَبِيثًا: سرکش لوئی اوخبیث جن ته نی عفریت اوونیل. ② تَفَلَّتَ: أَيْ: تَخَلَّصَ فُجَاءَةً: دَباب تفعل نه دَخلاصیدو په معنی کښې دې. چونکه حضرت سلیمان علیه السلام لوئی لوئی پیریان په مختلفو جزیرو او غارونوکښې بند ساتلې دی هم د هغوی نه دا سرکش راتختیدلې دې اوخباثت سره نیغ حضورپاك ﷺ له دَمونځ خرابولودَپاره راغلو. ③ الْبَارِحَةَ: يَعْنِي: اللَّيْلَةَ الْمَاضِيَةَ: تیره شپه، ④ لِيَقْطَعَ: أَنْ يَشْغَلَنِي بِالْوَسْوَسَةِ فِيهَا: چه په وسوسه اچولو سره زما په مونځ کښې خلل پیدا کړی. ⑤ فَأَمْكَنَنِي: أَيْ: أَعْطَانِي مُكْنَةً مِنْ أَخْذِهِ: یعنی ماله نې په هغه باندې قوت اوقدرت راکړو څه پرې غالب شوم. ⑥ أَرْبِطَهُ: أَيْ: أَشُدَّهُ: چه اونې ترم. ⑦ سَارِيَةٍ: أَيْ: أُسْطُوَانَةٍ: ستن، ⑧ خَاسِئًا: أَيْ: خَائِبًا خَاسِرًا: د ذلیل اوخوار په معنی کښې دې سپې چه کله رټلې شی او شړلې شی دَهغې دَپاره لفظ اخساء استعمالیږی.

---

[۱]) اخرجه البخاری فی صحیحه رقم الحدیث ۴۶۱ ومسلم فی صحیحه رقم الحدیث ۳۹/ ۵۴۱

**تسهيلات:** - **قوله:** "حَتّٰى تَنْظُرُوا إِلَيْهِ"

**د جناتو احوال:** - دې نه معلومه شوه چه جنات نيولوسره ترلې کيدې شي. دا کثيف مخلوق دې لطيف نه دې. دويمه خبره دا معلومه شوه چه دجناتو وجود دې دهغوى وجود د قرآن او د حضورپاك ﷺ د څو واقعاتونه ثابت دې په دې باندې دامت اجماع ده

① د دوى خپل مينځ کښې ودونه کيږى اولاد ئې پيدا کيږى.

② د بعضې انسانانوسره ئې هم واده کيږى

③ پيريان خوراك څښناك کوى خوب کوى جماع کوى.

**د جناتو متعلق دوه کتابونه:** - ① امام سيوطى رحمه الله لفظ المرجان فى احکام الجان کښې د دې پيريانو د ابتدائى پيدائش دهغوى وجود او د هغوى ټول احوال ثابت کړى دى.

② د دوى ټول احوال آکام المرجان فى احکام الجان کښې ذکردى.

**قوله:** فَذَكَرْتُ دَعْوَةَ أَخِي سُلَيْمَانَ:

**دسليمان عليه السلام دعا:** - حضرت سليمان عليه السلام ته په جناتو باندې پوره تصرف حاصل وو. حضورپاك ﷺ ته هم دا تصرف حاصل وو ليکن حضورپاك ﷺ د حضرت سليمان عليه السلام د دعا د وجې نه دغه تصرف استعمال نه کړو

**٩٨٨-د ضرورت په وخت په مانځه کښې د تسبيح يا تصفيق حکم**

٩٨٨-(١)[١٠] ① وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«مَنْ نَابَهُ شَيْءٌ فِي صَلَاتِهِ، فَلْيُسَبِّحْ، ③ فَإِنَّمَا التَّصْفِيقُ لِلنِّسَاءِ» ". ④ وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَ: " «التَّسْبِيحُ لِلرِّجَالِ، وَالتَّصْفِيقُ لِلنِّسَاءِ» "، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② کوم سړي ته چې په لمانځه کې څه خبره پيښه شي نو هغه ته پکار دي چې هغه سبحان الله اووائي ③ او لاس وهل د ښځو د پاره مخصوص دي ④ او د يو روايت الفاظ دا دي چې سبحان الله ويل د سړو د پاره مخصوص دي او لاس وهل د ښځو د پاره مخصوص دي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① مَنْ نَابَهُ: أَيْ: مَنْ أَصَابَهُ: ناب ينوب د باب نصر نه دې په مونځ کښې څه حادثه يا واقعه پيښيدوته وئيلې شوى دى. ② التَّصْفِيقُ: وَهُوَ ضَرْبُ إِحْدَى الْيَدَيْنِ عَلَى الْأُخْرَى: يو لاس بل لاس ته راچول، يعنى لاسونه پړقول.

[١] اخرجه البخارى کتاب الجمعة/ باب التصفيق للنساء (رقم-١٢٠٤) ومسلم کتاب الصلاة/باب تقديم الجماعة من يصلى بهم إذا تأخر الإمام ولم يخافوا مفسدة بالتقديم(رقم) ١٠٢ - (٤٢١) وابوداود کتاب الصلاة،باب التصفيق فى الصلاة (رقم-٩٤٠) والنسائى کتاب الإمامة/باب إذا تقدم الرجل من الرعية ثم جاء الوالى ، هل يتأخر؟ (رقم-٧٨٤) والدارمى کتاب الصلاة /باب التسبيح للرجال، والتصفيق للنساء(رقم-١٤٠٣) ومالک فى الموطا کتاب قصر الصلاة فى السفر . باب الالتفات والتصفيق عند الحاجة فى الصلاة (رقم-٦١)

**تسهیلات:** - **قوله:** مَنْ نَابَهُ شَيْءٌ:

**امام ته د فتحې ورکولو صورتونه:** -مطلب دا چه په مونځ کښې څه خاص واقعه یا حادثه پیښه شی مثلاً په مونځ کښې امام صاحب سهو شی او هغه له دَ فتحې ورکولو موقع راشی

① په دې صورت کښې که مونځ گذار سړې وی نو سبحان الله دې وائی په کوم سره چه به اشاره اوشی چه سړې په مونځ کښې مشغول دې

② او که چرې ښځه په مونځ کښې مشغوله وی او امام ته د فتحې ورکولو ضرورت پیښ شی نو هغه دې سبحان الله نه وائی ځکه چه دَهغې دَ آواز هم پرده ده بلکه هغه دې دَ کس لاس په شاه باندې دَ ښی لاس تلې په زوره باندې اووهی

**دسړی او ښځې د فتحې ورکولو په طریقه کښې اختلاف:** - ① دَجمهورو په نیز هم دغه شان ده. چې سړې به په فتح ورکولو کښې سبحان الله وائی او ښځه به دې دَ کس لاس په شاه باندې دَ ښی لاس تلې په زوره باندې اووهی

② دَ امام مالك رحمه الله یو روایت دې چه په سړی او ښځه کښې هیڅ فرق نشته دې. دَ دواړو دَ پاره هم تسبیح مقرردی.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### ۹۸۹- په مانځه کښې د سلام جواب ورکولو ممانعت

۹۸۹-()[1] ١ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: ٢ «كُنَّا نُسَلِّمُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي الصَّلَاةِ، قَبْلَ أَنْ نَأْتِيَ أَرْضَ الْحَبَشَةِ، ٣ فَيَرُدُّ عَلَيْنَا، ٤ فَلَمَّا رَجَعْنَا مِنْ أَرْضِ الْحَبَشَةِ، ٥ أَتَيْتُهُ فَوَجَدْتُهُ يُصَلِّي، ٦ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ، فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ، ٧ حَتَّى إِذَا قَضَى صَلَاتَهُ، قَالَ: ٨ إِنَّ اللّٰهَ يُحْدِثُ مِنْ أَمْرِهِ مَا يَشَاءُ ٩ وَإِنَّ مِمَّا أَحْدَثَ أَنْ لَا تَكَلَّمُوا فِي الصَّلَاةِ ١٠ فَرَدَّ عَلَيَّ السَّلَامَ».

**ترجمه:** ١ عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه فرمایي ٢ چې د مُلك حبشه څخه د واپسي څخه مخکې مونږ به رسول الله ﷺ ته کوم وخت چې حضور ﷺ به مونځ کولو سلام کولو ٣ او حضور ﷺ به زمونږ د سلام جواب راکولو ٤ بیا چې مونږ د ملك حبشه څخه واپس شو ٥ نو زه د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شوم هغه وخت ما رسول الله په لمانځه کولو ولیدلو ٦ ما ورته سلام وکړو خو حضور ﷺ جواب رانه کړو ٧ کوم وخت چې حضور ﷺ د لمانځه څخه فارغ شو نو وي فرمایل ٨ الله تعالی جل جلاله چې خپل کوم حکم غواړي هغه ظاهروي ٩ الله تعالی اوس دا حکم ظاهر کړي دي چې په لمانځه کې خبري اترې مه کوي ١٠ بیا حضور ﷺ زما د سلام جواب راکړو

**حل اللغات:** - ① فَلَمْ يَرُدَّ: یعنی زما د سلام جواب ئې رانه کړو.

---

[1]) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة/باب رد السلام فی الصلاة (رقم-۹۲٤)

۹۹۰-()[۱۰] ① وَقَالَ: «إِنَّمَا الصَّلَاةُ لِقِرَاءَةِ الْقُرْآنِ وَذِكْرِ اللّٰهِ، ② فَإِذَا كُنْتَ فِيهَا. فَلْيَكُنْ ذٰلِكَ شَأْنَكَ» "، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① بيا يې وفرمايل مونځ يوازې د قرآن ويلو او د الله د ذکر د پاره دې ② هر کله چې ته د لمانځه حالت کې يې نو ستاسو هم دا حال کيدل پکار دې يعنې يوازې قرآن وايې او د الله ذکر کوه. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① شَأْنَكَ: أَيْ: حَالُكَ الْمُهِمُّ: شأن د شُئُونٌ جمع ده، حال ته وائي اوپه اهم او لوئې کارونو کښې ددې استعمال کيږي.

**تسهيلات:-**

**قوله:** فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ

**د سلام جواب نه ورکولو صورتونه:-** ددې حديث نه دا معلومه شوه چې که يو کس مونځ کوی يا د متيازو وغيره په حالت کښې وی، او څوك په دې باندې سلام واچوی نو ددې جواب ورکول واجب نه دی. ځکه چې په داسې حالت کښې د سلام جواب ورکول ممنوع دی، مسنون نه دی. د مسنون سلام جواب ورکول واجب دی. د ممنوع سلام جواب ورکول واجب نه دی. فراغت نه پس د سلام جواب ورکول پکار دی. علامه شامی پنځويشت داسې مواقع بيان کړی دی چې په هغې کښې سلام کول مکرو دی.

**۹۹۱-په مانځه کښې په اشارې سره د سلام جواب ورکولو حکم**

۹۹۱-()[۱۲] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: ② «قُلْتُ لِبِلَالٍ: كَيْفَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرُدُّ عَلَيْهِمْ حِينَ كَانُوا يُسَلِّمُونَ عَلَيْهِ وَهُوَ فِي الصَّلَاةِ؟ ③ قَالَ: كَانَ يُشِيرُ بِيَدِهِ»، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، ④ وَفِي رِوَايَةِ النَّسَائِيِّ نَحْوُهُ، وَعِوَضُ: بِلَالٍ صُهَيْبٌ.

**ترجمه:** ① ابن عمر رضي الله عنه فرمايې ② چې ما د حضرت بلال رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه چې رسول الله ﷺ به د لمانځه په حالت کې وو نو د سلام جواب به يې څنګه ورکولو ③ بلال رضي الله عنه اوويل رسول الله ﷺ به د خپل لاس په اشارې سره جواب ورکولو، ترمذي، ④ او د نسايي په يو روايت کې په ځاي د ابن عمر رضي الله عنه د صُهيب څخه دغسې منقول دي [يعني د ترمذي په روايت کې خو دا دي چې ابن عمر رضي الله عنه د بلال رضي الله عنه څخه دا پوښتنه وکړه او د نسايي په روايت کې دا دي چې ابن عمر د صُهيب رضي الله عنه څخه دا پوښتنه کړي وه].

[۱] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة/باب تشمیت العاطس فی الصلاة (رقم-۹۳۱)

[۲] اخرجه الترمذی فی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الإشارة فی الصلاة (رقم-۳۶۸)والنسائی کتاب السهو/باب رد السلام بالإشارة فی الصلاة (رقم-۱۱۸۷)

**تسهیلات:-**

**قوله: يُشِيرُ بِيَدِهِ:**

**په الفاظو سره په مونځ کښې د سلام جواب ورکولو حکم:**- مونځ ګذار ته که څوك په مونځ کښې سلام اوکړی نو په لفظونو کښې دَ سلام جواب ورکول جائز نه دی. که چرې چا په لفظونو کښې دَ سلام جواب ورکړو نو دَ ائمه اربعه په دې باندې اتفاق دې چه دَهغه مونځ به فاسد يږی

**په مانځه کښې په اشارې سره د سلام د جواب ورکولو حکم کښې مذاهب:-**

که چرې په اشاره سره ئې دَ سلام جواب ورکړو نو په دې کښې دَ ائمه اختلاف دې ① امام مالك رحمه الله امام شافعی رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله په نيز اشاره سره دَ سلام جواب ورکولو جائز دی.

② دَ احنافو په نيز په اشاره سره جواب ورکول مکروه دی ليکن مونځ ئې کيږی.

**داول فريق دليل:**- زير بحث حديث د دوی مستدل دې اوفرمائی چه په ژبه سره جواب ورکول منع دی مګر په اشاره سره جواب ورکول باقی پاتې دی. کوم چې د زير بحث حديث څخه ثابت دی.

**داول فريق د دليل جواب:**- په اشاره سره جواب ورکول هم منسوخ شوی دی. د کوم ثبوت چې د حضرت عبدالله بن مسعود په روايت سره شوې دې.

**د دويم فريق دليل:**- د دې باب په دويم حديث کښې ذکر شوی دی چه حضورپاك ﷺ حضرت ابن مسعود رضی الله عنه ته دَ سر په اشاره سره هم جواب ورنه کړو په کوم سره چه هغه ډير پريشان شو که چرې جائز وې اوکراهت نه وې نودَ ابن مسعود رضی الله عنه دَ پريشانئی هيڅ وجه نه وه. که دَ سر په اشاره ورته جواب ملاوشوې وې. بهرحال که چرې کراهت په تنزيهی باندې حمل کړې شی نودَ غيراولی اختلاف به پاتې شی.

**۹۹۲- په قومه کښې د تحميد فضيلت**

۹۹۲- (١)[١٣] ١ (وَعَنْ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ قَالَ: «صَلَّيْتُ خَلْفَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ٢ فَعَطَسْتُ فَقُلْتُ: الْحَمْدُ لِلّٰهِ حَمْدًا طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيهِ، مُبَارَكًا عَلَيْهِ، ٣ كَمَا يُحِبُّ رَبُّنَا وَيَرْضَى، ٤ فَلَمَّا صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، انْصَرَفَ فَقَالَ: ٥ "مَنِ الْمُتَكَلِّمُ فِي الصَّلَاةِ؟"، فَلَمْ يَتَكَلَّمْ أَحَدٌ. ٦ ثُمَّ قَالَهَا الثَّانِيَةَ، فَلَمْ يَتَكَلَّمْ

[1]) اخرجه البخاری كتاب الاذان/ باب فضل اللهم ربنا لک الحمد (رقم-۷۹۹) ومسلماالصلاة/باب ما يقال بين تكبيرة الإحرام والقراءة (رقم) ۱٤۹ - (٦۰۰) ابوداود كتاب الصلاة،باب ما يستفتح به الصلاة من الدعاء (رقم-۷۷۰) والترمذی كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الرجل يعطس في الصلاة (رقم-٤۰٤) والنسائی كتاب الافتتاح/باب قول المأموم إذا عطس خلف الإمام (رقم-۹۳۱) ومالک فی الموطا كتاب القرآن باب ما جاء فی ذكر الله تبارک وتعالی (رقم-۲۵) من كتاب القران

أَحْمَدُ، ۷ ثُمَّ قَالَهَا الثَّالِثَةَ، فَقَالَ رِفَاعَةُ: أَنَا يَارَسُولَ اللهِ، ۸ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، ۹ لَقَدِ ابْتَدَرَهَا بِضْعَةٌ وَثَلَاثُونَ مَلَكًا، أَيُّهُمْ يَصْعَدُ بِهَا" "رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ۱ رفاعه ابن رافع رضي الله عنه فرمايي چې (يوه ورځ) ما په رسول الله ﷺ پسې مونځ وکړلو ۲ د لمانځه په دوران کې ماته اترونشي (نوږي) راغي ما د حمد دا کلمات اوويل **اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ حَمْدًا كَثِيرًا طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيهِ مُبَارَكًا عَلَيْهِ كَمَا يُحِبُّ رَبُّنَا وَيَرْضَى** (ټول تعريف الله لره دي ډير زيات تعريف ډير پاکيزه يعنی خالص بابرکت، او برکت کړل شوي ۳ څنګه (تعريف) چې زمونږ رب بري راضي کيږي او خوښوي يي، ۴ رسول الله ﷺ چې مونځ وکړو نو (زمونږ طرف ته) متوجه شو او وي فرمايل ۵ په لمانځه کې خبري کونکي څوك دي؟ (يعني چا خبري وکړي، د حضور ﷺ د ناراضګي د ويرې څخه) چا جواب ورنه کړو ۶ بيا حضور ﷺ په دويم ځل پوښتنه وکړه بيا هم چا جواب ورنه کړو ۷ په دريم ځل چې رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه نو رفاعه رضي الله عنه اوويل يا رسول الله ﷺ زه يم ۸ رسول الله ﷺ وفرمايل په هغه ذات مې دي قسم وي د چا په قبضه کې چې زما ساه ده ۹ (ما وليدل) چې د ديرشو څخه زياتو فرشتو د دې کلماتو په پورته وړلو کښې تلوار کولو چې په هغوئ کې يې څوك مخکې يوسي. (ترمذي،ابوداود، نسايي).

**حل اللغات:** - ① فَعَطَسْتُ: نوما اتبوشي (پرنجي) اوکړو. ② ابْتَدَرَهَا: أَي: اسْتَبَقَ إِلَيْهَا: ديويل نه وړاندې کيدلي (فربستي). ③ بِضْعَةٌ: وَهِيَ مِنَ الثَّلَاثَةِ إِلَى التِّسْعَةِ: د دريو نه نهو پورې شمير ته وائی. ④ يَصْعَدُ: چه پورته ئې يوسي.

**تسهيلات:** -

**قوله: اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ حَمْدًا طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيهِ:**

**اشکال:** - مونځ کښې دومره اوږد کلام دې ،دا دومره تحمل څنګه اوشو؟

**د اشکال جواب:** -کلام کښې څه د خطاب صيغه نشته دې بلکه ټوله دالله تعالی حمد اوثناء ده په دې وجه ددې تحمل جائزدې باقی نبی کريم ﷺ ددې کلمات تحسين فرمائيلي دې دا بيان د هغوئ ذاتی خصوصيت دې

**۹۱۳-شيطانی اثر او اسويلې**

۹۱۳-()[۱۳] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ۲ التَّثَاؤُبُ فِي الصَّلَاةِ مِنَ الشَّيْطَانِ، ۳ فَإِذَا تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ فَلْيَكْظِمْ مَا اسْتَطَاعَ" ۴ وَفِي أُخْرَى لَهُ وَلِابْنِ مَاجَهْ: فَلْيَضَعْ يَدَهُ عَلَى فِيهِ».

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ په لمانځه کې

[1]) اخرجه الترمذی في كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی كراهية التثاؤب فی الصلاة (رقم-۳۷۰) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما يكره فی الصلاة (رقم-۹۶۸)

اسويلي كول د شيطان داثر څخه دي[٣] هر كله چې په تاسو كې چاته په لمانځه كې راشي نو تر خپله وسه هغه بندول پكار دي، ترمذي،[٤] د ترمذي په يو بل روايت او د ابن ماجه روايت كې دا الفاظ هم دي چې رسول الله ﷺ دا هم وفرمايل كه په لمانځه كې چاته آسويلي راشي نو هغه ته خپل لاس په خله ايښودل پكار دي.

**حل اللغات:-** ① التَّثَاؤُبُ: آسويلي، ② فَلْيَكْظِمْ: أَيْ يَدْفَعُهُ: بند دې كړي، منع دې كړي (آسويلي چه خوله ئې كهلاؤ نه شي).

**تسهيلات:-**

**قوله: فَلْيَكْظِمْ مَا اسْتَطَاعَ:**

**د اسويلي قابو كولو دوه طريقې:-** ① د اسويلي په راتلو سره دې شونډې بندې كړي چې اسويلي سره خوله وازه او كولاؤ نشي. دې څخه مونږ په كظم سره تعبير كولی شو.

② كه د فليكظم يعني كه د شونډو راټولولو سره كه هم اسويلي ختم نه شي نو دويمه طريقه دا ده چې خپل لاس دې په خپله خوله باندې كيږدي. دواړه صورتونه صحيح دي.

**٩٩٣- په مانځه كښې د ګوتو په مينځ كښې د تشبيك ممانعت**

٩٩٣-()[١٥] [١] وَعَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] " «إِذَا تَوَضَّأَ أَحَدُكُمْ فَأَحْسَنَ وُضُوءَهُ، [٣] ثُمَّ خَرَجَ عَامِدًا إِلَى الْمَسْجِدِ [٤] فَلَا يُشَبِّكَنَّ بَيْنَ أَصَابِعِهِ، فَإِنَّهُ فِي الصَّلَاةِ» "، رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:**[١] كعب بن عجره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[٢] هر كله چې په تاسو كې څوك اودس كوي نو په ښه شان دي اودس وكړي[٣] بيا د لمانځه په اراده مسجد ته روان شي[٤] (نو هغه ته پكار دي چې په لار كې) د ګوتو مينځ كې تشبيك نه كوي ځكه چې (د هغه وخت څخه لكه چې) هغه په لمانځه كې دي. (احمد، ترمذي، ابوداؤد، نسايي، دارمي.)

**حل اللغات:-** ① فَلَا يُشَبِّكَنَّ: إِدْخَالُ بَعْضِهَا فِي بَعْضٍ: د يو لاس ګوتې د بل لاس په ګوتو كښې وركولو ته تشبيك وائی (دا په مونځ كښې مكروه دی ځكه چه دا د خشوع خلاف دی).

**تسهيلات:- قوله: فَلَا يُشَبِّكَنَّ:**

**د تشبيك ممانعت:-** چونكه په مونځ كښې تشبيك منع دې په دې كه څوك سرې جماعت ته مانځه له راځی نو د كور څخه وتلو سره هغه د مونځ په حكم كښې دې. لهذا په ده باندې د مونځ آداب خپلول واجب دی نو تشبيك دې نه كوی. د دې نه دا خبره معلومه شوه چه بعضې ځيزونه كوم چه په مانځه كښې منع دی هغه مونځ له د راتلو په وخت هم منع دی.

[١] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة، باب ما جاء في الهدى في المشى إلى الصلاة (رقم-٥٦٢) والترمذی كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في كراهية التشبيك بين الأصابع في الصلاة (رقم-٣٨٦) والدارمی كتاب الصلاة /باب النهى عن الاشتباك إذا خرج إلى المسجد (رقم-١٤٤٥)

## ۹۹۵—په مانځه کښې د التفات حکم

۹۹۵—(۱)[۱۶] ۱ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ: رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«لَايَزَالُ اللّٰهُ-عَزَّوَجَلَّ-مُقْبِلًا عَلَى الْعَبْدِ وَهُوَ فِي صَلَاتِهِ مَالَمْ يَلْتَفِتْ، ۳ فَإِذَا الْتَفَتَ انْصَرَفَ عَنْهُ» "، رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوذر رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ هر کله چې بنده په لمانځه کې وي نو الله عز وجل تر هغه وخته پورې د هغه بنده طرف ته متوجه وي تر څو پورې چې هغه اخوا دیخوا (غاړه ګرځولو سره) نه ګوري ۳ هر کله چې بنده اخوا دیخوا ګوري نو الله تعالى جل جلاله د هغه څخه مخ اړوي (یعني د هغه په ثواب کښې کمي راځي).
(احمد، ابوداؤد، نسايي، دارمي).

**حل اللغات:**- ① مُقْبِلًا: أَيْ: نَاظِرًا إِلَيْهِ بِالرَّحْمَةِ: مخامخ وی مونځګذار ته یعنی درحمت په نظر ورته متوجه وی او ثواب ورکوی. ② لَمْ يَلْتَفِتْ: چه اخوا دیخوا متوجه نه شی، اخوا دیخوا اونه ګوری. ③ انْصَرَفَ: أَيْ: أَعْرَضَ: مخ ترې اړوی.

**تسهیلات:**-

**قوله: الْتَفَتَ:**

**په مانځه کښې بل طرف ته د متوجه کیدو ممانعت:**- یعنی کوم بنده چه په مانځه کښې اخوادیخوا ګوری نو الله تعالی فرمائی ای دَ آدم ځویه ته چاته ګورې ستادَ پاره زمانه څوك بهترشته دَ چاطرف ته چه ته متوجه کیږې. کله چه بنده دَالله تعالی دَ کلام نه پس بیاهم اخوادیخوا ګوری اوپه دریم ځل داسې کیږی نو الله تعالی خپل مخ مبارك (مایلیق بشانه)(یعنی څنګه چه شان سره مناسب دې) دَدغه بنده دَ طرف نه اړه وی دَ "انصرف عنه" مطلب هم دغه دې.

## ۹۹۶—د سجدې په ځاې نظر ساتل

۹۹۶—(۲)[۱۷] ۱ وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ۲ " «يَا أَنَسُ! اجْعَلْ بَصَرَكَ حَيْثُ تَسْجُدُ» ۳ " رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "سُنَنِهِ الْكَبِيرِ"، مِنْ طَرِيقِ الْحَسَنِ عَنْ أَنَسٍ يَرْفَعُهُ]

**ترجمه:** ۱ حضرت انس رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ اي انسه خپل نظر هلته لره چرته چې سجده کوې ۳ دا روايت بيهقي سنن کبير کې د انس رضی الله عنه څخه بطريق حسن نقل کړي دي چې جزري ورته مرفوع ويلي دي.

---

[1] اخرجه ابوداود کتاب الصلاة،باب الالتفات فى الصلاة (رقم-۹۰۹) والنسائى کتاب السهو/باب التشديد فى الالتفات فى الصلاة (رقم-۱۱۹۵) والدارمى فى کتاب الصلاة /باب کراهية الالتفات فى الصلاة (رقم-۱۴۶۳)

[2] اخرجه البيهقى فى باب لا يجاوز بصره موضع سجوده (رقم-۳۵۴۵)

**تسهيلات: -**

**قوله:** حَيْثُ تَسْجُدُ:

**په مانځه کښې د نظر ساتلو ځايونه: -** علامه طيبي رحمه الله فرمائي چه مستحب دادي په مانځه کښې دې خآيونه ته ګوري.

① په حالت دَ قيام کښې دَ سجدې ځائي ته ګوري.

② په رکوع کښې دَ قدمونو شا ته ګوري.

③ په سجده کښې په پوزې ته ګوري.

④ په قعدې کښې زنګونواو جهولئي ته ګوري.

**خانه کعبې ته مخامخ دکتلو په ځائې کښې دوه اقوال: -**

① :- بعض علماؤ ليکلي دي په حرم شريف کښې نظر په کعبه شريفه باندې کيدل پکاردي

② متاخرين علماؤ دا رائې رد کړې دې. (کذا في المعات)

**۹۹۷- په مانځه کښې د التفات کولو وعيد**

۹۹۷ -()[۱۸] ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«يَا بُنَيَّ إِيَّاكَ وَالِالْتِفَاتَ فِي الصَّلَاةِ، ③ فَإِنَّ الِالْتِفَاتَ فِي الصَّلَاةِ هَلَكَةٌ، ④ فَإِنْ كَانَ لَا بُدَّ فَفِي التَّطَوُّعِ لَا فِي الْفَرِيضَةِ»"، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ماته وفرمايل ② اي زويه په لمانځه کې د اخوا ديخوا کتلو څخه ځان ساته ③ ځکه چې په لمانځه کې (غاړه ګرځولو سره) اخوا ديخوا کتل (په آخرت کې) د هلاکت سبب دي ④ او که اخوا ديخوا کتل ضروري وي نو په نفلو کښې (خو خير څه حرج نشته) خو په فرضوکي هيڅ کله کتل نه دي پکار. (ترمذي).

**حل اللغات:-** ① الِالْتِفَات: اخوا ديخوا کتل، يو خوا بل خوا متوجه کيدل.

**تسهيلات: -**

**قوله:** فَفِي التَّطَوُّعِ لَا فِي الْفَرِيضَةِ:

**په فرضو او نفلو کښې فرق: -** فرضو اونفلوکښې فرق دې يعنى په نوافل کښې تخفيف دې اودَ خو څيزونوګنجائش په نوافل کښې شته اوفرائضوکښې نشته دې. امام ابوحنيفه رحمه الله هم دا حديث په توګه دَ ضابطې اخستې دې چه فرائضوسره دَ نوافلو په شان معامله نه دى کول پکار.

[1]) اخرجه الترمذي في كتاب السفر/باب ما ذكر في الالتفات في الصلاة (رقم-۵۸۹)

## ۹۹۸- په مانځه کښې د سترګو په ګوټونو د کتلو حکم

۹۹۸-(١)[١٩] ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: ٢ «إِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَلْحَظُ فِي الصَّلَاةِ يَمِيْنًا وَشِمَالًا، ٣ وَلَا يَلْوِي عُنُقَهُ خَلْفَ ظَهْرِهِ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ١ ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي ٢ چې رسول الله ﷺ به د سترګو په ګوټونو کي ښي او ګس طرف ته کتل ٣ خو وروسته د شا طرف ته يې خپله غاړه (څټ) مبارك نه تاووله. (ترمذي.)

**حل اللغات:** - ① يَلْحَظُ: أَيْ: يَنْظُرُ بِمُؤَخَّرَةِ عَيْنَيْهِ: دسترګونو په ګوټونوکښې به ئې کتل. ② وَلَا يَلْوِي: أَيْ: لَا يَصْرِفُ وَلَا يُمِيلُ: نه به تاويدلو، مخ يا سينه به ئې نه ګرځوله.

**تسهيلات:** - **نوټ:** -د دې حديث وضاحت په بل مقام کښې ذکر شوې دې.

## ۹۹۹- په مانځه کښې بعضې شيطانی اثرات

۹۹۹-(٢)[٢٠] ١ وَعَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ رَفَعَهُ قَالَ: ٢ "«الْعُطَاسُ وَالنُّعَاسُ، وَالتَّثَاؤُبُ فِي الصَّلَاةِ ٣ وَالْحَيْضُ وَالْقَيْءُ وَالرُّعَافُ مِنَ الشَّيْطَانِ»" رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ١ عدي ابن ثابت د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار يعنی د عدي د نيکه څخه نقل کوي چې هغه دا حديث رسول الله ﷺ ته رسولي دي ٢ چې رسول الله ﷺ وفرمايل په لمانځه کې انتروشي (نوړي، ترېچل) کول پرکالي (غنودګي) کيدل آسويلي راتلل ٣ د حيض راتلل، قي راتلل، او د پوزې څخه وينه راتلل د شيطان (د اثر) څخه دي (ترمذي.)

**حل اللغات:** - ① الْعُطَاسُ: انتوشی، پرنجې، ② النُّعَاسُ: وَهُوَ النَّوْمُ الْخَفِيفُ: پرکالی، د خوب جوتې، ③ التَّثَاؤُبُ: أَيْ: لتَّكَاسُلُ: آسويلی، ناراستی، ④ الْحَيْضُ: دښځو وينه راتلل، دښځو مياشتنۍ بيماری. ⑤ الرُّعَافُ: د پوزې نه وينه راتلل.

**تسهيلات:** - **قوله:** مِنَ الشَّيْطَانِ:

**اشکال:** -په يو حديث کښې دی چه الله تعالی انتروشې ډيرخوښوی اودلته فرمائی چه دې سره شيطان خوشحاليږی. داخوښکاره تعارض دې؟

**داشکال جواب:** - دَدې تعارض جواب دادې چه دا په کثرت سره انتروشی دَ الله تعالی ناخوښه دی اوچه کله کله وی نو هغه خوښوی.

---

[1]) اخرجه الترمذی فی کتاب السفر/باب ما ذکر فی الالتفات فی الصلاة (رقم-۵۸۷)

[2]) اخرجه الترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء أن العطاس فی الصلاة من الشیطان (رقم-۲۷۴۸) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها/باب ما یکره فی الصلاة (رقم-۹۶۹)

### ۱۰۰۰—په ژړا سره د مونځ نه باطليدل

۱۰۰۰—(۱)[۲۱] [۱] وَعَنْ مُطَرِّفِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ الشِّخِّيرِ، عَنْ أَبِيهِ قَالَ: [۲] «أَتَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهُوَ يُصَلِّي [۳] وَلِجَوْفِهِ أَزِيزٌ كَأَزِيزِ الْمِرْجَلِ» يَعْنِي: يَبْكِي. [۴] وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: «رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُصَلِّي وَفِي صَدْرِهِ أَزِيزٌ كَأَزِيزِ الرَّحَا مِنَ الْبُكَاءِ» رَوَاهُ أَحْمَدُ [۵] وَرَوَى النَّسَائِيُّ الرِّوَايَةَ الْأُولَى، وَأَبُو دَاوُدَ الثَّانِيَةَ.

**ترجمه:** [۱] مطرف ابن عبدالله ابن شخير د خپل پلار بزرګوار څخه نقل کوي چې هغه اوويل [۲] زه يوه ورځ د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم هغه وخت رسول الله ﷺ مونځ کولو [۳] او د حضور ﷺ دننه (يعني د سيني) څخه د ديګ د جوشيدلو په شان آواز راتلو يعني حضور ﷺ ژړل [۴] او د يو روايت الفاظ دا دي چې هغه اوويل ما رسول الله ﷺ په لمانځه کولو وليدلو هغه وخت د حضور ﷺ د سيني مبارکي څخه د ژرندي (چکي) پشان د ژړا آواز راختلو. (احمد.) [۵] او امام نسائی اولني روايت نقل کړي دي او ابوداؤد دويم روايت نقل کړي دي.

**حل اللغات:** - ① لِجَوْفِهِ: دسيني د نبی عليه السلام نه، ② أَزِيزٌ: أَيْ: صَوْتُ غَلَيَانِهِ: د جوشيدلو آواز، ③ الْمِرْجَلِ: أَيِ الْقِدْرُ: کټوئ ته وائی (که د اوسپنې وی او که دخاورو يا دبل څه نه جوړه وی). ④ الرَّحَا: جرنده، چکی.

**تسهيلات:** - **قوله:** وَلِجَوْفِهِ أَزِيزٌ:

**دالله تعالى د ويرې په ژړا د مونځ نه ماتيدل:** - دَدې حديث نه معلومه شوه چه دَالله تعالى نه دَ ويرې په ژړا سره مونځ نه باطل کيږی. هدايه کښې ليکلی دی چه که مونځ ګذار دَ دوزخ يا نور عذاب دَ وجې نه په ژړا شی نودَ ده مونځ به نه فاسد کيږی او که يوسړې دَ بدن په درد وغيره کښې اخته کيدو سره ژاړی اودَهغه په ژړا کښې دَ خلې نه الفاظ لګه آه، اوه اوخی نودَهغه مونځ به مات شی.

### ۱۰۰۱—په مانځه کښې د سجدې د ځائې څخه ګټيټکی نه لرې کول

۱۰۰۱—(۲)[۲۲] [۱] وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] "«إِذَا قَامَ أَحَدُكُمْ إِلَى الصَّلَاةِ فَلَا يَمْسَحِ الْحَصَى، [۳] فَإِنَّ الرَّحْمَةَ تُوَاجِهُهُ»"، رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوذر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله وفرمايل [۲] هر کله چې په تاسو کې يو سړي د لمانځه د پاره ودريږي نو هغه ته په لاس سره سنګ ريزي (شګې) لرې کول نه دي

---

[1] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب البكاء فی الصلاة (رقم-۹۰٤)والنسائی کتاب السهو/باب البكاء فی الصلاة (رقم-۱۲۱٤)

[2] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة/باب فی مسح الحصی فی الصلاة (رقم-۹٤٥) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کراهیة مسح الحصی فی الصلاة (رقم-۳۷۹)

پکار[۳] ځکه چې رحمت ورته مخامخ وي، (احمد، ترمذي، ابوداؤد، نسايي، ابن ماجه.)

**حل اللغات:-** ① فَلَا يَمْسَحْ: په لاس سره دې نه لرې کوي، ② الْحَصَى: وَهِيَ الْحِجَارَةُ الصَّغِيرَةُ: واړه واړه کاڼي، ③ تُوَاجِهُهُ: أَيْ: تَنْزِلُ عَلَيْهِ وَتُقْبِلُ إِلَيْهِ: ورته مخامخ وي، يعنى رحمت پرې نازليږي.

**تسهيلات:-**

**قوله: فَإِنَّ الرَّحْمَةَ تُوَاجِهُهُ:**

**مونځ گذار ته د الله تعالى د رحمت متوجه کيدل:-** ددې مطلب دادې چې کله يو کس ددنيا نه مخ واړوى او د مونځ په حالت کښې خپل پروردگار ته مخ کړى اودريږى نو په هغه کښې دهغه مخکې دالله تعالى درحمت نزول کيږى.په دې وجه مونځ گذار دپاره په داسې مقدس او مبارك موقعه باندې دا مناسب نه دى چې هغه کاڼو سره لوبې اوکړى ،يا داسې قسمه بل فعل اوکړى ،چې دهغې په وجه دالله تعالى انواراتو او فضل وکرم څخه محرومه پاتې شي.

**۱۰۰۲- د سجدې ځاې صفا کولو دپاره د پوکولو ممانعت**

۱۰۰۲-()[۲۳][۱] وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: [۲] «رَأَى النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - غُلَامًا لَنَا يُقَالُ لَهُ: أَفْلَحُ، [۳] إِذَا سَجَدَ نَفَخَ، [۴] فَقَالَ: "يَا أَفْلَحُ! تَرِّبْ وَجْهَكَ"» "رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] د مؤمنانو مور بي بي ام سلمه رضي الله عنها فرمايي[۲] چې رسول الله ﷺ زمونږ يو غلام چې د هغه نوم افلح وو وليدلو[۳] چې کله سجده کوي نو د سجدې ځاى صفا کولو د پاره پوکې [چې مخ يې په خاورو ککړ نشي] [۴] رسول الله ﷺ هغه ته وفرمايل اې افلح پريږده چې په مخ دې خاوره ولگيږي. (ترمذي.)

**حل اللغات:-** ① نَفَخَ: پوکى به ئې وهل (چه دسجدې ځاى صفا شي). ② تَرِّبْ: أَيْ: أَوْصِلْهُ إِلَى التُّرَابِ: پريږده چه مخ دې دخاورو شي (کنايه ده يعنى پوکى مه وهه).

**تسهيلات:- قوله: يَا أَفْلَحُ! تَرِّبْ وَجْهَكَ:**

ددې مطلب دا دې چې په سجده کښې خپل تندې په خاورو باندې ککړ کړه او د عاجزۍ ثبوت ورکوه.اود مانځه څخه روسته ئې پاکوه چې په ريا کښې رانشې.

**۱۰۰۳- په تشود لاس کيخودلو د ممانعت وجه**

۱۰۰۳-()[۲۴][۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - " [۲] «الِاخْتِصَارُ فِي الصَّلَاةِ رَاحَةُ أَهْلِ النَّارِ» "رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ".

[۱] اخرجه الترمذى فى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية النفخ فى الصلاة (رقم-۳۸۱)

[۲] صحيح ابن حذيمة بَابُ ذِكْرِ الْعِلَّةِ الَّتِي لَهَا زُجِرَ عَنِ الِاخْتِصَارِ فِي الصَّلَاةِ إِذْ هِيَ رَاحَةُ أَهْلِ النَّارِ. بِاللَّهِ نَتَعَوَّذُ مِنَ النَّارِ رقم ۵۷)

**ترجمه:**[۱] حضرت ابن عمر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] په لمانځه کې اختصار (یعني په تشو لاس ایښودل) د دوزخیانو د آرام کولو صورت دي، (ابوداؤد)

**حل اللغات:**- ① الإخْتِصَارُ: أَيْ: وَضْعُ الْيَدِ عَلَى الْخَاصِرَةِ: په تشو (ډډو) باندې لاسونه ایښودل. ② رَاحَةٌ: أَيْ: فَيَسْتَرِيحُونَ: راحت او آرام به حاصلوي.

**تسهیلات:**-

**نوټ:** دَ اختصار اوخصرپوره وضاحت دَدې باب په حدیث نمبر ۹۸۱ کښې شوې دې هلته اوګورئ

**۱۰۰۳—په مانځه کښې د مار او لړم وژلو حکم**

۱۰۰۳—()[۲۵][۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -[۲] "«اقْتُلُوا الْأَسْوَدَيْنِ فِي الصَّلَاةِ[۳]الْحَيَّةَ وَالْعَقْرَبَ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَلِلنَّسَائِيِّ مَعْنَاهُ".

**ترجمه:**[۱] ابوهریره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] په لمانځه کې دوه تور یعنی مار او لړم وژنئ. (احمد، ترمذي، نسایي بالمعني.)

**حل اللغات:**- ① الْأَسْوَدَيْنِ: دوه تور څیزونه یعنی مار او لړم، مارته تغلیباً اسود وئیلې شوې دې ګنې دَ سرو او سپینومارانوحکم هم دغه دې. په عربی کښې دَ اسود لفظ دَهرقسم مار دَپاره استعمالیږي. لړم خو عموماً تور وی. الله تعالی دې دې نور هم تورکړي. ② الْحَيَّةَ: مار، ③ الْعَقْرَبَ: لړم.

**تسهیلات:**-

**قوله:** "الْأَسْوَدَيْنِ"

**نوټ: د مارلړم په قتلولوکښې به د مونځ د فساد دپاره عمل کثیرمعیارګرځولی شی.نو دعمل کثیرباره تفصیل دا دي.**

**د عمل کثیر او قلیل تعریف او د فقهاؤ اقوال:**- دَ ټولو فقهاؤ په نیز په عمل کثیرسره مونځ فاسد کیږي خودَ عمل کثیر اوعمل قلیل په حداوتعیین کښې اختلاف دې.

① **د کتونکی خیال معیار ګرځول**- دَ عمل قلیل اوعمل کثیر فرق داسې دې مثلاً مونځ ګذار په مانځه کښې یوعمل کوی او چا کتونکې دې اولیدلو که چرې هغه یقین اوکړو چه داسې عمل په مانځ کښې نه کیږي داسړې په مانځه کښې نه دې نودا به عمل کثیرشمیرلې شی. مونځ به فاسدیږي. اوکه چرې دې کتونکی یقین اوکړو چه دا سړې په مانځه کښې دې سره دَدې چه یوعمل کوی نودا عمل قلیل دې.

[1]) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب العمل فی الصلاة (رقم-۹۲۱)والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی قتل الأسودین فی الصلاة (رقم-۳۹۰) والنسائی کتاب السهو/باب قتل الحیة والعقرب فی الصلاة (رقم-۱۲۰۲) وابن ما جة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها/باب ما جاء فی قتل الحیة والعقرب فی الصلاة (رقم-۱۲٤۵)

**۲ د یواو دوؤ لاسونو استعمال معیار گرځول:** - کوم عمل په یولاس سره اوشی هغه قلیل دي اوکوم چه په دواړه لاسونو سره اوشی هغه کثیردي. دَ یولاس اودوو لاسونو دَ عمل نه مراددادي چه عام عادت څنګه واقع وی هم دَ هغې اعتباربه کیږی مثلاً دَ خلقو عادت دي چه پټکې په دواړه لاسه باندې تړی اوس که چا په یولاس باندې په مانځه کښې تړل شروع کړه نو مونځ به فاسد شی ځکه چه عام عادت ئی دَ یولاس نه دې.

**۳ درې ځله د عمل تسلسل معیارگرځول:** - که یوعمل مسلسل درې ځل اوکړې شو نوهغه کثیردې اوکه دَدې نه کم ئی اوکړو نودا عمل قلیل دې.

**۴ رایي ۵ مبتلی به معیار جوړول:** - علامه ابن همام فرمائیلی دی چې د قلیل او کثیر فیصله به هم په مونځ ګذار باندې پریخودې شی که هغه دا اوګنړل دا عمل کثیر دی نو مونځ به فاسد وی ګنی فاسد به نه وی.

**د مذکوره اقوالو بنیاد:** - دَ فقهاء دَ دې اقوالودَپاره دَ رسول الله ﷺ فرمان بنیادی قاعده او ضابطه ورکوی په کوم کښې چه حضورپاك ﷺ یوصحابی ته صرف دَ یوځل کانړی اخواکولو اجازت ورکړې وو.

**د مار وغیره د قتلولو بیاره د ګذارونوپه تحدیدکښې مذاهب:** -

① دَ احنافودَ اکثرو فقهاؤ وینا ده چه دَمونځ په حالت کښې دَ دریو قدموبورې مسلسل تلل اودرې چوټې وهلوسره مونځ فاسد یږی. په دې وجه دَ دریوقدمونه کم تلوسره په دوو چوټو وهلوسره مار قتل کول پکاردی که چرې زیات شو نودا عمل به کثیرشی اومونځ به فاسد شی. البته که مونځ فاسدشی نو په دې عمل سره به دامونځ ګذار ګناهګار نه شی بلکه دَ ضرورت په وخت هغه مونځ ماتولې هم شی اوداعمل کولې شی.

② علامه سرخسی رحمه الله مبسوط کښې دامسئله لیکلې ده اوفرمائی چه تلل اومار وژلو هیڅ حد بندی کول مناسب نه دی لکه څنګه چه په حدیث کښې دَ مطلق تللو او وژلو اجازت دې نوهم داسې کول پکاردی. هغوی فرمائی چه کله مونځ ګذار بې اودسه شی نوهلته مونځ ماتولونه بغیردَ اوبو پورې تلې شی که هرڅومره قدمونه تلل وی نودلته داهم جائز دی.

**مفتی به قول:** -بهرحال احناف په دې آسانئی سره فتویٰ نه ورکوی اوفرمائی چه دا مباح دی چه سرې مونځ مات کړی اومار لړم اووژنی. لکه څنګه چه دَ چا دَ ضائع کیدو کوهی کښې دَ پریوتو یا په اور وغیره کښې دَ سوزیدو خطره وی نوورسره خواکې مونځ کونکی له مباح دی چه مونځ مات کړی اوهغه بچ کړی.

### ۱۰۰۵—د مانځه په دوران کښې د دروازې خلاصولو حکم

۱۰۰۵—(¹)[۲۶][۱] وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: [۲]«كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُصَلِّي تَطَوُّعًا [۳] وَالْبَابُ عَلَيْهِ مُغْلَقٌ [۴] فَجِئْتُ فَاسْتَفْتَحْتُ [۵] فَمَشَى فَفَتَحَ لِي ثُمَّ رَجَعَ إِلَى مُصَلَّاهُ [۶] وَذَكَرَتْ أَنَّ الْبَابَ كَانَ فِي الْقِبْلَةِ» رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَرَوَى النَّسَائِيُّ نَحْوَهُ.

**ترجمه:** [۱] ام المؤمنین بي بي عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ به په کورکي په نفل لمانځه کې مشغول وو [۳] او دروازه به بنده وه [۴] چې زه به کور ته راتلم او د دروازې بيرته کولو (خلاصولو) اجازت به مې غوښتل [۵] نو حضور ﷺ به راغې او زما د پاره به يې دروازه خلاصوله بيا به مصلي ته واپس تلو (او په خپل لمانځه کې به مشغول شو) [۶] بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي چه دروازه د قبلې طرف ته وه. (احمد، ابوداؤد، ترمذي، نسايي.)

**حل اللغات:-** ① مُغْلَقٌ: بنده به وه (دروازه).

**تسهيلات:- قوله: فَفَتَحَ لِي:**

**د نبی کریم ﷺ په مانځه کښې دروازه خلاصول:-** رسول الله ﷺ به په نفل مونځ کښې مشغول کیدو کله کله به دَ بهرنه حضرت عائشه رضي الله عنها دروازه ټکوله نو حضورپاک ﷺ به دَ دروازې کولاوولودپاره وړاندې شو اودروازه به ئې کولاوولونه پس واپس مصلې ته راتلو.

**دنبی کریم ﷺ په مذکوره عمل کښې درې توجیهات:-**

① په شروع کښې په مونځ کښې څه اعمال وو روستو بيا پابندی اولګيدله.

② دَ حضورپاک ﷺ کوټه وړه وه په دې وجه داعمل کثيرنه وو

③ په نوافل کښې ګنجائش زيات وی دا په نفل باندې محمول دی.

**دروازه کولاوولو او بندولو په حکم کښې فرق:-** فقهاؤ ليکلی دی چه بنده دروازهٔ کولاوولوسره مونځ نه فاسد کيږی که چرې عمل قليل وی. ليکن کولاؤ دروازه بندولو سره مونځ فاسديږی ځکه چه دلته عمل کثير کيږی.

### ۱۰۰۶—په مانځه کښې داودس ماتيدو حکم

۱۰۰۶—(²)[۲۷][۱] وَعَنْ طَلْقِ بْنِ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «إِذَا فَسَا أَحَدُكُمْ فِي الصَّلَاةِ، فَلْيَنْصَرِفْ فَلْيَتَوَضَّأْ [۳] وَلْيُعِدِ الصَّلَاةَ» ، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ مَعَ زِيَادَةٍ وَنُقْصَانٍ.

---

(¹) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب العمل فی الصلاة (رقم-۹۲۲) و الترمذی کتاب السفر/باب ما یجوز من المشی والعمل فی صلاة التطوع (رقم-۶۰۱) والنسائی کتاب السهو/باب المشی أمام القبلة خطی یسیرة (رقم-۱۲۰۶)

(²) اخرجه ابوداود فی کتاب الطهارة/باب من یحدث فی الصلاة (رقم- ۲۰۵) والترمذی کتاب الرضاع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کراهیة إتیان النساء فی أدبارهن (رقم-۱۱۶۶) والدارمی کتاب الطهارة/باب من اتی امرأته فی دبرها (رقم-۱۱۸۱)

**ترجمه**:[۱] طلق ابن علي رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي[۲] د لمانځه په حالت کې که تاسو کې د چا بغیر د آواز څخه باد ووزي نو هغه ته پکار دي چې لاړشي اودس وکړي[۳] او مونځ دي دوباره وکړي، ابوداود، دا روایت ترمذي هم د څه کمي او زیاتي سره نقل کړي.

**حل اللغات**:- ① فَسَا: أَيْ: خَرَجَ مِنْهُ رِيحٌ بِلَا صَوْتٍ: باد تري لاړشي.

**تسهیلات**:-

**قوله**: إِذَا فَسَا أَحَدُكُمْ فِي الصَّلَاةِ:

**د مانځه په دوران کښې د هوا خارجیدو سره د مونځ د استیناف او بنا په حکم کښې مذاهب**:-

یعنی بغیرد آواز یا آواز سره که چرته هواخارج شی نود مونځ په حالت کښې به مونځ گذار څه کوی په دې کښې د فقهاؤ اختلاف دې.

① د ائمه جمهورو په نیزهرقسم صورت کښې دې داسې مونځ مات کړی اولاړدې شی د نوی سرنه دې اودس اوکړی رادې شی اودنوی سرنه دې مونځ اوکړی.

① ائمه احناف فرمائی چه بهتر اوافضل هم دغه دی چه مونځ دې دنوی سرنه اوکړی لیکن د فقهی شرائطو قواعدو او ضوابطو مطابق که یوسړې مونځ نه ماتوی اوځی اودس کوی او واپس راځی او مخکښې مونځ پوره کوی نوجائز دی.

**داول فریق دلیل**:- زیر بحث د حضرت طلق بن علی رضي الله عنه روایت د دوی مستدل دې په کوم کښې چه دمانځه د راگرځولو حکم دې.

**د دویم فریق دلائل**:- ① د حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها مرفوع حدیث د دوی مستدل دې دکوم الفاظ چه داسې دی: ((من اصابه قئ أو رعاف او قلس او مذي فلينصرف فليتوضأ ثم ليبن على صلوته وهو في ذلك لايتكلم))(ابن ماجه ص: ۸۷)

② دحضرت ابن عمر رضي الله عنه اثرهم د دوی مستدل دې دکوم الفاظ چه دادی: ((ان عبدالله بن عمر كان اذا رعف انصرف فتوضأ ثم رجع فبنى ولم يتكلم)) (موطامالك ص: ۲۷)

③ دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما اثر هم د دوی مستدل دې کوم چه موطاکښې دې الفاظ دادی: ((مالك بلغه ان عبدالله بن عباس كان يرعف فيخرج فيغسل الدم ثم يرجع فيبنى على ماقد صلى)) (ص: ۲۷)

**د اختلاف نوعیت**:- بهرحال داڅه دومره لوئی اختلاف نه دې د احنافو په نیز واپس راگرځول افضل دی بغیرد راگرځولو جائز دې. نو چه په کومواحادیثوکښې د راگرځولوحکم دې هغه احادیث په افضلیت باندې محمول دی او په کومو احادیثوکښې چه د بناء ذکردې هغه د بیان جواز دپاره دی نو په ټولو احادیثو باندې عمل اوشو.

## ۱۰۰۷-په مانځه کښې بې اودسه کیدل

۱۰۰۷-(۱)[۲۸] ۞وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - أَنَّهَا قَالَتْ: قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۞ " «إِذَا أَحْدَثَ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاتِهِ، ۞فَلْيَأْخُذْ بِأَنْفِهِ، ثُمَّ لِيَنْصَرِفْ» "، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۞ بی بی عائشه صدیقه رضي الله عنها روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل۞ هر کله چې په تاسو کې د لمانځه په حالت کې د چا اودس مات شي۞ نو هغه ته پکار دي چې خپله پوزه نیولو سره د لمانځه ځنځه بهر ووځي. (ابوداؤد.)

**تسهیلات:** - قوله: فَلْيَأْخُذْ بِأَنْفِهِ:

**په مانځه کښې د هوا خارجیدو صورت:** - یعنی که په مانځه کښې دَ چا هوا خارج شی او هغه دَ صفونو په مینځ کښې ولاړ دې اوس که اوځی نو شرمیږی چه خلق به وائی ده نه هوا وتلې ده اوس تختی اوکه نه ځی اومونځ جاری ساتی نو بغیردَ اودس په مانځه کښې مشغول کیدل ډیره لویه ګناه ده بلکه دَ کفرخطره ده.

**په مانځه کښې د هوا خارجیدو دوه صورتونه:** ① په صف کښې دې ولاړ وی مګر مونځ دې مات کړی اوصرف خلقو سره دې پاسیدل اوکیناستل جاری اوساتی مونځ دې نه وائی. دا دَهغه وخت خبره ده چه کوم وخت دَ صفونونه وتل ګران وی.

② دا سړې دې په پوزه باندې لاس کیخودوسره خلقو ته دا یقین ورکړی چه دَ پوزې نه ئی وینه شروع شوې ځکه روان دې هوانه ده خارج شوې.

**په دویم صورت باندې د احنافو استدلال:** - دَ دې دویم صورت نه احنافو یوه عجیبه مسئله راویستلې ده هغه دا چه په وینه وتلوسره اودس ماتیږی که چرې اودس ئی نه ماتیدو نو دې سړی به خلقو ته څنګه خودل چه یار زما دَ پوزې نه وینه وتلې ده په کوم سره چه اودس مات شوې دې دَ اودس دَپاره ځم هوا نه ده خارج شوې. اوس که دَ وینې په وتلوسره اودس نه ماتیږی لکه چه دَ شوافع مسلك دې نودې سړی دَ دې حیلې نه فائده نه شوه اوچتولې ځکه چه خلق به وائی چه په وینه تللوسره خو اودس نه ماتیږی ددې سړی هوا خارج شوې ده ځکه منډې وهی.

## ۱۰۰۸-په آخري قعده کښې د هوا خارجیدل

۱۰۰۸-(۲)[۲۹] ۞وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۞ " «إِذَا أَحْدَثَ أَحَدُكُمْ وَقَدْ جَلَسَ فِي آخِرِ صَلَاتِهِ قَبْلَ أَنْ يُسَلِّمَ، ۞فَقَدْ جَازَتْ صَلَاتُهُ» "، ۞رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ إِسْنَادُهُ لَيْسَ بِالْقَوِيِّ، وَقَدِ اضْطَرَبُوا فِي إِسْنَادِهِ.

---

(۱) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب استئذان المحدث الإمام (رقم-۱۱۱٤) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها/باب ما جاء فیمن أحدث فی الصلاة کیف ینصرف (رقم-۱۲۲۲)

(۲) اخرجه الترمذی فی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الرجل یحدث فی التشهد (رقم-٤۰۸)

**ترجمه:**[۱] عبدالله ابن عمرو رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] كه په تاسو كې د چا اودس په داسې وخت كې مات شي چې هغه د لمانځه په آخري قعده كې وي (په مقدار د تشهد كيناستلي وي) او سلام يې نه وي گرځولي[۳] نو د هغه مونځ پوره شو.[۴] ترمذي دا روايت كړي دي او ويلي يې دي چې دا داسې حديث دي چې اسناد يې مضبوط نه دي او محدثينو د دې په اسناد كې اضطراب (تردد) كړي دي.

**تسهيلات:- قوله: فَقَدْ جَازَتْ صَلَاتُهُ:**

**صورت د مسئلې:-** يعني يو مونځ گذار دَ تشهد په اندازه باندې په قعده آخيره كښې كيناستو اوبيا د هغه اودس مات شونوزير بحث حديث بنائي چه دَ ده مونځ اوشو

**دخروج بصنع المصلي په مسئله كښې مذاهب:-**

① امام شافعي رحمه الله فرمائي دَ سلام په الفاظودَ مونځ نه وتل واجب دي ليكن كه يو سړې په اختياري توگه يودَمونځ نه منافي عمل كولوسره اوځي نو دَدې سړي مونځ فاسدشو ځكه چه خاص دَ سلام په الفاظوسره وتل دَهغوي په نيز فرض دي اوهغه فرض پوره نه شو لهذا مونځ نه دې شوې.

② امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي چه دَ هغه فرض پوره شو. سره دَدې چه دَ واجب پاتې كيدو دَ وجې نه مونځ واجب الاعاده دې.

**په مذهبينو كښې فرق:-** بهرحال دَمونځ راگرځول دَ دواړو په نيز ضروري دي. فرق دومره دې چه امام ابوحنيفه رحمه الله راگرځولوته واجب وائي او امام شافعي رحمه الله ورته فرض وائي.

**د دويم فريق دليل:-** زير بحث حديث د دوی فريق دليل دې سره دَدې چه په دې كښې بې اودسه كيدلو داعمل قصداً نه دې شوې ليكن دَ مونځ گذار په فعل سره شوې دې اودَ سلام نه بغيرشوې دې. تردې حده پورې داحديث دَ امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دې.

**د دويم فريق په دليل اعتراض:-** اول فريق دې حديث ته مضطرب وئيلي دي. مطلب دا چه داضعيف دې ځكه چه دَ اضطراب مطلب دادې چه راويانوته په صحيح توگه ياد نه دې.

**داعتراض جواب:-** ملاعلي قاري رحمه الله داحديث نه ضعيف منلې دې اونه ئې مضطرب منلې دې بلكه هغوي فرمائي چه داحديث په دومره متعدد طرقو سره راغلې دې چه دا حديث دَحسن په درجه كښې راغلې دې. امام طحاوي رحمه الله دا په څو طريق سره نقل كړې دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**۱۰۰۹- د نبي عليه السلام څخه د هيري يوه واقعه**

۱۰۰۹-(۱)[۳۰][۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- خَرَجَ إِلَى الصَّلَاةِ،[۲] فَلَمَّا كَبَّرَ انْصَرَفَ،[۳] وَأَوْمَأَ إِلَيْهِمْ أَنْ كَمَا كُنْتُمْ،[۴] ثُمَّ خَرَجَ فَاغْتَسَلَ، ثُمَّ جَاءَ وَرَأْسُهُ يَقْطُرُ،[۵] فَصَلَّى بِهِمْ، فَلَمَّا صَلَّى

(۱) اخرجه ابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء في البناء على الصلاة (رقم-۱۲۲۰)

قَالَ:[۷] "إِنِّي كُنْتُ جُنُبًا، فَنَسِيتُ أَنْ أَغْتَسِلَ»". (رَوَاهُ أَحْمَدُ).

**ترجمه:** [۱] ابوهريره رضي الله عنه فرمايي چې (يوه ورځ) رسول الله ﷺ د لمانځه د پاره (مسجد ته) تشريف راوړو[۲] کوم وخت چې د تکبير اراده يې وکړله نو حضور ﷺ وروسته شو[۳] او صحابه ووته يې دا اشاره وکړله چې تاسو په خپل خپل ځاي ولاړ اوسئ[۵] د مسجد ځخه بهر ووتلو نو حضور ﷺ غسل وکړو او په دې حال کې يې واپس تشريف راوړو چې د حضور ﷺ د سر مبارك ځخه د اوبو قطرې څڅيدلې[۶] بيا يې صحابو رضي الله عنهم ته مونځ ورکړو کوم وخت چې حضور ﷺ د لمانځه ځخه فارغ شو نو وې فرمايل[۷] ماته د غسل حاجت وو خو ما ځخه غسل کول هير شوې وو. (احمد)

**حل اللغات:**- ① أَوْمَأَ: أَيْ: أَشَارَ: اشاره ئې ورته اوکړه. ② أَنْ كَمَا كُنْتُمْ: أَيْ كُونُوا كَمَا كُنْتُمْ: په خپل حال اوسئ (يعنى تاسو ولاړ يئ نوبس ولاړ اوسئ کينئ مه). ③ يَقْطُرُ: أَيْ: شَعْرُ رَأْسِهِ يَقْطُرُ مَاءً: يعنى د سرنه اوبه څسيدلې.

**تسهيلات:**- **قوله:** أَنْ كَمَا كُنْتُمْ

**د مذکوره جملې په مطلب کښې دوه اقوال:**- ① چې په کوم حالات کښې تاسو ئې نو هم په هغه حالت کښې اوسې. يعنى مه متفرق کيږئى. بلکه په خپل خپل ځائې کينئ.

② علامه طيبى رحمة الله عليه فرمائى چې ان مفسره دې، دې صورت کښې به مطلب دا وى چې په کوم حالت کښې تاسو ئې نو هم په هغه حالت کښې اوسئ، څه اوس راځم.

ابن حجر رحمة الله عليه فرمائى چې ددې مطلب د ادې کله چې زه لاړشم نو تاسو بيا خپل مونځ جارى اوساتئ مونځ مه ماتوئ بلکه پوره ئې کړئ.

**قوله:** فَنَسِيتُ أَنْ أَغْتَسِلَ

**د نسيان د نبوت سره عدم منافات:**- دې سره دهغه خلقو د خبرې ترديد کيږى کوم چې دا وائى چې حضور ﷺ عالم الغيب دې. که نبى کريم ﷺ عالم الغيب وې نو بياترې هيره ولې کيده؟ ددې نه دا هم معلومه شوه چې نسيان د شان نبوت منافى نه دى. اوبه دې هيره کښې هم ډير حکمتونه وى. د دې وجې چا وئيلى دى چې زمونږ هيره شيطانى وى او د پيغمبرانو هيره رحمانى وى.

۱۰۱۰-(۱)[۰] [۱] وَرَوَى مَالِكٌ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ مُرْسَلًا.

**ترجمه:** [۱] او امام مالك هم دا حديث د عطاء ابن يسار ځخه بطريق ارسال نقل کړې دې.

[1]) اخرجه مالک فى الموطا کتاب الطهارة ، باب إعادة الجنب الصلاة. وغسله إذا صلى ولم يذکر. وغسله ثوبه (رقم-۷۹)

## ۱۰۱۱- د سجدي ځائي د یخوولو دپاره یوه طریقه

۱۰۱۰-(١)[۳۱] «وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] كُنْتُ أُصَلِّي الظُّهْرَ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٣] فَآخُذُ قَبْضَةً مِنَ الْحَصَى لِتَبْرُدَ فِي كَفِّي، [٤] أَضَعُهَا لِجَبْهَتِي، أَسْجُدُ عَلَيْهَا لِشِدَّةِ الْحَرِّ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَرَوَى النَّسَائِيُّ نَحْوَهُ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر رضی الله عنه فرمایي [٢] چې ما به د ماسپخین مونځ د رسول الله ﷺ سره کولو [٣] او په یو موټې کې به مې سنګ ریزي اخستلي چې هغه زما په لاس کې یخې شی [٤] نو (د سجدي په ځاي) د ګرمۍ د شدت (د سختې ګرمۍ) څخه د ساتنې په خاطره هغه سنګ ریزي به مې د سجدي په وخت د خپل تندي لاندي ایښودلي. (ابوداؤد، نسایي.)

**حل اللغات:-** ① قَبْضَةً: موټې، ② الْحَصَى: وَهِيَ الْحِجَارَةُ الصَّغِيرَةُ: واړه واړه کاڼي، ③ لِتَبْرُدَ فِي كَفِّي: چه یخ شي دا کاڼي زما په تلي کښې. ④ الْحَرّ: ګرمي.

**تسهيلات:-** قوله: فَآخُذُ قَبْضَةً مِنَ الْحَصَى

**دزمکې د ګرمائش په وجه په مونځ کښې دعمل قلیل جواز:-** ددې حدیث څخه دا هم معلومه شوه که چرته یو کس د زمکې د ګرمائش په وجه عمل قلیل اوکړي یعنې سجده په کپړا یا په بل څه باندې اوکړي نو د دې اجازت شته

**دماسپخین مونځ په مثل اول کښې د ادا کولو غلط استدلال:-** ځینې حضراتو ددې حدیث نه استدلال کړې دې چې مثل اول کښې د ماسپخین مونځ کول پکاردي. خودا مثل اول نه دې، بلکه دا مثل ثاني دې. ځکه چې مثل ثاني کښې ډیره ګرمي وي. او هر څیز ګرمي کوي.

## ۱۰۱۲ - په مانځه کښې د نبی علیه السلام سره د شیطان یوه عجیبه واقعه

۱۰۱۳-(٢)[۳۲] [١] وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: «قَامَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] فَسَمِعْنَاهُ يَقُولُ أَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنْكَ [٣] ثُمَّ قَالَ أَلْعَنُكَ بِلَعْنَةِ اللّٰهِ ثَلَاثًا [٤] وَبَسَطَ يَدَهُ كَأَنَّهُ يَتَنَاوَلُ شَيْئًا [٥] فَلَمَّا فَرَغَ مِنَ الصَّلَاةِ قُلْنَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ! [٦] قَدْ سَمِعْنَاكَ تَقُولُ فِي الصَّلَاةِ شَيْئًا لَمْ نَسْمَعْكَ [٧] تَقُولُهُ قَبْلَ ذٰلِكَ وَرَأَيْنَاكَ بَسَطْتَ يَدَكَ،

**ترجمه:** [١] ابو درداء رضی الله عنه فرمایي چې (یوه ورځ) رسول الله ﷺ ولاړ وو مونځ یې کولو [٢] (د لمانځه په دوران کې) ما واوریدل چې حضور ﷺ فرمایل زه ستا څخه د الله پناه غواړم [٣] بیا حضور ﷺ درې ځله وفرمایل زه په تا لعنت کوم د الله لعنت [٤] او (دې فرمایلو سره) حضور ﷺ خپل دواړه لاسونه داسې خواره کړل لکه چې حضور ﷺ څه شي نیسي [٥]

---

[1] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب فی وقت صلاة الظهر(رقم-۳۹۹) والنسائی کتاب التطبیق/باب تبرید الحصی للسجود علیه (رقم-۱۰۸۱)

[2] اخرجه مسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة/ باب جواز لعن الشیطان فی أثناء الصلاة، والتعوذ منه وجواز العمل القلیل فی الصلاة (رقم) ۴۰ - (۵۴۲) والنسائی کتاب السهو/باب لعن إبلیس والتعوذ بالله منه فی الصلاة (رقم-۱۲۱۵)

كوم وخت چې حضور ﷺ د لمانځه څخه فارغ شو نو مونږ عرض وكړو يا رسول الله ﷺ ⑥ مونږ نن په لمانځه كې ستا څخه داسې خبره اوريدلې ده چې د دې څخه مخكې مو درڅخه هيڅ كله نه ده اوريدلي⑦ او نن مونږ ته په لاس خورولو هم وليدلي؟

**حل اللغات:**- ① يَتَنَاوَلُ: أَيْ: يَأْخُذُهُ مِنْ بَعِيدٍ: د لرې نه څه څيز نيول،

① قَالَ: إِنَّ عَدُوَّ اللّٰهِ إِبْلِيسَ جَاءَ بِشِهَابٍ مِنْ نَارٍ ② لِيَجْعَلَهُ فِي وَجْهِي ③ فَقُلْتُ أَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنْكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ④ ثُمَّ قُلْتُ أَلْعَنُكَ بِلَعْنَةِ اللّٰهِ التَّامَّةِ ⑤ فَلَمْ يَسْتَأْخِرْ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ أَرَدْتُ ان أَخُذَهُ ⑥ وَاللّٰهِ لَوْلَا دَعْوَةُ أَخِينَا سُلَيْمَانَ لَأَصْبَحَ مُوثَقًا ⑦ يَلْعَبُ بِهِ وِلْدَانُ أَهْلِ الْمَدِينَةِ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① رسول الله ﷺ وفرمايل د الله دښمن ابليس ملعون د اور شغله راوړلو سره راغلې وو ② چې هغه زما په مخكې واچوي ③ نو ما درې ځله دا اوويل چې زه ستا څخه د الله پناه غواړم ④ بيا ما اوويل زه په تا د الله پوره لعنت وايم ⑤ هغه لرې نشو نو ما (دا الفاظ) درې ځله اوويل بيا هم چې هغه لرې نه شو نو ما (خپل لاس خورولو سره) هغه نيول وغوښتل ⑥ ليكن قسم په الله كه زمونږ د ورور سليمان عليه السلام دعا نه وې نو هغه به مې (د مسجد د ستن سره) تر سحر پورې تړلې وو ⑦ او د مدينې ماشومانو به ورسره لوبې كولې يعنى په هغه به يې لوبې كولې. (مسلم)

**حل اللغات:**- ② شِهَابٍ: أَيْ: شُعْلَةٍ: شعلې او سكروټې ته وائى. ③ مُوثَقًا: أَيْ: مَرْبُوطًا: تړلې شوې.

**تسهيلات:**-

**د حديث مذكور تائيد:**- د دې پشان يو حديث فصل اول نه وړاندې په آخر كښې تير شوې دې چې د حضرت سليمان عليه السلام دعا ما پريښودې ده ،گنى به ما به هغه د جمات ستنې سره تړلې وې ،او سحر به د مدينې ماشومانو ده سره لوبې كولې.

**قوله:** فَسَمِعْنَاهُ يَقُولُ أَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنْكَ ثُمَّ قَالَ أَلْعَنُكَ بِلَعْنَةِ اللّٰهِ ثَلَاثًا:

**اشكال:**- احاديثو كښې تعارض: دې حديث پاك كښې دى چې نبى كريم ﷺ دا درې ځل اوونيلې حالانكه كه په مونځ كښې دخطاب دصيغې سره اوونيلې شى نو دې سره مونځ فاسديږى.لكه څنگه ماقبل حديث كښې د نبى كريم ﷺ ارشاد دې :ان الصلوة لايصلح فيها شئ من كلام الناس: دې حديث سره تعارض دې؟

**د اشكال څپږجوابونه:**- ① دا واقعه په مونځ كښې د كلام نه وړاندې ده.

② ابن الملك رحمة الله عليه فرمائى چې دا واقعه په مكى حرم كښې اوشوه او واقعه د مدينې ده ،مدينې نه خاص ښار مراد نه دې بلكه عام دې.

③ دنبي عليه السلام دا عمل جواز دپاره وو.

④ حديث قولى اقوى دې دحديث عملى څخه ،لهذا دې حديث ته به ترجيح حاصله وى.

⑤ د خطاب صیغه استعمالول عموما جائز نه دی خو د ابلیس دپاره جائز دی ،چې هغه وسوسه پیدا نه کړی. ⑥ دا د حضور ﷺ خصوصیت وو.

**قوله:** لَوْلَا دَعْوَةُ أَخِينَا سُلَيْمَانَ:

**دویم اشکال:** د حضرت سلیمان علیه السلام دعا د جناتو د تسلط دپاره وه د شیطان دپاره نه وه؟

**د دویم اشکال جواب:**- شیطان ئې وئیلی دی خو مراد جنات دی.څکه چې دواړه د اوور نه پیدا کړې شوی دی.دیو جنس کیدو په وجه ئې یو نوم سره ذکر کړل.

**قوله:** وِلْدَانُ أَهْلِ الْمَدِينَةِ:

**دمدینې څخه مراد:**- ابن الملك فرمائی چې په مونځ کښې خبرې کول حرامې دی او دا حکم په مکه مکرمه کښې راغلې وو، حالانکه حدیث کښې دمدینې منورې ذکر دې.نو د دې جوابدا دې چې دلته د مدینې نه اصطلاحی معنی مراد نه ده بلکه لغوی معنی بنار مراددې.

**۱۰۱۳-په مانځه کښې په اشارې سره د سلام جواب ورکولو حکم**

۱۰۱۳-()[۳۳] [۱]وَعَنْ نَافِعٍ قَالَ: إِنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ مَرَّ عَلَى رَجُلٍ وَهُوَ يُصَلِّي، [۲] فَسَلَّمَ عَلَيْهِ، فَرَدَّ الرَّجُلُ كَلَامًا، [۳] فَرَجَعَ إِلَيْهِ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، فَقَالَ لَهُ: [۴] إِذَا سُلِّمَ عَلَى أَحَدِكُمْ وَهُوَ يُصَلِّي، فَلَا يَتَكَلَّمْ، وَلْيُشِرْ بِيَدِهِ، رَوَاهُ مَالِكٌ.[1]

**ترجمه:** [۱] حضرت نافع فرمایي چې (یوه ورځ) عبدالله ابن عمر رضی الله عنهما د یو داسې سړي سره تیر شو چې هغه مونځ کولو[۲] حضرت عبدالله رضی الله عنه هغه سړي ته سلام وکړو نو هغه د سلام جواب په ژبې سره ورکړو[۳] نو عبدالله رضی الله عنه هغه ته راواپس شو ورته یې وفرمایل [۴] چې په تاسو کښې چا ته د لمانځه په حالت کې څوك سلام وکړي نو هغه ته په ژبې سره ویل نه دي پکار بلکه هغه ته پکار دي چې د سلام د جواب ورکولو د پاره په خپل لاس سره اشاره وکړي. (مالك.)

**تسهیلات:- قوله:** وَلْيُشِرْ بِيَدِهِ:

دا مسئله دَدې نه وړاندې حدیث نمبر ۹۱۹ په شرح کښې په تفصیل سره لیکلې شوې ده.

**د مذکوره حدیث څخه جواب:**- احناف وائی چه دا حکم په شروع کښې وو بیاموقوف شو.

**د تطبیق صورت:**- نوراماماں په لاس سره اشاره کولو اوس هم جائزمنی. دَ احنافو په نیزدا مکروه تنزیهی دی. یعنی خلاف اولی دی نو په دې صورت کښې اختلاف ختمیږی.

---

[1] اخرجه مالک فی الموطا کتاب قصر الصلاة فی السفر ، باب العمل فی جامع الصلاة (رقم- ۷۶)

# [۳۶/۲۰] بَابُ السَّهْوِ

## د سجده سهو بيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه تسعة أحاديث مشتملة على خمس مسائل:**

① وجوب سجدة السهود وقت التباس عدد الركعات: ۱، ۲، ۳، ۴، ۵.

② السجدة قبل السلام: ۲، ۵، ۶.

③ كون سجدة السهود بعد السلام: ۳، ۴، ۸.

④ السجدة بسبب ترك القعدة الأولى: ۵، ۷.

⑤ البناء على الأقل عند وجود الشك: ۲، ۹.

**دسهو لغوي معنى:-** ① سَهَا يَسهو نصر ينصر نه دي دَ هيريدلو په معنى كښې دي.

② **د سهو في الشئ اوسهو عن الشئ په مينځ كښې فرق:-** ابن اثير رحمه الله نهايه كښې ليكى د سهوې دوه قسمونه دي.

① "السهو في الشئ تاركه من غير علم" دا قسم سهو د نبى عليه السلام څخه په مانځه كښې ديرځل سهو شوې.

② "السهو عن الشئ تركه مع العلم" دا قسم سهو دَ حضورپاك ﷺ نه نه ده شوې ځكه چه دَهغې مذمت په قرآن كښې راغلي دي. ﴿الَّذِيْنَ هُمْ عَنْ صَلَاتِهِمْ سَاهُوْنَ﴾ [ماعون الايه:۵]

**د نبى عليه السلام څخه په اول قسم سهو كيدو كښې مصلحت:-** دَ رسول الله ﷺ نه رومبې سهو په تكوينى توګه اوشوه دي دَپاره چه دَ رسول الله ﷺ عمل دَامت دَپاره عملى نمونه جوړشي. شرعى اخبار اوشرعى احكام بيانولو كښې دَ حضورپاك ﷺ په اقوالو كښې هيڅ سهو نه ده شوې. اودَ حضورپاك ﷺ په افعالو كښې به سهو كيدله په هغې كښې حكمت وو دي دَپاره چه دَامت خلق دَ سهو مسائل زده كړي.

**په مانځه كښې د فرض پاتې كيدو حكم:-** دَ مانځه په فرائضو كښې يوڅيز سهواً يا عمداً پاتې شى نومونځ فاسد كيږى دَ كوم چه هيڅ تدارك نشته بلكه مونځ واپس كول او راګرځول فرض كيږى. كه دَ مانځه په واجباتو كښې مونځ ګذار يوواجب عمداً يا قصداً ترك كړو نودَدي هم څه علاج نشته دي مونځ به دوباره كول او راګرځول واجب كيږى.

**په مانځه كښې د واجب پاتې كيدو حكم:-** كه چرې واجب سهواً پاتې شى يا فرض كښې وړاندې والي روستووالي اوشى نو په دغه صورت كښې سجده سهو دَدې علاج دي چه دَ قعده آخيرې دَ سلام نه پس دې دوه سجدې اوكړى اوبيا دې دَ سر نه تشهد اووائى او سلام

دي اوګرخوی دي ته سجده سهو وائي.

**په مانځه کښې د سنت یا مستحب پاتې کیدو حکم:** -دَ مانځه سنن اومستحبات که چرته پاتې شي نو په دې سره مونځ نه فاسد کیږي بلکه مونځ صحیح پاتې کیږي البته دَ دغه سنت یا مستحب عمل ثواب نه ملاویږي.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**۱۰۱۴- درکعتونو د تعداد د هیریدو په صورت کښې د سجده سهو حکم**

۱۰۱۴-()[۱] ۱ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ ۲ إِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا قَامَ يُصَلِّي ۳ جَاءَهُ الشَّيْطَانُ فَلَبَسَ عَلَيْهِ ۴ حَتَّى لَا يَدْرِي كَمْ صَلَّى؟ ۵ فَإِذَا وَجَدَ ذٰلِكَ أَحَدُكُمْ ۶ فَلْيَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوهریره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ هر کله چې په تاسو کې څوك د لمانځه د پاره ودریږي ۳ نو هغه ته شیطان راځي او هغه په شك شبهه کې مبتلا کوي ۴ تر دې چې هغه مونځ کونکي ته دا هم یاد نه پاتې کیږي چې هغه څو رکعاتونه کړي دي ۵ که په تاسو کې چا ته دا صورت پیښ شي ۶ نو هغه ته پکار دي (چې هغه په آخري قعده کې) په ناسته دوه سجدې وکړي. (بخاري، مسلم.)

**تسهیلات:** - **قوله:** حَتّٰى لَا يَدْرِي كَمْ صَلّٰى؟:

**په مانځه کښې د شک په مسئله کښې د احادیثو څلور قسمونه:** -په مونځ کښې چه کوم سړی ته دَ رکعتونو په شمیرکښې شك پیدا شي نوهغه به څه کوي؟ دې باره کښې په څلور قسمه احادیث په مختلف انداز راغلی دی.د کوم په وجه چې د فقهاؤ په مینځ کښې اختلاف پیدا شوې دې.هغه احادیث دا دی.

① **د بناء علی الاقل حکم:** -دَ اول قسم احادیث هغه دی په کوم کښې چه بناء علی الاقل حکم دې مثلاً که چرته شك په دوو رکعتو یا دریو رکعتوکښې اوشی نو دوه شمیرکړئی اوکه په څلورو اودریو رکعتوکښې تردد وی نودرې شمیرئی. دَ فصل اول په دویم حدیث کښې هم دغه حکم ذکردې اودَ دې باب آخری حدیث نمبر ۹ کښې هم دغه حکم ذکردې.

② **په غالب ګمان د عمل کولو حکم:** -دویم قسم دَ هغه احادیثو دې په کوم کښې چه دا بیان کړې شوی دی چه دَ شك په صورت کښې "تَحَرِّيْ" سوچ اوفکر کولوسره غالب ګمان او

[۱] اخرجه البخاری کتاب الجمعة / باب السهو فی الفرض والتطوع (رقم- ۱۲۳۲)ومسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة/ باب السهو فی الصلاة والسجود له (رقم) ۸۲ - (۳۸۹) وابوداود کتاب الصلاة،باب من قال: یتم علی أکبر ظنه (رقم- ۱۰۳۰) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فیمن یشک فی الزیادة والنقصان (رقم- ۳۹۶)والنسائی کتاب السهو/باب التحری (رقم-۱۲۵۲) ومالک فی الموطا کتاب السهو/باب العمل فی السهو (رقم-۱)

راجح طرف باندې عمل اوکړی لکه څنګه چه دَدې باب فصل اول د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه حديث نمبر ٣ کښې دی چه ((واذاشك احدکم في الصلوٰة فليتحر الصواب)).

③ **د سر څخه د مونځ شروع کولو حکم:-** دريم قسم دَ هغه احاديثودې په کوم کښې چه داحکم ذکردې چه دَ شك په صورت کښې دَ نوی سرنه مونځ کول پکاردی. دا قسم روايت طبرانی کښې موجود دې. الفاظ دا دی: ((عن عبادة ابن الصامت ان رسول الله صلى الله عليه وسلم سئل عن رجل سها في صلوته فلم يدركم صلى فقال ليعد صلوته)) (بحواله اعلاء السنن)

④ **اجمالی احاديث:-** څلورم قسم هغه روايات دی کوم چه مجمل دی په هغې کښې څه تفصيل نشته صرف دومره بيان دې چه دَ سهو په صورت کښې سجده سهو اوکړئ.

**دشك په صورت کښې د مونځ په پوره کولو کښې مذاهب:-**

دَدې مختلف رواياتو په رڼاکښې فقهاء کرامو په خپل فقهی نظر سره په يو نه يو حديث باندې دَ عمل کولوفتوىٰ ورکړې ده.

① امام شعبی رحمه الله او اوزاعی شام رحمه الله فتوىٰ ورکړې ده چه دَ شك په صورت کښې په هرحال کښې مونځ راګرځول ضروری دی. هغوی په دريم قسم رواياتوباندې عمل کړې دې.

② حضرت حسن بصری رحمه الله او بعضې سلف په څلورم قسم مجمل اومبهم رواياتو باندې فتوىٰ ورکړې ده چه په هرحالت کښې دې سجده سهو اوکړی هم دغه کافی دی که دَ رکعتونو په شمير کښې شك وی يانور هم څه وی صرف سجده سهودې اوکړی.

③ امام شافعی رحمه الله امام مالك رحمه الله امام احمدبن حنبل رحمه الله په اصولی توګه باندې فتوىٰ ورکړې ده چه بناء علی الاقل دې اوکړی شك دې پريږدی او په يقين دې عمل اوکړی. دې حضراتو په اول قسم رواياتو باندې عمل کړې دې. دغه پورتنو فقهاؤ کرامو دَ يوقسم احاديث اخستی دی او باقی ئې ترك کړی دی.

④ امام ابوحنيفه رحمه الله او ائمه احناف په دغه ټولو روايتونو باندې عمل کولو يوعجيبه صورت خودلې دې. هغوی فرمائی چه دا روايات دَ مختلفو اشخاصو په حالاتو باندې محمول دی.

**د رواياتو په مينځ کښې تطبيق:-** ① مثلاً که دَ يوسړی عادت دا وی چه هغه نه هروخت هيره کيږی اوهروخت ئې شك وی نوداسې سړې دې تحری او سوچ اوفکر کوی اودَ صحيح صورت معلومولو کوشش دې کوی دَ تحری والا روايات هم په داسې سړی باندې محمول دی. دې دې په غالب ګمان باندې عمل کوی

② که يوسړی ته شك نه وی شوې او په اول ځل ورته شك راپيداشو نودا سړې دې استيناف اوکړی يعنی اولنې مونځ دې مات کړی پريږدې دی اودَ نوی سر نه دې مونځ اوکړی دَ استيناف روايات هم په دې باندې محمول دی.

④ که دَ شك صورت داسې دې چه برابر دې دَ راجح طرف فیصله نه شی کیدې نو په داسې صورت کښې دې بناء علی الاقل باندې عمل اوکړی او مجمل روایات دې هم په دې دریو صورتونو باندې حمل کړی. دغه شان به په روایاتو باندې عمل اوشی. فلله در ابی حنیفة ما ادق نظره والطف فکره.

## ۱۰۱۵–دَ مانځه ختمولو څخه قبل سجده سهوه کول

۱۰۱۵–(۱)[۲] ①وَعَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②"إِذَا شَكَّ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاتِهِ فَلَمْ يَدْرِ كَمْ صَلَّى ثَلَاثًا أَوْ أَرْبَعًا؟ ③فَلْيَطْرَحِ الشَّكَّ، وَلْيَبْنِ عَلَى مَا اسْتَيْقَنَ، ④ثُمَّ يَسْجُدُ سَجْدَتَيْنِ قَبْلَ أَنْ يُسَلِّمَ، ⑤فَإِنْ كَانَ صَلَّى خَمْسًا شَفَعْنَ لَهُ صَلَاتَهُ، ⑥وَإِنْ كَانَ صَلَّى إِتْمَامًا لِأَرْبَعٍ ⑦كَانَتَا تَرْغِيمًا لِلشَّيْطَانِ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ، ⑧وَرَوَاهُ مَالِكٌ عَنْ عَطَاءٍ مُرْسَلًا، ⑨وَفِي رِوَايَتِهِ: "شَفَعَهَا بِهَاتَيْنِ السَّجْدَتَيْنِ".

**ترجمه:** ① عطاء ابن یسار د حضرت ابو سعید خدري رضی الله عنه څخه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل② هر کله چې په تاسو کې څوك د لمانځه په مینځ کې په شك کې مبتلا شي او هغه ته یاد نوي چې هغه دري رکعاته کړي دي یا څلور③ نو هغه ته پکار دي چې خپل شك لرې کړي وو په کوم عدد چې د هغه یقین وي نو په هغې دې بناء اوکړي (یعني په هغه کې دې د یو عدد تعین وکړي او خپل مونځ دې پوره کړي)④ او د سلام گرځولو څخه مخکې دې دوه سجدې وکړي⑤ که چرته مونځ کونکي پنځه رکعته کړي وي نو بیا به دغه پنځه رکعتونه د دې دوو سجدو په ذریعه جفت مونځ شي⑥ او که چرته هغه څلور رکعاته کړي وي⑦ نو بیا به دوه سجدې د شیطان د ذلت وجه جوړه شي، مسلم،⑧ او امام مالك دا روایت د عطاء څخه په طریق ارسال نقل کړي دي⑨ هم د دغه امام مالك په یو روایت کښې دي چې مونځ کونکي به د دې دوو سجدو په ذریعه به پنځه رکعتونه جفت کړي.

**حل اللغات:**- ① فَلَمْ يَدْرِ: پته ورته نه وی، یاد ورته نه وی. ② فَلْيَطْرَحِ: لرې دې کړی، اودې غورځوی. ③ شَفَعْنَ: جوړه جوړه به شی، جفت به شی. ④ تَرْغِيمًا: أَيْ: إِذْلَالًا لِلشَّيْطَانِ: دشیطان د ذلت سبب به جوړشی (دا دوه سجدې).

**تسهیلات:**- قوله: فَلْيَطْرَحِ الشَّكَّ:

**په اقل باندې بناء کول:**– یعنی په کوم کښې چه دَ هغه شك دې هغه دَ شك والا صورت دې کالعدم اوگڼړی اودَ یقین والا صورت دې

خپل کړی. مثلاً هم په دې حدیث کښې دري اوڅلورو کښې شك شو نو مشکوك صورت دَڅلورو دې او یقیني صورت دَ دریو رکعتودې نومونځ گذار لـه پکاردی چه څلور پریږدی

[1]) اخرجه مسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة/ باب السهو فی الصلاة والسجود له (رقم) ۸۸ - (۵۷۱) ومالک فی الموطا کتاب الصلاة/باب إتمام المصلی ما ذکر إذا شک فی صلاته (رقم-۶۲)

اودرې باندې فیصله اوکړی اوبیا دَ سلام ګرځولونه وړاندې دوه سجدې اوکړی.

**قوله:** فَإِنْ كَانَ صَلَّى خَمْسًا شَفَعْنَ لَهُ صَلَاتَهُ:

**دشفعن له جملې مطلب:-**

دا فـاء دَ تفریـع او تفـصیل دَپـاره ده پـه دې سـره دَحـدیث دَسـابقه ضـابطه تفـصیل بیـانول مقصودی دی. دَتفصیل خلاصه داده که چرې مونځ ګذار پـه واقـع کـښې څلور رکعتـه کړې وو او اوس دَ اضافه رکعت سره دَهغـه رکعتونـه پنځـه شـو نودَسجده سـهو دا دوه سـجدې دَ یور کعت قائمقام کیدوسره شپږ رکعته جوړشی. نو دَ" شفعن لـه صـلوته" چـه کومـه جملـه ده دَهغې هم دغه مطلب دې چه دوو سجدودَدغه سړی طاق مـونځ جفـت جـوړ کړو یعنی پنځـه رکعتـه ئی شپږ کړل.

**قوله:** وَإِنْ كَانَ صَلَّى إِتْمَامًا لِأَرْبَعٍ:

**دوه اضافی سجدې د شیطان رسوائی:-** یعنـی کـه فـی الواقـع درې رکعتـه ئـی کړی وو او اوس دَ یو رکعت پـه اضـافه کولوسره څلوررکعتـه جوړشـو نـو اوس دوو سـجدې دَ یورکعت قائمقـام جوړولـو ضـرورت پـاتې نـه شـولهذا دوه سـجدې دَ شـیطان دَ ذلیـل اوخوارولودَپـاره شوې ځکه چه شیطان مونځ ګذار پـه شك کـښې اچولې وو دې دَپاره چه دَهغه مونځ کـم کړې شـی لـیکن مـونځ ګـذار دَ دوو سجدو اضـافه کولوسـرد دَ شـیطان پـه غوړونـو او خلـه کـښې مالوچ وراوټونبل. الحمد لله علی ذلك.

**قوله:** قَبْلَ أَنْ يُسَلِّمَ:

**د سجده قبل السلام مستدل:-** دَدې روایت نه په واضحه توګه معلومیږی چه سجده سهو دَ سلام نه وړاندې ده. هم په دې وجه دَ فقهاؤ په دې مسئله کـښې اخـتلاف پـیدا شـوې دې چې سجده سهودَ سلام نه وړاندې ده که روستو. خودا اختلاف دَجـواز اوعـدم جـواز نـه دې بلکـه دَ افضل اوغیرافضل دې.

**د سجده سهو په قبل السلام او بعد السلام کښې مذاهب:-**

دې مسئله کښې اختلاف دې چه سجده سهوه دسلام نه مخکښې کول پکاردی اوکه روستو؟

① د امام شافعی رحمه الله په نزسجده سهوه مطلقا قبل السلام ده.

② د امام مالك رحمه الله په نزد دا تفصیل دې که سجده سهو په مونځ کښې د څه نقصان په وجې واجب شوې وی نو سجده سجده به قبل السلام وی او که د څه زیاتې دوجې نه واجب شوې وی نو بعد السلام به وی،ددوی مسلك یاد ساتلو دپاره داسې تعبیر کیږی چه (( القاف والدال بالدال)) یعنی القبل بالنقصان والبعد بالزیادة.

③ دامام احمد رحمه الله مسلك دادې چه د حضور نبی کریم ﷺ نه دسجد سهو کومو صورتونو کښې دسجود سهو قبل السلام ثابت دې،هلته به په قبل السلام عمل کیږی. او

چه کوم ځائې د حضور نبی کریم ﷺ نه بعدالسلام ثابت دي په هغه صورتونو کښې به بعد السلام باندې عمل کیږی لکه دڅلورو رکعتونو والا په مونځ کښې په دوه رکعتونو سلام ګرځولو په صورت کښې کما فی حدیث ذی الیدین.[1] او چه په کومو صورتونو کښې د حضور نبی کریم ﷺ نه هیڅ ثابت نه دی.هلته دامام شافعی رحمه الله دمسلك مطابق قبل السلام به سجده وی.دامام اسحاق مسلك هم دغه دې.البته کومو صورتونو کښې چه د حضور نبی کریم ﷺ نه هیڅ ثابت نه وی هلته هغه دامام مالك دمسلك مطابق (( القاف بالقاف والدال باالدال )) باندې عمل کوی،بهر حال آئمه ثلاثه د څه نه څه صورت کښې د سجده سهو قبل السلام قائل دی.

② د احنافو په نزد سجده مطلقا دسلام نه پس

او حضرت امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله په هرصورت کښې بعد السلام باندې عمل کوی او دلته دې دا په ذهن کښې وی چه د نبی کریم ﷺ نه قبل السلام اوبعد السلام دواړه طریقې ثابتې دی او دا اختلاف صرف د افضلیت او عدم افضلیت دې.

**داول فریق دلیل:-** دآئمه ثلاثه استدلال دحضرت عبدالله ابن بحینه حدیث دباب دی چه دې کښې د حضور نبی کریم ﷺ دقعده اولی په پاتې کیدو په وجې قبل السلام سجده کړې وه.ددې په خلاف د احنافو دلائل لاندې لیك دی.

**داول فریق د دلیل جواب:-** داحدیث په بیان دجواز محمول دې اوداهم کیدې شی چه دې د قبل السلام نه مراد هغه سلام وی چه کوم دسجده سهو نه روستو دتشهد لوستلو په اخر کښې کیږی.

① په ترمذی (( باب ما جاء فی سجدة السهو بعد السلام والکلام )) کښې دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دا حدیث مذکور دې (( أن النبی ﷺ صلی الظهر خمسا فقیل له ازید فی الصلوة أم نسیت فسجد سجدتین بعدما سلم،قال ابو موسی هذا حدیث حسن صحیح )).

② د ترمذی نه سوا په ټولو صحاح سته ([2]) کښې د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه مرفوع روایت دې چه (( وإذا شك أحدکم فی صلوته فلیتحر الصواب فلیتم علیه ثم یسلم یسجد سجدتین،اللفظ للبخاری))

③ په ([3]) ابوداؤد اوبه ([4]) ابن ماجه کښې دحضرت ثوبان رضی الله عنه نه مرفوع روایت دې چه ((

[1]) جامع ترمذی (ج/ ۱، ص/ ۷۸ ) باب ماجاء فی الرجل یسلم فی الرکعتین من الظهر والعصر)-

[2]) انظرصحیح البخاری (ج/ ۱ ، ص/ ۵۷، ۵۸ ) کتاب الصلوة باب التوجه نحو القبلة حیث کان والصحیح لمسلم (ج/ ۱ ، ص/ ۲۱۱، ۲۱۲ ) باب السهو فی الصلوة والسجود له والسنن للنسائی (ج/ ۱ ، ص/ ۱۸٤ ) کتاب السهو باب التحری والسنن لابی داود (ج/ ۱ ، ص/ ۱٤٦ ) باب اذا صلی خمسا والسنن ابن ماجه ( ص/ ۸۵ ) باب ماجاء فیمن یسجد هما بعد السلام ، رشید اشرف عفی عنه)-

[3]) ( ص/ ۱٤۸، ۱٤۹ ) باب من نسی ان یتشهد وهو جالس )-

[4]) ( ص/ ۸۵ ) باب ماجاء فیمن سجد هما بعد السلام)-

لكل سهو سجدتان بعدمايسلم )) په دې دا اعتراض کیږی چه دحدیث مدار په اسماعیل بن عیاش دې چه ضعیف دې،ددې جواب دادې چه اسماعیل بن عیاش په حفاظو د شام کښې دې او ددوی باره کښې داقول فیصل دې چه ددوی روایات د اهل شام نه مقبول دې دغیر اهل شام نه.اودا حدیث مبارك ددوی دعبدالله بن عبیدالله الکلاعی نه روایت کړې دې چه اهل شام نه دې،په دې وجې دا حدیث مبارك مقبول دې.

④ په ([1]) نسائی او په ([2]) ابوداود کښې دحضرت عبدالله بن جعفر رضی الله عنه دا روایت مروی دې چه (( قال قال رسول الله ﷺ من شك فى صلوته فليسجد سجدتين بعد ما يسلم ))

⑤ په ترمذی باب ماجاء فى الامام ينهض فى الركعتين ناسيا کښې د حضرت شعبی رضی الله عنه روایت ذکرشوې دې چه (( قال صلى بنا المغيرة بن شعبة فنهض فى الركعتين فسبح به القوم وسبح فلما قضى صلوته سلم ثم سجد سجدة السهو و هو جالس ثم حدثهم أن رسول الله فعل بهم مثل الذى فعل.....)) چه دې روایت کښې هم دسجد سهو بعد السلام تصریح ده.

⑥ دحضرت ذواليدين رضی الله عنه ([3]) په واقعه کښې هم د حضور نبی کریم ﷺ عمل د سجده سهو بعد السلام خودلې شوې دې.لکه دې واقعه کښې دا الفاظ مروی دی چه (( فصلى اثنتين اخريين ثم سلم ثم كبر فسجد الخ ))

**د څلورم فریق د مذهب وجه ترجیح:-** داحنافو په دې احادیثو کښې قولی احادیث هم شته دې.او فعلی احادیث هم.ددې په خلاف آئمه ثلاثه سره صرف فعلی احادیث دی چه کوم په جواز محمول دی.په دې وجې داحنافو دلائل به راجح وی.

**۱۰۲۲- د ماسپخین په مانځه کښې د رسول الله سهوه کیدل**

۱۰۲۲-([4])[۳] ⓵ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - صَلَّى الظُّهْرَ خَمْسًا، ⓶ فَقِيلَ لَهُ: أَزِيدَ فِي الصَّلَاةِ؟ ⓷ فَقَالَ: "وَمَا ذَاكَ؟" قَالُوا: صَلَّيْتَ خَمْسًا، ⓸ فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ بَعْدَمَا سَلَّمَ. ⓹ وَفِي رِوَايَةٍ، قَالَ: "إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ، ⓺ أَنْسَى كَمَا تَنْسَوْنَ، ⓻ فَإِذَا نَسِيتُ فَذَكِّرُونِي، ⓼ وَإِذَا شَكَّ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاتِهِ فَلْيَتَحَرَّ الصَّوَابَ، ⓽ فَلْيُتِمَّ عَلَيْهِ، ⓾ ثُمَّ لِيُسَلِّمْ، ثُمَّ يَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ⓵ عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه فرمایي چې (یوه ورځ) رسول الله ﷺ دماسپخین مونځ پنځه رکعاته وکړو ⓶ د حضور ﷺ نه پوښتنه وشوه چه آیا په لمانځه کې څه

[1]) (ج/ ۱ ، ص/ ۱۸۵ ) باب التحرى كتاب السهو)-
[2]) (ج/ ۱ ، ص/ ۱٤۸ ) باب من قال بعد التسليم )-
[3]) ترمذی (ج/ ۱ ، ص/ ۷۸ ) باب ماجاء فىالرجل يسلم فى الركعتين من الظهر والعصر )-
[4]) اخرجه البخاري كتاب الصلاة/ باب التوجه نحو القبلة حيث كان (رقم-٤٠١) ومسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة/ باب السهو فى الصلاة والسجود له (رقم) ۹۱ - (۵۷۲) وابوداود فى كتاب الصلاة/باب إذا صلى خمسا (رقم-۱۰۲۲)والنسائی كتاب السهو/باب ما يفعل من صلى خمسا (رقم-۱۲۵٤) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب السهو فى الصلاة (رقم-۱۲۰۳)

زیاتي شوي دي؟ [۳] حضور ﷺ پوښتنه وکړه څه وشو؟ صحابه کرامو ﷺ عرض وکړو چې تا ﷺ پنځه رکعاته وکړل[۴] (دي اوريدوسره) رسول الله ﷺ د سلام ګرځولو څخه وروسته دوه سجدې وکړي[۵] او په يو بل روايت کې دا الفاظ هم دي چې حضور ﷺ وفرمايل زه هم انسان يم[۶] څنګه چې ستاسو څخه هيره کيږي دغسې زما څخه هم هيره کيږي[۷] هر کله چې زما څخه هيره وشي نو ماته يادوي[۸] او هر کله چې په تاسو کې چاته په لمانځه کې شك شي نو هغه ته پکار دي چې هغه صحيح رايه قائمه کړي[۹] او د هغه رايي په بنياد دي مونځ پوره کړي[۱۰] بيا دې د سلام اوګرځوي او دوه سجدې دي وکړي.(بخاري، مسلم.)

**حل اللغات**:- ① بَشَرٌ: انسان، ② أَنْسَى: زمانه هيريږي. ③ فَلْيَتَحَرَّ: أَيْ: فَلْيَطْلُبْ بِغَلَبَةِ ظَنِّهِ وَاجْتِهَادِهِ: يعنى په خپل غالب ګمان او کوشش سره دې طلب اوکړي. ④ الصَّوَابَ: صحيح رائې.

**تسهيلات**:-

**قوله**: صَلَّى الظُّهْرَ خَمْسًا:

**پنځم رکعت ته د پورته کيدو دوه صورتونه**:-

① چې څلورم رکعت باندې ئې ترتشهده پورې آخرى قعده کړى وى اوبيا پنځم رکعت ته اودريږى.

② چې څلورم رکعت باندې ئې آخرى قعده نه وى کړى اوبيا پنځم رکعت ته اودريږى.

**په دويم صورت کښې مذاهب**:-

① په دويم صورت کښې شوافع حضرات فرمائى چې سجده سهو کافى ده که قعده آخيره ئى کړې وى اوکه نه ئى وى کړې سجده سهوَ هرصورت دَپاره کافى اوشافى ده.

② داحنافو په نيز په دويم صورت کښې ترکومې پورې چه هغه رکعت رکوع اوسجدې سره نه دې ملاؤ کړې هغه دې واپس راشى اوسجده سهودې اوکړى سلام دې اوګرځوى مونځ به ئى صحيح شى. ليکن که رکعت ئى سجدې سره ملاؤ کړو نواوس داسې کيناستو سره سلام نه شى ګرځولې بلکه يو رکعت دې ورسره بل يوځائى کړى اوشپږ رکعته دې پوره کړى اوس په فرضوکښې نفل داخلولوسره فرض باطل شو اودا شپږ رکعته نفل شو فرض مونځ دې بيا اوکړى. اوکه چرې دا صورت دَمابنام په مونځ کښې پيښ شو نوهلته دې صرف يورکعت نور اوکړى په څلورو نفلودې سلام اوګرځوى فرض دې بيا اوکړى.دغه شان صورت کښې دَ سحر يا مازيګرپه مونځ کښې پيښ شى نو په هغې کښې دې هم دوه رکعته نور زياتى ملاؤ کړى ټول رکعتونه به نفل جوړشى.

**اشکال**:- دَ مازيګر اوسحر نه پس خونفل جائز نه دى دلته څنګه جائز شو؟

**داشکال جواب**:- تراوسه پورې خوئى لافرض مونځ پوره شوې نه دې لهذا دا نفل

بعد الفرض نه دی بلکه قبل الفرض دی.

**داول فريق دليل:** -زير بحث حديث كښې دَ قعده آخيره پاتې كيدو اونه پاتې كيدو څه ذكرنشته دې لهذا دَدې تفصيل ضرورت نشته دې بلكه په هرصورت كښې دې سجده سهو اوكړى دَمونځ دَ صحيح كيدودَپاره كافى دى.

**داول فريق د دليل جواب:** احناف فرمائى چه په دې حديث كښې صلى الظهر الفاظ دى دَدې نه اندازه كيږى چه دا هغه صورت وو چه په قعده آخيره كښې حضورپاك ﷺ ناست وو اوبيا دَ پنځم ركعت دَپاره اودريدلې وو ځكه چه دَ صلى الظهر دَظاهرى الفاظو مطلب هم دغه دې چه دَماسپښين مونځ ئى مكمل كړې وو په داسې صورت كښې صرف سجده سهو كافى كيږى كه چرته دَ قعده آخيرې پاتې كيدو صورت وې نوفرض مونځ به دوباره راګرځولې شو. دا د اول فريق د دليل جواب هم دې او د دويم فريق دليل هم شو.

**قوله:** بَعْدَمَا سَلَّمَ:

**ددويم فريق دليل:** - يعنى دَ دوو سلامونوګرځولونه پس حضورپاك ﷺ دوه سجدې اوكړې دادَ احنافو دليل دې چه سجده پس دَ سلام نه ده. هم په دې حديث كښې دويم روايت بيانولوسره صاحب مشكوة "ثم سلم ثم سجد سجدتين" الفاظوسره هم سجده پس دَسلام نه ثابته كړې ده كوم چهَ احنافو مسلك دې.

**نوټ:** - د اختلاف اودلائلو تفصيل مخكښې تيرشوې دې اودَ كلام فى الصلوة مسئله هم راروانه ده.

**دامام او مقتدى د سجده سهوپه طريقه كښې فرق:** - ① كه چرې امام وى نوصرف ښى طرف ته دې سلام اوګرځوى ځكه چه دواړوطرفوته سلام ګرځولوسره به په مسبوقين كښې انتشار پيداشى هغوى به پاسى باقى مونځ به شروع كړى

② كه ځان له مونځ ګذار سجده سهوكوى نوراجح هم دادى چه دواړوطرفوته سلام ګرځولو سره دې بيا سجده اوكړى اوبيا دې التحيات اووائى سلام دې اوګرځوى.

**١٠١٧- دذواليدين واقعه**

١٠١٧-(١)[٣] ١ وَعَنِ ابْنِ سِيرِينَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: ٢ «صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِحْدَى صَلَاتَيِ الْعَشِيِّ. ٣ قَالَ ابْنُ سِيرِينَ: قَدْ سَمَّاهَا أَبُو هُرَيْرَةَ، وَلَكِنْ نَسِيتُ أَنَا - ٤ قَالَ: فَصَلَّى بِنَا رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ سَلَّمَ، ٥ فَقَامَ إِلَى خَشَبَةٍ مَعْرُوضَةٍ فِي الْمَسْجِدِ، ٦ فَاتَّكَأَ عَلَيْهَا كَأَنَّهُ غَضْبَانُ، ٧ وَوَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى الْيُسْرَى ٨ وَشَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ، ٩ وَوَضَعَ خَدَّهُ الْأَيْمَنَ عَلَى ظَهْرِ كَفِّهِ الْيُسْرَى،

[1] اخرجه البخارى كتاب الصلاة/ باب تشبيک الأصابع فى المسجد وغيره (رقم- ٤٨٢) ومسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة/ باب السهو فى الصلاة والسجود له (رقم) ٩٧ - (٥٧٣) والنسائى كتاب السهو/باب ما يفعل من سلم من ركعتين ناسيا وتكلم (رقم-١٢٢٤)

**ترجمه:** ۱ او ابن(۱) سیرین رحمه الله د حضرت ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت کوي ۲ چې (یوه ورځ) رسول الله ﷺ د ماسپښین یا د مازیګر مونځ مونږ ته راکړو ۳ ابن سیرین رحمه الله وائي چې د هغې نوم ابوهریره رضي الله عنه ښودلي وو خو زما څخه هیر شو ۴ ابوهریره رضي الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ زمونږ سره دوه رکعاته مونځ وکړلو او (د دریم رکعت د پاره دودریدو په ځاي) یې سلام وګرځولو ۵ بیا د هغه لرګي په سهاره (ډډه) چې په مسجد کې عرضاً ولاړ وو ودریدلو ۶ او (داسې محسوسیده) لکه چې حضور ﷺ د غصې په حالت کې دي ۷ حضور ﷺ خپل ښي لاس په خپل ګس لاس کېښودلو ۸ او په ګوتو کې ئې ګوتې ورکړلې ۹ او خپل ګس رخسار مبارك یې د خپل ګس لاس په شا کېښودلو، تلواري کونکي خلق (چې د لمانځه د ادائیګي څخه وروسته د ذکر او دعا د پاره نه پاتې کیدل)

**حل اللغات:** - ① الْعَشِيِّ: مِنْ حِينِ تَزُولُ الشَّمْسُ إِلَى أَنْ تَغِيبَ: د نمر د زوال نه تر نمر پریوتلو پورې وخت ته وائي. ② خَشَبَةٍ: الْعُودَ: لرګې، ③ مَعْرُوضَةٍ: أَيْ: مَطْرُوحَةٍ وَمَوْضُوعَةٍ بِالْعَرْضِ: چه په پلنو پروت وو. ④ خَدَّهُ: رخسار مبارك،

۱ وَخَرَجَتْ سَرَعَانُ الْقَوْمِ مِنْ أَبْوَابِ الْمَسْجِدِ، ۲ فَقَالُوا: قَصُرَتِ الصَّلَاةُ؟! ۳ وَفِي الْقَوْمِ أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، فَهَابَاهُ أَنْ يُكَلِّمَاهُ، ۴ وَفِي الْقَوْمِ رَجُلٌ فِي يَدَيْهِ طُولٌ، يُقَالُ لَهُ: ذُو الْيَدَيْنِ، ۵ قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنَسِيتَ أَمْ قَصُرَتِ الصَّلَاةُ؟ ۶ فَقَالَ: "لَمْ أَنْسَ وَلَمْ تُقْصَرْ"، ۷ فَقَالَ: أَكَمَا يَقُولُ ذُو الْيَدَيْنِ؟"

**ترجمه:** ۱ د مسجد په دروازو ووتل ۲ صحابه ؤ رضي الله عنهم اوویل آیا په لمانځه کمي شوې ده؟ (چې رسول الله ﷺ د څلور رکعاته په ځاي دوه رکعاته وکړه؟) ۳ د صحابه ؤ رضي الله عنهم په مینځ کې (کوم چې په مسجد کې باقي پاتې شوي وو) حضرت ابوبکر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه هم موجود وو خو د خوف د وجهې هغوئ ته د حضور ﷺ سره د کلام کولو جرات ونه شو ۴ په صحابه ؤ رضي الله عنهم کې یو بل سړي (هم) وو چې د هغه لاسونه اوږده وو او په دي وجه ذوالیدین (یعني د اوږدو لاسونو په لقب سره) بلل کیدو ۵ هغه رسول الله ﷺ ته عرض وکړو چې یا رسول الله ﷺ آیا ستا ﷺ څخه هیره وشوه یا په لمانځه کې کمي شوې دي؟ ۶ رسول الله ﷺ وفرمایل چې نه زما څخه هیره شوې ده ۷ او نه په لمانځه کښې کمي راغلي دي بیا (صحابه رضي الله عنهم مخاطب کولو سره) یې وفرمایل آیا تاسو هم داسې وایئ څنګه چې ذوالیدین وایي؟

**حل اللغات:** - ⑤ سَرَعَانُ: د سَرِيع جمع ده، جلتی کونکی، ⑥ فَهَابَاهُ: أَيْ: عَظَّمَاهُ: یعنی دواړه د نبی کریم نه ویریدل.

---

(۱) نوم یې محمد او کنیت یې ابوبکر دي د انس بن مالك رضي الله عنه آزاد کړه غلام وو د ده دیرش بچیان وو چې د هغه په ژوند کې وفات شوي یوازې یو زوي عبدالله بن محمد بن سرین ژوندي وو د ۷۷ کالو عمر کې سنه ۱۱۰ هـ کې وفات شو.

۱ فَقَالُوا: نَعَمْ فَتَقَدَّمَ فَصَلَّى مَا تَرَكَ، ۲ ثُمَّ سَلَّمَ، ثُمَّ كَبَّرَ وَسَجَدَ مِثْلَ سُجُودِهِ أَوْ أَطْوَلَ، ۳ ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ وَكَبَّرَ، ثُمَّ كَبَّرَ وَسَجَدَ مِثْلَ سُجُودِهِ أَوْ أَطْوَلَ، ۴ ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ وَكَبَّرَ، ۵ فَرُبَّمَا سَأَلُوهُ، ثُمَّ سَلَّمَ، ۶ فَيَقُولُ: نُبِّئْتُ أَنَّ عِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ قَالَ: ثُمَّ سَلَّمَ، ۷ مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ، وَلَفْظُهُ لِلْبُخَارِيِّ، ۸ وَفِي أُخْرَى لَهُمَا: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَدَلَ "لَمْ أَنْسَ" "وَلَمْ تُقْصَرْ: ۹ كُلُّ ذَلِكَ لَمْ يَكُنْ، ۱۰ فَقَالَ: قَدْ كَانَ بَعْضُ ذَلِكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ!.»

**ترجمه**: ۱ صحابه و ﷺ عرض وکړو چې هم دغسې ده ذواليدين صحيح خبره کوي (د دې اوريدو سره) رسول الله ﷺ مخکې شو او کوم مونځ (يعني دوه رکعاته) چې پاتې شوي وو هغه يې وکړل ۲ او سلام ګرځولو سره يې تکبير اويلو او حسب معمول د سجدو په شان يا د هغه څخه هم څه طويل (اوږده) سجده يې وکړله ۳ بيا تکبير ويلو سره يې سر مبارك اوچت کړي ۴ اوبيا ئې تکبير اووئيل اوسجده ئې اوکړه د خپلې (مانځه د) سجدې پشان يا د هغې څخه اوږده ۵ خلقو ابن سيرين څخه پوښتنه وکړه چه بيا د دې څخه وروسته رسول الله ﷺ په سلام ګرځول وي؟ ۶ نو هغه اوويل ماته د عمران بن حصين ﷺ څخه دا خبر رارسيدلي دي چې هغه ويل بيا رسول الله ﷺ سلام وګرځولو ۷ دا روايت بخاري او مسلم نقل کړي دي خو الفاظ د بخاري دي، ۸ او د بخاري او مسلم په يو بل روايت کې دا دي چې رسول الله ﷺ د ذواليدين په جواب کې لَمْ أَنْسَ وَلَمْ تُقْصَرْ (يعني نه زما څخه هيره شوې ده او نه په لمانځه کې کمي شوې ده) په ځاي يې دا وفرمايل ۹ چې څه تاسو وايئ په دې کې هيڅ هم نه دي شوي ۱۰ هغه عرض وکړو يا رسول الله ﷺ په دې کې څه څو ضرور شوي دي.

**حل اللغات**: - ۶ نُبِّئْتُ: خبر رارسيدلي دې ماته.

**تسهيلات**: -

**قوله: فَقَالَ: "لَمْ أَنْسَ وَلَمْ تُقْصَرْ:**

په مانځه کښې خبرې کولوسره مونځ فاسد يږي که نه او په
مانځه کښې کلام په هيره سره يا په قصد سره جائز دې که نه؟
دا يو معرکة الآراء مسئله ده او په دې کښې دَ فقهاؤ زبردست اختلاف دي.

**د کلام فی الصلاة په حکم کښې مذاهب**: -

دَ فقهاؤ په دې خبره باندې اتفاق دې چه دَاسلام په شروع کښې تريوحده پورې په مونځ کښې خبرې کول جائز وو بيا منسوخ شو. اوس دَ فقهاؤ خپل مينځ کښې دَ دې نسخ په تفصيل کښې اختلاف دې چه آيا هرقسم کلام په مکمل توګه باندې منسوخ شوې دې يا دَ بعضې قسم کلام کولواوس هم اجازت دې. نودَ دې تفصيل داسې دې چه

① دَ شوافع په نيز دَ اصلاح صلوة دَپاره دَقليل کلام کولو اجازت دې په دې شرط چه

نسیاناً وی. دَ نسیاناً نه دَ دوی دا مراد دي چه مونځ گذار ته یاد نه وو چه زه په مانځه ولاړ یم او هغه دَ مونځ دَ اصلاح دَپاره اوونیل قعده اوکړه، اودریږه وراندې کیږه مه، زه مونځ کوم، په مونځ کښې قعده پاتې شوه. دویم مونځ گذار وائی نه نه، یا لکه څنگه چه په زیربحث حدیث کښې دَ ذوالیدین کلام دې.

⑤ امام مالك رحمه الله فرمائی چه دَ اصلاح صلوة دَپاره که قصداً عمداً هم کلام اوکړې شی نو جائز دی. په دې سره مونځ نه ماتیږی.

⑥ دَ امام احمدبن حنبل رحمه الله په کلام کښې سخت اضطراب دې هرطرف ته دَهغوی یو یو قول دې بلکه دې نه هم زیات اقوال دی. دَهغې دَ ذکرکولوضرورت نشته دې. البته په مجموعی اعتبارسره جمهور څه فرق سره یوطرف ته ولاړ دی اوائمه احناف بل طرف ته ولاړ دی.

⑦ دَ ائمه احناف په نیز په مانځه کښې هرقسم کلام منسوخ شوې دې. اوس هرقسم کلام مفسدصلوة دې که هغه عمداً وی، که نسیاناً وی ،که خطاءً وی که قصداً وی قلیل وی اوکه کثیر وی دَ هیڅ قسم گنجائش نشته دې.

**داول فریق دلائل:** - دجمهورومستدل زیر بحث د حضرت ابوهریره رضی الله عنه حدیث دې په کوم کښې چه یو مونځ گذار ذوالیدین هم په مونځ کښې کلام اوکړو اوصحابه هم کلام اوکړو. بل حضورپاك صلی الله علیه وسلم هم کلام اوکړو اوبیا ئې لو سجده سهو کولوسره مونځ اوکړو. مونځ ئې راؤنه گرځولو. معلومه شوه چه په خبرو کولوسره مونځ نه فاسدیږی. شوافع حضرات داکلام په نسیاناً باندې حمل کوی او مالکیه حضرات دادَ اصلاح صلوة دَپاره په قصداً عمداً باندې حمل کوی.

② دَ فصل الثالث عمران بن حصین رضی الله عنه حدیث نمبر ۸ هم د دوی مستدل دې په دې کښې هم دغه شان مضمون دې بلکه په هغې کښې دَ حضورپاك صلی الله علیه وسلم دَ مونځ کولونه پس کورته دَ تلو او واپس راتلو اوکلام کولو بیان دې.

③ ددې باب حدیث نمبر ۳ دَ حضرت ابن مسعود رضی الله عنه روایت هم د دوی مستدل دې په کوم کښې چه دَ صحابه کرامو اودَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دواړو دکلام کولوذکردې او بیا صرف سجده سهوکمافی اوگڼړلې شوه. معلومه شوه چه قلیل کلام کوم چه دَ اصلاح صلوة دَپاره وی مفسدصلوة نه دې.

**د دویم فریق دلائل:** - ① دَحضرت معاویه بن الحکم السلمی رحمه الله روایت د دوی مستدل دې کوم چه دَ مشکوة "باب مالایجوزمن العمل فی الصلوة" دَ فصل اول رومبې حدیث دې په کوم کښې چه یوه قصه هم ده په هغې کښې دا الفاظ دی: ((ان هذه الصلوة لا یصلح فیها شیء من کلام الناس)) امام مسلم داحدیث نقل کړې دې دا ډیر واضح دلیل دې چه په مانځه کښې اول خبرې وې بیا منسوخ شوې. اوس په مونځ کښې دَ ذکرالله، تسبیح او تلاوت قرآن نه سوا هیڅ هم جائز نه دی.

④ په دې باب دَ حضرت ابن مسعود رضی الله عنه حدیث نمبر ۲ هم د دوی مستدل دې په کوم کښې چه دا راغلی دی چه دَ حضرت ابن مسعود رضی الله عنه دَ سلام جواب حضورپاک صلی الله علیه وسلم دَ مونځ دوران کښې نه دې ورکړې او بیائی اوفرمائیل "ان فی الصلوۃ لشغلا" مطلب هم دغه دې چه کلام الناس کښې گنجائش نشته دې. دَ مونځ خپل ډیر مشاغل دی.

③ په دې باب فصل الثانی کښې دَحضرت ابن مسعود رضی الله عنه حدیث نمبر ۱۱ هم د دوی مستدل دې دکوم تخریج چه ابواؤد کړې دې. په هغې کښې واضحه الفاظ دی چه الله تعالی کله هم غواړی دَخپل دین په احکام کښې بدلون کوی. دَ حدیث الفاظ دادی: "وان مما احدث الاتتکلموافی الصلوۃ" یعنی اوس چه الله تعالی کوم بدلون فرمائیلې دې هغه دادې چه تاسو په مونځ کښې خبرې مه کوئی.

④ دَ حضرت زید بن ارقم رضی الله عنه روایت دې. امام مسلم رحمه الله په صحیح مسلم کښې دا ذکرې دې الفاظ ئی دادی: ((کنانتکلم فی الصلوۃ یکلم الرجل صاحبه وهوالی جنبه فی الصلوۃ حتی نزلت ﴿وَقُومُوا لِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ﴾ فامرنا بالسکوت ونهیناعن الکلام))[مسلم: ۱/۲۰۴]

**د اول فریق د دلیل جواب:** - دکلام کولو دا واقعه دَ اسلام په شروع کښې ده کوم وخت چه په مونځ کښې دکلام کولو اجازت وو بیا داحکم منسوخ شو. جمهور دَ ذوالیدین دَ دې واقعې نه هغه وخت استدلال کولې شی چه هغوی داخبره ثابته کړی چه دا واقعه په منځ کښې دکلام منسوخ کیدو نه پس ده حالانکه هغوی دا ثابتول نه شی. بلکه معامله دَدې برعکس ده تحقیق اوتفصیل اوګورئی.

**د ذوالیدین د واقعې په تاریخ کښې مذاهب:-**

په دې باندې دَ ټولو فقهاؤ کرامو اتفاق دې چه مونځ کښې خبرې کول په شروع کښې وو بیا منسوخ شو. لیکن اختلاف په دې کښې دې چه دَ ذوالیدین دا واقعه نسخ الکلام نه مخکښې پیښه شوې ده. یا په مونځ کښې دکلام منسوخ کیدو نه پس پیښه شوې ده.

① شوافع اومالکیه بلکه جمهور فرمائی چه دَ ذوالیدین دا واقعه دَ نسخ الکلام نه پس ده. لهذا ترکوم حده پورې چه په مونځ کښې دَ کلام کولو گنجائش دَدې حدیث نه معلومیږی هم دَ هغه حده پورې مونږ قائل یو دې نه علاوه منسوخ دی.

② دَ ائمه احناف تحقیق دادې چه دَ ذوالیدین دا واقعه نسخ الکلام نه مخکښې پیښه شوې وه دَدې نه پس په مکمل توګه باندې په مونځ کښې په خبروکولوپابندی اولګولې شوه په کوم باندې چه څودلائل ورکړې شوی دی. اوس به دَ دواړو طرفو دَ قرائن نه معلومولې شی چه دا واقعه کله پیښه شوې وه.

**داول فریق په مذهب قرینه:** - دَ یو قرینې په توګه جمهور فرمائی چه دَ ذوالیدین داحدیث

او واقعه چه کله حضرت ابوهریره رضی الله عنه نقل کوی نو داسې فرمائی "صلی بنارسول الله صلی الله علیه وسلم" د دې الفاظو نه معلومیږی چه حضرت ابوهریره رضی الله عنه د ذوالیدین په دې واقعه کښې پخپله موجود وو او حضرت ابوهریره په ۷هجری کښې اسلام راوړلې دې او د نسخ الکلام فی الصلوة حکم د یر مخکښې راغلې وو. معلومه شوه چه په مانځه کښې د یوحده پورې کلام کول اوس هم ثابت دی کوم چه د دغه عام نسخ نه پس هم باقی دی په کوم کښې چه په نسخ باندې د فقهاؤ اتفاق دې.

**د لرینې جواب:** — حضرت ابوهریره رضی الله عنه په ۷هجری کښې اسلام راوړلې وو لیکن د "صلی بنا" د ا لفاظونه دا یقین کول چه پخپله ابوهریره رضی الله عنه په دې واقعه کښې موجود وو دا صحیح نه دی ځکه چه داسې الفاظوسره د صحابه کرامو جماعت مراد اخستې شی. "ای صلی بالمسلمین" یعنی د مسلمانانو جمعې ته نبی اکرم صلی الله علیه وسلم مونځ ورکړو. دغه شان تعبیر حضرت ابوهریره رضی الله عنه په نورو مقاماتوکښې هم کړې دې اوځو راویانو داسې تعبیر کړې دې.
حضرت بنوری رحمه الله معارف السنن ۵۱۲/۳ کښې داسې اوولس مثالونه ورکړی دی. مشهورتابعی حضرت طاؤس رحمه الله وئیلی "قدم علینا معاذ بن جبل الخ" حالانکه حضرت معاذ رضی الله عنه چه کله یمن ته راغلې وو نوهغه وخت طاؤس پیدا شوې هم نه وو. د دې تعبیر حقیقت داسې دې "ای قدم علی قومنا معاذ بن جبل". دغه شان دلته د ابوهریره رضی الله عنه "صلی بنارسول الله صلی الله علیه وسلم" الفاظ دی. دغه شان نزال بن سعد تابعی رحمه الله وائی "قال لنارسول الله صلی الله علیه وسلم" دلته هم "قال لقومنا" دې ځکه چه نزال تابعی رحمه الله هلته چرته کیدې شو.
اودلته د زیر بحث حدیث معامله خو نوره هم سخته ده ځکه چه ذوالیدین په جنګ بدرکښې شهیدشوې وو نو په ۷هجری کښې حضرت ابوهریره رضی الله عنه د هغه د مجلس واقعه ځنګه بیانولې شی؟ معلومه شوه چه داه هغه قصه ده چه "صلی بنا ای صلی بجماعة الصحابة" طحاوی کښې د حضرت ابن عمر رضی الله عنه قصه ذکرده چه کله د هغوی په مخکښې د ذوالیدین دا حدیث پیش کړې شو نوهغوی اوفرمائیل "کان اسلام ابی هریرة رضی الله عنه بعد ما قتل ذوالیدین" (ج۱ص ۲۹۵)

**د دویم فریق په مذهب قرائن:** — زیر بحث حدیث کښې چه داکوم کلام فی الصلوة خبره ده. دکوم چه جمهورو استدلال کړې دې احناف فرمائی دا واقعه د جنګ بدر نه د مخکښې وخت ده. نسخ کلام فی الصلوة د هجرت نه لږشان پس مدینه منوره کښې شوې کومه چه د جنګ بدرنه د مخکښې واقعه ده. په دې باندې د احنافو د طرف نه یوځو قرائن دی.
① په دې حدیث کښې دا الفاظ دی "ثم قام الی خشبة معروضة" دې نه مراد استن حنانه ده او استن حنانه د جنګ بدر نه مخکښې اخواکړې شوې وه ځکه چه په دې باندې د ټولو اتفاق

دي چه دَ حضورپاك ﷺ دَ پاره منبر ۲هجري کښې تیار کړې شوې وو اودَ جنګ بدر واقعه ۲هجري کښې پیښه شوې وه. معلومه شوه چه دَ حضورپاك ﷺ استن حنانه سره ډېره لګول او ذوالیدین سره کلام کول دادَ جنګ بدر نه مخکښې واقعه ده او هم هغه وخت دَ نسخ الکلام حکم راغلې وو.

④ په دې حدیث کښې ډیرې زیات داسې افعال او عمال او اقوال صادر شوی دی چه دَجمهورو په نیزهم یقیناً مفسد الصلوة دی مثلاً دَمحراب نه اخواکیدل او لرګی سره ډېره لګول دَ قبلې نه مخ ګرځول حجره ته تلل بیا واپس راتلل اودَمباحثه اندازکښې قصداً عمداً اوږد کلام کول، دَدې ګنجائش صرف هغه وخت کیدې شو کوم وخت چه په مونځ کښې دَ کلام وغیره ډیر وسعت وو. معلومه شوه چه دا دَ نسخ کلام نه دَمخکښې وخت واقعه ده روستونه ده.

⑤ زیر بحث حدیث کښې دَ ذوالیدین ذکردې او ذوالیدین په جنګ بدرکښې شهیدشوې وو. معلومه شوه چه دا قصه دَجنګ بدر نه دَ مخکښې وخت ده او دَ ذوالیدین په شهادت باندې نسخ الکلام فی الصلوة مکمل شوې.

**په دریمه قرینه باندې اعتراضا:**- دا واقعه دَبدر نه دَمخکښې وخت ده او ذوالیدین په جنګ بدرکښې شهیدشوې وو هغوی فرمائی چه تاسو خلقو ته غلط فهمی شوې ده چه په جنګ بدر کښې ذوالیدین شهیدشوې وو داسې نه ده په جنګ بدر کښې چه کوم شهیدشوې وو هغه ذوالشمالین وو دَ ذوالیدین نوم خرباق بن عمر وو اودَ قبیله خزاعه وو اودَ ذوالشمالین نوم عمیر بن عمرو وو کوم چه دَ قبیله بنوسلیم وو. ذوالیدین خودَ حضرت عثمان ﷛ دَزمانې پورې ژوندې وو اودَ کلام فی الصلوة دَ جواز بیان ئی کولو.

**د اعتراض درې جوابونه:**- ① حضورپاك ﷺ امت ته تعلیم ورکړې دې چه امام په مونځ کښې غلطی اوکړی هغه ته فتحه ورکوئی لیکن فتحه دَ سبحان الله په الفاظو سره ورکوئی اوکه چرته ښځه فتحه ورکوی نو تصفیق کولوسره دې فتحه ورکړی یعنی دَ ښی لاس تلې دې دَ ګس لاس په شا باندې اووهی. که چرې په مونځ کښې دَ اصلاح صلوة دَ پاره دکلام کولو اجازت وې نو حضورپاك ﷺ به کله هم دغه نه پریخودو اوپه دې طریقه به ئی تعلیم نه ورکولو. معلومه شوه چه دَ حدیث ذوالیدین حکم په مکمل توګه منسوخ شوې دې.

دَ صاحب مشکوة دَ طرزعمل نه هم اندازه کیږی چه داحکم منسوخ شوې دې ځکه چه هغوی داحدیث دَ سهو باب کښې راوړلوسره اشاره اوکړه چه کلام فی الصلوة دَ سهو په توګه کیدې شی قصداً عمداً او اصلاحاً ممکن نه دې.

② ذوالیدین او ذوالشمالین هم دَ یو سړی لقب وو. اوشوه داسې چه خلقو هغه ته ذوالشمالین ونیل په کوم کښې چه بدفالی او بدګمانی وه نو حضورپاك ﷺ هغه ته

ذوالیدین اوفرمائیل. عمیر دَ هغه نوم وو اوخرباق لقب ئې وو او خزاعه او سلیم څه جدا جدا قبیلې نه وې بلکه بنوسلیم دَ خزاعه بطن او ذیلی ښاخ وو نودا ټول نسبتونه صحیح دی. په طبقات ابن سعد کښې داسې لیکلی دی "ذوالیدین ویقال به ذوالشمالین ایضاً" دغه شان مبرد په الکامل کښې لیکلی دی "ذوالیدین وهو ذوالشمالین کان یسمی بهما جمیعاً".

مسندبزار او طبرانی کښې یو حدیث کښې دَ دواړو داسې ذکر راغلې دې. ((صلی النبی صلی الله علیه وسلم ثلاثاً لم سلم فقال له ذوالشمالین انقصت الصلوة؟ قال علیه السلام کذالك یا ذالیدین؟ قال نعم)) دَدې روایتونو نه صفا معلومه شوه چه ذوالیدین او ذوالشمالین هم دَ یو سړی دوه لقب وو اوجمهورو دَ دې اقرارکوی چه بدرکښې ذوالشمالین شهیدشوې وو نونتیجه دا راؤوتله چه هم هغه ذوالشمالین خو هم دغه ذوالیدین وو. اودَ ذوالیدین په جنګ بدرکښې شهادت واقع شوې لهذا دَزیر نظر حدیث واقعه دَ جنګ بدر نه دَمخکښې وخت ده نودَ نسخ الکلام فی الصلوة واقعه هم دَ مخکښې وخت ده نودَدې منسوخ روایت نه استدلال کول جائز نه دی.

⑨ په حدیث ذوالیدین باندې تاسو کله عمل کولې شئی؟ په دې حدیث کښې عمداً اوږد کلام شوې دې. دَ سوال اوجواب مباحثه شوې ده. دَ حضورپاك ﷺ مخ مبارك دَ قبلې نه تاؤ شوې دې. حضورپاك ﷺ کافی حده پورې تلې دې. کورته تلې دې واپس راغلې دې. که چرې تاسو په دې حدیث سره کلام فی الصلوة ثابتول غواړئی نوبیا په مونځ کښې تګ راتګ ته هم جائز اووایئی دَ قبلې نه مخ اړولوته هم جائز اووایئی او په مونځ کښې مناظره کولوته هم جائز اووایئی دَ جمات نه بهر تلل او واپس راتللو ته هم جائز اووایئی. حالانکه ستاسو په نیز داځیزونه جائز نه دی بیا کلام ته ولې جائز وایئی؟ داسې اووایئی چه په شروع کښې داسې وه بیا منسوخ شوه اومکمل منسوخ شو هیڅ جزئی نسخ نشته دې.

**قوله: فِي يَدَيْهِ طُولٌ:**

**دَ ذوالیدین وجه تسمیه او د اوږدو لاسونو پیژندګلو:-** دا ذوالیدین په دې لقب رابللو وجه دا ځکه چه هرسړې دَ دوو لاسونو والاوی. مګر دَدې سړی لاسونه دَ نورو خلقودَ لاسونونه اوږده وو او اوږده لاسونه هغه وی چه کله سړې نیغ اودریږی اولاسونه لاندې زوړند کړی نوچه کوم لاسونه دَزنګونونو نه ښکته لاړشی هغه اوږده دی. اوکوم چه صرف دَ زنګونونو پورې وی هغه اوږده نه دی. دَ عامو انسانانو لاسونه دَ زنګونونو نه ښکته نه رسیږی.

**قوله: فَرُبَّمَا سَأَلُوهُ ثُمَّ سَلَّمَ:**

**د مذکوره جملې مطلب:-** یعنی دَ ابن سیرین رحمه الله نه به اکثر خلقو تپوس کولو چه آیا ابوهریره رضی الله عنه "ثم سلم" فرمائیلې وو. دَ سوال مطلب دا وو چه آیا سجده سهودَ سلام نه مخکښې وه یا روستو وه. نوابن سیرین رحمه الله به جواب فرمائیلو چه دَ ابوهریره رضی الله عنه په روایت کښې ماته دا الفاظ یاد نه دی. البته عمران بن حصین رضی الله عنه چه کله ماته داحدیث واؤرولو

نو په هغې كښې د "ثم سلم" الفاظ وو. مادلته د ابوهريره رضي الله عنه په روايت كښې دا الفاظ د عمران بن حصين رضي الله عنه د روايت نه راوړلو سره نقل كړى دى.

۱۰۱۸—د سجده سهو دپاره د سلام نه كرځولو حكم

۱۰۱۸—(¹)[۵][۱]وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ بُحَيْنَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- صَلَّى بِهِمُ الظُّهْرَ، [۲] فَقَامَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ لَمْ يَجْلِسْ، [۳] فَقَامَ النَّاسُ مَعَهُ، حَتَّى إِذَا قَضَى الصَّلَاةَ [۴] وَانْتَظَرَ النَّاسُ تَسْلِيمَهُ [۵] كَبَّرَ وَهُوَ جَالِسٌ، فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ قَبْلَ أَنْ يُسَلِّمَ، ثُمَّ سَلَّمَ»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت عبدالله ابن بحينة رضي الله عنه فرمايي چې (يوه ورځ) رسول الله ﷺ صحابو رضي الله عنهم ته د ماسپخين مونځ وركړو [۲] او ړومبني دوه ركعاته كولو سره (په اولني قعده كې د ناستي نه بغير د دريم ركعت د پاره) ودريدلو [۳] نور خلق هم د رسول الله ﷺ سره ودريدل تر دي چې مونځ ئي اوكړو [۴] او (په آخري قعده كې) خلق د سلام كرځولو منتظر وو [۵] چې رسول الله ﷺ په ناسته ناسته تكبير وويل او د سلام كرځولو څخه مخكې يې دوه سجدي وكړي او د هغه څخه وروسته يې سلام وگرځول. (بخاري، مسلم.)

**تسهيلات:** - **نوټ:** - ددې حديث وضاحت په بل مقام كښې ذكرشوى دي.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

۱۰۱۹—په سهوه شوي مونځ كښې د درود شريف او دعاء محل

۱۰۱۹—(²)[۶][۱]عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- صَلَّى بِهِمْ فَسَهَا، [۲] فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ، ثُمَّ تَشَهَّدَ» [۳] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] عمران ابن حصين رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ (يوه ورځ) خلقو ته مونځ وركړو د لمانځه په مينځ كې د حضور ﷺ څخه سهوه وشوه [۲] نو د سلام كرځولو سره يې دوه سجدي وكړي د هغه څخه وروسته حضور ﷺ التحيات وويله [او سلام يې وگرځولو]، [۳] امام ترمذي رحمه الله دا حديث نقل كړي او ويلي يې دي چې دا حديث حسن غريب دي.

**حل اللغات:** - ① فَسَهَا: هيره تري اوشوه.

¹) اخرجه البخارى كتاب الاذان/ باب من لم ير التشهد الأول واجبا لأن النبى صلى الله عليه وسلم: «قام من الركعتين ولم يرجع» (رقم- ۸۲۹) ومسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة/ باب السهو فى الصلاة والسجود له (رقم) ۸۵ - (۵۷۰) وابوداود كتاب الصلاة،باب من قام من ثنتين ولم يتشهد (رقم-۱۰۳٤) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى سجدتى السهو قبل السلام (رقم-۳۹۱) والنسائى كتاب السهو/باب ما يفعل من قام من اثنتين ناسيا ولم يتشهد (رقم-۱۲۲۲) والدارمى كتاب الصلاة/باب إذا كان فى الصلاة نقصان (رقم-۱۵٤۰)

²) اخرجه الترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى التشهد فى سجدتى السهو(رقم-۳۹۵)

**تسهيلات:-** **قوله:** فَسَهَا:

**د مذكوره جملې مطلب:-** په دې حديث كښې د مونځ هغه ركن بيان نه كړې شو په كوم كښې چه د حضورپاك ﷺ مبارك نه هيره شوې وه. صرف د هيريدو ذكردې "تشهد" د دې حديث نه معلومه شوه چه د سجده سهوكولونه پس د نوې سر نه التحيات وئيل پكاردى او د پوره التحيات نه پس سلام گرځول پكاردى.

**د تشهد څخه روسته د درود او سلام په محل كښې دوه اقوال:-** ① امام كرخي رحمه الله او صاحب هدايه داخوښ كړې دى چه د سجده سهونه پس تشهدسره درود او دعا او وئيلې شى. د احنافو هم په دې باندې عمل دې.

② بعضې احنافو اول تشهدسره د لوستلو وئيلى دى بعضو دواړو كښې لوستلو ته بهتر او احوط وئيلى دى.

۱۰۲۰- په قعده كښې د سهو صورت

۱۰۲۰-()[۷] ① وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② «إِذَا قَامَ الْإِمَامُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ، ③ فَإِنْ ذَكَرَ قَبْلَ أَنْ يَسْتَوِيَ قَائِمًا فَلَا يَجْلِسْ، ④ وَإِنِ اسْتَوَى قَائِمًا فَلَا يَجْلِسْ ⑤ وَلْيَسْجُدْ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① مغيره ابن شعبة رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هر كله چې امام دوه ركعاته كولو سره (په اولني قعده كې د ناستي نه بغير د دريم ركعت د پاره) ودريږي ③ نو كه د سيده ودريدو څخه مخكې ورته را ياد شي نو هغه ته پكار دي چې هغه (د قعدې د پاره) كيني ④ او كه سيده ودريدلي وي (او د دې څخه وروسته هغه ته را ياد شي) نو هغه دي (اوس) نه كيني ⑤ او (په آخري قعده كې) د سهو دوه سجدې دې وكړي. (ابوداؤد، ابن ماجه.)

**تسهيلات:-** **قوله:** فَلَا يَجْلِسْ:

**د اولې قعدې څخه دريم ركعت ته د پورته كيدو دوه صورتونه:-** ① كه مونځ گذار قعده اولى پريږدى پوره اودريږى نو اوس د هغه خانى نه د قعده طرف ته واپس راتلل منع دى بلكه بعض علماؤ وئيلى دى مونځ به ئې ماتيږى څكه چه دا سرې د قيام د فرض نه د واجب طرف ته منتقل شو په كوم سره چه مونځ فاسد كيږى. ليكن د نورالايضاح او د دې په حواشي كښې ليكلى دى چه دا صورت خو ډير خطرناك دې خو كه چا دا سې اوكړه نو مونځ به ئې نه فاسديږى څكه چه دغه سرې د قيام فرض ترك نه كړل بلكه په دې كښې تاخيرا وكړو او د قعدې نه پس بيا هم د دغه قيام طرف ته تللوسره ئې اداكړل

¹) اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة/باب من نسى أن يتشهد وهو جالس (رقم-۱۰۳۶) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فيمن قام من اثنتين ساهيا(رقم-۱۲۰۸)

④ که دا سړې پوره ولاړنه وی او قیام ته نیزدې هم نه وی بلکه قعده ته نیزدې وی نو دو له واپس قعدې طرف ته راګرځیدل پکار دی.

**د اقرب الی القیام والقعود اندازه:-** دَ اقرب الی القیام والقعود څه معیار دې اودې حدڅه دې نوعلماء لیکلی دی چه مثلاً دَ پاسیدو په وخت که دَ دغه سړی خپې لا پوره نیغې شوی نه دی نو دا اقرب الی القعود دې په دې صورت کښې هیڅ مضائقه نشته خپل مونځ دې مکمل کړی او که دَپاسیدو په وخت خپې نیغې کړې نو باقی بدن سره دَدې چه کوږ وی خو دا سړې اقرب الی القیام دې اوس راګرځیدل جائزنه دی او سجده سهولازم ده.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### ۱۰۲۱–د مازیګر مونځ درې رکعته کولو صورت

۱۰۲۱–()[۸]① عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: «أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- صَلَّى الْعَصْرَ وَسَلَّمَ فِي ثَلَاثِ رَكَعَاتٍ،② ثُمَّ دَخَلَ مَنْزِلَهُ③ فَقَامَ إِلَيْهِ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ الْخِرْبَاقُ وَكَانَ فِي يَدَيْهِ طُولٌ،④ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ! فَذَكَرَ لَهُ صَنِيعَهُ⑤ وَخَرَجَ غَضْبَانَ يَجُرُّ رِدَاءَهُ حَتَّى انْتَهَى إِلَى النَّاسِ⑥ فَقَالَ: أَصَدَقَ هَذَا؟ قَالُوا نَعَمْ،⑦ فَصَلَّى رَكْعَةً ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**① عمران ابن حصین رضی الله عنه فرمایي چې (یوه ورځ) رسول الله ﷺ د مازیګر مونځ ورکړو او درې رکعاته کولو سره یې سلام وګرځولو② او کور ته یې تشریف یوړو③ یو سړې چې د هغه نوم خرباق وو او د هغه لاسونه لږ اوږده وو (یعني ذوالیدین) ودریدو ④ او عرض یې وکړو چې یا رسول الله ﷺ او هغه (یعني ذوالیدین) واقعه بیان کړه (یعني درې رکعاته کولو سره د سلام ګرځولو په باره کې یې ذکر وکړو)⑤ د دې اوریدو سره حضور ﷺ په غصه کې خپل څادر مبارك راښکلو سره بهر ووتلو او خلقو ته (په مسجد کې) ورسیدو ⑥ او وې فرمایل آیا ذوالیدین رښتیا وایي؟ صحابو رضی الله عنهم عرض وکړو چې رښتیا وایي⑦ نو حضور ﷺ یو رکعت وکړو بیا یې سلام وګرځولو او د سهوه دوه سجدې کولو سره یې سلام وګرځول، (مسلم)

**حل اللغات:-** ① مَنْزِلَهُ: أي حُجْرَتَهُ: کورخپل ته. ② صَنِيعَهُ: عمل د نبی کریم ﷺ (چې په مانځه کښې خطا کیدل وو.

**تسهیلات:-**

**قوله:** صَلَّى الْعَصْرَ وَسَلَّمَ فِي ثَلَاثِ رَكَعَاتٍ:..

[1]) اخرجه مسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة/ باب السهو فی الصلاة والسجود له (رقم) ۱۰۱ - (۵۷٤) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها/باب فیمن سلم من ثنتین أو ثلاث ساهیا (رقم-۱۲۱۵)

**دنبي كريم ﷺ څخه په مانځه كښې د سهوې مقامات:-**

① اوله قعده كښې ،لكه څنګه چې د حضرت عبدالله بن بجينه ؓ روايت كښې دى.

② آخرى دوؤ ركعتونو كښې لكه څنګه چې د ذواليدين په واقعه كښې دى.

③ آخرى ركعات كښې لكه څنګه چې دحضرت خرباق ؓ په مذكوره روايت كښې دى.

④ د پنځم ركعت زياتوالى سره ،لكه څنګه چې د عبدالله بن مسعود ؓ روايت كښې دى.

**۱۰۲۳—په مانځه كښې د كمو ركعتونو شك واقع كيدو حكم**

۱۰۲۳—()[۹]① وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "②«مَنْ صَلَّى صَلَاةً يَشُكُّ فِي النُّقْصَانِ،③فَلْيُصَلِّ حَتَّى يَشُكَّ فِي الزِّيَادَةِ»" ،رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:**① عبدالرحمن ابن عوف ؓ فرمايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي② چې كوم سړي ته چې په لمانځه كولو كې د كمي شك شي③ نو هغه ته پكار دي چې هغه نور وكړي تر دې چې د زياتي شك يې شي. (احمد.)

**تسهيلات:-**

**نوټ:-** ددې حديث تسهيل په تفصيل سره بل ځائې كښې ذكر دي.

# [۳۷/۲۱]بَابِ سُجُودِ الْقُرْآنِ

## د قرآن د سجدو بيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه خمسة عشر حديثاً مشتملة على خمس مسائل:**

① مواضع سجود التلاوة في القرآن: ۱، ۲، ۵، ۷، ۸، ۱۴، ۱۵.

② وجوب سجدة التلاوة بالسماع: ۳، ۹، ۱۰.

③ ترك سجود السهو في بعض الصور: ۴، ۱۱.

④ عدد سجود التلاوة: ۶.

⑤ الذكر المسنون في سجدة التلاوة : ۱۲، ۱۳.

**د تلاوت د سجدې د قرآن څخه ثبوت:-**

① وقال الله تعالى ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ارْكَعُوا وَاسْجُدُوا وَاعْبُدُوا رَبَّكُمْ﴾ (سورت حج) [حج:۷۷]

② قال الله تعالى ﴿ وَإِذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ الْقُرْآنُ لَا يَسْجُدُونَ ۩ ﴾ (سورت انشقاق) [انشقاق:۲۱]

[۱] اخرجه احمد فى المسند ۱۹۵/۱

**د سجده تلاوت په حکم کښې مذاهب:-**

① د دريې واړه امامانو په نيز سجده دَ تلاوت سنت ده. ② د امام ابوحنيفه رحمه الله دا سجده واجب ده

**د سجده تلاوت طريقه:-** دَ تلاوت سجده کولو کښې صرف يوه سجده ده مګر دوو تکبيرونوسره ده. يوتکبيردَتلو په وخت اودويم تکبيردَ سجده نه پاسيدو په وخت ده. دَدې سجدې دَپاره غوړونوپورې دَ لاسونو اوچتولو ضرورت نشته دې. دغه شان تشهداوسلام هم ضرورت نشته دې. تکبيرلوستلوسره پاسيدل پخپله سلام دې. دَ تلاوت دَ سجدې دَپاره نيت وى مګر دآيت دَ تعين ضرورت نشته او کوم وخت چه آيت اولوستلو او فوراً ئى سجده اوکړه نودَ نيت هم ضرورت نشته دې.

**د سجده تلاوت د صحت شرطونه:-** دَ سجده تلاوت دَپاره په اودس کښې کيدل قبله ته مخ کول دَ کپړو صفاکيدل اوستر اوپردې کيدل ضرورى دى لکه چه په مانځه کښې ضرورى دى.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**۱۰۲۳—په سورة نجم کښې سجده**

| ۱۰۲۳—()[۱] ۱ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سَجَدَ (بِالنَّجْمِ) ۲ وَسَجَدَ مَعَهُ الْمُسْلِمُونَ وَالْمُشْرِكُونَ وَالْجِنُّ وَالْإِنْسُ»، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |
|---|

**ترجمه:** ۱ ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ په سوره نجم کې سجده وکړه ۲ نو د حضور ﷺ سره مسلمانانو، مشرکانو، جناتو او ټولو سړو (هم) سجده وکړه. (بخاري)

**تسهيلات:-**

**قوله:** وَالْجِنُّ وَالْإِنْسُ:

**په تالى او سامع دواړو د سجدې وجوب:-** يعنى حضورپاك ﷺ دَ سورت نجم دَ سجدې والا آيت اولوستلو نو حضورپاك ﷺ سجده اوکړه او ورسره مسلمانانو هم سجده اوکړه. دَ کوم نه چه ثابته شوه چه دَ تلاوت سجده لوستونکو او او اوريدونکو ټولو باندې يو شان سجده واجبيږى.

**قوله:** وَالْمُشْرِكُونَ وَالْجِنُّ وَالْإِنْسُ:

**د ټولو په سجده کولو کښې درې اقوال:-** ① يعنى مشرکانو، پيريانو او انسانانو هم سجده اوکړه يعنى دَ تکوين په توګه ټول الله تعالى په سجده کښې راګذارکړل اودَ قرآن کريم اعجاز ښکاره شو.

---

[۱]) اخرجه البخارى كتاب الجمعة/ باب «فاسجدوا لله [ص:۱٤۲] واعبدوا_ [النجم: ٦۲] (رقم-٤۸٦۲) والترمذى كتاب السفر/باب ما جاء فى السجدة فى النجم (رقم-۵۷۵)

② حضورپاك ﷺ دَ الله تعالى په حکم سره سجده اوکړه، مسلمانانودَ رسول الله ﷺ په اطاعت کښې سجده اوکړه. ټولو حاضرينو سجده اوکړه که هغه دَ جناتونه وو اوکه دَ انسانانو نه وو څوك هم چه هلته حاضر وو ټولو سجده اوکړه.

③ چه مشرکانوکله دَ الله تعالى نعم باهره او قدرت كامله اوکتلو او وايوريدو نو په هغوى باندې سطوت الهٰى اودَ عظمت لايزال داسې اثر پريوتلو چه هغوى بغيردَ اختيار نه په سجده کښې راپريوتل.

**د مشرکانو د سجدې کولو په سبب کښې موضوعي قول:-** ابليس دَ حضورپاك ﷺ دَ لوستلو نه پس آواز ورکړو "تلك الغرانيق العلى وان شفاعتهن لترجى" دې اوريدو سره کافران خوشحال شو او په سجدوکښې راپريوتل. مگر راجح دا دى

**د قول مذکورترديد:-** دَ غرانيق دا دَ ځان نه جوړه شوې قصه دَ نبوت دَ شان خلاف ده. زنادقه دَ ځان نه جوړه کړې ده اوتقريبًا ټولو قابلِ اعتماد مفسرينو حضراتو دې ته غير ثابت او غلط وئيلى دى.

### ۱۰۲۳—د سورة انشقاق او د سورة علق سجدې

۱۰۲۳—()[۲] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ②«سَجَدْنَا مَعَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي: ﴿إِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ﴾ [الانشقاق: ۱] وَ ﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ﴾ [العلق: ۱]» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① ابوهريره ﷺ فرمايي ② چې مونږ د رسول ﷺ سره (په سورة انشقاق يعني) اذا السَّمَاءُ انشقّت او (په سورة علق يعني) اقرأ باسم ربّك کې سجده وکړه. (مسلم)

**تسهيلات:-**

**د قرآن پاک د سجدو سورتونه:-** ① سورت اعراف ② سورت رعد ③ سورت نحل ④ سورت بنى اسرائيل ⑤ سورت مريم ⑥ سورت حج دويمه رکوع کښې ⑦ سورت فرقان ⑧ سورت نمل ⑨ الم تنزيل السجده ⑩ سورت ص ⑪ سورت حم الجسده ⑫ سورت نجم ⑬ سورت انشقاق سورت علق

**توله:** فِي إِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ:

**د سجدو په تعداد او مقاماتو کښې د اختلاف سبب:-** دَ احاديثونه مختلف سورتونوکښې سجدې ثابت شوى دى ليکن په بيان کښې تفاوت دې. بعض رواياتوکښې دَ سجدې تعين

[1] اخرجه مسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة/ باب سجود التلاوة (رقم- ۱۰۷ - (۵۷۸) والترمذى باب فى السجدة فى: اقرأ باسم ربك الذى خلق_ [العلق: ۱] ، و اذا السماء انشقت_ [الانشقاق: ۱](رقم-۵۷۳) والنسائى كتاب الافتتاح/باب السجود فى إذا السماء انشقت (رقم-۹۶۳) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب عدد سجود القرآن (رقم-۱۰۵۸)

یوشان دي او بعض روایاتو کښې په بل انداز سره دي. په دې وجه دَ قرآن کریم دَسجدو تعداد کښې او دَ سجدو په مقاماتو کښې دَ فقهاء کرامو لرِشان اختلاف دې.

**د قرآنی سجدو په تعداد او مواضع کښې مذاهب:-**

① دَامام مالك رحمه الله په نیز مفصلات یعنی سورت نجم، سورت انشقاق او سورت علق کښې سجده نشته دې لهذا دَهغوی په نیز دَ سجدو تعداد یولس دې.

② دَامام شافعی رحمه الله په نیزپه قرآن پاك کښې ټولې څوارلس سجدې دی لیکن دَ سورت په تعین کښې فرق دې هغوی فرمائی سورت "ص" کښې سجده نشته دې او په سورت حج کښې دَ یوې سجدې په ځائی دوه سجدې دی نو ټولې څوارلس سجدې شوې.

③ دَامام احمدبن حنبل رحمه الله په نیز قرآن کښې ټولې پنځلس سجدې دی دوه په سورت حج کښې دَ شوافع په شان دوه سجدې منی او په سورت "ص" کښې هم دَ احنافو په شان سجده منی نو پنځلس سجدې شوې.

④ دَ احنافو په نیز په قرآن کښې ټولې څوارلس سجدې دی لیکن په سورت حج کښې یوه سجده ده او په سورت "ص" کښې هم سجده ده دغه شان ټولې څوارلس سجدې شوې.

**د اول فریق اول دلیل:-** ① دَدوی مستدل د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما روایت دې کوم چه دَ دویم فصل حدیث نمبر ۱۱ دې الفاظ یې دا دی: "عن ابن عباس رضی الله عنهما ان النبی صلی الله علیه وسلم لم یسجد فی شیء من المفصل منذ تحول الی المدینة" (رواه ابوداؤد)

دَ سورت حجرات نه دَ قرآن دَ آخرې پورې ورو صورتونو ته مفصلات وائی. لهذا دَ امام مالك رحمه الله په نیز درې سجدې کمې شوې نو یولس پاتې شوې.

**داول فریق د اول دلیل دوه جوابونه:-** ① دَ ابن عباس رضی الله عنهما هغه روایت قابل استدلال نه دې. امام احمد بن حنبل رحمه الله او یحیی بن معین رحمه الله او ابوحاتم رحمه الله دا ضعیف ګرځولې دې دَدې په مقابله کښې دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت قوی دې په کوم کښې چه دَ مفصلات دَ سجدو ثبوت دې. ابن عبدالبر رحمه الله دَحضرت ابن عباس رضی الله عنهما روایت ته منکروئیلې دې.

② دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت دَحضرت ابن عباس رضی الله عنهما دَ روایت دَپاره ناسخ دې.

**د اول فریق دویم دلیل:-** ② حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه روایت نمبر ۴ هم د دوی مستدل دې. چه حضوراکرم صلی الله علیه وسلم په سورت نجم کښې سجده اونه کړه.

**داول فریق د دویم دلیل جواب:-** زر سجده نه کول دَعدم سجده دلیل نه دې کیدې شی چه هغه وخت حضورپاك صلی الله علیه وسلم دَ څه عذر دَ وجې نه سجده نه وی کړې او روستوئی کړې وی ځکه چه په سجده تلاوت کښې تاخیرکول نه ممنوع دی اونه مکروه.

**د دویم فریق اول دلیل:-** ① دَ حضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه روایت د دوی مستدل دې کوم

چې د دې باب حدیث نمبر ۷ دې د کوم یوڅو الفاظ چه دادي "قلت یارسول الله فضلت سورت الحج بان فیها سجدتین قال نعم"

**د دویم فریق داول دلیل جواب:**- د دې حدیث مبارك ټول مدار په [1] ابن لهیعة دې چه د هغه ضعف [2] مشهور دې.

**د دویم فریق دویم دلیل:**- دَ سورت "ص" د عدم سجده ې دپاره د د وی مستدل دَحضرت ابن عباس رضی الله عنهما حدیث نمبر ۵ دې په کوم کښې چه دا الفاظ دی "سجدة ص لیس من عزائم السجود".

**د دویم فریق د دویم دلیل جواب:**- پخپله دَحضرت ابن عباس رضی الله عنهما دَ روایت په آخره کښې دَحضرت مجاهد رحمه الله په حواله سره دَ سورت "ص" دَ سجدې ثبوت او وجوب مذکوردې. لهذا دَدې روایت دَ شروع دَ الفاظ مطلب دادې چه "لیس من عزائم السجود" یعنی فرض نه دې بلکه واجب دې یا سنت دی مګرثابت دی. لهذا دَدې نه دَ شوافع استدلال صحیح نه دې. هم پخپله دَحضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه په دې باب کښې دَ فصل ثالث آخری حدیث نمبر ۱۵ نه دَ سورت "ص" دَ سجده ثبوت منقول دې حضورپاك صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی "سجدها داؤد توبة ونسجدها شکرًا" دَدې نه پس دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما "لیس من عزائم السجود" محتمل الفاظ نه یوثابت شوې سجده نه انکارکول ډیر زیات بعید معلومیږی حالانکه حضرت عمر فاروق رضی الله عنه اوحضرت ابن عمر رضی الله عنهما به دَدې سجدې اهتمام کولو.

**د دریم فریق اول دلیل:**- د دوی مستدل دَ فصل ثانی دَ حضرت عمرو بن العاص رضی الله عنه حدیث دې په کوم کښې چه په واضحه توګه دا الفاظ موجود دی "خمس عشرة سجدة فی القرآن منها ثلاث فی المفصل وفی سورت الحج سجدتین" (ابوداؤد ابن ماجه)

**د دریم فریق د اول دلیل جواب:**- دسورة حج دویمه سجده داسې ده چه دې کښې درکوع اود سجود دواړو په خائې حکم ورکړې شوې دې [3] اوقران کریم اسلوب دادې چه کوم خائې سجده تلاوت وی هلته صرف د سجدې یاصرف درکوع ذکر [4] وی.اوچه

---

[1] )والحدیث رواه احمد وابوداود والدار قطنی والحاکم والبیهقی ایضا کلهم س من طریق ابن لهیعة کذا فی المعارف (ج/ ۵ ؛ ص/ ۸۱ ) مرتب عفی عنه )-

[2] ) د ابن لهیعه باره کښې درس ترمذی کښې په اول کښې تیر شوی دی ) مرتب عفی عنه-(

[3] ) لکه ارشاد دې چه﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱرۡكَعُواْ وَٱسۡجُدُواْ وَٱعۡبُدُواْ رَبَّكُمۡ وَٱفۡعَلُواْ ٱلۡخَيۡرَ لَعَلَّكُمۡ تُفۡلِحُونَ ۩ (۷۷) ﴾ ایت نمبر ۷۷ پاره نمبر ۱۷ مرتب عفی عنه )

[4] ) لکه چه په ټولو روایتونو کښې صرف د سجدې ذکر دې البه په سورة صٓ کښې صرف د رکوع ذکر دې﴿ . وَظَنَّ دَاوُۥدُ أَنَّمَا فَتَنَّٰهُ فَٱسۡتَغۡفَرَ رَبَّهُۥ وَخَرَّۜ رَاكِعٗا وَأَنَابَ ۩ (۲۴) ........

دواړو کوم ځائې جمع شوې وی نو هلته سجده تلاوت ([1]) نه وی لکه ([2]) يٰمَرْيَمُ اقْنُتِيْ لِرَبِّكِ وَ اسْجُدِيْ وَارْكَعِيْ مَعَ الرّٰكِعِيْنَ

**د دریم فریق دویم دلیل:-** امام احمد رحمه الله دَ سورت "ص" سجده هم منی نو تړولې پنځلس شوې په دې باندې دَ دعوی دلیل دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنه دَ مجاهد حدیث نمبر (۱۰۲۸) دې "قال مجاهد قلت لابن عباس اسجدة فی ص فقرأ الخ" یعنی په سورت "ص" کښې سجده شته.

**د دریم فریق دویم دلیل جواب:-** د دې جواب هم په دې بحث کښې د دویم فریق د دوېم دلیل جواب په عنوان سره هم نزدې تیر شوې دې.

**د څلورم فریق دلائل:-** ① ددوی دَ سورت "ص" دَ سجدې په ثبوت باندې هم دغه دَ ابن عباس رضي الله عنهما دَ حدیث نمبره نه دَ مجاهد والا روایت نه استدلال کړې دې

② د سورت حج دَ یوې سجد په ثابتولو باندې د دوی نقلی دلیل دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما روایت دې "عن ابن عباس قال فی سجود الحج الاول عزیمة والآخر تعلیم" (طحاوی ج ۱ ص ۲۴۹)

③ ابوحمزه هم دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما روایت نقل کړې دې. "قال فی الحج سجدة" یعنی په سورت حج کښې یوه سجده ده.

④ امام محمد رحمه الله په موطا محمد کښې دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما باره کښې داسې روایت نقل کړې دې. "کان ابن عباس لایری فی سورة الحج الا سجدة واحدة الاولی"

⑤ دَ مجاهد رحمه الله اثر هم د دوی مستدل دې. الفاظ دا دی "السجدة الاخرة فی الحج انما هی موعظة لیست بسجدة"

⑥ عقلی دلیل دا دې. چه هلته دَ دووسجدوذکر بې شك موجود دې لیکن په دې کښې دویمه سجده صلوتیه ده تلاوتیه نه دې یعنی هغه دَ مانځه والا سجده ده او په دې باندې قرینه هم دده ځکه چه هغې سره دَ وارکعوا لفظ موجود دې.

**د سجدتلاوت بعضې مسائل:** فقهاؤ لیکلی دی چه دَ تلاوت په دوران کښې دَ سجدې نه بچ کیدلو دَ پاره دَ سجدې والا آیت پریخودل مکروه دی. په مانځه کښې که دَ تلاوت سجده راشی نو سجده کول پکار دی. که په سجده باندې قراءت ختم کړې شی او رکوع ته لاړشی او هم په

---

←...... فَغَفَرْنَا لَهُ ذٰلِكَ ۖ وَإِنَّ لَهُ عِنْدَنَا لَزُلْفٰى وَحُسْنَ مَآبٍ ﴿۲۵﴾ درکوع او دسجدې ذکر په یو آیت دسجدې کښې هم نشته دې س سوا د سورة حج نه او ددویمې متکلم فیه سجدې نه چه ددې سره متعلق ایت کښې د دواړو ذکردې ﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا ارْكَعُوْا وَاسْجُدُوْا وَاعْبُدُوْا رَبَّكُمْ وَافْعَلُوا الْخَيْرَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ۩ ﴿۷۷﴾ الایت نمبر ۷۷ پاره ۱۷ مرتب عفی عنه-(

[1] ) اوګورئی معارف ا لقران (ج/ ۶ ، ص/ ۲۸۸ ) سورة الحج ایت نمبر ۷۷ مرتب عفی عنه-(

[2] ) ایت نمبر ۴۳ سورة ال عمران پاره فرمانی چه )-

رکوع دَ سجده تلاوت نیت هم اوکړی نو ادا به شی یا رکوع کښې نی نیت نه دې کړې بلکه دَ رکوع نه پاسیدو او سجدې ته لاړو نودَ دې سجدې په ضمن کښې دَ تلاوت والا سجده هم اداکیږی. [نورالایضاح ۱۱۵]

**فائده:** - دَ فقه کتاب نورالایضاح کښې لیکلی دی که یوسړې دَ قرآن کریم ټول دَسجدو والاآیاتونه په یو ځائی کښې قبله ته مخ کړې کیناستو سره اولولی او په هرآیت باندې سجده دَ تلاوت اوکړی اوبیا دَ خپل هریوجائز حاجت دَپاره دعا اوغواړی نو الله تعالی دغه حاجت پوره کوی مجرب ده.

**۱۰۲۵-د سجده تلاوت حکم**

۱۰۲۵-()[۳] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقْرَأُ (السَّجْدَةَ) وَنَحْنُ عِنْدَهُ [۳] فَيَسْجُدُ، وَنَسْجُدُ مَعَهُ، [۴] فَنَزْدَحِمُ حَتَّى مَا يَجِدُ أَحَدُنَا لِجَبْهَتِهِ مَوْضِعًا يَسْجُدُ عَلَيْهِ»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابن عمر ﷺ فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ چې به د سجدي (يو آيت) ويلو او مونږ به حضور ﷺ ته نزدې وو [۳] کله چې به حضور ﷺ سجده کوله نو مونږ به هم د حضور ﷺ سره سجده کوله [۴] او (هغه وخت به) زمونږ د خلقو دومره ازدهام (ګڼه ګونه) وه چې په مونږ کې به بعضو د تندي لګولو د پاره د سجدي کولو ځاي هم نه موندلو. (بخاري مسلم.)

**حل اللغات:** - ① فَنَزْدَحِمُ: أَيْ: نَجْتَمِعُ حَيْثُ ضَاقَ الْمَكَانُ عَلَيْنَا: مونږ دومره راجمع شو چه ګڼه جوړه شوه.

**تسهیلات:** -

**قوله: وَنَسْجُدُ مَعَهُ، فَنَزْدَحِمُ:**

**د سجده تلاوت د وجوب دلیل:** - یعنی دَ ګڼړې دَ وجې نه به په زمکه دَ سر کیخودو ځائی نه ملاویدو (نومونږ به سجده نه پریخودله بلکه دَیوبل په شا به موسجده کوله) دَدې روایت نه دَ سجدهٔ تلاوت واجب کیدو ثبوت ملاویږی.

**د سجده تلاوت په حکم کښې مذاهب:** -

په دې مقام کښې د سجده تلاوت د حکم بحث کولې شی.

① دَ ائمه ثلاثه په نیز سجده دَ تلاوت سنت ده صاحبین هم جمهورو سره دی.

② دَ امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز سجده دَ تلاوت واجب علی التراخی ده واجب فی الفور نه ده یعنی واجب ده لیکن تاخیر سره اداکیدې شی.

[1]) اخرجه البخاری کتاب الجمعة/ باب ازدحام الناس إذا قرأ الإمام السجدة (رقم-۱۰۷۶) ومسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة/ باب سجود التلاوة (رقم- ۱۰۴ - (۵۷۵)

**داول فريق دلائل:** - ① هغه ټول روايات د دوی مستدلات دی دَ کومو نه چه معلوميږی چه بعضې وخت نبی کريم ﷺ دَ سجدې آيت تلاوت کړې او سجده ئی نه ده کړې. نو سجده نه کول دَ دې خبرې دليل دې چه دا واجب نه ده. چنانچه دَ حضرت زيد بن ثابت رضی الله عنه روايت نمبر ۴ کښې "فلم يسجد" الفاظ موجود دی.

**د اول دليل دوه جوابونه:** - ① هم دَ دغه سورت نجم دَ سجدې باره کښې حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه حضورپاک ﷺ، مسلمانانو، عامو انسانانو او پيريانو ټولو سجده اوکړه. نودَ حضرت زيد رضی الله عنه دَ روايت مطلب به دا اخستې شی چه فوری توګه باندې حضورپاک ﷺ سجده اونه کړه روستو ئی اوکړه. احناف هم دَ واجب علی الفور قائل نه دی بلکه دَ واجب علی التراخی قائل دی.

② دَ جواز دَ بيانولو دَپاره تاخير کړې.

**داول فريق دويم دليل:** - ② دَ حضرت عمر رضی الله عنه اثرهم د دوی مستدل دې کوم چه ترمذی کښې ذکردې الفاظ ئی داسې دی: ((ان الله لم يكتب علينا السجود الا ان نشاء)) دَدې روايت نه صفا معلوميږی چه حضرت عمر رضی الله عنه دَتلاوت سجده فرض يا واجب نه ګڼړله.

**داول فريق د دويم دليل جواب:** - دَ مرفوع حديث په موجودګئی کښې اثر نه شی پيش کولې. په اثر کښې دَ تاويل اوخصوصی احوالو څه وجه کيدې شی. اودَ مسلم دَ مرفوع حديث په حکم کښې دَ هيڅ تاويل ګنجائش نشته دې.

**د دويم فريق دلائل:** - ① دَ حضرت ابوهريره رضی الله عنه روايت د دوی مستدل دې دَ کوم الفاظ چه دا دی: ((اذا قرء ابن آدم السجدة اعتزل الشيطان يبكى يقول يا ويله امر ابن آدم بالسجود فسجد فله الجنة وامرت بالسجود فابيت فلى النار)) (مسلم)

**طريقه د استدلال:** - په دې حديث کښې دَ تلاوت دَ سجدې دَپاره "امر" لفظ راغلې دې يعنی بنيادم ته دَ سجدې حکم الله تعالی ورکړې دې. دا دَ وجوب دليل دې. بل په دې روايت کښې دَ سجدې په ترک کولو باندې دَ اور وعيد اوروليې شوې دې کوم چه دَ واجب په ترک کولو باندې کيدې شی. دا قول که چرې دَ شيطان دې ليکن حضورپاک ﷺ چه کله نقل کړو او په دې باندې سکوت اوفرمائيلو نواوس دا يو مرفوع مستند حديث دې دَ کوم نه چه احنافو استدلال کړې دې.

② زير بحث روايت د دوی مستدل دې په کوم کښې چه دی دَ سختې ګڼړې او سختې ډيروالی دَ خلقو صحابه کرامو به دَ تلاوت سجده کوله اودائی ضروری ګڼړله کوم چه د وجوب دليل دې.

③ دَ قرآن دَ سجدې والا هغه آياتونه دی په کوم کښې چه دَ امر صيغې راغلی دی او سجده نه کولو باندې سخت وعيد اوروليې شوې دې. بل دَ کافرانو دَ سجدې نه په انکار کولو

باندې دهغوی مذمت بیان کړې شوې دې او مسلمانانو ته د هغه انبیاء کرامو اتباع او د هغوی په نقش قدم باندې د تللو د پاره ونیلی شوی دی. دا ټول داسې امور دی د کوم په نتیجه کښې چه سجده کول واجب کیدې شي.

⑤ دې خبرې ته هم کتل پکار دی چه مونځ څومره اهم عبادت دې بیا په دې کښې قیام اوقرأت فرض دې د دې فرض دوران کښې که د سجدې والاآیت راخی نود شریعت حکم دې چه فرض موقوف کړه اول سجده اوکړه. دا اهتمام او انتظام د دې خبرې ښکاره ثبوت دې چه د تلاوت سجده واجب ده.

**۱۰۳۶—په سورة نجم کښې د سجدې نفي**

۱۰۳۶—(^)[۴] ١ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ٢ «قَرَأْتُ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - (وَالنَّجْمِ)، فَلَمْ يَسْجُدْ فِيهَا»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ زيد بن ثابت رضي الله عنه فرمايي ٢ چې ما د رسول الله ﷺ په مخکې د سورة نجم تلاوت وکړو او حضور ﷺ په هغې کې سجده ونه کړه. (بخاري مسلم.)

**تسهيلات:-**

**قوله: فَلَمْ يَسْجُدْ فِيهَا**

**د امام مالک د مذهب مستدل:** -په دې مقام کښې نبی کریم ﷺ سجده نه ده کړې او د امام مالک مذهب دې چې په مفصلات کښې سجده نشته.

**د مستدل څخه دوه جوابونه:** - د دې څخه دا نه لازميږی چې نبی کریم ﷺ به روسته هم سجده نه وی کړې کیدې شی روسته ئې کړې وی ځکه چې سجده علی الفور واجب نه ده.

② په حدیث نمبر ۱۰۳۷ کښې راغلی دی چې نبی کریم په سورة نجم کښې سجده کړې وه او دا قانون دی چې کله نفی او اثبات راشی نو ترجیح به اثبات لره وی.

**۱۰۳۷—د سورة ص سجده**

۱۰۳۷—(^)[۵] ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ٢ «سَجْدَةُ (ص)، لَيْسَ مِنْ عَزَائِمِ السُّجُودِ، ٣ وَقَدْ رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَسْجُدُ فِيهَا».

**ترجمه:** ١ د ابن عباس رضي الله عنه په بار کې روایت دې چې هغه وفرمایل ٢ چې د سورة ص سجده د ډیر تاکیدي سجدو څخه نه ده ٣ او ما رسول الله ﷺ په دې سورة کې په سجده کولو

[1] اخرجه البخاری کتاب الجمعة / باب من قرأ السجدة ولم يسجد(رقم- ۱۰۷۲) ومسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة/ باب سجود التلاوة (رقم) ۱۰۶ - (۵۷۷) وابوداود كتاب الصلاة،باب من لم ير السجود فى المفصل (رقم-۱٤۰٤) والترمذی فی کتاب السفر /باب ما جاء من لم يسجد فيه (رقم-۵۷۶)

[2] اخرجه البخاری کتاب الجمعة / باب سجدة ص (رقم- ۱۰۶۹) والترمذی فی کتاب السفر /باب ما جاء فی السجدة فی ص (رقم-۵۷۷) والدارمی فی کتاب الصلاة /باب السجود فی ص (رقم-۱۵۰۸)

لیدلي دي

**حل اللغات:-** ①عَزَائِمِ: دا دعزیمة جمع ده، د زړه قصد ته وائی، أی الْحُكْمُ الثَّابِتُ بِالْأَصَالَةِ: چه مستقل طور سره ثابت وی.

**تسهیلات:-**

**قوله:** لَيْسَ مِنْ عَزَائِمِ السُّجُودِ

**دعزائم السجود مطلب:**-ددې مطلب دادې چې د سورة صاد سجده په مؤکدو سجدو کښې نه ده .مطلب دادې چې دا فرض نه ده بلکه واجب ده.علماء کرامو لیکلی دی چې دا سجده نبی کریم ﷺ د حضرت داؤد علیه السلام په موافقت کښې کړې وه، کله چې حضرت داؤد علیه السلام د توبې په قبلیدو د شکرانې په طور سجده کړې وه.

۱۰۲۸-(¹)[۵] ①وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَ مُجَاهِدٌ: قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ: ②أَأَسْجُدُ فِي (ص)؟ ③فَقَرَأَ: ﴿وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِ دَاوُدَ وَسُلَيْمَانَ﴾ [الأنعام: ٨٤] حَتَّى أَتَى ﴿فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ﴾ [الأنعام: ٩٠]، ④فَقَالَ: نَبِيُّكُمْ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِمَّنْ أُمِرَ أَنْ يَقْتَدِيَ بِهِمْ، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① او په یو روایت کې دي چې د مجاهد بیان دي چه ما د ابن عباس رضی الله عنهما څخه پوښتنه وکړه ② چې آیا زه په سورة ص کې سجده وکړم؟ ③ نو ابن عباس رضی الله عنهما دا آیت وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِ دَاوُدَ وَسُلَيْمَانَ حَتّٰى أَتٰى بِهُدٰهُمُ اقْتَدِهْ، وویلو ④ او وي فرمایل ستاسو نبي ﷺ هم د هغه خلقو څخه دي چې هغوئ ته د مخکنیو نبیانو د اتباع حکم وو. (بخاري.)

**تسهیلات:- قوله:** أَنْ يَقْتَدِيَ بِهِمْ

**د اقتداء څخه مراد:**-دحدیث پاك د آخری جملې مطلب دادې چې کله نبی کریم ﷺ د ماقبل انبیاء کرامو په موافقت کښې سجده کوی نو مونږ ته پکار دی چې مونږ په طریق اولی د نبی کریم ﷺ دحکم اتباع اوکړو .نبی کریم ﷺ د انبیاء سابقه متبع نه دې بلکه د هغوئ مقتداء دی، اود ټولو انبیاء کرامو د کمالاتو جامع دی.لهذا قل بل ملة ابراهیم حنیفا کښې د اطاعت څخه مراد موافقت دې.اقتداء او اتباع نه ده.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### ۱۰۲۹- په قرآن کښې د سجدو شمار

۱۰۲۹-(²)[۲] ①عَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ②«أَقْرَأَنِي رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -

¹) اخرجه البخاری کتاب تفسیر القرآن/ باب قوله: «أولئک الذین هدى الله فبهداهم اقتده_[الأنعام: ۹۰](رقم- ۴۶۳۲)

²) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة،باب تفریع أبواب السجود، وکم سجدة في القرآن (رقم-۱۴۰۱) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها/باب عدد سجود القرآن (رقم-۱۰۵۷)

خَمْسَ عَشْرَةَ سَجْدَةً فِي الْقُرْآنِ،[۲] مِنْهَا ثَلَاثٌ فِي الْمُفَصَّلِ، وَفِي سُورَةِ (الْحَجِّ)، سَجْدَتَيْنِ»، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه**:[۱] عمرو ابن العاص ﷺ وايي[۲] چې رسول الله ﷺ هغه (يعني عمرو ابن العاص ﷺ) ته په قرآن کې پنځلس سجدې اولوستلې[۳] په هغه کې درې خو په مفصل سورتونو کې دي او دوه سجدې په سورة حج کې دي. (ابوداود، ابن ماجه.)

**حل اللغات**:- ① الْمُفَصَّل: مفصلات (د سورة حُجرات نه تر د قرآن آخره پورې سورتونه مراد دی.او دې ته مفصلات ځکه وائی چه په دې کښې د قرآن د ټولو مضامينو اجمال تفصيل سره ذکرشوې دې).

**تسهيلات**:-

**قوله**: وَفِي سُورَةِ (الْحَجِّ)، سَجْدَتَيْنِ

**په سورة حج کښې د دوؤ سجدو کولو استحباب**:- دا حديث دَامام احمد ﷫ دليل دې اوواضح تردليل دې هغه دَ پنځلسو سجدو قائل دې. احنافودَ يوځو نورو روايتونو او آثارو دَ وجې نه په سورت حج کښې دَ يوې سجدې قول کړې دې. که چرې په دې کښې په دوو سجدو باندې عمل اوکړې شی نواختلاف به ختم شی اوځه بنه کار به اوشی. فتح الملهم کښې علامه شبير احمد عثمانی ﷫ خيال هم دې طرف ته دې دَ سورت حج دويمه سجده دَ حديث نه ثابته ده. بنده عاجز راقم الحروف دَدې نه وړاندې په دې باندې عمل نه دې کړې. آينده به ان شاء الله په دې حديث باندې عمل کوم اودَ سورت حج په دواړو سجدو باندې به عمل کيږي.

دَ مشکوة په بعض نسخوکښې قرأة په ځائی اقرأنی دې يعنی حضورپاک ﷺ ماته دَ لوستلو حکم اوکړو. دَدې لفظ دا يومطلب دې. بعض شارحينودا مطلب اخستې دې چه اقرأنی دَ اعلمنی په معنی کښې دې حضورپاک ﷺ ماته پنځلس سجدې اوخودلې دا مطلب زيات واضح دې.

**۱۰۳۰- د دوو سجدؤ په وجه د سورة حج فضيلت**

۱۰۳۰-(١)[٧] [۱] وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ:[۲] «قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ فُضِّلَتْ سُورَةُ (الْحَجِّ) بِأَنَّ فِيهَا سَجْدَتَيْنِ؟[۳] قَالَ: " نَعَمْ، وَمَنْ لَمْ يَسْجُدْهُمَا فَلَا يَقْرَأْهُمَا» "، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ،[۴] وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ،[۵] وَفِي "الْمَصَابِيحِ": "فَلَا يَقْرَأْهَا"، كَمَا فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه**:[۱] عقبه ابن عامر ﷺ فرمايي[۲] چې ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ سورة حج ته ځکه فضيلت حاصل دي چې په دي کې دوه سجدي دي؟[۳]

(١) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب تفريع أبواب السجود، وکم سجدة فی القرآن (رقم-١٤٠٢) والترمذی باب فی السجدة فی الحج (رقم-٥٧٨)

رسول الله ﷺ وفرمایل هو، کوم سړي چې دا دواړي سجدي نه کوي هغه دي د دې دواړو سجدو آیتونه نه وايي، ابوداؤد ترمذي،[۳] امام ترمذي رحمه الله فرمايي چه د دې حديث اسناد قوي نه دي[۵] او په مصابيح کې په مثل د شرح السنة فَلاَ يَقرآهَا (نو هغه دي دا سورت نه وايي) الفاظ دي.

**تسهیلات:-**

**قوله: وَمَنْ لَمْ يَسْجُدْهُمَا فَلَا يَقْرَأْهُمَا:**

**د دويمې نسخې په رڼړا کښې د حديث مطلب:-** د مشکوة د يو بله صحيح نسخه کښې د ((فلايقراهما)) په ځائې د ((فلم يقراهما)) الفاظ دی. د هغې نسخې په رڼړا کښې به د حضرت نبی کريم ﷺ د ارشاد مطلب دا وی چې چا هغه دواړه سجدې او نه کړې نو ګويا که هغه هډو کړې نه وی، يعنی کله چې هغه په آيت مبارك باندې عمل اونه کړو نو د هغه ادا کول او نه ادا کول برابر دی.

**۱۰۳۱- د سورة الم تنزيل سجده**

۱۰۳۱-()[۸] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سَجَدَ فِي صَلَاةِ الظُّهْرِ، [۲] ثُمَّ قَامَ فَرَكَعَ، فَرَأَوْا أَنَّهُ قَرَأَ (تَنْزِيلَ السَّجْدَةِ)». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] ابن عمر رضي الله عنهما فرمايي چې (يوه ورځ) رسول الله ﷺ د ماسپخين په لمانځه کې سجده وکړه [۲] او ودريدلو بيا يي رکوع وکړه او د خلقو دا ګمان وو چې رسول الله ﷺ سورة الم تنزيل السجده ويلي دي. (ابوداؤد.)

**تسهیلات:-**

**قوله: فَرَكَعَ:**

**په مانځه کښې د سجدې کولو دوه صورتونه:-**

① يعنی حضورپاك ﷺ سجده دَ تلاوت اوکړه او کله چه واپس شونوبيائی فوراً رکوع اوکړه دَ سورت باقی حصه ئی اونه لوستله دا صورت هم جائز دې

② دويم صورت دا دې چې دَ سورت باقی حصه اولوستلې شی. اودا صورت زيات افضل دې

**د نبی کريم ﷺ د اول صورت اختيارولو وجه:-** کيدې شی چه حضورپاك ﷺ دَ جواز دَ بيان دَ پاره داسې اوکړه. بل دا صورت افضل او اولی وو چه حضورپاك ﷺ سجدې ته لاړو نوسجده دَتلاوت به اداشی مګرمستقل سجدې ته تلل افضل دی حضورپاك ﷺ په افضل باندې عمل اوکړو. نن صباد حرمين شريفين ائمه هم دغه شان کوی.

---

[۱] اخرجه ابوداود في كتاب الصلاة، باب قدر القراءة في صلاة الظهر والعصر (رقم-۸۰۷)

۱۰۳۲–د سجده تلاوت په قاري او سامع دواړو باندې وجوب

۱۰۳۲–(۱)[۹] ۱ وَعَنْهُ أَنَّهُ قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقْرَأُ عَلَيْنَا الْقُرْآنَ، ۲ فَإِذَا مَرَّ بِالسَّجْدَةِ، كَبَّرَ وَسَجَدَ وَسَجَدْنَا مَعَهُ»، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ ابن عمر رضي الله عنهما فرمايي چې رسول الله ﷺ به زمونږ په مخکې قرآن ويلې ۲ او کله چې به د سجدې يو آيت ته ورسيدې نو تکبير به يې ويلې او سجده به يې کوله او مونږ به هم د حضور ﷺ سره سجده کوله. (ابوداؤد)

**تسهيلات:** - **قوله:** كَبَّرَ:

**د سجده د تلاوت دپاره په تكبيرتحريمې اورفع اليدين كښې مذاهب:** -

① شوافع حضرات د سجده تلاوت دپاره تکبيرتحريمه اولاسونوپورته کولو قائل دی.

② د تلاوت د سجدې دپاره دَاحنافو په نيز د تکبيرتحريمې اولاسونوپورته کولو ضرورت نشته.د سجدې دَ تلاوت ته تللودَپاره الله اکبروئيل کافی دی

**داول فريق دليل:** – دَحضرت عائشه رضي الله عنها دَ روايت نه معلوميږي چه دَ سجده تلاوت دَپاره اودريدل اوالله اکبر وئيل افضل اومستحب دی.

**د دويم فريق دليل:** –دويم فريق د زيربحث حديث څخه استدلال کوی.په کوم کښې چې د تکبيرتحريمې او لاسونو پورته کولو ذکر نشته.

۱۰۳۳–په عام الفتح د سجدې کولو يوه واقعه

۱۰۳۳–(۲)[۱۰] ۱ وَعَنْهُ أَنَّهُ قَالَ: «إِنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَرَأَ عَامَ الْفَتْحِ سَجْدَةً، ۲ فَسَجَدَ النَّاسُ كُلُّهُمْ، مِنْهُمُ الرَّاكِبُ وَالسَّاجِدُ عَلَى الْأَرْضِ، ۳ حَتَّى إِنَّ الرَّاكِبَ لَيَسْجُدُ عَلَى يَدِهِ»، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ ابن عمر رضي الله عنهما فرمايي چې رسول الله ﷺ د مکې د فتح په کال د سجدې (يو) آيت اووئيلو ۲ نو ټولو خلقو (د حضور ﷺ سره) د تلاوت سجده وکړه په سجده کونکو کې بعضې خو په سورلو باندې وو او بعضې په زمکه وو ۳ سوارلو والا په خپل لاس باندې سجده کوله. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① عَامَ الْفَتْحِ: أَيْ: فَتْحِ مَكَّةَ: يعنی دفتح مکې په کال.

**تسهيلات:** -

**قوله:** مِنْهُمُ الرَّاكِبُ وَالسَّاجِدُ عَلَى الْأَرْضِ

---

[۱] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة/باب فی الرجل يسمع السجدة وهو راکب، وفی غير الصلاة (رقم-۱۴۱۳) وللدارمی کتاب الصلاة/باب السجود فی ص (رقم-۱۵۰۷)

[۲] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة/باب فی الرجل يسمع السجدة وهو راکب، وفی غير الصلاة (رقم-۱۴۱۱)

**د سجده تلاوت دوجوب دليل:** -ددې دليل نه واضح دی چې سجده د تلاوت واجب ده.ځکه که چرې واجب نه وې نو د سجدې به دومره اهتمام نه کيدو، که څوک په سورلۍ وو اوکه پيدل وو ټولو سجده اوکړه.

**قوله:** حَتَّى إِنَّ الرَّاكِبَ لَيَسْجُدُ عَلَى يَدِهِ

**په لاسونوه سجدې کولوجواز:** - دحديث مطلب دادې چې دا سوارۀ پخپلو آسونو وغيره سوارۀ وو ،هغوئ به خپل لاسونه په زين باندې کيخودل او سجده به ئې کوله.او دې سره به هغوئ ته لکه د زمکې پشان سختی ملاويده.حضرت ابن ملك رحمة الله عليه فرمائی چې ددې نه دا خبره ثابته شوه که يو کس څټ ټيټ کړی او په خپلو لاسونو باندې سجده اوکړی نو دهغه سجده به جائز وی.

## ۱۰۳۴-په مفصل سورتونو کښې سجدې

۱۰۳۴-()[۱] [۱]وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، [۲]«أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَمْ يَسْجُدْ فِي شَيْءٍ مِنَ الْمُفَصَّلِ [۳]مُنْذُ تَحَوَّلَ إِلَى الْمَدِينَةِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] ابن عباس رضي الله عنه فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ د مفصل په سورتونو کې په هيځ سورت کې سجده ونه کړه[۳] دکله نه يې چي مديني ته تشريف راوړلو. (ابوداؤد.)

**حل اللغات:** - ①مُنْذُ: د افعال مقاربه نه دې ②تَحَوَّلَ: چه راواپس شو، تشريف ئې راوړو.

**تسهيلات:** -

**تعارض:** -ددې روايت څخه په واضحه توګه ثابتيږی چه حضورپاك ﷺ په مفصلات کښې سجده د تلاوت نه ده کړې. اود حضرت ابوهريره رضي الله عنه حديث نمبر ۱۰۲۴ ۲ څخه معلومه ده چې مفصلات کښې حضور پاك سجده کړې

**د تعارض لرې کولو د ترجيح درې طريقې:** -

① دحضرت ابوهريره رضي الله عنه د روايت نه د اثبات اړخ راؤځی اود حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د روايت نه دنفی اړخ او په وخت دتعارض اثبات په نفی باندې مقدم وی ځکه چه په اثبات کښې څه زياتی علم وی.

② جمهورو دحضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت راجح ګرځولي دې ځکه چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه په کال ۷ هجری کښې ايمان راوړلې دې دهغه قول اوفعل متاخردې چه د سابقه حکم دپاره ناسخ جوړيدې شی.

③ دحضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت د صحت او قوت په اعتبارسره اعلی او اولی دې لهذا راجح دې.

[۱] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب من لم ير السجود فی المفصل (رقم-۱۴۰۳)

### ۱۰۳۵- د سجده تلاوت تسبيح

۱۰۳۵-()[۱۲][۱]وَعَنْ عَائِشَةَ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ:[۲]«كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ فِي سُجُودِ الْقُرْآنِ بِاللَّيْلِ:[۳] " سَجَدَ وَجْهِي لِلَّذِي خَلَقَهُ،[۴] وَشَقَّ سَمْعَهُ وَبَصَرَهُ بِحَوْلِهِ وَقُوَّتِهِ» "، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ،[۵]وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:**[۱] بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي[۲] چې رسول الله ﷺ به د شپې د قرآن په سجدو كښې دا تسبيح ويلې [۳] سَجَدَ وَجْهِيْ لِلَّذِي خَلَقَهُ وَشَقَّ سَمْعَهُ وَبَصَرَهُ بِحَوْلِهِ وَقُوَّتِهِ، زما مخ هغه ذات ته سجده وكړه چې هغه دا پيدا كړې دې [۴] او په خپل قوت او قدرت سره يې ورته غوږونه او سترګې جوړې كړې دي، ابوداؤد ترمذي نسايي،[۵] او امام ترمذي رحمة الله عليه فرمايلي دي چې دا حديث حسن صحيح دې.

**حل اللغات:**- ① شَقَّ: أَيْ: فَتَحَهُمَا: شق څيرلو او شلولوته وائى دلته ترې مراد د اوريدلو او ليدلو قابل كيدل مراد دى. ② بِحَوْلِهِ: أَيْ: بِصَرْفِهِ: په خپل تصرف او قدرت سره،

**تسهيلات:**-

**قوله:** يَقُولُ فِي سُجُودِ الْقُرْآنِ بِاللَّيْلِ

**فائده:**- كوم سړې چه دا دعا وئيلې شى خوتيك ده ګنى دَ احنافو په نيز دَ تلاوت په سجده كښې "سبحان ربى الاعلى" كافى دي.

### ۱۰۳۶- د سجده تلاوت دعا

۱۰۳۶-()[۱۳][۱]وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ:[۲]«جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ![۳] رَأَيْتُنِي اللَّيْلَةَ وَأَنَا نَائِمٌ كَأَنِّي أُصَلِّي خَلْفَ شَجَرَةٍ،[۴] فَسَجَدْتُ، فَسَجَدَتِ الشَّجَرَةُ لِسُجُودِي، فَسَمِعْتُهَا تَقُولُ:[۵]اللَّهُمَّ اكْتُبْ لِي بِهَا عِنْدَكَ أَجْرًا،[۶]وَضَعْ عَنِّي بِهَا وِزْرًا،[۷]وَاجْعَلْهَا لِي عِنْدَكَ ذُخْرًا، [۸]وَتَقَبَّلْهَا مِنِّي كَمَا تَقَبَّلْتَهَا مِنْ عَبْدِكَ دَاوُدَ.

**ترجمه:**[۱] ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي[۲] چې (يوه ورځ) يو سړي د حضور ﷺ په خدمت كې حاضر شو او عرض يې وكړو چې يا رسول الله ﷺ [۳] ما نن شپه خپل ځان په خوب كې وليدلو لكه چې د يوې ونې لاندې مونځ كوم [۴] او دا مې هم وليدل چې كله ما سجده تلاوت وكړه نو هغه ونې هم زما سره د سجدې په وخت سجده وكړه نو ما دا واوريدل چې هغه ونې دا دعا كوله:[۵] اللَّهُمَّ اكْتُبْ لِي بِهَا عِنْدَكَ أَجْرًا وَضَعْ عَنِّي بِهَا وِزْرًا وَاجْعَلْهَا لِي عِنْدَكَ ذُخْرًا وَتَقَبَّلْهَا مِنِّي كَمَا تَقَبَّلْتَهَا مِنْ عَبْدِكَ دَاوُدَ، (اې الله زما د پاره د دې سجدې ثواب د ځان سره وساته

---

[1] اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة،باب ما يقول إذا سجد (رقم-۱۴۱۴) والترمذى كتاب السفر/باب ما يقول فى سجود القرآن (رقم-۵۸۰)

[2] اخرجه الترمذى فى كتاب السفر/باب ما يقول فى سجود القرآن (رقم-۵۷۹)

۶ او د دې په وجه زما ګناه معاف کړي۷ او دا سجده زما د پاره د ځان سره ذخيره جوړه کړي۸ او زما څخه دا سجده داسې قبوله کړي څنګه چې دي د خپل بنده داؤد عليه السلام څخه قبوله کړي ده»

**حل اللغات**:- ① رَأَيْتُنِي: أَيْ: أَبْصَرْتُ ذَاتِي الْبَارِحَةَ: تيره شپه مې خپل ځان په خوب کښې اوليدلو.
② أَجْرًا: أَيْ: عَظِيمًا: ډير ثواب. ③ وِزْرًا: أَيْ: ذَنْبًا ثَقِيلًا جَسِيمًا: بوج يعنى دګناه درونډ پيتى، ④ ذُخْرًا: أَيْ: كَنْزًا ضَخِيمًا: لويه ذخيره او خزانه.

۱ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: فَقَرَأَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سَجْدَةً ثُمَّ سَجَدَ، ۲ فَسَمِعْتُهُ وَهُوَ يَقُولُ مِثْلَ مَا أَخْبَرَهُ الرَّجُلُ عَنْ قَوْلِ الشَّجَرَةِ، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، ۳ وَابْنُ مَاجَهْ، إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ: وَتَقَبَّلْهَا مِنِّي كَمَا تَقَبَّلْتَهَا مِنْ عَبْدِكَ دَاوُدَ». ۴ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه**: ۱ ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي چې رسول الله ﷺ دا دعا د ويلو په غرض سره هم په هغه مجلس کې يا وروسته د سجدې د آيت ويلو سره سجده تلاوت وکړه۲ او ما د حضور ﷺ نه د دعا هغه کلمات واوريدل چې هغه سړي د اوني څخه نقل کړي وو يعنى حضور ﷺ هغه دعا وويله، ترمذي، ۳ دا روايت ابن ماجه هم نقل کړي دي خو د هغه په روايت کې وَتَقَبَّلْهَا كَمَا تَقَبَّلْتَهَا مِنْ عَبْدِكَ دَاوُدَ، الفاظ نشته ۴ او امام ترمذي فرمايلي دي چې دا حديث غريب دي.

**تسهيلات**:-

**قوله**: فَقَرَأَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سَجْدَةً ثُمَّ سَجَدَ

**دسجدې د آيت څخه مراد**:-د دې حديث څخه معلوميږي چې هغه کس به د سورة صاد د سجدې والا آيت لوستې وى، اود نبى كريم ﷺ باره کښې دى چې نبى كريم ﷺ هم دسورة صاد آيت اولوستو.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**۱۰۳۷- دسورة نجم سجده**

۱۰۳۷-(¹)[۱۳] ۱ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَرَأَ: وَالنَّجْمِ، ۲ فَسَجَدَ فِيهَا، وَسَجَدَ مَنْ كَانَ مَعَهُ، ۳ غَيْرَ أَنَّ شَيْخًا مِنْ قُرَيْشٍ أَخَذَ كَفًّا مِنْ حَصًى - أَوْ تُرَابٍ - فَرَفَعَهُ إِلَى جَبْهَتِهِ، ۴ وَقَالَ: يَكْفِينِي هَذَا، ۵ قَالَ عَبْدُ اللهِ: فَلَقَدْ رَأَيْتُهُ بَعْدُ قُتِلَ كَافِرًا»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ، ۶ وَزَادَ الْبُخَارِيُّ فِي رِوَايَةٍ: وَهُوَ أُمَيَّةُ بْنُ خَلَفٍ.

[1] اخرجه البخارى كتاب الجمة/ باب سجدة النجم (۱۰۷۰) ومسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة/ باب سجود التلاوة (رقم) ۱۰۵ - (۵۷۶) وابوداود كتاب الصلاة باب من رأى فيها السجود (رقم-۱۴۰۶)

**ترجمه:**[۱] عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ (يوه ورځ) سورة نجم تلاوت کړو[۲] او په هغه کې يې سجده وکړه کوم خلق چې ورسره وو هغوئ هم سجده وکړه[۳] خو د قريشو يو بوډا سنګريزې يا د خاورو يو موټې راخستو او په خپل تندي يې ومږل[۴] او وي ويل زما د پاره دا کافي ده[۵] ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې د دې واقعې څخه وروسته ما وليدل چې هغه سړې د کفر په حالت کې قتل کړې شو، بخاري مسلم،[۶] او بخاري رحمه الله په يو روايت کښې دا الفاظ هم نقل کړي دي چې هغه بوډا اميه بن خلف وو.

**حل اللغات:**- ① شَيْخًا:أَيْ:كَبِيرَالسِّنِّ: بوډا سړې، ② حَصًى: کانړې.

**تسهيلات:**-

**قوله:** غَيْرَأَنَّ شَيْخًا مِنْ قُرَيْشٍ

**د شيخ څخه مراد:**-د دې بوډا څخه مراد اميه بن خلف دې کوم چې د قريشو سردار وو.او دهغه د نبی کريم ﷺ خلاف په سازشونو کولو کښې ډير لوې لاس وو.نبی کريم ﷺ سره ټولو خلقو سجده ادا کړه خو دې مغرور کس دسر ښکته کولو په ځائې يو څو کانړې راواخستل اوهغه تندی پورې اومږل او وې چې ما لره دا کافی دی.همدا هغه بد بخت دې چې نبی کريم ﷺ معمولی شان زخمی کړې وو او بيا هلاک شوې وو.

**۱۰۳۸-د سورة ص سجده**

۱۰۳۸-(¹)[۱۵][۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ:[۲]«إِنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سَجَدَ فِي (ص)،وَقَالَ:[۳]"سَجَدَهَا دَاوُدُ تَوْبَةً،وَنَسْجُدُهَا شُكْرًا» "،رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:**[۱] ابن عباس رضي الله عنه فرمايي[۲] چې رسول الله ﷺ په سورة ص کې سجد وکړه [۳] او وي فرمايل چې داؤد عليه السلام د سورة ص دا سجده د توبې د قبوليت د پاره کړې وه (چې د هغې تفصيل په سورة ص کې مذکور دي) او مونږ دا سجده (د هغه د توبې په قبوليت) د شکر ګزاري د پاره کوو. (نسايي.)

**تسهيلات:**-

**نوټ:**- د دې حديث وضاحت د سجده تلاوت د مذاهبوپه بحث کښې ذکر شوې دې.

---

¹) اخرجه النسائی کتاب الافتتاح /باب سجود القرآن السجود فی ص (رقم-۹۵۷)

## [ ۳۸/۲۲ ]بَابُ أَوْقَاتِ النَّهْيِ ] أی اوقات التی کره فیها الصلوة

**د ممنوعه وختونو بیان یعنی هغه وختوله چه مونځ پکښې مکروه دې**

**خلاصة الباب: -**

**فيه ثلاثة عشر حديثاً مشتملة على ست مسائل:**

① النهي عن الصلوة فى الأوقات الثلاثة المكروهة: ۱، ۲، ۴، ۸، ۹، ۱۰۔

② النهي عن النوافل فى بعض الأوقات: ۳، ۴، ۶، ۱۱، ۱۲، ۱۳۔

③ كون الركعتين بعد العصر خصوصية النبي ﷺ : ۵۔

④ سنة الفجر بعد الفرض: ۶۔

⑤ جواز الصلوة فى مكة في جميع الأوقات: ۷، ۱۳۔

⑥ الصلوة فى نصف النهار يوم الجمعة: ۸، ۹۔

**داوقات ممنوعه فيها الصلاة دوه قسمونه: -** په احادیثو مقدسه کښې په کوموو ختونو کښې دَمونځ نه منع شوې ده هغه ټول پنځه وختونه دی لیکن دَ دریو حیثیت یو قسم دې اودَ دوو حیثیت دَ جدا قسم دې.

**داول قسم درې وختونه: -**

① دَ نمردَ شروع دَ راختلودَ وخت نه دَ نمر زیړپاتې کیدو پورې وخت مکروه دې کله چه زیړوالې ختم شی او په نمرکښې تیزی راشی نوبیا مکروه وخت پاتې نه شی.

② دَ نصف النهاروخت مکروه دې.

③ دَ مازیگرپه وخت دَ نمرزیړیدو نه واخله دَ نمر ډوبیدوپورې وخت مکروه دې.

**د دویم قسم دوه وختونه: -** ① دَ سحر مونځ کولونه پس دَ نمر راختلوپورې. دَ دویم قسم درې وختونه دادی:

② دَمازیگردَ مونځ کولونه پس دَ نمر پریوتو پورې.

**د دواړوه قسمه احادیثو حکم: -** ① دَ اول قسم په وختونوکښې دَ نهی اوممانعت احادیث صحیح خودی لیکن متواترنه دی.

② دَ دویم قسم په دوو وختونوکښې دَ مونځ کولونه دَممانعت او بندولو احادیث متواتر دی. دَ جرح اوتعدیل علماؤ اومحدثینو حضراتو دَدې دَمتواترکیدو تصریح کړې ده. (معارف السنن)

**د ذوات الاسباب اوغیر ذوات الاسباب تعریفونه: -** د اختلاف لیکلو څخه وړاندې د تمهید په طور د ذوات الاسباب اوغیرذوات الاسباب پیژندگلو ضروری ده.چې روسته بیا

مشکلات نه وي.

① نوافل ذوات السبب هغه دي دَ کوم دَ پاره چه جديد سبب پيدا شوې وي مثلاً تحية المسجد، تحية الوضوء، صلوة الکسوف اوصلوة الاستسقاء دا ټول نوافل دَ جديد سبب پيدا کيدو دَ وجې نه کولې شي.

② دَ کومو نوافلو دَپاره چه څه جديد سبب يا جديد وجه اويا څه علت نه وي هغه غيرذوات السبب دي

**په دواړه قسمه وختونو کښې د مطلق نوافلو په جوازاوعدم جواز کښې مذاهب:-**

① دَ شوافع اوحنابله په نيز دَ اول قسم اودويم قسم دَ وختونوحکم يوشان دې هيڅ فرق نشته دې. هغه حکم دادې چه دې اوقاتوکښې فرائض مطلقًا جائزدي او نوافل ذوات الاسباب هم جائزدي البته نوافل غيرذوات الاسباب جائزنه دي.

② دَ مالکيه حضراتو په نيز په دغه ممنوته وختونوکښې فرائض کول جائزدي ليکن نوافل کول جائزنه دي. که ذوات الاسباب وي او که غيرذوات الاسباب وي.

③ احناف په دغه مکروه دواړو قسم وختونوکښې فرق کړې دې دَهغوی په نيزپه اول قسم دريواړو وختونوکښې نه نوافل جائزدي اونه فرائض جائزدي. اوهيڅ قسم مونځ جائزنه دې. که يوسړې په دغه وختونوکښې نفل کوی نو په کراهت تحريمه سره به اداشی بلکه په نفل کښې دَ شروع کولونه پس بهتر دادی چه دا مات کړی او بل وخت کښې دَ دې قضاء اوکړی. اوکه يوسړې په دغه دريواړو وختونوکښې څه فرض يا واجب کوی نوهغه به باطل شی.اودويم قسم کښې فرائض جائزدي نوافل جائزنه دي.

**په اوقات مکروهه کښې د درې قسمه مونځونو استثناء:-** اويوڅو څيزونه دَدې دَ حکم نه مستثنی دي.

① دَ نمردَ ډوبيدووخت کښې هم دَ دغه ورځې دَ مازيگرمونځ چرته پاتې شوی وی نوهغه کولې شي.

② که په دغه وختونوکښې جنازه په مخ راغله نوهغه کولې شي.

③ که په دغه وختونوکښې دَ تلاوت سجده لازم شی نوهغه ادا کولې شي.

**په دواړه قسمه وختونوکښې د نوافلو په حکم کښې د فرق وجه:-** احنافوچه په دويم قسم او اول قسم وختونوکښې کوم فرق کړې دې دَ دې فرق وجه داده چه دَ اول قسم په دريواړو وختونوکښې په مونځ کولوسره دَ نهی علت په دغه وختونوکښې دَنقص اوخامئی وجود دې چه دا وختونه ناقص دی دَدې په ذات کښې خامی ده لهذا په دې کښې دَهرقسم مونځ کول جائزنه دي. ليکن دَ دويم قسم په دوو وختونوکښې ذاتی نقص اوخامی نشته بلکه دَ څه خارجي وجې نه په دې کښې ممانعت راغلې دې. اوهغه خارجي وجه داده چه دا دواړه

وختونه ډير افضل اوغوره دی په دې وجه شريعت دا فرائضوسره مختص کړی دی دې
دپاره چه دا دواړه وختونه مشغول بحق الفرض پاتې شی اودَ نوافل په دې کښې دخل
اومداخلت نه وی په دې وجه نوافل جائز نه دی فرائض جائزدی. په دې تفصيل اوقواعدسره
به دَمکروه وختونو اکثرمسائل حل شی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**۱۰۳۹ – د نمر ختو او ډوبيدو په وختونو کښې د مونځ کولو ممانعت**

۱۰۳۹ –(۱)[۱] [۱] عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] «لَا يَتَحَرَّى أَحَدُكُمْ فَيُصَلِّيَ عِنْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَلَا عِنْدَ غُرُوبِهَا ". [۳] وَفِي رِوَايَةٍ، قَالَ: " إِذَا طَلَعَ حَاجِبُ الشَّمْسِ فَدَعُوا الصَّلَاةَ حَتَّى تَبْرُزَ [۴] وَإِذَا غَابَ حَاجِبُ الشَّمْسِ فَدَعُوا الصَّلَاةَ حَتَّى تَغِيبَ [۵] وَلَا تَحَيَّنُوا بِصَلَاتِكُمْ طُلُوعَ الشَّمْسِ وَلَا غُرُوبَهَا [۶] فَإِنَّهَا تَطْلُعُ بَيْنَ قَرْنَيِ الشَّيْطَانِ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابن عمر رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] تاسو کې دې هيڅوک د نمر ختو او ډوبيدو په وخت د لمانځه کولو قصد نه کوي [۳] د بل روايت الفاظ دا دي چې حضور ﷺ وفرمايل هر کله چې د نمر کناره ښکاره شي نو مونځ پريږدي تر دې چې نمر ښه ظاهر شي (يعني د يوې نيزې په قدر راپورته شي) [۴] دغه رنګه چې د نمر کناره ډوبه شي نو مطلقًا هيڅ مونځ که فرض وي که نفل پريږدي تر دې چې هغه بالکل ډوب شي [۵] او د نمر د طلوع او غروب کيدو په وخت د لمانځه کولو اراده مه کوئ [۶] ځکه چې نمر د شيطان د دوو ښکرونو په مينځ کې راخيژي. (بخاري، مسلم.)

**حل اللغات:-** ① لَا يَتَحَرَّي: أَيْ: لَا يَقْصِدُ: قصد دې نه کوی. ② حَاجِبُ: أَيْ: طَرَفُهَا: د نمر کناره، غاړه، ③ تَبْرُزَ: أَيْ: تَخْرُجَ وَتَظْهَرَ كُلُّهَا: چه پوره راښکاره شی. ④ فَدَعُوا: نو پريږدئ، (يعنی مه شروع کوئ). ⑤ لَا تَحَيَّنُوا: أَيْ: لَا تَتَقَرَّبُوا: تحين دَ حين نه دې دَ وخت مقرر کولو په معنی کښې دې. دَ قصد په معنی کښې هم راځی اودَ دې لفظ معنی انتظارهم، او نزديکت هم، دې ټولې معانی دلته صحيح دی. ⑥ قَرْنَي : د قرن تثنيه ده، ښکر ته وائی.

**تسهيلات:-**

**قوله: قَرْنَيِ الشَّيْطَانِ:**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:-**

① دَ شيطان عبادت خو څوك براه راست څوك نه کوی او شيطان خپل عبادت کول غواړی.

---

[۱] اخرجه البخاری کتاب مواقيت الصلاة/ باب الصلاة بعد الفجر حتی ترتفع الشمس (رقم- ۵۸۵) ومسلم کتاب صلاة المسافرين وقصرها/ باب الأوقات التی نهی عن الصلاة فيها (رقم) ۲۸۹ - (۸۲۸) والنسائی کتاب المواقيت/باب من أدرك رکعة من الصلاة (رقم-۵۷۰)

نود نمر دَ راختو او ډوبيدو اوذ نمر په تندی باندې دَ اودريدو په وخت نمر پرست دَ نمر عبادت کوی نو شيطان لاړشی اوذ راختو په وخت دَ نمر مخې ته شاه کړی اودريږی او دَ نمر عبادت کوی نو نمر دَ شيطان دَ اوږو او سټ دواړو طرفونو باندې راخيژی کوم وخت چه نمر پرست دَ نمر عبادت کوی نوشيطان خوشحاليږی چه زما عبادت کيږی. هم دغه کار ابليس خبيث په غرمه کښې نمر دَ آسمان مينځ ته دَ راتلو په وخت کوی اوهم دغه کار هغه دَ نمر دَ ډوبيدو په وخت کوی. په دې وجه شريعت په دغه وختونوکښې دَسجدې نه منع کړې ده، دې دپاره چه عُباد شيطان سره مشابهت رانه شی.

⑥ نمر پرست مشرکانوته شيطان وئيلې شوې دې چه دا شيطانان خلق په دغه دريو وختونو کښې دَ نمر عبادت کوی په دې وجه تاسو په دغه وختونو کښې سجده مه کونی چه دې مشرکانو سره مشابهت رانه شی.

۱۰۳۰—درې اوقات مکروهه

۱۰۳۰—(۲)[۱] وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «ثَلَاثُ سَاعَاتٍ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَانَا أَنْ نُصَلِّيَ فِيهِنَّ [۳] أَوْ أَنْ نَقْبُرَ فِيهِنَّ مَوْتَانَا [۴] حِينَ تَطْلُعُ الشَّمْسُ بَازِغَةً حَتَّى تَرْتَفِعَ [۵] وَحِينَ يَقُومُ قَائِمُ الظَّهِيرَةِ حَتَّى تَمِيلَ الشَّمْسُ [۶] وَحِينَ تَضَيَّفُ الشَّمْسُ لِلْغُرُوبِ حَتَّى تَغْرُبَ»، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] عقبه ابن عامر رضی الله عنه فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ به په درې وختونو کې منع فرمايله د لمانځه کولو څخه [۳] او د مړي د دفن کولو څخه [۴] ① د نمر ختو په وخت تر دې چې بلند (اوچت) شی [۵] ② د غرمې سايه (سورې) قائميدو يعنی نصف النهار په وخت تر دې چې نمر په زوال شی [۶] ③ او دريم کوم وخت چې نمر ډوبيږي تر دې چې ډوب شي. (مسلم.)

**حل اللغات:** - ① نَقْبُرَ: په وزن د ننصر باندې، أي: نَدْفِنُ: چه مونږ دفن کړو (مړی). ② بَازِغَةً: أي: طَالِعَةً ظَاهِرَةً: ښکاره اوچت راوخيجی. ③ قَائِمُ الظَّهِيرَةِ: وَهِيَ شِدَّةُ الْحَرِّ نِصْفَ النَّهَارِ: يعنی د زوال په وخت، د غرمې په وخت. ④ تَمِيلَ الشَّمْسُ: چه واوړی نمر (يعنی د آسمان د منځ نه د مشرق نه مغرب طرف ته شی، زوال اوشی). ⑤ تَضَيَّفُ الشَّمْسُ: أي: تُضَيَّفُ بِمَعْنَى تَمِيلُ: مائل شی نمر، يعنی ډوبيدل د نمر شروع شی.

**تسهيلات:** - **قوله:** نَقْبُرَ فِيهِنَّ:

**په اوقات ثلاثه کښې د هر قسم مونځ کولو ممانعت:** - يعنی درې داسې ممنوعه مکروه وختونه دی چه حضور پاک ﷺ مونږ په دې کښې دَ مونځ کولونه منع کړې يودَ نمردَ راختو

[۱] اخرجه مسلم كتاب صلاة المسافرين وقصرها/ باب الأوقات التى نهى عن الصلاة فيها (رقم) ۲۹۳ - (۸۳۱) والترمذى كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فى كراهية الصلاة على الجنازة عند طلوع الشمس وعند غروبها (رقم-۱۰۳۰) والنسائى كتاب المواقيت/باب النهى عن الصلاة نصف النهار (رقم-۵۶۵) وابن ماجة باب ما جاء فى الأوقات التى لا يصلى فيها على الميت ولا يدفن (رقم-۱۵۱۹)

وخت دويم دَ نصف النهار وخت دي او دريم دَ نمر دَ ډوبيدو وخت دي.

**قوله:** أَنْ نَقْبُرَفِيهِنَّ مَوْتَانَا:

**نقبر په معنی د نصلی:** – په قبر کښې خښيدو ته وائی ليکن دلته نقبر دَ "نصلی" په معنی کښې دي دَ کوم نه چه دَ جنازې مونځ مراد دي چه دا په مکروه وخت کښې مه کوئی. افضل او اولی هم دغه دی چه په مکروه وختونو کښې دې جنازه نه وی که هم په دغه مکروه وختونو کښې مړې راوړلې شو نو دَهغه جنازه کولې شی.

**۱۰۳۱– د سحر او مازيګر څخه وروسته د لمانځو کراهت**

۱۰۳۱–()[۳] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[۲] «لَا صَلَاةَ بَعْدَ الصُّبْحِ حَتَّى تَرْتَفِعَ الشَّمْسُ، [۳] وَلَا صَلَاةَ بَعْدَ الْعَصْرِ حَتَّى تَغِيبَ الشَّمْسُ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابو سعيد خدري رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د سحر (د لمانځه) څخه وروسته تر هغه وخته پورې چې (بقدر نيزه) نمر اوچت نه شی هيڅ مونځ نشته [۳] او د مازيګر د لمانځه څخه وروسته تر هغه وخته پورې چې نمر پټ (ډوب) نشي هيڅ مونځ نشته. (بخاري، مسلم.)

**تسهيلات:** -

**نوټ:** – د دې حديث تشريح په اوقات خمسه کښې د مونځ د کراهت به بحث کښې ذکر شوې دې.

**۱۰۳۲– د مانځه وختونه**

۱۰۳۲–()[۴] [۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «قَدِمَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الْمَدِينَةَ، فَقَدِمْتُ الْمَدِينَةَ، فَدَخَلْتُ عَلَيْهِ، [۳] فَقُلْتُ: أَخْبِرْنِي عَنِ الصَّلَاةِ، فَقَالَ: " صَلِّ صَلَاةَ الصُّبْحِ، [۴] ثُمَّ أَقْصِرْ عَنِ الصَّلَاةِ حِينَ تَطْلُعُ الشَّمْسُ حَتَّى تَرْتَفِعَ، [۵] فَإِنَّهَا تَطْلُعُ حِينَ تَطْلُعُ بَيْنَ قَرْنَيْ الشَّيْطَانِ، [۶] وَحِينَئِذٍ يَسْجُدُ لَهَا الْكُفَّارُ، [۷] ثُمَّ صَلِّ فَإِنَّ الصَّلَاةَ مَشْهُودَةٌ مَحْضُورَةٌ [۸] حَتَّى يَسْتَقِلَّ الظِّلُّ بِالرُّمْحِ، [۹] ثُمَّ أَقْصِرْ عَنِ الصَّلَاةِ؛

**ترجمه:** [۱] عمرو بن عبسه رضی الله عنه فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ چې مديني ته تشريف راوړو نو زه هم مديني ته راغلم او د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شوم [۳] عرض مې وکړو چې،

[1]) اخرجه البخاری کتاب مواقيت الصلاة/ باب الصلاة بعد الفجر حتی ترتفع الشمس (رقم- ۵۸۱) ومسلم کتاب صلاة المسافرين وقصرها/ باب الأوقات التی نهی عن الصلاة فيها (رقم) ۲۸۷ - (۸۲۶) وابوداود کتاب الصلاة،باب من رخص فيهما إذا کانت الشمس مرتفعة (رقم-۱۲۷۶) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی کراهية الصلاة بعد العصر وبعد الفجر(رقم-۱۸۳) والنسائی کتاب المواقيت/باب من أدرک رکعة من الصلاة (رقم-۵۶۲) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب النهی عن الصلاة بعد الفجر وبعد العصر (رقم-۱۲۵۰)

[2]) اخرجه مسلم کتاب صلاة المسافرين وقصرها/ باب إسلام عمرو بن عبسة (رقم) ۲۹٤ - (۸۳۲) والنسائی کتاب المواقيت/باب النهی عن الصلاة بعد العصر (رقم-۵۷۲)

یا رسول الله ﷺ ماته د لمانځه وختونه وښایه حضور ﷺ راته وفرمایل د سحر مونځ اوکړه۴ بیا د لمانځه څخه منع شه تر څو پورې چې نمر راختو سره اوچت نشي۵ ځکه چې نمر راخیجي نو د شیطان د دواړو ښکرنو په مینځ کې راخیجي۶ او هغه وخت کافر (یعني د نمر عبادت کونکي) هغه ته سجده کوي۷ بیا (د اشراق) مونځ اوکړه ځکه چې د دې وخت مونځ مشهود دي (یعني فرشتي د لمانځه ګواهي ورکوي) او په دي کې فرشتي حاضریږي۸ تر دې چې (کله) سایه (سورې) نیزي ته وخیژي او په زمکه نه پریوځي (یعني ټکنه غرمه شي)۹ نو د لمانځه څخه منع شه

**حل اللغات:**- ① أَقْصِرْ: أَيْ: كُفَّ وَامْتَنِعْ: بند شه، منع شه، دا د إِقْصَار نه دي، وَهُوَ: الْكَفُّ عَنِ الشَّيْءِ مَعَ الْقُدْرَةِ عَلَيْهِ: سره د قدرت نه د یوڅیز نه منع کیدو ته واني. ② مَشْهُودَةٌ: أَيْ: يَحْضُرُهَا الْمَلَائِكَةُ لِيَكْتُبُوا أَجْرَهَا: فرشتي ورته حاضریږی چه ددې ثواب اولیکی، یا شاهدی او ګواهی ورکړی. ③ مَحْضُورَةٌ: یا خو دا تاکید دې دمخکښې لفظ مشهودة دپاره، یا دا معنی چه :أَيْ: يَحْضُرُهَا أَهْلُ الطَّاعَةِ مِنْ سُكَّانِ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ: د زمکې او آسمان اطاعت ګذار ورته حاضریږی. ④ يَسْتَقِلَّ الظِّلُّ: أَيْ: يَرْتَفِعَ الظِّلُّ: چه سورې (سایه) اوچته شی. ⑤ الرُّمْحِ: نیزه،

> ١ فَإِنَّ حِينَئِذٍ تُسْجَرُ جَهَنَّمُ، ٢ فَإِذَا أَقْبَلَ الْفَيْءُ فَصَلِّ؛ ٣ فَإِنَّ الصَّلَاةَ مَشْهُودَةٌ مَحْضُورَةٌ حَتَّى تُصَلِّيَ الْعَصْرَ، ٤ ثُمَّ أَقْصِرْ عَنِ الصَّلَاةِ حَتَّى تَغْرُبَ الشَّمْسُ؛ ٥ فَإِنَّهَا تَغْرُبُ بَيْنَ قَرْنَيِ الشَّيْطَانِ وَحِينَئِذٍ يَسْجُدُ لَهَا الْكُفَّارُ" ٦ قَالَ: قُلْتُ: يَا نَبِيَّ اللهِ فَالْوُضُوءُ حَدِّثْنِي عَنْهُ ٧ قَالَ: " مَا مِنْكُمْ رَجُلٌ يُقَرِّبُ وَضُوءَهُ ٨ فَيُمَضْمِضُ وَيَسْتَنْشِقُ فَيَسْتَنْثِرُ، ٩ إِلَّا خَرَّتْ خَطَايَا وَجْهِهِ وَفِيهِ وَخَيَاشِيمِهِ، ١٠ ثُمَّ إِذَا غَسَلَ وَجْهَهُ كَمَا أَمَرَهُ اللهُ، ١١ إِلَّا خَرَّتْ خَطَايَا وَجْهِهِ مِنْ أَطْرَافِ لِحْيَتِهِ مَعَ الْمَاءِ، ١٢ ثُمَّ يَغْسِلُ يَدَيْهِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ؛

**ترجمه:** ١ ځکه چې دا وخت دوزخ ګرمول کیږی ٢ بیا چې کله سایه (سورې) راشي نو (دماسپخین فرض او څه چې غواړې نفل) مونځ کوه ٣ ځکه چې دا وخت د فرشتو د شهادت ورکولو او د حاضري دي تر دې چې ته د مازیګر مونځ وکړې ٤ بیا د لمانځه څخه منع شه تر دې چې نمر ډوب شي ٥ ځکه چې نمر د شیطان د دواړو ښکرونو په مینځ کې ډوبیږي او کفار (یعني د نمر عبادت کونکي) د هغه طرف ته سجده کوي ٦ عمرو ابن عبسه رضی الله عنه فرمایي چې ما بیا عرض وکړو چې یا رسول الله ﷺ د اوداسه (د فضیلت) متعلق هم راته وښایه ٧ رسول الله ﷺ وفرمایل په تاسو کې چې کوم سړي د اودس اوبه واخلي ٨ او (نیت کولو بسم الله ویلو او دواړه لاسونه تر مړوندو پورې وینځلو څخه وروسته) خله ووینځي او په پوزه کې اوبه راچوي هغه سونړ کړي ٩ نو د هغه د مخ (د ننه) د خلي او د سپړمو (صغیره) ګناه رژیږي ١٠ بیا چې هغه خپل مخ د الله د حکم مطابق وینځي ١١ نو د هغه د مخ ګناه د هغه د ږیري د کنارو څخه د اوبو سره غورځیږي ١٢ او هر کله چې هغه خپل دواړه لاسونه تر څنګلو پورې ووینځي

**حل اللغات**:- ⑥ تُسْجَرُ: لمبه تازه كولى شى ⑦ أَقْبَلَ الفَيْءُ: أَيْ: رَجَعَ بَعْدَ ذَهَابِهِ: سوري واپس راشی، ⑧ وَضُوءَهُ: أَيِ: المَاءَ الَّذِي يَتَوَضَّأُ بِهِ: د اودس اوبه مراد دی ⑨ فَيَتَمَضْمَضُ: خوله اووينځی، ⑩ يَسْتَنْشِقُ: أَيْ: يُدْخِلُ المَاءَ فِي الأَنْفِ: پوزه اووينځی، ⑪ فَيَسْتَنْثِرُ: أَيْ: يُخْرِجُ مَا فِي الخَيْشُومِ مِنَ الأَوْسَاخِ: پوزه سونړ كړی چه څه خيرې پكښې وی چه هغه راوځی، ⑫ خَرَّتْ: أَيْ: سَقَطَتْ: غورځيږی، ⑬ خَيَاشِيمِهِ: دا جمع د خَيْشُومِ ده، د پوزې دننه حصې ته وائی،

۱ إِلَّا خَرَّتْ خَطَايَا يَدَيْهِ مِنْ أَنَامِلِهِ مَعَ الْمَاءِ، ۲ ثُمَّ يَمْسَحُ رَأْسَهُ إِلَّا خَرَّتْ خَطَايَا رَأْسِهِ مِنْ أَطْرَافِ شَعْرِهِ مَعَ الْمَاءِ، ۳ ثُمَّ يَغْسِلُ قَدَمَيْهِ إِلَى الْكَعْبَيْنِ، ۴ إِلَّا خَرَّتْ خَطَايَا رِجْلَيْهِ مِنْ أَنَامِلِهِ مَعَ الْمَاءِ، ۵ فَإِنْ هُوَ قَامَ فَصَلَّى فَحَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ ۶ وَمَجَّدَهُ بِالَّذِي هُوَ لَهُ أَهْلٌ، ۷ وَفَرَّغَ قَلْبَهُ لِلَّهِ إِلَّا انْصَرَفَ مِنْ خَطِيئَتِهِ ۸ كَهَيْئَتِهِ يَوْمَ وَلَدَتْهُ أُمُّهُ». "رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ۱ نو د هغه د دواړو لاسونو گناه د هغه د گوتو د سرونو څخه د اوبو سره غورځيږي ۲ بیا چې هغه د خپل سر مسح كوي نو د هغه د سر گناه د هغه د ويښتانو د كنارو څخه د اوبو سره غورځيږي ۳ او هر كله چې هغه خپلي دواړه پښي پړكو (گيټو) پورې ووينځي ۴ نو د هغه د دواړو پښو گناه د هغه د گوتو د سرونو څخه د اوبو سره غورځيږي ۵ بيا چې (د اوداسه څخه فارغ شي او) ودريږي او مونځ كوي (او د لمانځه څخه وروسته) د الله تعالى جَلَّ جَلَالُهُ تعريف كوي او ثناء بيانوي (يعني ذكر الله ډير زيات كوي) ۶ او هغه د هغه بزرگي سره چې د هغې هغه لايق دي يادوي ۷ او خپل زړه د الله د پاره فارغوي (يعني د هغه طرف ته يي متوجه كوي) نو (هغه د لمانځه څخه وروسته) د گناهونو څخه داسې پاكيږي ۸ لكه چې د هغه مور هغه اوس راوړي دي. (مسلم)

**حل اللغات**:- ⑭ مَجَّدَهُ: أَيْ: عَظَّمَهُ: يعنى د الله لوئى بيان كړى (په زړه او ژبې سره).

**تسهيلات**:-

**قوله**: حَتَّى يَسْتَقِلَّ الظِّلُّ بِالرُّمْحِ:

**دحديث د الفاظو مصداق**:-د حديث مبارك الفاظ دي چې كله سيورې يوه نيزه شي او په زمكه باندې نه ښكاری ددې الفاظو د مسئلې تعلق دمكې او مدينې چاپير چل سره دې خكه چې په دې خايونو باندې لويو ورځو كښې د عين نصف النهار په وخت كښې سيورې په زمكه نه وی.

**قوله**: إِلَّا انْصَرَفَ مِنْ خَطِيئَتِهِ كَهَيْئَتِهِ يَوْمَ وَلَدَتْهُ أُمُّهُ:

**دگناهونومعاف كيدل**:-دحديث د آخرى الفاظو څخه دا مفهوم ثابتيږی چې صغيره او كبيره دواړه گناهونه بخښلې كيږی. خودې سلسله كښې تحقيقى خبره داده چې صغير گناه خو ضرور بخښلې كيږی، البته دكبيره گناهونو د بخښنې تعلق صرف او صرف دالله تعالى حكم او مرضى سره دې. كه هغه ذات اوغواړی نو كبيره گناهونه به هم په خپل فضل سره اوبخښی.



۱۰۴۳- د مازیګر څخه وروسته دوه د ماسپخین د دوو رکعتونو قضا راوړل

۱۰۴۳-()[۵][۱] وَعَنْ كُرَيْبٍ «أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ، وَالْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ، وَعَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ أَزْهَرَ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ، أَرْسَلُوهُ إِلَى عَائِشَةَ، [۲] فَقَالُوا اقْرَأْ عَلَيْهَا السَّلَامَ، وَسَلْهَا عَنِ الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ [۳] قَالَ فَدَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ، فَبَلَّغْتُهَا مَا أَرْسَلُونِي، [۴] فَقَالَتْ سَلْ أُمَّ سَلَمَةَ، فَخَرَجْتُ إِلَيْهِمْ، فَرَدُّونِي إِلَى أُمِّ سَلَمَةَ [۵] فَقَالَتْ أُمُّ سَلَمَةَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَنْهَى عَنْهُمَا، [٦] ثُمَّ رَأَيْتُهُ يُصَلِّيهِمَا، ثُمَّ دَخَلَ،

**ترجمه:**[۱] کریب رحمه الله (د ابن عباس رضی الله عنه خادم) راوي دي چې ابن عباس رضی الله عنه مسور ابن مخرمه او عبدالرحمٰن ابن ازهر رضی الله عنه هغه (یعني کریب رحمه الله) د بي بي عائشي صديقي رضی الله عنها په‌خدمت کې ولیږلو[۲] او دري واړو هغه ته اوویل چې (زمونږ د طرف څخه) بي بي عائشي رضی الله عنها ته سلام پیش کړه او د هغي څخه د مازیګر څخه وروسته د دوو رکعاته مونځ په باره کې پوښتنه وکړه[۳] کریب رحمه الله وايي زه د بي بي عائشي رضی الله عنها په‌خدمت کې حاضر شوم او د هغه دري واړو چې کوم پیغام ماته راکړي وو هغه مي هغې ته ورسولو[۴] بي بي عائشي رضی الله عنها وفرمایل چې بي بي ام سلمه رضی الله عنها (لره ورشه او د هغي څخه) پوښتنه وکړه زه (دا جواب اوریدلو سره) هغه دري واړو صحابو رضی الله عنهم ته واپس راغلم هغوئ زه بیا بي بي ام سلمه رضی الله عنها ته ولیږلم[۵] بي بي ام سلمه رضی الله عنها (زما د سوال اوریدو سره) وفرمایل ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چې هغه ﷺ به دي دوه رکعاته لمانځه (د کولو) څخه منع فرمایله[٦] بیا ما (یوه ورځ) ولیدل چې رسول الله ﷺ دا دواړه رکعاته کوي کوم وخت چې حضور ﷺ دا دواړه رکعاته په مسجد کې یا په کورکي یا بهر په صحن کې کولو سره د مکان په دننه حصه کې داخل شو.

[۱] فَأَرْسَلْتُ إِلَيْهِ الْجَارِيَةَ، [۲] فَقُلْتُ: قُولِي لَهُ: تَقُولُ أُمُّ سَلَمَةَ: [۳] يَا رَسُولَ اللّٰهِ سَمِعْتُكَ تَنْهَى عَنْ هَاتَيْنِ [الرَّكْعَتَيْنِ] وَأَرَاكَ تُصَلِّيهِمَا؟ [۴] قَالَ: "يَا ابْنَةَ أَبِي أُمَيَّةَ سَأَلْتِ عَنِ الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ [۵] وَإِنَّهُ أَتَانِي نَاسٌ مِنْ عَبْدِ الْقَيْسِ، [٦] فَشَغَلُونِي عَنِ الرَّكْعَتَيْنِ اللَّتَيْنِ بَعْدَ الظُّهْرِ، فَهُمَا هَاتَانِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] نو ما خادمه د حضور ﷺ په خدمت کې ولیږله[۲] او هغې ته مي اوویل ته لاړشه اووایه چې ام سلمه رضی الله عنها وايي[۳] یا رسول الله ﷺ ما ستا څخه اوریدلي دي چې تا د دې دوه رکعاتو (د کولو) څخه منع کوله او اوس ما ته ﷺ په دي دوه رکعاتو کولو ولیدلو (د دي څه وجه ده؟)[۴] حضور ﷺ (هغه خادمې ته وفرمایل ام سلمه رضی الله عنها ته اووایه چې) د ابو امیه لوري تا د مازیګر څخه وروسته ددوه رکعاته (کولو) په باره کې پوښتنه کړي ده[۵]

[1]) اخرجه البخاری کتاب السهو/ باب إذا کلم وهو يصلی فأشار بيده واستمع (رقم-۱۲۳۳) ومسلم کتاب صلاة المسافرين وقصرها/ باب معرفة الرکعتين اللتين کان يصليهما النبی صلى الله عليه وسلم بعد العصر(رقم) ۲۹۷ - (۸۳٤) وابوداود کتاب الصلاة،باب الصلاة بعد العصر (رقم-۱۲۷۳) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب فيمن فاتته الرکعتان بعد الظهر (رقم-۱۱۵۹)والدارمی کتاب الصلاة/باب فی الرکعتين بعد العصر (رقم-۱٤۷٦)

قصه دا ده چې د قبيله عبدالقيس څه خلق (د اسلامي ښودنو او د ديني احکامو زده کولو په غرض) مالره راغلي وو[٦] (هغوئ ته د ديني احکامو ښودلو په مشغوليت کې دماسپخين څخه وروسته ما څخه دوه رکعاته پاتې شوي وو هغه ما د مازيگر څخه وروسته کړي دي. (بخاري، مسلم.)

**تسهيلات:-**

**قوله:** سَلْ أُمَّ سَلَمَةَ:

**د ام سلمه څخه د تپوس کولو وجه:-** چونکه دا واقعه ام سلمه ﷺ ته پيښه شوې وه اوبيا حضرت ام سلمه ﷺ دَ حضورپاك ﷺ نه دَ اشکال په توگه سوال هم کړې ووچه يا رسول الله ﷺ تاسو دَ مازيگر دَمونځ نه پس دَمونځ نه منع کړې ده بيا زه تاسو ته گورم چه تاسو دَ مازيگر نه پس دوه رکعته کوئی دا ولې؟ هم په دې وجه حضرت عائشه ﷺ هغه قاصد دَام سلمه ﷺ

طرف ته روان کړو دې دَپاره چه حقيقت معلوم شي.

**قوله:** فَخَرَجْتُ إِلَيْهِمْ:

**د ام سلمې څخه د جدا اجازت غوښتلو وجه:-** کريب چونکه صحابه کرامو دَ مسئلې معلومولو دَپاره دَ حضرت عائشې ﷺ طرف ته ليږلې وو مگر اوس دَ مسئلې معلومولو دَپاره ام سلمه ﷺ کره تلل وو دَ کومې چه دَ صحابه کرامو دَ طرف نه اجازت نه وو په دې وجه کريب واپس راغلو او دَ نوی سر نه ئی دَ صحابه کرامو نه اجازت اوغوښتلو اوبيا ام سلمه ﷺ له لاړو. دا دَ ژوند دَآدابو نه يو لوئی ادب دې چه ساعت په ساعت په کار باندې دَ لگونکی سره خپله رابطه اوساتلې شي اودَ خپل طرف نه څه اقدام اونه کړې شي. سره ددې چه دلته دَ مقصود دَ حصول دَپاره دَ يو نوی اجازت ضرورت نه وو. بهرحال کريب دَ دريواړو صحابه کرامو نه نوې حکم واخستلو او ام سلمه ﷺ له لاړو. حضرت ام سلمه ﷺ اول دَ دې مسئلې تحقيق کړې وو په دې وجه هغې په ډير ښه انداز کښې دَ حقيقت نه خبر کړو.

**د سنتو په قضاء کښې دامام شافعی مذهب:-** ددې حديث نه دا خبره معلومه شوه چه دَ سنت مؤکده قضاء شته ځکه چه حضورپاك ﷺ دَماسپخين دوه رکعته سنت دَ مازيگر دَمونځ نه پس راؤگرځول. فقهاؤ کښې دَ امام شافعی رحمه الله مسلك هم دادې چه دَ سنتو قضاء شته.

**د سنتو په قضاء کښې د احنافو مذهب او د روايت الباب څخه جواب:-**

(۲) احناف فرمائی چه دَ سنتو قضاء نشته دې. دلته دَ حضورپاك ﷺ معامله بل څه وه اوهغه دا چه رسول الله ﷺ به کله يو عمل يوځل کولو نو بيا به حضورپاك ﷺ هغه عمل هميشه دَپاره جاري ساتلو دې دَپاره چه په هغې کښې دوام او استمرار قائم شي. هم ددې قاعدې په رڼا کښې کله چه دَ حضورپاك ﷺ نه دَماسپخين دوه رکعته سنت په وجه دَ څه

مشغولتيا پاتې شو او حضورپاك ﷺ دَ مازيګرنه پس يوځل دَ هغې اعاده اوکړه نو بيا حضورپاك ﷺ هيڅ کله پرېنخوده. لهذا دا دَ حضور پاك دَ ذات سره متعلق يو خصوصي عمل دې. دَ امت کسانو له په دې کښې نه دی پرېوتل پکار.

په دې مسئله کښې هغه وخت مشکل راغلو کله چه دَ بخاري شريف دَ حضرت عائشې صديقې رضي الله عنها يوحديث مخې ته راغلو هغه فرمائي: ((ماكان النبي ﷺ يأتيني يوما بعد العصر إلا صلى ركعتين)) (بخاري ومسلم) دَدې روايت دَ وجې نه دَ فقهاؤ په مينځ کښې په دې مسئله کښې اختلاف دې.

**د مازيګر د مانځه څخه روسته د دوو رکعتونو په حکم کښې مذاهب:-**

① امام شافعي رحمه الله فرمائي چه پس دَ مازيګرنه دوه رکعته کول دَ امت دَپاره هم جائز دی.

② جمهور فرمائي چه دَ امت دَ کسانودَپاره جائز نه دی چه هغوی دې دَ مازيګرنه پس دوه نفل اوکړي.

**د اول فريق دليل:-** دَ حضرت عائشه رضي الله عنها روايت د دوی مستدل دې په کوم کښې چه دوام سره دَ دوو رکعتو ذکردې.

**د اول فريق د دليل جواب:-** دَ دې روايت هم هغه جواب دې کوم چه ام سلمه رضي الله عنها جواب ورکړو چه حضورپاك ﷺ په يو معروضي صورت کښې دا دوه رکعته کړې وو کوم چه دَ حضورپاك ﷺ خصوصيت وو. طحاوي دَ ام سلمه رضي الله عنها په روايت کښې داسې الفاظ هم نقل کړي دی چه په پيغمبري خصوصيت باندې واضح دليل دې. ام سلمه رضي الله عنها تپوس اوکړو "افنقضيهما اذا فاتتا قال لا" راتلونکې دَ قيس بن عمرو رضي الله عنه حديث نمبر ۶ په شروع کښې کلام په ذهن کښې اوساتلې شی نو هغه جواب کافي دې.

**د دويم فريق دلائل:-** ① هغه متواتر احاديث د دوی مستدلات دی په کومو کښې چه دَ مازيګر او سحر دَ فرائضو نه پس دَ مونځ کولو ممانعت راغلې دې.

② حديث نمبر ۱۲ د دوی مستدل دې کوم چه امام بخاري رحمه الله هم نقل کړې دې حضرت معاويه رضي الله عنه فرمائي ((انكم لتصلون صلوة لقد صحبنا رسول الله ﷺ فما رأيناه يصليهما ولقد نهى عنهما يعني الركعتين بعد العصر)) (بخاري)

③ دَ امام دارمي رحمه الله هغه فيصله د دوی مستدل ده کومه چه په دارمي کښې ذکر ده. چادَ امام دارمي رحمه الله نه دَ حديث عائشه رضي الله عنها باره کښې تپوس اوکړو نوهغوی په جواب کښې اوفرمائيل: "اما انا فاقول بحديث عمر عن النبي ﷺ لا صلوة بعد العصر حتى تغرب الشمس وعن الصلوة بعد الفجر حتى تطلع الشمس"

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### ۱۰۴۳ - د سحر د سنتو د قضا حکم

۱۰۴۳ - ()[۲] [۱] عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ قَيْسِ بْنِ عَمْرٍو، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «رَأَى النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَجُلًا يُصَلِّي بَعْدَ صَلَاةِ الصُّبْحِ رَكْعَتَيْنِ، [۳] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "صَلَاةُ الصُّبْحِ رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ"، [۴] فَقَالَ الرَّجُلُ: إِنِّي لَمْ أَكُنْ صَلَّيْتُ الرَّكْعَتَيْنِ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا، فَصَلَّيْتُهُمَا الْآنَ، [۵] فَسَكَتَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ» - رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] محمد ابن ابراهیم د قیس ابن عمرو څخه نقل کوي چې هغه اوویل [۲] چه (یوه ورځ) رسول الله ﷺ یو سړي ولیدلو چې هغه د سحر د لمانځه څخه وروسته دوه رکعاته مونځ کوي [۳] حضور ﷺ هغه ته وفرمایل د سحر مونځ دوه رکعاته دي [۴] (بیا یې وفرمایل) دوه رکعاته دي هغه سړي عرض وکړو چې د سحر د فرض لمانځه څخه مخکې دوه رکعاته (سنت) ما نه وو کړي هغه ما دا وخت وکړل [۵] حضور ﷺ (دي اوریدو سره) چپ شو (ابوداؤد)

[۱] وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ نَحْوَهُ، وَقَالَ: [۲] إِسْنَادُ هَذَا الْحَدِيثِ لَيْسَ بِمُتَّصِلٍ; [۳] لِأَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ إِبْرَاهِيمَ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ قَيْسِ بْنِ عَمْرٍو، [۴] وَفِي "شَرْحِ السُّنَّةِ" "وَنُسَخِ الْمَصَابِيحِ" "عَنْ قَيْسِ بْنِ قَهْدٍ نَحْوَهُ.

**ترجمه:** [۱] امام ترمذي هم دغسې نقل کړي دي او وایي یې دی [۲] چه ددې روایت اسناد متصل نه دي [۳] ځکه چې د محمد بن ابراهیم د قیس ابن عمرو څخه اوریدل ثابت نه دي [۴] د شرح السنه او د مصابیح په بعضو نسخو کې د قیس ابن قهد څخه دغسې منقول دي.

**تسهیلات:** - **قوله:** رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ:

**د رکعتین د تکرار مقصد:** - دَدې جملې نه مخکښې فعل محذوف مثل ضروری دی یعنی "اجعلوا صلوة الصبح رکعتین" دلته رکعتین مکرر راوړلو سره دَ تاکید مقصد دادې چه هم دوه رکعته دی دَ دوو نه زیات نه دی نودا تاکید دَ زیادت دَ نفی دَپاره دې چه دَ دوو رکعتونه پس هیڅ رکعت نشته صرف فرض کوئی دې نه پس هیڅ مه کوئی.

**قوله:** فَسَكَتَ:

**دامام شافعی د قول تائید:** - حضورپاک ﷺ دَ دغه صحابی په جواب کښې خاموشی اختیار کړه اوسکوت اوخاموشی دَ محدثینو په نیز دَ تقریر په حکم کښې ده. لکه چه حضورپاک ﷺ په دغه فعل باندې راضی شو لهذا دَدې حدیث نه معلومه شوه چه که چرې دَ سحر دَ فرض مونځ نه مخکښې دوه سنت پاتې شی نو دَ فرض کولو نه پس دَ دوو سنتو

---

[۱]) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة، باب من فاته متی یقضیها (رقم-۱۲۶۷)

قضاء به وی. په دې مسئله کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.

**د صبا د سنتو په قضاء کښې مذاهب:-**

که دَ چانه دَ سحر سنت پاتې شی ① نوجمهور وائی چه نه شی کولې.

② دَ امام شافعی رحمه الله راجح قول دادې چه کول ئې جائز دی.

بیا دَ جمهورو په خپل مینځ کښې اختلاف دې

① امام احمد رحمه الله او امام محمد رحمه الله فرمائی چې دَ نمر دَ راختلو نه پس ترد نمر دَ زوال پورې به دا سنت کولې شی. دَاحنافو علماء دَ امام محمد رحمه الله په قول باندې فتویٰ ورکول خوښوی.

② امام مالك رحمه الله دَ مطلق نه کولو قائل دې.

③ امام ابوحنیفه رحمه الله او امام ابو یوسف رحمه الله فرمائی که چرې دا سنت دَ فرض مونځ سره پاتې شی نودَ نمر دَ زوال نه مخکښې مخکښې کولې شی اوکه دَ فرض مونځ نه بغیر پاتې شی نو نه مخکښې دَ نمر دَ راختو نه کولې شی اونه روستو دَ نمر دَ راختونه.

**داول فریق دلیل:**- زیر بحث حدیث دَ حضرت قیس بن عمرو رضی الله عنه د دوی مستدل دې په کوم کښې چه دَ سحر دَ مونځ نه پس سنتو کولو باندې حضورپاك ﷺ خاموشی اختیارکړې اودا خاموشی دَ جواز دلیل دې.

**داول فریق د دلیل جواب:**- دَا روایت منقطع هم دې او ضعیف هم دې اودَ دې په مقابله کښې متواتر احادیث دَدې معارض هم دی. لهذا دا په معروضی جزئی حالت باندې حمل کول پکاردی دادَ استدلال دَپاره مناسب نه دې.

**د دویم فریق دلائل:**-

① هغه متواتر احادیث د دوی مستدلات دی په کومو کښې چه دَ سحر او مازیګر دَ فرضو نه پس دَ هیڅ قسم مونځ کولو ممانعت راغلې دې.

② هغه مرفوع حدیث هم د دوی مستدل دې دَ کوم تخریج چه امام ترمذی رحمه الله کړې دې الفاظ دا دی: (قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من لم يصل ركعتى الفجر فليصلهما بعد ما تطلع الشمس) (ترمذی ۹۶/۱)

③ حضرت شاه انور شاه کشمیری رحمه الله دَ تبوك دَ واقعې يو حدیث نه عجیبه استدلال کړې دې. قصه داسې اوشوه چه حضورپاك ﷺ دَ سحر په وخت دَ قضاء حاجت دَپاره چرته لرې لاړو. دَ سحر په مونځ کښې ناوخته شو. حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه مونځ اوکړو. حضورپاك ﷺ ته يو رکعت ملاؤ شو حضورپاك ﷺ دویم رکعت ځان له پوره کړو اودې نه پس ئې هیڅ هم اونه کړل معلومه شوه چه سنت کول جائز نه وو ګنی حضورپاك ﷺ به کړې وې. دَحدیث الفاظ دادی: ((فلما سلم قام النبى صلى الله عليه وسلم فصلى الركعة التى سبق بها ولم يزد عليها شيئا)) (سنن ابوداؤد باب المسح على الخفين ص: ۲۱)

**د صبا د سنتو څخه علاوه د نورو سنتو د قضاء راوړلو حکم:** -دَ سحر دَ سنتونه علاوه دَ نورو سنتو حکم هم دغه شان دي چه دَ فرائضونه علاوه دي قضاء نه کوی او فرائض سره کولو کښې اختلاف دې. بهرحال که چرته یو کس بې وخته سنت کول غواړی نو دَ نفلو په نیت سره دې کوی ثواب به ملاویږی دَ سنتو نیت دې نه کوی.

**۱۰۳۵-په هر وخت کښې د خانه کعبې د طواف جواز**

۱۰۳۵-()[۷][۱] وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] " «يَا بَنِي عَبْدَمَنَافٍ لَا تَمْنَعُوا أَحَدًا طَافَ بِهَذَا الْبَيْتِ [۳] وَصَلَّى آيَةَ سَاعَةٍ شَاءَ مِنْ لَيْلٍ أَوْ نَهَارٍ» "، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:**[۱] جبیر ابن معطم رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] اي د عبد مناف اولاده هیڅوك د دې كور (خانه كعبې) د طواف څخه مه منعه كوئ[۳] او په شپه او ورځ كې چې څه وخت غواړي هغه پریږدئ چې مونځ كوي. (ترمذي،ابوداؤد،نسايي.)

**تسهیلات:** - **توله:** آيَةَ سَاعَةٍ شَاءَ:

**په ټولو وختونو کښې د طواف جواز:** -دَ خانه کعبې طواف کول دَ ورځې او شپې په ټولو وختونو کښې جائز دي. دَ طواف دَپاره هیڅ یو وخت مکروه نه دې په دې کښې دَ چا اختلاف نشته. البته دَ طواف نه پس دَ دوو رکعتو په مسئله کښې دَ فقهاؤ په مینځ کښې اختلاف دې.

**په اوقات مکروهۀ کښې د رکعتی الطواف په حکم کښې مذاهب:** -

① امام شافعی رحمه الله فرمائی چه خانه کعبه کښې په هر یو وخت کښې هر مونځ کیدې شی که هغه مکروه وخت وی او که دَ طواف نه پس دوه رکعته وی یا بل څه مونځ وی ټول جائز دی.

② حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی خانه کعبه کښې په مکروه وختونو کښې صرف دَ طواف دوه رکعته کولې شی دې نه علاوه جائز نه دی.

③ ائمه احناف او جمهور فرمائی په خانه کعبه کښې په مکروه وختونو کښې هیڅ یو مونځ هم نه شی کیدې. دَ مکروه وختونو حرمت مکه او غیرمکه ټولو مقاماتو دَ پاره یو شان دې.

**داول فریق اول دلیل:** - ① زیر بحث د حضرت جبیر بن مطعم رضی الله عنه حدیث د دوی مستدل دې په کوم کښې چه "اية ساعة شاء" الفاظ دی دَ کوم مطلب چه دادې چه کوم وخت هم څوك یو مونځ کول غواړی کولې شی.

---

[۱] اخرجه ابوداود فی کتاب المناسک . باب الطواف بعد العصر (رقم-۱۸۹۴) والترمذی فی کتاب الحج عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الصلاة بعد العصر، وبعد الصبح لمن یطوف (رقم-۸۶۸) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها/باب ما جاء فی الرخصة فی الصلاة بمکة فی کل وقت (رقم-۱۲۵۴) والدارمی باب الطواف فی غیر وقت الصلاة (رقم-۱۹۶۷)

**د اول فریق د اول دلیل دری جوابونه :-**

①دا حدیث په خپله مدعا باندې صریح نه دې دَ کوم نه چه شوافعو حضراتو ته څه فائده اوشی ځکه چه په دې کښې دومره خبره ده چه اې بنو عبدمناف بیت الله بندولوسره تالي مه لګوه بلکه خلق پرېږده چه هغوی شپه ورځ دې ته راځي اومونځ کوی. اوس دا دَ کوم ځائی نه ثابته شوه چه په مکروه وختونوکښې دې هم مونځ کوی. دَدې حدیث عموم هغه احادیثو خاص کړې دې په کوم کښې چه په مکروه وختونوکښې دَ مونځ کولو ممانعت راغلې دې.

②دا حدیث دَ هغه کثیر متواتر روایاتو مقابله نه شی کولې په کوم کښې چه مطلقًا په مکروه وختونو کښې دَ مونځ کولو ممانعت راغلې دې.

③حضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه وغیره صحابه رامو روایات په نفی باندې دال دی نو دلته معامله دَ مبیح او محرم راغله لهذا حرمت ته به ترجیح ورکولې شی.

**داول فریق دویم دلیل :-**

②دَحضرت ابوذر غفاری رضی الله عنه حدیث هم د دوی مستدل دې. کوم چه دَ دې باب آخری حدیث نمبر ۱۳ دې په کوم کښې چه درې ځل استثناء کړې شوې ده. "الابمکة الا بمکة" یعنی په مکه مکرمه کښې مکروه وخت کښې مونځ کیدې شی لکه چه په مکه کښې دَ مکروه وخت هډو وجودنشته دې.

**د اول فریق د دویم دلیل جواب:-** دا روایت معلول دې په هغې کښې اضطراب هم دې او ضعیف رواة هم دی. ابن حجر رحمه الله پخپله دا ضعیف منلې دې. بل دا روایت منقطع هم دې لهذا کمزورې روایت دَ دغه قوی روایاتو مقابله نه شی کولې.

**د دویم فریق دلائل :-**

①په متواتر احادیثوکښې مطلقًا مکروه وختونو کښې دَمونځ کولو ممانعت راغلې دې. نبی کریم صلی الله علیه وسلم په مکروه وختونو کښې دَمونځ کولو چه کوم حکم ورکړې دې هغه وخت حضورپاك صلی الله علیه وسلم یا په مکه کښې وو یا په مدینه کښې وو. نو آیا چه حضورپاك صلی الله علیه وسلم چرته مقیم وو اودَ کراهت حکم ئې بیانولو هغه حکم دَ هغه ځائی دَپاره نه وو؟ دا خو به عجیبه وی چه بیان په مکه مکرمه کښې کیږی اوحکم دَ خراسان یا پاکستان دَ پاره دې.

②دَحضرت ام سلمه رضی الله عنها واقعه هم د دوی مستدل دې چه هغې دَ بیت الله طواف دَ سحر په وخت کښې اوکړو اودَ طواف دوه رکعته ئې دَ نمر دَ راختونه پس بهرتلو سره اوکړل. دَ بخاری شریف دَ حدیث الفاظ ((لم تصل حتي خرجت))

③امام طحاوی رحمه الله دَ حضرت ابن عمر رضی الله عنه یو اثر داسې نقل کړې دې. "ان ابن عمر قدم مكة صلوة الصبح فطاف ولم يصل الا بعد ما طلعت الشمس". (ج ۱ ص ۴۲۲)

۱۰۳۶—د جمعې په ورځ د زوال په وخت کښې د مونځ حکم

۱۰۳۶—( )[۸] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَهَى عَنِ الصَّلَاةِ نِصْفَ النَّهَارِ [۳] حَتَّى تَزُولَ الشَّمْسُ إِلَّا يَوْمَ الْجُمُعَةِ». رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابوهريره رضی الله عنه فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ تېك د تكنې غرمې په وخت كې د لمانځه كولو څخه منع فرمايلي ده [۳] تر څو پورې چې نمر زوال نشي البته د جمعې په ورځ (جائز دي). (شافعي.)

**حل اللغات:** - ① نِصْفَ النَّهَارِ: غرمه يعنى د زوال وخت.

**تسهيلات:** -

**د جمعې په ورځ د استواء الشمس په وخت كښې د مونځ په جواز كښې مذاهب:** -

دَ جمعه په ورځ دَ غرمې په وخت عين استواء الشمس په دوران مونځ كول جائزدى كه نه، په دې كښې دَ فقهاؤ اختلاف دي.

① امام شافعي رحمه الله انوامام احمد رحمه الله او امام ابويوسف رحمه الله مسلك دادې چه دَ جمعه په ورځ نصف النهار كښې مونځ كول جائز دى. دا جواز دَعام ممانعت دَ احاديثونه مستثنى دې

② داامام ابوحنيفه رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نيز سره دَ جمعه دَټولې هفتې ټولو ورځوپه مكروه وختونو كښې مونځ كول جائزنه دى.

**داول فريق دلائل:** -① زير بحث حديث دَ حضرت ابوهريره رضی الله عنه د دوى مستدل دې. په دې كښې دَ جمعه استثنى ده لهذا دَ جمعه په ورځ په نصف النهار كښې مونځ كول جائز دى.

**داول فريق د اول دليل جواب:** - ① معامله دَ حرمت اواباحت ده نوترجيح به حرمت ته وى.

**داول فريق دويم دليل:** - ① دغه شان دې پورتنى حديث سره متصل دَحضرت ابوقتاده رضی الله عنه هم د دوى مستدل دې.

**داول فريق د دويم دليل جواب:** - دَ ابوقتاده رضی الله عنه په روايت كښې انقطاع ده نو قابل استدلال نه دې.

**د دويم فريق دليل:** - حضورپاك ﷺ په خپل ټول ژوند مبارك كښې يوځل هم دَ جمعه په دغه مكروه وخت كښې مونځ نه دې كړې كه چرې دا جائز وې نو دَ جواز دَ بيان دَپاره به رسول الله ﷺ مبارك يوځل داعمل كولو

**مفتى به قول:** - خوبيا هم دَ علماء احناف نه بعضودَ امام ابويوسف رحمه الله په قول فتوىٰ وركړې ده اوبعضو دَ طرفين په قول باندې فتوىٰ وركړې ده معامله څه آسانه شوې غوندې ده.

[1]) اخرجه الشافعى فى المسند من كتاب الجمعة... رقم الحديث ۲۶۹

۱۰۳۷- د زوال په وخت کښې د مونځ کراهت

۱۰۳۷-(۱)[۹] ① وَعَنْ أَبِي الْخَلِيلِ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، قَالَ: ② «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَرِهَ الصَّلَاةَ نِصْفَ النَّهَارِ ③ حَتَّى تَزُولَ الشَّمْسُ إِلَّا يَوْمَ الْجُمُعَةِ، ④ وَقَالَ: "إِنَّ جَهَنَّمَ تُسَجَّرُ إِلَّا يَوْمَ الْجُمُعَةِ» ". ⑤ رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَقَالَ: أَبُو الْخَلِيلِ لَمْ يَلْقَ أَبَا قَتَادَةَ.

**ترجمه:** ① ابوالخليل رحمه الله د ابوقتاده رضي الله عنه څخه نقل کوي ② چې حضور ﷺ به تيك د غرمي په وخت (تکنه غرمه وخت) مونځ کول به يي مکروه ګڼل ③ تر څو پورې چې نمر به زوال ونشو علاوه د جمعي د ورځي څخه ④ او د حضور ﷺ ارشاد دي چې علاوه د جمعي د ورځي څخه روزانه (غرمه وخت) د دوزخ ګرموالي تيزول کيږي ⑤ دا روايت امام ابوداؤد نقل کړي دي او ويلي يي دي چې د ابو قتاده رضي الله عنه سره د ابوالخليل رحمه الله ملاقات ثابت نه دي (نو د دې حديث اسناد متصل نه دي.)

**حل اللغات:-** ① تُسَجَّرُ: أَيْ: تُوقَدُ: ګرمولې شي يعنى اور پکښې بلولې شي.

**تسهيلات:-**

**نوټ:-** ددې حديث تشريح په اوقات ثلاثه کښې د مونځ د کراهت په بحث کښې ذکرشوې دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

۱۰۳۸- اوقات مکروهه (مکروه وختونه)

۱۰۳۸-(۲)[۱۰] ① عَنْ عَبْدِ اللَّهِ الصُّنَابِحِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«إِنَّ الشَّمْسَ تَطْلُعُ وَمَعَهَا قَرْنُ الشَّيْطَانِ، ③ فَإِذَا ارْتَفَعَتْ فَارَقَهَا، ④ ثُمَّ إِذَا اسْتَوَتْ قَارَنَهَا، ⑤ فَإِذَا دَنَتْ لِلْغُرُوبِ قَارَنَهَا، ⑥ فَإِذَا غَرَبَتْ فَارَقَهَا» ". ⑦ وَنَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الصَّلَاةِ فِي تِلْكَ السَّاعَاتِ. رَوَاهُ مَالِكٌ، وَأَحْمَدُ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① عبدالله صنابحي رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هر کله چې نمر راخيجي نو د هغه سره د شيطان ښکر وي ③ بيا چې نمر اوچتيږي نو هغه جدا شي ④ بيا چې تکنه غرمه شي نو شيطان نمر ته نږدې شي ⑤ او کوم وخت چې نمر په زوال شي نو هغه ځيني جدا شي بيا چې نمر ډوبيدو ته نږدې شي نو شيطان هغه ته نږدې راشي ⑥ بيا چې نمر غائب (ډوب) شي نو شيطان د هغه څخه جدا شي ⑦ او حضور ﷺ په دې وختونو کې (يعني د نمر راختو، ډوبيدو او تکنه غرمې په وخت کې) د لمانځه کولو څخه منع فرمايلې ده. (مالك، احمد، نسايي.)

[1] اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة، باب الصلاة يوم الجمعة قبل الزوال (رقم-۱۰۸۳)

[2] اخرجه النسائى فى كتاب المواقيت/باب الساعات التى نهى عن الصلاة فيها (رقم-۵۵۹) ومالک فى الموطا كتاب القرآن باب النهى عن الصلاة بعد الصبح وبعد العصر (رقم-۴۴)

**حل اللغات:-** ① قَرْنُ: ښکر، ② فَارَقَهَا: جدا شي شیطان د نمر نه، ③ دَنَتْ: چه نژدې شي (یعنی زیړشي او لاندې غاړه نې ډوبیدل شروع شي).

**تسهیلات:-**

**قوله: إِنَّ الشَّمْسَ تَطْلُعُ وَمَعَهَا قَرْنُ الشَّيْطَانِ**

**په اوقات ثلاثه کښې د مونځ کولو د کراهت وجه:**-دې وختونو کښې نبی کریم ﷺ د مونځ کولو نه منع فرمائیلې ده.چې شیطان سره په سجدې کولو مشابهت رانشي.یا هغه خلقو سره مشابهت رانشی کوم چې نمر ته په دې مخصوصه وختونو کښې سجده کوي.

**۱۰۳۹-د مازیګر د مانځه څخه وروسته د نفلو عدم جواز**

۱۰۳۹-(۱)[۱۱] ① وَعَنْ أَبِي بَصْرَةَ الْغِفَارِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: ②«صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمُخَمَّصِ صَلَاةَ الْعَصْرِ، ③ فَقَالَ: "إِنَّ هَذِهِ صَلَاةٌ عُرِضَتْ عَلَى مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ فَضَيَّعُوهَا، ④ فَمَنْ حَافَظَ عَلَيْهَا كَانَ لَهُ أَجْرُهُ مَرَّتَيْنِ، ⑤ وَلَا صَلَاةَ بَعْدَهَا حَتَّى يَطْلُعَ الشَّاهِدُ» ". وَالشَّاهِدُ: النَّجْمُ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ

:① ابو بصره غفاري رضی الله عنه فرمايي② چې (یوه ورځ) رسول الله ﷺ په مقام مخمص کې مونږ ته د مازیګر مونځ راکړو③ بیا یې وفرمایل دا مونځ ستاسو څخه په مخکې خلقو باندې لازم شوې وو لیکن هغوئ ضائع کړو (یعني نه خو یې همیشه وکړو او نه یې د دې حقوق اداء کړل)④ نو کوم سړي چې د دې لمانځه حفاظت کوي (یعني همیشه یې کوي او حقوق یې اداء کوي) هغه ته به دوچنده ثواب حاصلیږي⑤ او حضور ﷺ دا هم وفرمایل چې د مازیګر څخه وروسته هیڅ مونځ نشته تر څو پورې چې شاهد راونه خیژي او شاهد ستوري دي. (مسلم.)

**حل اللغات:-** ① الْمُخَمَّصِ: د یومقام نوم دې، ② الشَّاهِدُ: أَيِ النَّجْمُ: یعنی ستوري مراد ترې د شپې داخلیدل دی.

**تسهیلات:-**

**قوله: كَانَ لَهُ أَجْرُهُ مَرَّتَيْنِ**

د دوو اجرونو ملاویدو دوه وجوهات: ① دا وخت د مصروفیت او مشغولتیا وخت وی خاص کر کاروباریان خلق کورونو ته ځان رسوی نو په هغې باندې بیړه وی چې زر کور ته لاړشود مانځه فرصت ورته نه ملاویږي.ځکه ورته دوچنده اجر ملاویږي.

② هر کله چې نورو امتونو د دې وخت د عظمت خیال اونه ساتلو بلکه په دې کښې ئې غفلت اوکړو په دې وجه دې امت ته دوچنده اجر ورکولې شي.

---

[1] اخرجه مسلم كتاب صلاة المسافرين وقصرها/ باب الأوقات التى نهى عن الصلاة فيها (رقم) ۲۹۲ - (۸۳۰) والنسائى فى كتاب المواقيت/باب تأخير المغرب (رقم-۵۲۱)

۱۰۵۰-د مازيګر څخه وروسته د دوو رکعتونو ممانعت

۱۰۵۰-()[۱۲] [۱] «وَعَنْ مُعَاوِيَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] إِنَّكُمْ لَتُصَلُّونَ صَلَاةً، لَقَدْ صَحِبْنَا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا رَأَيْنَاهُ يُصَلِّيهِمَا، [۳] وَلَقَدْ نَهَى عَنْهُمَا. يَعْنِي الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] معاويه رضي الله عنه (خلق مخاطب کولو سره) وفرمايل [۲] تاسو خلق يوداسي مونځ کوئ چې مونږ د رسول الله ﷺ په صحبت کې پاتې شوي يو ليکن مونږ حضور ﷺ په دې دوه رکعاتو کولو نه دي ليدلي [۳] بلکه حضور ﷺ خو ددې نه يعني مازيګر څخه وروسته د دوه رکعاته کولو څخه منع فرمايلي ده. (بخاري.)

**تسهيلات:-**

**قوله:** فَمَا رَأَيْنَاهُ يُصَلِّيهِمَا

**اشكال:**-دلته د حضرت امير معاويه په روايت کښې دی چې مونږ د مازيګر نه پس نبی کريم ﷺ په دوه رکعته نفلو کولو نه وو ليدلي .خو د حضرت عائشه صديقه رضی الله عنها او حضرت ام سلمه رضی الله عنها روايت نه معلوميږی چې نبی کريم ﷺ به دوه رکعته مونځ کولو.

**د اشكال جواب:**-دحضرت امير معاويه فرمان مسجد کښې دننه سره تعلق ساتی چې نبی کريم ﷺ به په مسجد کښې مونځ نه کولو او دحضرت عائشه صديقه رضی الله عنها او حضرت ام سلمه رضی الله عنها والا روايت د کور دي چې نبی کريم ﷺ به په کور کښې مونځ کولو.

۱۰۵۱-د سحر او د مازيګر څخه وروسته د مونځ عدم ثبوت

۱۰۵۱-()[۱۳] [۱] وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: وَقَدْ صَعِدَ عَلَى دَرَجَةِ الْكَعْبَةِ: [۲] مَنْ عَرَفَنِي فَقَدْ عَرَفَنِي، [۳] وَمَنْ لَمْ يَعْرِفْنِي فَأَنَا جُنْدُبٌ، [۴] سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [۵] "«لَا صَلَاةَ بَعْدَ الصُّبْحِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، [۶] وَلَا بَعْدَ الْعَصْرِ حَتَّى تَغْرُبَ الشَّمْسُ إِلَّا بِمَكَّةَ، إِلَّا بِمَكَّةَ، إِلَّا بِمَكَّةَ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَرَزِينٌ.

**ترجمه:** [۱] د ابوذر رضي الله عنه په باره کې روايت دي چې هغه د کعبې په زينه ختلو سره وفرمايل [۲] کوم سړي چې زه وپيژندم (يعني زما نوم يې وپيژندو) هغه زه (يعني زما رښتيوالي يې) وپيژندلم [۳] او چا چې زه ونه پيژندلم نو زه هغه ته ښودل غواړم چې زه جندب رضي الله عنه يم [۴] ما د حضور ﷺ څخه اوريدلي دي [۵] چې د سحر د لمانځه څخه وروسته تر څو پورې چې نمر راونه خيژي هيڅ مونځ نشته [۶] او نه د مازيګر د لمانځه څخه وروسته يو مونځ شته تر څو پورې چې نمر ډوب نشي خو په مکه کې، خو په مکه کې، خو په مکه کې. (احمد ،رزين.)

[۱]) اخرجه البخاری كتاب مواقيت الصلاة/ باب: لا تتحرى الصلاة قبل غروب الشمس (رقم-۵۸۸)

[۲]) اخرجه احمد في المسند ۱۶۵/۵

**حل اللغات:-** ① صَعِدَ: أَيْ طَلَمَ: اوختلو.

**تسهیلات:-**

**توله: فَأَنَا جُنْدُبٌ:**

**د بیان څخه وړاندې د ابوذر غفاری خپل تعارف کول:-** یعنی که ماخوك پیژنی نوتیك د هغه به په ماباندې اعتماد وی چه زه څوك یم اوزما په خبره کښې څه وزن دې اوکه ما څوك نه پیژنی نوهغه دې ماا وپیژنی زما نوم جندب دې ابوذر زما کنیت دې.

دَ بیان کولونه وړاندې حضرت ابوذر غفاری رضی الله عنه دَدې تعارف ضرورت څکه محسوس کړو دې دَ پاره چه دَخلقو اعتماد بحال شی اودا هم معلومه وی چه بیان کونکې عالم دې. دَ حضورپاك ﷺ صحابی دې څه عام سړې نه دې.

# [۳۹/۲۳]بَابُ الْجَمَاعَةِ وَفَضْلِهَا]

## په جماعت سره د مونځ کولو فضیلت

**خلاصة الباب:-**

**فيه اثنان وثلاثون حديثاً مشتملة على ثمانى مسائل:**

① فضيلة الجماعة: ١، ١٥.

② التهديد على ترك الجماعة: ٢، ١٦، ١٧، ٢١، ٢٢، ٢٨.

③ التاكيد بحضور الجماعة: ٣، ١٥، ١٦، ٢١، ٢٦، ٢٧، ٢٩.

④ ما يكون عذراً لترك الجماعة وما لايكون: ٣، ۴، ۵، ۶، ١٧، ١٨، ١٩، ٢٠.

⑤ ترک الصلاة منفرداً عند إدراک الجماعة: ٧.

⑥ حضور النساء للجماعات و آدابهن: ٩، ١٠، ١١، ١٢، ١٣، ١۴، ٣١، ٣٢.

⑦ عدم الخروج من المسجد بعد الأذان: ٢٣، ٢۴، ٢٥.

⑧ ما تنعقد به الجماعة من العدد: ١٥، ٣٠.

**د قرآن څخه د جمعې د مونځ ثبوت:-** قال الله تعالى ﴿ وَارْكَعُوا مَعَ الرَّاكِعِينَ ﴾ [البقره: ۴۳]

**په عملی طور د جمعې د مونځ ابتداء:-** دَ معراج په شپه چه کله مونځ فرض شو نو په ورځ کښې حضرت جبرائیل علیه السلام راغلو اودَماسپخین مونځ ئې په جمع سره ورکړو.

**د جمعې د مونځ د مشروعیت په تاریخ کښې دوه اقوال:-**

① په جمع سره دَمونځ مشروعیت په مکه کښې شوې

② دَدې مشروعیت په مدینه منوره کښې شوې. اصل حقیقت ان شاء الله داسې دې چه دَ

جمع مشروعيت هم په مکه کښې شوې په کوم باندې چه حديث امامت جبريل دلالت کوي ليکن دَ جمع ظهور او په دې باندې هميشه والي اومواظبت په مدينه منوره کښې شوې ځکه چه دَ کافرانو دَغلبه دَ وجې نه په مکه کښې په ښکاره باندې په جمع مونځ کول څه آسان کار نه وو.

**د جماعت په حکم کښې مذاهب:-**

په دې باندې دَ ټولو اتفاق دې چه دَ سړو دَپاره په جمع سره مونځ کول دَ ځان له مونځ کولونه ډيرزيات غوره دې او بغيردَ شرعي عذرنه جمع ترك کول خرابه خبره ده. په دې خبره باندې هم دَ امت اتفاق دې چه بعض داسې عذرونه دی دَ کوم دَ وجې نه چه جمع ترك کول جائزدی. ټولو فقهاؤکرامو په خپله خپله فقه کښې دا عذرونه ليکلی دی. خوکه څه شرعي عذر نه وی نودې وخت کښې دَ جمع څه حکم دې آيا فرض ده واجب ده که سنت ده په دې کښې دَ علماء کرامو اختلاف دې.

① دَشوافع مختار اواصح قول دادې چه دَ فرض مونځ دَپاره جمع فرض کفايه ده محققين شوافع هم دې ته ترجيح ورکوی.

② دَ شوافع مشهورقول دادې چه جمع سنت مؤکده ده . دَ امام مالك رحمه الله په نيزجمع سنت ده.

③ دَ امام احمد بن حنبل رحمه الله په نيز جمع سره مونځ کول فرض عين دی ليکن دَ مانځه دَپاره شرط نشته دې لهذا دَ ځان له مونځ کونکی مونځ ګذار مونځ به اوشی مګر ګناهګاربه وی.

④ دَ اهل ظواهر په نيز دَ فرض مونځ دَپاره جمع کول دَ شرط په درجه کښې دی که چرته بغيردَعذر نه دَ جمع نه بغير مونځ اداکړې شی نومونځ به نه کيږی.

⑤ دَ ائمه احنافو دَ کتابونونه معلوميږی چه دَ جمع باره کښې دَهغوی دوه اقوال دی. يوقول خودادې چه جمع واجب ده دويم قول دادې چه سنت مؤکد ده. څوك چه واجب سره نيزدې دی دَ وجوب قول راجح دې. چنانچه مشهور حنفي محقق علامه ابن همام رحمه الله فتح القديرکښې فرمائی چه زمونږ دَ اکثرو مشائخو مسلك هم دغه دې چه جمع واجب ده او په دې باندې دَ سنت اطلاق په دې وجه کړې شوې دې چه دا دَ سنت نه ثابت دی يعنی پخپله جمع سنت ده بلکه دَدې ثبوت دَ سنت نه يعنی حديث نه شوې دې. بعض احنافو دَ سنت فتوی ورکړې ده متقدمين احناف دَ سنت قائل دی. [المرقات: ۳/۱۴۵]

**د اختلاف بنياد او سبب:**- محاکمه: دَدې اوړدو اختلافاتو او متفرق اقوال وجه څه ده په دې باره کښې حضرت علامه انورشاه کشميری رحمه الله داسې محاکمه اوفيصله کوی چه دا اختلاف په اصل کښې دَ تعبيراختلاف دې دَ مآل او نتيجې په اعتبارسره دومره لوئی اختلاف نشته دې. وجه داده چه په احاديثوکښې په جمع سره مونځ نه کولوباره کښې

سخت وعید راغلې دې. بعض روایاتو کښې راغلی دی چه دَ اذان اوریدلونه پس په جمع کښې دَ نه حاضریدونکی منع نه کیږی. بعض روایاتو کښې دی چه دَ جمات په ګاونډ کښې بغیر دَ جمع نه مونځ صحیح نه دې. بـل دَ بعض روایاتونه معلومیږی چه په دې باره کښې کافی نرمی ده چه لږ شان باران اوشی مونځ په کورونو کښې کول پکاردی. که دَ خوراك زیاته تقاضا وی نو جمع پریخودو سره دَ خوړاك کولو اجازت دې. لهذا کومو حضراتو چه تشدید تغلیظ او تهدید اووعید کتلې نوهغوی جمع ته فرض اووئیل یا دَ مانځه دَ صحت دَپاره ئی شرط اوګرځولو اوکومو حضراتو چه نرم اړخ اوکتلو هغوی دَ سنت فیصله اوکړه او چاچه دواړه اړخونه اوکتل هغوی دَ واجب یا سنت مؤکده حکم اولګولو. دغه شان دا اختلاف راښکاره شو اود نبی کریم ﷺ تولو طریقې په امت کښې ژوندی پاتې شوې.

**دَ جمعې د مونځ فائدې:** - محقق اسلام حضرت شاه ولی الله دهلوی رحمه الله په حجة البالغه کښې دَ جمع فوائد ډیر بیان کړی دی. دَتکمیل فائده دَپاره دَهغې نه دَیوڅو ذکر حاضر خدمت دې لیکن بعینه الفاظ نه دی بلکه خلاصه ده.

① عوام الناس او خواص به دَ یوبل په وړاندې مونځونه اداکوی. چه علماء وی هغه به دَ عوامو غلطیانې کتلوسره اصلاح کوی اوکوم خلق چه دَ مونځ مسائلو باندې نه پوهیږی هغوی به ئی کتلو سره یا اوریدلو سره زده کړی.

② دَ جمع دَ وجې نه دَ مانځه غوندې عظیم عبادت دَ رسم تام په توګه او دَعام رواج په توګه دَ تولو حصه جوړه شوې ده دَ کوم پریخودل چه به آسان نه وی.

③ بې مونځه به ښکاره شی ځکه چه څوك په جمات کښې په جمع کښې نه دی پوهه شه چه هغه مونځ ګذارنه دی.

④ په جمع کښې دَ یوعظیم الشان اتحاد مظاهره کیږی اودَ اسلام یولوئی عزت او شوکت دې.

⑤ اجتماعی دعا دَالله تعالی په حضور کښې ښه اثر لری او په جمع سره دا نعمت حاصلیږی.

⑥ هرسړی ته به دَ بل مجبور مسلمان دَ حالت او درد اوغم پته اولګی نوامداد به ئی اوکړی.

⑦ په جمع کښې عظیم الشان مساوات دې بادشاه اوفقیر په یوصف کښې ولاړوی.

**دجماعت د پریخودو عذرونه:** - دین اسلام دَ رحمت دین دې په دې کښې زحمت نشته دې چرته چه څه عذر وی هلته رخصت هم شته. یوڅو عذرونه بیانول مناسب معلومیږی سره ددې چه ډیرزیات دی.

① دَ سخت باران په وخت.

② دَ یوبیمار تپوس پوښتنه کول.

③ په لاروکښې دَ ختو کیدودَ وجې نه.

د شپې د سختې تیارې کیدل.
④ په بدن باندې د سترکپړه نه کیدل.
⑤ په لارکښې د ځان د دښمن خطره کیدل.
⑥ د یو مکان یا سامان څوکیداری کول.
⑦ د سختو متیازو یا اودس ماتی تقاضا پیښیدل.
⑧ د سفردوران کښې د قافلې نه د پاتې کیدو خطره.
⑨ د سختې یخنئی د وجې نه چه بیماری لګیدوخطره وی.
⑩ دومره ناجوړه کیدل چه د تللوقدرت نه وی یا نابیناکیدل.
⑪ جمات ته په تلوکښې شاته د مال اسباب د غلا خطره کیدل.
⑫ خوراك تیاریدل اود هغې د خرابیدو خطره کیدل اود سختې اولګې احساس کیدل.
⑬ په درس اوتدریش کښې داسې مشغول کیدل چه لږ شان فرصت هم نه وی مګر چه دا عذر کله کله وی همیشه نه وی. [نورالایضاح: ۷۷، ۷۸]

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**۱۰۵۲- د جماعت سره د مانځه ثواب**

۱۰۵۲-()[1] ① عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "صَلَاةُ الْجَمَاعَةِ تَفْضُلُ صَلَاةَ الْفَذِّ بِسَبْعٍ وَعِشْرِيْنَ دَرَجَةً". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① د ابن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② چه د جماعت مونځ د تنها لمانځه څخه (په ثواب کې) اوویشت درجې زیات وي، (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:-** ① تَفْضُلُ: أَيْ: تَزِیْدُ فِی الثَّوَابِ: یعنی ثواب ئې زیاتیږی.

**تسهیلات:-**

**قوله:** بِسَبْعٍ وَعِشْرِیْنَ دَرَجَةً:

**د جماعت د ثواب په باره کښې متعارض روایات:-**

① د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما په دې حدیث کښې جمع سره د مونځ ثواب ۲۷ درجې نه زیات معلومیږی. د دې په تولو روایتونو کښې جمع سره د مونځ ثواب ۲۵ درجې نه زیات خودلې شوې دې کوم چه په ظاهره تعارض دې؟

---

[1] اخرجه البخاری کتاب الاذان/ باب فضل صلاة الجماعة وکان الأسود:(رقم-۶۴۵) ومسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة/ باب فضل صلاة الجماعة، وبیان التشدید فی التخلف عنها(رقم) ۲۴۹ - (۶۵۰) والنسائی کتاب الإمامة/باب فضل الجماعة (رقم-۸۳۷) ومالک فی الموطا کتاب صلاة الجماعة ، باب فضل صلاة الجماعة علی صلاة الفذ (رقم-۱)

**د تعارض پنځه جوابونه:-** ① اولاً د الله تعالی د طرف نه ۲۵ درجې انعام وو بیا انعام زیات شو ۲۷ درجې ته اورسیدلو.

② په اعداد کښې تعارض نه وی ځکه چه عدد اکثر د اقل عدد نفی نه کوی بلکه عدد اقل د عدد اکثر ضمن کښې وی.

③ دا تفاوت د درجات امکنه د وجې نه دې یعنی چه د لرې لرې نه راجمع شی او جماعت اوکړی دا د هغه جماعت نه افضل دې چه د نیزدې نیزدې نه راجمع شی

④ د درجاتو دا فرق اوتفاوت د اشخاص اود هغوی د اخلاص د وجې نه دې. ښکاره خبره ده چه په یو جمات کښې صرف د طالبانو او صالحانو جمع وی هغه د یو بل شان والاوی اوکله چه د ګډو وډو خلق جمع وی هغه د بلې درجې وی. علماؤ لیکلی دی چه دا فضیلت د هرځائی د جماعت دپاره دې جمات سره خاص نه دې.

⑤ دا تفاوت د کثرت جماعت او قلت اشخاص د جماعت د وجې نه دې. ښکاره خبره ده چه د یو لاکھ انسانانو مجمع وی دهغوی د جمع شان به څه بل شان وی.

**۱۰۵۳- د جماعت پر پریښودلو وعید**

۱۰۵۳-()[۲] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ "«وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، ٣ لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ آمُرَ بِحَطَبٍ فَيُحْطَبَ، ٤ ثُمَّ آمُرَ بِالصَّلَاةِ فَيُؤَذَّنَ لَهَا، ٥ ثُمَّ آمُرَ رَجُلًا فَيَؤُمَّ النَّاسَ، ٦ ثُمَّ أُخَالِفَ إِلَى رِجَالٍ ٧ وَفِي رِوَايَةٍ: لَا يَشْهَدُونَ الصَّلَاةَ فَأُحَرِّقَ عَلَيْهِمْ بُيُوتَهُمْ، ٨ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، ٩ لَوْ يَعْلَمُ أَحَدُهُمْ أَنَّهُ يَجِدُ عَرْقًا سَمِينًا، ١٠ أَوْ مِرْمَاتَيْنِ حَسَنَتَيْنِ لَشَهِدَ الْعِشَاءَ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. وَلِمُسْلِمٍ نَحْوُهُ.

**ترجمه:** ١ ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ قسم دي په هغه ذات چې دهغه قبضه کې زما ساه ده ٣ ما اراده وکړه چې (یو خادم ته) د لرګو جمع کولو حکم وکړم او هر کله چې لرګي جمع شی ٤ نو (د ماسخوتن) د لمانځه د پاره د آذان کولو حکم وکړم او هر کله چې آذان وشي ٥ نو خلقو ته د مونځ ورکولو د پاره یو سړي مامور کړم ٦ بیا زه د هغه خلقو طرف ته ولاړسم (چې بغیر د عذر څخه د لمانځه د پاره جماعت ته نه راځي او هغه ناځایه راونیسم) ٧ د یو روایت دا الفاظ دي چې (حضور ﷺ وفرمایل) هغه خلقو طرف ته ورشم چې په لمانځه کې نه حاضریږي او د هغوئ کورونه وسوزوم ٨ او قسم دي په هغه ذات چې د هغه په قبضه کې زما ساه ده ٩ (کوم خلق چې د لمانځه د پاره په جماعت کې نه شریکیږي د هغوئ څخه) که چاته دا معلومه شی چې (په مسجد کې) د غوښې سرب

[1]) اخرجه ومسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة/ باب فضل صلاة الجماعة، وبیان التشدید فی التخلف عنها(رقم) ۲۵۱ - (۶۵۱) وابوداود کتاب الصلاة/باب فی التشدید فی ترک الجماعة (رقم-۵۴۸) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فیمن سمع النداء فلا یجیب (رقم-۲۱۷) والنسائی کتاب الإمامة/باب التشدید فی التخلف عن الجماعة (رقم-۸۴۸) وابن ماجة کتاب المساجد والجماعات/باب التغلیظ فی التخلف عن الجماعة (رقم-۷۹۱)

حاضر هډوکي⑩ بلکه د غوا یا د بزې (چیلۍ) دوه ښه نوکې به حاصل شي نو د ماسخوتن په لمانځه کې به خامخاحاضر شي. (بخاري، مسلم.)

**حل اللغات:** - ① هَمَمْتُ: أَيْ: قَصَدْتُ وَأَرَدْتُ: قصد او اراده مې کړې ده. ② فَأُحَرِّقَ: اوسوزوم، ③ عَرْقًا: أَيْ: عَظْمًا عَلَيْهِ لَحْمٌ: دغوښې والاهډوکې، ④ سَمِينًا: خرب، یعنی د غوښې نه ډک، ⑤ مِرْمَاتَيْنِ أي ظِلْفُ الشَّاةِ: د چیلۍ، بیزې دوه نوکې.

**تسهیلات:** -

**قوله:** فَأُحَرِّقَ عَلَيْهِمْ:

**داحنافو په نیز د جماعت په حکم کښې اختلاف:** - ① متأخرین احنافو دَ جماعت دَ واجب کیدو قول کړې

② دَ احنافو متقدمینو فقهاؤ دَ سنت مؤکده قول کړې دې.

**داول فریق دلیل:** - زیربحث حدیث دَ دوی مستدل دې. ځکه چې دومره سخت وعید سنتو په ترک باندې نشی اوروليي.

**داول فریق د دلیل ځخه جواب:** - دَدې حدیث دا وعید دَ هغه سړی دَپاره دې چه مسلسل جمع پریخودونکې وی اودَ دې دَ هغه عادت وی.

**د حدیث ځخه معلومې شوې مسئلې:** - ① دَجمع پریخودونکی دنیاوی تعزیر هم جائز دې او اخروی سزا ئی هم شته.

② حضورپاک ﷺ دَ سزا ورکولو اراده کړې وه لیکن په هغې باندې عمل اونه کړو. دَدې وجه علماء دا بنائی چه تارك الجماعة سره دکوره سوزولو سره دَ بې ګناه کسانودَ سوزیدو خطره وه کوم چه په کورکښې هغه سره اوسیدل لکه واړه ماشومان او زنانه وغیره.

③ امام دَ ضرورت په وخت خپل نائب مقررولې شی.

④ په آخره کښې دکم همت انسانانو ذهنی خرابوالی او کمزورئی طرف ته اشاره کړې شوې ده چه دغه کم همته خلقو ته چرته معلومه شی چه په جمات کښې به دَ دینا دَ کم ترنه کم تر څیز هم ملاویږی نو هغوی به په منډه باندې مونځ له راشی.

**دجماعت د عدم فرضیت دلیل:** - دَ دې حدیث نمبر ۱۰۵۳ او حدیث نمبر ۱۰۷۳ ځخه یوه عجیبه مخفی اشاره ملاویږی چه جمع فرض نه ده هغه داسې چه حضورپاک ﷺ اوفرمائیل چه زه خپل ځان سره یو څو ځوانان واخلم او جمع بل چاته حواله کړم. دې نه معلومه شوه چه دَ جمع ترك کولو ګنجائش شته اودا فرض نه ده ګنی حضورپاک ﷺ به خپلو ملګرو سره ځنګه تلو او جمع به ئی ځنګه پریخودله؟

### ۱۰۵۴ - د نابینا دپاره جماعت کښې د شرکت حکم

۱۰۵۴ - (۱) [۳] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: «أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ أَعْمَى، فَقَالَ: يَارَسُولَ اللّٰهِ! [۲] إِنَّهُ لَيْسَ لِي قَائِدٌ يَقُودُنِي إِلَى الْمَسْجِدِ، [۳] فَسَأَلَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُرَخِّصَ لَهُ فَيُصَلِّيَ فِي بَيْتِهِ، فَرَخَّصَ لَهُ، [۴] فَلَمَّا وَلَّى دَعَاهُ، فَقَالَ: [۵] "هَلْ تَسْمَعُ النِّدَاءَ بِالصَّلَاةِ؟" قَالَ: نَعَمْ، [۶] قَالَ: "فَأَجِبْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضی الله عنه فرمايي چې يو نابينا سړي (عبدالله ابن ام مکتوم رضی الله عنه) د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شو عرض يې وکړو چې يا رسول الله ﷺ [۲] زما د پاره داسې څوك رهبر نشته چې ما مسجد ته بوځي [۳] بيا هغه حضور ﷺ ته داخواست وکړو چې هغه ته په کورکې د لمانځه کولو اجازت ورکړي حضور ﷺ ورته اجازت وکړو [۴] (د هغه شخه وروسته) چې هغه (د مجلس نبوي ﷺ شخه) واپس شو نو حضور ﷺ هغه (بيا) راوغوښتل او ورته يې وفرمايل [۵] آيا ته د مونځ اذان اوري؟ هغه عرض وکړو چې هو [۶] نو حضور ﷺ ورته وفرمايل ستا د پاره مسجد ته تلل ضروري دي. (مسلم.)

**حل اللغات:** - ① قَائِدٌ: أَيْ: عَبْدٌ أَوْخَادِمٌ: راوستونکي زما يعني څوک غلام يا خادم مې نشته. ② وَلَّى: أَيْ: رَجَعَ وَأَدْبَرَ: شا ئې کړه او واپس شو. ③ فَأَجِبْ: أَيْ: فَأْتِ الْجَمَاعَةَ: يعنى د جماعت مونځ له حاضريږه.

**تسهيلات:** - **قوله:** لَيْسَ لِي قَائِدٌ:

**د رجل اعمى مصداق:** - دا صحابى حضرت عبدالله ابن ام مکتوم رضی الله عنه وو.

**نوټ:** - د دې حديث مزيد تشريح په بل مقام کښې ذکرشوې ده.

### ۱۰۵۵ - د سختې يخنى او باران په وجه د جماعت پرېښودلو جواز

۱۰۵۵ - (۲) [۴] [۱] «وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، [۲] أَنَّهُ أَذَّنَ بِالصَّلَاةِ فِي لَيْلَةٍ ذَاتِ بَرْدٍ وَرِيحٍ، [۳] ثُمَّ قَالَ: أَلَا صَلُّوا فِي الرِّحَالِ، [۴] ثُمَّ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْمُرُ الْمُؤَذِّنَ إِذَا كَانَتْ لَيْلَةٌ ذَاتُ بَرْدٍ وَمَطَرٍ يَقُولُ: [۵] "أَلَا صَلُّوا فِي الرِّحَالِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

[۱] اخرجه ومسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة/ باب يجب إتيان المسجد على من سمع النداء (رقم- ۲۵۵ - (۶۵۳) وابوداود كتاب الصلاة/باب في التشديد في ترك الجماعة (رقم-۵۵۲) والنسائي كتاب الإمامة/باب المحافظة على الصلوات حيث ينادى بهن (رقم--۸۵۰) وابن ماجة كتاب المساجد والجماعات/باب التغليظ في التخلف عن الجماعة (رقم-۷۹۲)

[۲] اخرجه البخارى كتاب الاذان/ باب الرخصة فى المطر والعلة أن يصلى فى رحله(رقم- ۶۶۶)و مسلم كتاب صلاة المسافرين وقصرها/ باب الصلاة فى الرحال فى المطر (رقم- ۲۲ - (۶۹۷) وابوداود كتاب الصلاة/باب التخلف عن الجماعة فى الليلة الباردة أو الليلة المطيرة (رقم-۱۰۶۳)والنسائى كتاب الأذان/باب الأذان فى التخلف عن شهود الجماعة فى الليلة المطيرة(رقم-۶۵٤) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة،والسنة فيها/باب الجماعة فى الليلة المطيرة(رقم-۹۳۶) كتاب الصلاة كتاب الطهارة . باب النداء فى السفر وعلى غير وضوء (رقم--۱۰) والدارمى كتاب الصلاة/باب الرخصة فى ترك الجماعة إذا كان مطر فى السفر (رقم-۱۳۱۱)

**ترجمه:** ۱ د ابن عمر ﷺ په باره کې روایت دي ۲ چې هغه یوه شپه چې د شپې (سخته یخني او هوا وه د لمانځه د پاره اذان وکړو ۳ او (د اذان نه د فارغیدو سره یې خلقو ته) اوویل خبردار په خپلو کورونوکې مونځ وکړې ۴ بیا یې وفرمایل رسول الله ﷺ به په داسې شپه چې (سخته) یخني او باران به وو مؤذن ته به حکم ورکولو چې هغه (د اذان څخه وروسته خلقو ته په اوچت آواز دا هم) اووائي ۵ خبردار په خپلو خپلو کورونو کې مونځ وکړې. (بخاري، مسلم.)

**حل اللغات:-** ① ذَاتِ بَرْدٍ: د یخنئ والا شپه، ② الرِّحَالِ: أَيْ فِي الْبُيُوتِ وَالْمَنَازِلِ: کورنه او د اوسیدو ځایونه.

**تسهيلات:- قوله: أَلَا صَلُّوا فِي الرِّحَالِ:**

**د باران او یخنو په وجه د جماعت پریښودو حکم:** -دَ یخنو او باران دَ وجې نه سړې په کورکښې مونځ کولې شي. "الرحال" منزل او کور ته وئیلی شوې دي. "اذا ابتلت النعال فالصلوة فی الرحال" النعال دَ څپلئی په معنی کښې هم دې اوسختې زمکې ته هم وئیلی شی یعنی سخته زمکه چه کله په باران باندې لمده شی نو بیا په کورونوکښې مونځ کوئی.

**۱۰۵۶- د خوراک په موجودګۍ کښې د مانځه حکم**

۱۰۵۶-(۱)[۵] ۱ وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«إِذَا وُضِعَ عَشَاءُ أَحَدِكُمْ وَأُقِيمَتِ الصَّلَاةُ، ۳ فَابْدَأُوا بِالْعَشَاءِ، ۴ وَلَا يَعْجَلْ حَتَّى يَفْرُغَ مِنْهُ» ". ۵ وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يُوضَعُ لَهُ الطَّعَامُ، وَتُقَامُ الصَّلَاةُ، فَلَا يَأْتِيهَا حِينَ يَفْرُغَ مِنْهُ، ۶ وَإِنَّهُ لَيَسْمَعُ قِرَاءَةَ الْإِمَامِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ

**ترجمه:** ۱ ابن عمر ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ هر کله چې په تاسو کې د چا مخې ته د شپې طعام کېښودل شي او (هغه وخت) د لمانځه تکبیر وئیل کیږي ۳ نو هغه دي طعام شروع کړي ۴ او په طعام خوړلو کې دي تلواري نه کوي بلکه د هغه څخه دي په اطمینان سره فارغ شي ۵ او د ابن عمر رضي الله عنهما باره کې ویل کیږي چې کله به د هغه مخې ته طعام کېښودل شو او مونځ به شروع شو نو د لمانځه د پاره به تر هغه وخته پورې نه راتلو تر څو پورې چې د طعام څخه به فارغ شوي نه وو ۶ او د امام قراءت به یې اوریدو. (بخاري، مسلم.)

[1]) اخرجه البخاری کتاب الاذان/ باب: إذا حضر الطعام وأقيمت الصلاة (رقم- ۶۷۳) ومسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة/ باب کراهة الصلاة بحضرة الطعام الذی يريد أكله فی الحال وكراهة الصلاة مع مدافعة الأخبثين(رقم) ۶۶ - (۵۵۹) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء إذا حضر العشاء وأقيمت الصلاة فابدءوا بالعشاء (رقم-۳۵۳) والنسائی کتاب الإمامة/باب العذر فی ترک الجماعة (رقم-۸۵۳)وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب إذا حضرت الصلاة ووضع العشاء (رقم-۹۳۵) والدارمی کتاب الصلاة/باب إذا حضر العشاء وأقيمت الصلاة (رقم-۱۳۱۷)

**حل اللغات:-** ① عَشَاءُ: مَا يُؤْكَلُ بَعْدَ الزَّوَالِ: كوم خوراک چه د زوال نه پس خوړلې شي هغې ته عشاء وائي، د مابښام روټۍ.

**تسهيلات:-**

**قوله:** فَابْدَأُوا بِالْعَشَاءِ:

**په وخت کښې د وسعت په صورت کښې د خوراک وړاندې کولو حکم:-** که چرته دَ مونځ په وخت کښې وسعت وی نودَ زړه په تسلئی سره اول هم دغه بهتر دی چه اول خوراك اوکړی دې دپاره چه په مانځه انتشار او فکرونه نه وی. دَ جمهورو په نیز دَ خوراك دَ شوق لرونکی دپاره هم دغه بهتر دی او احسن دی ځکه چه ممکن ده خوراك یخیدو سره خراب شی سېږې اوېیشو ئی اوخور یا وږ ختی یا په دې تاخیر سره پردو ته تکلیف اوشی.

**د امام ابوحنیفه قیمتی خبره:-** دَ امام ابوحنیفه رحمه الله نه په دې موقع یو حکیمانه کلام نقل دې فرمائی "لأن یکون طعامی کله صلوة احب الی من ان تکون صلوتی کلها طعاما" کله چه دَ مونځ فکر وی اوخوراك کوی نولکه چه هغه په مونځ کښې دې اوکله چه دَخوراك فکر وی او په مونځ کښې وی نولکه چه هغه دَ مانځه په ځائی په خوراك کښې مشغول دې.

**١٠٥٧- د قضاء حاجت د ضرورت په وخت د مونځ کولو کراهت**

١٠٥٧-()[٦] ① وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّهَا قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ② "«لَا صَلَاةَ بِحَضْرَةِ الطَّعَامِ ③ وَلَا هُوَ يُدَافِعُهُ الْأَخْبَثَانِ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① بي بي عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمايي چې ما د حضور ﷺ ځخه دا اوريدلي دي ② چې طعام مخې ته د راتلو په صورت کې مونځ کامل نه وي ③ او نه په هغه حالت کې مونځ (پوره وي) هر کله چې دوه خبيث (يعني غټ اودس ماتې او متيازې) د هغه په لمانځه (کې توجه) ختمه کړي. (مسلم.)

**حل اللغات:-** ① يُدَافِعُهُ: أي: يُطَالِبُهُ وَيَدْفَعُهُ حُضُورَ صَلَاتِهِ: دده نه دمونځ خشوع خضوع ختموی.
② الْأَخْبَثَانِ: د خبيث تثنيه ده، أي: الْبَوْلُ وَالْغَائِطُ: دوه خبيث څيزونه يعنی ډک اودس ماتې او متيازې (ددې په حکم کښې باد، قئ او مذی هم داخل دی).

**تسهيلات:-**

**په مانځه کښې د خشوع خضوع اهميت:-** مونځ دې سړی په داسې حالت اوداسې وخت کښې کوی کوم وخت چه سړی ته مکمل تسلی اوسکون حاصل وی دې دپاره چه دَ الله تعالی په حضور مکمل خشوع اوخضوع قائمه وی. خوچه کله په سړی باندې دَ اودس ماتی وغیره سخت

[1] اخرجه ومسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة/ باب كراهة الصلاة بحضرة الطعام الذى يريد أكله فى الحال وكراهة الصلاة مع مدافعة الأخبثين(رقم) ٦٧ - (٥٦٠)

بوج وی یاد خوراك سخت خواهش وی دغه شان د قې اوسرچكراويدو كيفيت وی ياد هوا شكايت وی په دې تولوصورتونوكښې مونځ روستوكولې شی اوجمع پرې خودې شی

**قوله: وَلَاهُوَيُدَافِعُهُ الْأَخْبَثَانِ:**

**د اخبثان څخه مراد:-** د بول وبراز په پریشانه کونکی حال کښې مونځ روستو كول جائزدی. بول وبراز که چرې موجب ثقل صلوة وی نو په داسې حالت کښې پخپله مونځ کول یا نوروته مونځ ورکول مکروه تحریمی دی. په داسې پریشانه کونکی حالت کښې په جمع سره مونځ پریخودل بهتردی دې دپاره چه بنه په تسلئی اوسکون سره مونځ اوکړې شی مګر دامسائل هغه وخت دی کله چه په وخت کښې وسعت وی که چرې په وخت کښې تنګی وی نوبيابه په هرحال کښې اداکول وی.

**۱۰۵۸- د فرض مونځ په دوران کښې د بل مونځ کولو ممانعت**

۱۰۵۸-()[٤][۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲]" «إِذَا أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَلَا صَلَاةَ إِلَّا الْمَكْتُوبَةُ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[۱] ابوهريره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] هر كله چې مونځ ودرېږي (يعني د فرض لمانځه د پاره تکبير وشي) نو د فرض لمانځه څخه علاوه بل مونځ نه دي كول پكار. (مسلم.)

**تسهيلات: - قوله: إِلَّا الْمَكْتُوبَةُ:**

**د صبا د فرضو په وخت کښې د سنتو په ادا كولو كښې مذاهب:**

د سحرنه علاوه د ځلورو وختونو په مونځونوكښې كله چه اقامت اوشی نواتفاقًا سنت کول مکروه تحريمی دی البته د سحرپه سنتوکښې چونکه شدید تاکید اوتاکد دې اوبعض علماؤ دې ته دسنت په ځائی واجب وئيلی دی اوپه حديث شريف كښې دی "صلوهاوان طردتكم الخيل" يعنی كه د دښمن اسونه مو چقنړی هم كړی نوبياهم دا سنت مه پريږدئی د دې تاكيداتود وجې نه دا مسئله د فقهاء په مينځ كښې مختلف فيها شوې ده.

① د امام شافعی رحمه الله اود امام احمد رحمه الله په نيزد باقی مونځونود سنتوپه شان د سحرسنت هم د جمع د قيام په وخت اداكول مكروه تحريمی دی.

② د اهل ظواهر په نيزخودې قسم مونځونو انعقاد هم نه كيږی كه څوك نيت اوكړی

[1]) اخرجه مسلم كتاب صلاة المسافرين وقصرها/ باب كراهة الشروع فى نافلة بعد شروع المؤذن (رقم-٦٣ - (٧١٠) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء إذا أقيمت الصلاة فلا صلاة إلا المكتوبة (رقم-٤٢١) وابوداود كتاب الصلاة/باب إذا أدرك الإمام، ولم يصلى ركعتى الفجر (رقم-١٢٦٦) والنسائى كتاب الإمامة/باب ما يكره من الصلاة عند الإقامة(رقم-٨٦٥) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فى إذا أقيمت الصلاة فلا صلاة إلا المكتوبة (رقم-١١٥١)والدارمى كتاب الصلاة/باب إذا أقيمت الصلاة، فلا صلاة إلا المكتوبة (رقم-١٤٨٨)

نونیت به ئې صحیح نه وي. دامام مالك په نیـزد سحرسنت د جمع د اودریدو په وخت په جمات کښې دننه ناجائزدی مگر د جمات نه بهرجائزدی په دې شرط چه جمع سره د دوارو رکعتونه ملاویدې شي

③ احناف فرمائي چه دَدې دوارو سنتو د تاکداوتاکید په رنړاکښې د جمع د اودریدو په وخت هم دا سنت کول جائزدی که جمات لوئي وی نوددې په یوگوټ کښې دې اودریږی او که چرې جمات وړوکې وی نوسرې دې د جمات نه بهرلاړ شی اودې دریږی په دې شرط چه آخری رکعت مکمل ملاوشی دې د پاره چه احراز فضیلتونه په مکمل توگه باندې اوشی. لوئي جمات هغه وی چه شپیته قدمه پورې وی که چرې داسې نه وی نوبیا هغه وړوکې دې

۱۰۵۹—ښځوته د جمات د تلو اجازت

۱۰۵۹—()[۸] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«إِذَا اسْتَأْذَنَتِ امْرَأَةُ أَحَدِكُمْ إِلَى الْمَسْجِدِ فَلَا يَمْنَعْهَا»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ① ابن عمر رضی الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② هر کله چې په تاسو کې د چا ښځه مسجد ته د تلو اجازت وغواړي نو هغه دې نه منع کوي. (بخاري، مسلم)

**تسهیلات**:-

**قوله**: إِذَا اسْتَأْذَنَتِ امْرَأَةُ:

**په عهد نبوی کښې ښځو ته جماتونوته د حاضریدو اجازت**:- د ډیرو زیاتو صحیح احادیثو نه ثابته ده چه د حضورپاك ﷺ په مبارکه زمانه کښې ښځوته د مونځ کولو دپاره جمات ته د راتلو اجازت وو اوښځې به حاضریدلې هم. لیکن په دغه مبارکه زمانه کښې ئې هم په ښځو باندې یوځو پابندئې او شرطونه لګولي وو مطلق اجازت هغه وخت هم نه وو.

**د ښځودپاره په جماعت کښې د شرکت شرطونه**:- ① ښځوته په واضحه توګه خودلې شوی وو چه دهغوی هغه مونځونه کوم چه هغوی په کورکښې دننه کوی دهغې ثواب د هغه مونځونونه زیات دې کوم چه جمات ته په تلوسره کوی.

② ښځو ته حکم وو چه هغوی دې د سړو نه بالکل په آخره کښې جمات ته راځي او په آخری صفونوکښې دې کیني اود سلام نه پس دې فوری کورونوته ځي.

③ ښځوته دا حکم وو چه هغوی دې خوشبوئي لګولو سره جمات ته نه راځي ګنې مونځ به ئې نه کیږی. دغه شان د ډول سینګار لباس اغوستو سره دې نه راځي.

[1]) اخرجه البخاري كتاب الاذان/ باب استئذان المرأة زوجها في الخروج إلى المسجد وغيره،(رقم-۵۲۳۸)ومسلم كتاب الصلاة/باب خروج النساء إلى المساجد إذا لم يترتب عليه فتنة، وأنها لا تخرج مطيبة(رقم-۱۳٤ (٤٤۲))والدارمي باب تعجيل عقوبة من بلغه عن النبي صلى الله عليه وسلم حديث فلم يعظمه ولم يوقره (رقم-٤۵٦ )

④ زړو ښځوته اجازت وو اوهغه هم دَ تياري والامونځونوکښې مثلاً دَ سحر، ماښام او ماسخوتن. ځوانو ښځوته په دې کښې هم دَ شريکيدو اجازت نه وو.
⑤ سړو ته حکم وو چه هغوی دې ترهغه وخته پورې دَ جمات نه اوځی ترکومې پورې چه ښځې کورونوته اونه رسی.

**په عهد نبوی کښې د زنانو مسجد نبوی ته د حاضريدو ضرورت:** -دَ رسول الله ﷺ په مبارکه زمانه کښې دَ ښځو جمات ته دَ حاضريدو يو خاص ضرورت وو هغه دا چه په هغه وخت کښې به دَ نوی نوی احکاماتو نازليدل کيدل. اودَ حضورپاك ﷺ مواعظ حسنه به هم په جمات کښې کيدل اودَ هغې دَ حاصلولو واحد ذريعه هم دغه جمات کښې حاضريدل وو. دَدې مجبورئی دَ وجې نه ښځوته جمات ته دَ تلو اجازت ورکړې شوې وو. بل دَ رسول الله ﷺ دَ مجالسو دَ برکاتو حصول هم دَدې نه علاوه ممکن نه وو. بل دَدين اسلام دَ زده کولو هم دغه يوه لار وه.

**د عهد نبوی تقوی اوپرهيزګاری:** -داخبره هم ذهن کښې ساتل پکار دی چه دَ هغه وخت ماحول څه وو په کوم کښې چه به ښځې جماتونو ته تللې. لږ شان خيال اوکړئی اوګورئی چه دَ صحابه کرامو دَ فرښتو په شان جماعت وو. سيدالاولين والآخرين به ذات خود تشريف فرما وو. دَ آسمان نه دَ قرآن عظيم دَ عظيم برکتونو نزول کيدلو. جبرائيل آمين به سحر ماښام په هغه مقدس زمکه باندې خپلو مبارکوتوجيهاتو سره خپل مبارك قدم کيخودلو. دَ خيرالقرون دور وو، زړونه پاك اوصفا وو، دَ الله تعالی دَ ويرې او تقویٰ ماحول وو. په داسې ماحول کښې دَ ښځو جماتونو ته راتلل دَ فتنې سبب نه وو بلکه دَ برکت سبب وو. په اصولی توګه په داسې ماحول باندې بل يو ماحول نه شی قياس کولې. نتيجه دا راؤوتله چه کله دَ رسول الله ﷺ دَ زمانې والا مجبوری باقی پاتې نه شوه اودَ هغې په شان ماحول پاتې نه شو بلکه دَ فتنې او فساد دور راغلو نو په داسې حالاتو کښې دَ ښځو جماتونو ته تلل به مناسب نه وی.

**دزبيربن عوام ښځې لره جمات ته د تلو څخه منع کولو حکمت عملی:** -دَ صحابه کرامو په زمانه کښې په دې مسئله بحث کيدلو او په دې باندې ښه ګرم مباحث اوشو. يو ځل حضرت زبير بن عوام رضي الله عنه خپله بی بی دَ جمات دَ تلونه منع کړه نو هغې خبره وانوريده ځکه چه دَ نبی کريم ﷺ اجازت هغې ته معلوم وو چه يو طاقتور دليل وو. حضرت زبير رضي الله عنه دا چل اوکړو چه په لاره کښې کيناستو اوکله چه دَ هغه بی بی جمات ته تلله نوحضرت زبير رضي الله عنه دَ هغې طرف ته کاڼړې اوويشتلو هغه هم په هغه ځائی باندې اودريده او وئی ﴿إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ﴾ دې وينا سره واپس راغله او حضرت زبير رضي الله عنه ته ئی اوفرمائيل چه اوس هغه دور پاتې نه شو په کوم کښې چه به ښځې جماتونو ته تلې.

**د زنانؤ جمات ته د تلو باره کښې د ابن عمر او د هغه د ځوئی واقعه :-** په مشکوة شریف کښې هم دَدې باب آخری دوه احادیث ۳۱، ۳۲ راتلونکی دی په هغې کښې دَ حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما او دَ هغه دَ ځوئی بلال خبرې اترې ذکر دی حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما اوفرمائیل چه ښځوله دَ جمات دَ تلو باره کښې حضورپاك ﷺ اوفرمائیل چه دوی مه منع کوئی. دَحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما ځوئی بلال رضی الله عنه اووئیل چه زه خو به نی منع کوم. په دې صورې معارضه باندې عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دومره خفه شو چه ټول عمر ئې هغه سره خبرې اونه کړې. حضرت بلال رضی الله عنه دَ حدیث معارضه او انکار اونه کړو صرف صورت دَ معارضه جوړ شو.

**د زنانؤ جماتونو ته د ممانعت باره کښې د حضرت عائشې رضی الله عنها قول :-** کله چه دا قصه حضرت عائشې رضی الله عنها ته معلومه شوه نو وئې فرمائیل چه الله تعالی دې په ابن عمر رضی الله عنهما باندې رحم اوکړی که چرې په نن وخت کښې رسول الله ﷺ موجود وې نو ښځې به ئې دَ جمات دَ تلو نه منع کولې لکه څنګه چه دَ بنی اسرائیلو ښځې منع کړې شوې وې. بخاري شریف کښې دَ حضرت دَ عائشې رضی الله عنها روایت داسې دې: ((لوادرك رسول الله صلی الله علیه وسلم ما احدث النساء لمنعهن المسجد کما منعت نساء بنی اسرائیل)) (بخاري ۱/ ۱۲۰)

**په عهد حاضر کښې د زنانؤ جماتونو ته د حاضریدو فقهی حکم :-** دَ ښځو جمات ته تل فقهاء احناف دَدې معروضی احوالو په رڼا کښې مکروه لیکلی دی. دَ حدیث جواز په خپل ځائی باندې صحیح دې مګر دَ حدیث دَ پاره هغه ماحول باقی پاتې نه شو به کوم ماحول کښې چه دا حدیث وئیلې شوې وو او دَ کومې مجبورئی دَ وجې نه چه وئیلې شوې وو هغه مجبورئی پاتې نه شوه. په دې وجه علماء وائی چه "فلایمنعنها" کښې چه کومه نهی راغلې ده هغه په مکروه تنزیهی باندې محمول ده یعنی منع کول خلاف اولی دی. مطلب دا چه که څوك ئې منع کړی نو هغه هم جائز دی.

۱۰۶۰- د زنانؤ دپاره د خوشبو لګولو حالت کښې جمات ته د تلو ممانعت

۱۰۶۰- (۱)[۹] [۱] وَعَنْ زَيْنَبَ امْرَأَةِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَتْ: قَالَ لَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«إِذَا شَهِدَتْ إِحْدَاكُنَّ الْمَسْجِدَ، فَلَا تَمَسَّ طِيبًا» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه :** [۱] د عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه ښځه بي بي زینب رضی الله عنها وایي چې رسول الله ﷺ مونږ ته وفرمایل [۲] هر کله چې په تاسو کې یوه ښځه مسجد ته ځي نو خوشبو دي نه لګوي. (مسلم)

**حل اللغات :-** ① لَاتَمَسَّ: نه دي لګوی، ② طِيبًا: خوشبوئی (ځکه چه دا د فتنې سبب دی).

[1] اخرجه مسلم کتاب الصلاة/ کتاب الصلاة/باب خروج النساء إلى المساجد إذا لم يترتب عليه فتنة، وأنها لا تخرج مطيبة(رقم-۱۴۳ - (۴۴۴) کتاب الزينة/باب النهى للمرأة أن تشهد الصلاة إذا أصابت من البخور(رقم-۵۱۲۹)

**تسهیلات:- قوله:** فَلَا تَمَسَّ طِيبًا

**جمات ته د تلو په وخت کښې ښځودپاره د خوشبو لګولو ممانعت:** -حاصل د حدیث دادی چې د ښځې خوشبو لګول او جمات ته تلل د فتنې نه خالی نه دی په دې وجه ددې نه منع کړې شوې ده:

**ښځودپاره بازارونوته د تلوممانعت:** -دحدیث څه دا هم معلومه شوه چې هرکله خوشبو لګولو نه پس جمات ته تلل چې دالله تعالی کور دې دهغې څخه منع کړې شوې ده نو بازارنه بطریق اولی منع راغله، ځکه چې خوشبو لګول او بازار ته تلل او ښانسته برقعه کښې تلل ،ددې نه زیات دفتنې کارونه دی.ځکه دا بازارونه د شیطان د ښکار ځایونه دی.

**۱۰۶۱-د خوشبو لګولو په حالت کښې زنانو دپاره جمات ته د تلو ممانعت**

۱۰۶۱-(')[۱۰]① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②" «أَيُّمَا امْرَأَةٍ أَصَابَتْ بَخُورًا;③فَلَا تَشْهَدْ مَعَنَا الْعِشَاءَ الْآخِرَةَ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**① ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل② کومه ښځه چې بخور (یعني خوشبو) لګوي③ هغه دي زمونږ سره د ماسخوتن په لمانځه کې نه شریکیږي. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① أَصَابَتْ: چه اولګوی،اورسیږی ② بَخُورًا: مَا يُتَبَخَّرُ بِهِ وَيُتَعَطَّرُ: څه چه دخوشبو دپاره استعمالیږی. ③ الْعِشَاءَ الْآخِرَةَ: د ماسخوتن مونځ،

**تسهیلات:- قوله:** أَصَابَتْ بَخُورًا:

**د نبی کریم په زمانه کښې ښځودپاره جمات ته د تلواجازت:** -دا حدیث د تعمیم بعد التخصیص د قبیلې څخه دې.اول د عامې خوشبو لګولوڅخه منع شوې وه او اوس دخاص خوشبو لګولو منع اوشوه.ددې نه معلومه شوه چې په هغه زمانه کښې ښځو ته مسجد ته د راتلو اجازت وو خو دهغوئ دپاره مخصوص پابندیانې وې.خو روستو هغه ختم شو.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**۱۰۶۲-ښځودپاره په کورکښې د مونځ کولو افضلیت**

۱۰۶۲ -(')[۱۱]① عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②«لَا تَمْنَعُوا نِسَاءَكُمُ الْمَسَاجِدَ،③وَبُيُوتُهُنَّ خَيْرٌ لَهُنَّ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

[1]) اخرجه مسلم كتاب الصلاة/ كتاب الصلاة/باب خروج النساء إلى المساجد إذا لم يترتب عليه فتنة. وأنها لا تخرج مطيبة(رقم-۱۴۳ - (۴۴۴) ابوداود كتاب الترجل /باب ما جاء فى المرأة تتطيب للخروج (رقم-۴۱۷۵) والنسائى كتاب الزينة/باب النهى للمرأة أن تشهد الصلاة إذا أصابت من البخور(رقم-۵۱۲۸)

[2]) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب ما جاء فى خروج النساء إلى المسجد (رقم-۵۶۷)

**ترجمه:**[۱] ابـن عمـر رضي الله عنهما راوي دي چـې رسـول الله ﷺ وفرمايـل[۲] تاسـو خپلـې ښـځې مسجدونوته (د راتلو) څخه مه منع کوي[۳] ليکن (د لمانځـه کولو د پاره) د هغوئ کورونه د هغوئ د پاره بهتر دي. (ابوداؤد.)

**تسهيلات:** - نوټ - د دې حديث شرح اوتفصيل په حديث نمبر (۱۰۶۱)کښې تيرشوې دې

**۱۰۶۳—ښځې دپاره په هر صورت کښې د پردې خيال ساتل**

۱۰۶۳—()[۱۲][۱]وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲]" «صَلَاةُ الْمَرْأَةِ فِي بَيْتِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِي حُجْرَتِهَا، [۳]وَصَلَاتُهَا فِي مَخْدَعِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِي بَيْتِهَا» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:**[۱] ابن مسعود رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايـل[۲] د ښـځې په کور کې دننه (يعني په دالان کې) مونځ کول په انګړ (صحن) کې د لمانځه کولو څخه بهتر دي[۳]او په کوټه کې مونځ کول په دالان کې د لمانځه کولو څخه بهتر دي. (ابوداؤد.)

**حل اللغات:** - ① حُجْرَتِهَا: أَيْ: صَحْنِ الدَّارِ: دَ کمرې مخې ته چه کوم صحن وی هغې ته حجره وئيلی شی. ② مَخْدَعِهَا: وَهُوَ الْبَيْتُ الصَّغِيرُ الَّذِي يَكُونُ دَاخِلَ الْبَيْتِ الْكَبِيرِ: مخدع خدع نه دې، دَ دهوکې ځای او دهوکې ته وائی دلته دَ ښځې هغه کوټه مراد ده په کوم کښې چه دَهغې خپل پټ سامان پروت وی.

**تسهيلات:** -

**قوله:** مَخْدَعِهَا:

**ښځې دپاره جمات ته د تلو په نسبت په کور کښې د مونځ افضليت:** - دَدې حديث نه يوعجيبه تعليم حاصل شو هغه دا چه اکثرښځې دَ جمات شوق کوی چه هغه جمات ته لاړه شـی او ثـواب اوګټـی. اوس که څوك دَهغې نه تپوس اوکړی چـه دا اوښـايه ستاجمات ته دَتلوشوق ولې دې؟ که په دې وجه وی چه دَ جمع اوجمات ثواب ملاؤشی نو هغه ثواب خو په کورکښې هم ملاويږی بلکه دَهغې نه څه ښه ملاويږی. اوکه جمات ته دَ تللوشوق دَبل څه وجې نه وی نوهغه شوق دې هم لږ شان اوښائی چه په هغې باندې هم غور اوکړې شی.

**۱۰۶۴—د خوشبو لګولو ښځو د مونځ نه قبليدل**

۱۰۶۴—()[۱۳][۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲]إِنِّي سَمِعْتُ حِبِّي أَبَا الْقَاسِمِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "[۳]«لَا تُقْبَلُ صَلَاةُ امْرَأَةٍ تَطَيَّبَتْ لِلْمَسْجِدِ[۴]حَتَّى تَغْتَسِلَ غُسْلَهَا مِنَ الْجَنَابَةِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَرَوَى أَحْمَدُ وَالنَّسَائِيُّ نَحْوَهُ

[1]) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب التشديد في ذلك (رقم-۵۷۰)

[2]) اخرجه ابوداود كتاب الترجل /باب ما جاء في المرأة تتطيب للخروج (رقم-٤١٧٤) والنسائى كتاب الزينة /باب اغتسال المرأة من الطيب (رقم-۵۱۲۷) وابن ماجة كتاب الفتن /باب فتنة النساء (رقم-٤٠٠٢)

**ترجمه:** [١] ابوهريره رضي الله عنه فرمايي[٢] چې ما د خپل محبوب ابوالقاسم رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي[٣] چه د هغه ښځې مونځ نه قبليږي چې مسجد ته د تلو د پاره خوشبو لګوي[٤] نو دې چه که هغه خوشبو لګولي وي نو (په ښه شان) هغې غسل ونه کړي څنګه چې د نا پاکي غسل کوي. (ابوداؤد، احمد، نسايي.)

**تسهيلات:-**

**قوله:** حَتَّى تَغْتَسِلَ غُسْلَهَا مِنَ الْجَنَابَةِ:

**جمات ته دحاضريدو په وخت زنانو دپاره د خوشبوئي لګولو حرمت:-** يعنى كومه ښځه چې خوشبو اولګوى نو هغه دې لكه د جنابت نه دغسل كوونكې ښځې پشان غسل اوكړي، كه دې پورا بدن خوشبو سره معطر كړې وى. اوكه په يو اندام باندې ئې خوشبو لګولې وى نو بيا دې صرف هغه اووينځى. كه په جامو ئې لګولې وى نو بيادې جامې بدلې كړي.

**١٠٦٥- د ښځو دپاره د خوشبو لګولو په حالت كښې د بهر وتلو ممانعت**

١٠٦٥-( )[١٣] [١] وَعَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "كُلُّ عَيْنٍ زَانِيَةٌ [٣] «وَإِنَّ الْمَرْأَةَ إِذَا اسْتَعْطَرَتْ فَمَرَّتْ بِالْمَجْلِسِ، [٤] فَهِيَ كَذَا وَكَذَا " يَعْنِي زَانِيَةً». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَلِأَبِي دَاوُدَ وَالنَّسَائِيِّ نَحْوُهُ.

**ترجمه:** [١] ابو موسى رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[٢] هره ستركه زنا كونكي ده [هر كله چې هغه يوې غيرې ښځې طرف ته په بد نظره سره وګوري څكه چې پردې ښځې ته په بد نظر كتل د ستركې زنا كول دي][٣] او كومه ښځه چې خوشبو لګولو سره (د سړو) په مجلس تيريږي (او غواړي چې خلق هغې ته وګوري)[٤] نو هغه داسې او داسې ده يعنى زنا كاره ده، (ترمذي، ابوداؤد، نسايي.)

**حل اللغات:-** ① زَانِيَةٌ: زنا كونكې، ② اسْتَعْطَرَتْ: أَيْ: تَطَيَّبَتْ أَوْتَبَخَّرَتْ: خوشبو او عطر اولګوى.

**تسهيلات:-**

**قوله:** فَهِيَ كَذَا وَكَذَا:

**دسړو په مجلس د تيريدو په وخت ښځې دپاره دخوشبوئي لګولو حرمت:-** كله چې يوه ښځه خوشبو اولګوى او په يو مجلس باندې تيريږى نو ددې مقصد خلق خپل طرف ته راغب كول وى چې هغه خلق دې طرف ته اوګورى. او هركله چې هغوئ دې طرفته اوكتل نو هغوئ د ستركو په زنا كښې اخته شو، او دا ښځه چونكه ددې فعل سبب جوړه شوه نو ګويا داسې شوه چې دې د زنا ارتكاب كړې دې.

[١] اخرجه ابوداود كتاب الترجل /باب ما جاء في المرأة تتطيب للخروج (رقم-٤١٧٣) والترمذى كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية خروج المرأة متعطرة (رقم-٢٧٨٦)

۱۰۲۲- د سحر او ماسخوتن د مونځونو فضيلت

۱۰۲۲-(۱)[۱۵] ۱ وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ۲ «صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا الصُّبْحَ، ۳ فَلَمَّا سَلَّمَ قَالَ: "أَشَاهِدٌ فُلَانٌ؟" قَالُوا: لَا، ۴ قَالَ: "أَشَاهِدٌ فُلَانٌ؟" قَالُوا: لَا، ۵ قَالَ: "إِنَّ هَاتَيْنِ الصَّلَاتَيْنِ أَثْقَلُ الصَّلَوَاتِ عَلَى الْمُنَافِقِينَ، ۶ وَلَوْ تَعْلَمُونَ مَا فِيهِمَا لَأَتَيْتُمُوهُمَا وَلَوْ حَبْوًا عَلَى الرُّكَبِ،

**ترجمه:** ۱ ابي ابن كعب رضی الله عنه فرمايي ۲ چې (يوه ورځ) رسول الله ﷺ مونږ ته د سحر مونځ راكړو ۳ كوم وخت چې يي سلام وګرځولو نو (د يو سړي د نوم آخستو سره يي د هغه په باره كې) وفرمايل آيا فلاني سړي حاضر دي؟ صحابه و رضی الله عنهم عرض وكړو چې حاضر نه دي ۴ حضور ﷺ (د يو بل سړي نوم اخستلوسره د هغه په باره كې) وفرمايل آيا فلاني سړي حاضر دي؟ صحابه و رضی الله عنهم عرض وكړو چې نه دي حاضر ۵ (د دي ځخه وروسته) رسول الله ﷺ وفرمايل په ټولو لمونځونو كې دا دواړه لمونځونه (يعني د سحر او ماسخوتن لمونځونه) په منافقانو باندې ډير سخت تيريږي ۶ كه تاسو خلقو ته معلومه شي چې د دې دواړو لمونځونو څومره ثواب دي نو تاسو به (په منډه او) په ګرنډو (يعني پريوتو او ودريدو سره) راتلي او

۱ وَإِنَّ الصَّفَّ الْأَوَّلَ عَلَى مِثْلِ صَفِّ الْمَلَائِكَةِ، ۲ وَلَوْ عَلِمْتُمْ مَا فَضِيلَتُهُ لَابْتَدَرْتُمُوهُ، ۳ وَإِنَّ صَلَاةَ الرَّجُلِ مَعَ الرَّجُلِ أَزْكَى مِنْ صَلَاتِهِ وَحْدَهُ، ۴ وَصَلَاتُهُ مَعَ الرَّجُلَيْنِ أَزْكَى مِنْ صَلَاتِهِ مَعَ الرَّجُلِ، ۵ وَمَا كَثُرَ فَهُوَ أَحَبُّ إِلَى اللَّهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ۱ (د ثواب او فضيلت او د تقرب الي الله په سلسله كې) اولني صف د فرشتو د صف په شان دي ۲ كه تاسو ته د اولني صف فضليت معلوم شي نو په هغې كې د شامليدو د پاره به په تلواري د رسيدلو كوشش كوئ ۳ او د سړي د يوازي مونځ كولو ځخه د بل سړي سره مونځ كول د زيات ثواب باعث دي ۴ او د دوو سره يو ځاي كيدو سره مونځ كول د يو سړي سره د لمانځه كولو ځخه د زيات ثواب باعث دي ۵ او څومره چې زيات (لمونځ كونكي يو ځاي يعنى په جماعت سره مونځ كوي) د الله په نيز دا د ټولو ځخه محبوب دي، (ابوداؤد، نسايي.)

**حل اللغات:-** ① أَثْقَلُ: سخت مشكل، ګران، ② حَبْوًا: وَهُوَ أَنْ يَمْشِيَ عَلَى يَدَيْهِ وَرُكْبَتَيْهِ أَوْ إِسْتِهِ: په زنګونونو په خرپوسو تلل يعنى په پريوتو او اودريدو تللو ته وائي. ③ الرُّكَبِ: د ركبة جمع ده، ګونډو ته وائي. ④ لَابْتَدَرْتُمُوهُ: أَيْ: سَبَقْتُمْ إِلَيْهِ: په جلتئ سره به تاسو مخكښې والې كوئ هغې ته، ⑤ أَزْكَى: أَيْ: أَكْثَرُ ثَوَابًا: زيات ثواب والا.

---

[1] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة/باب فى فضل صلاة الجماعة (٥٥٤) والنسائي كتاب الإمامة/باب الجماعة إذا كانوا اثنين (رقم-٨٤٣)

**تسهيلات:-**

**قوله: أَثْقَلُ الصَّلَوَاتِ عَلَى الْمُنَافِقِينَ:**

**په منافق د سحر او ماسخوتن د مونځونو د گرانوالی وجوهات:-**

① دَ ماسخوتن او سحر په مونځ کښې محنت زیات وی په یو کښې دَ خوړ خوب نه پاسیدل وی او بل کښې دَ خوب نه منع کیدل وی

② منافق دَ اخلاص نه خالی اودَ سستئی نه ډك وی. لهذا دَ سحر اوماسخوتن مونځ په دوی باندې دروند وی.

③ په دې مونځونو کښې دَ ریاکارئی موقع هم نه وی کومه چه دَ منافق محبوب سرمایه ده په دې وجه دا دواړه مونځونه په منافقانو باندې درانه وی.

**۱۰٦٧- په جماعت سره مونځگذار باندې د شیطان نه غالب کیدل**

۱۰٦٧-()[۱][۲] وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «مَا مِنْ ثَلَاثَةٍ فِي قَرْيَةٍ وَلَا بَدْوٍ لَا تُقَامُ فِيهِمُ الصَّلَاةُ، [۳] إِلَّا قَدِ اسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشَّيْطَانُ. [۴] فَعَلَيْكَ بِالْجَمَاعَةِ، [۵] فَإِنَّمَا يَأْكُلُ الذِّئْبُ الْقَاصِيَةَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابو درداء رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په کومه آبادي او کوم ځنګل کې چې دري سړي وي او په جماعت سره مونځ نه کوي [۳] نو په هغوئ شیطان غالب وي [۴] نو تاسو جماعت په ځان لازم کړي [۵] ځکه چې شرمښ هغه بیزه خوري کومه چې د رمي څخه جدا کیدو سره (ځان ته) وي، (احمد، ابوداؤد، نسایي.)

**حل اللغات:-** ① قَرْيَةٍ: کلي، آبادی، ② بَدْوٍ: أَيْ: بَادِيَةٍ: ځنګل ③ اسْتَحْوَذَ: أَيْ: اسْتَوْلَى وَغَلَبَ: دادَغلبې اوقابوکولو په معنی کښې دي. ④ الذِّئْبُ: شرمخ، لیوه، ⑤ الْقَاصِيَةَ: أَيْ: الشَّاةَ الْبَعِيدَةَ عَنِ الْأَغْنَامِ: دَ رمې نه ځان له اوجدا چیلئی ته قاصیه وائی.

**تسهيلات:- قوله: فِي قَرْيَةٍ:**

**د جماعت د مونځ اهتمام:-** يعنی په کلی کښې که درې کسان هم وی نوهغوی له پکاردی چه يوامام شی اودوه مقتديان جوړيدو سره جمع اوکړی دې دَپاره چه دَ جمع ثواب ورته ملاؤشی اودَ مسلمانانودَ اجتماعيت شان هم په ځائی پاتې شی ځکه چه دَ مسلمانانو اجتماعيت ترکومې پورې قائم وی دَ ابليس طاقت په هغوی نه شی چليدې خوکه دا اجتماعيت ختم شو نودَ شيطان به په هغوی باندې غلبه اوشی

**د مثال په رنړا کښې د مسئلې وضاحت:-** لکه څنګه چه شرمخ دَ چيلو رمې نه شی

---

[1] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة/بباب فی التشديد فی ترک الجماعة (رقم-٥٤٧) والنسائی كتاب الإمامة/باب التشديد فی ترک الجماعة (رقم-٨٤٧)

قـابوكولې او پـه هغـوى باندې حمله نـه شى كـولې لـيكن څـان يـوازې چيلئـى فـورى تـوګه باندې راقـابوكوى. دغـه شـان دَ جمـع نـه څـان لـه مـونځ كـونكې يـوورځ شيطان قـابوكولې اوراتيينګولې شي.

**۱۰۶۸—بغير عذره د ځا لله مونځګذار مونځ نه قبليدل**

۱۰۶۸—(۱)[۱۷][۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«مَنْ سَمِعَ الْمُنَادِي فَلَمْ يَمْنَعْهُ مِنِ اتِّبَاعِهِ عُذْرٌ". [۳] قَالُوا: وَمَا الْعُذْرُ؟ قَالَ: "خَوْفٌ أَوْ مَرَضٌ [۴] لَمْ تُقْبَلْ مِنْهُ الصَّلَاةُ الَّتِي صَلَّى»". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابن عباس رضی الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم سړي چې د اذان كونكي (يعني مؤذن) اذان واوري او د مـؤذن د تابعداري (يعني مسجد تـه رسيدو سره په جماعت كې د شريكيدو) څخه هغه څه عذر منع نه كړي [۳] خلقو پوښتنه وكړه چه عذر څه دي؟ وي فرمايل (د دښمن څخه) ويره يا بيماري [۴] نو د هغه مونځ كوم چې بغير د جماعت (اګر كه په مسجد كې وي) وكړي نه قبليږي، (ابوداؤد، دارقطني.)

**حل اللغات:**- ① الْمُنَادِي: أَيْ: نِدَاءَ الْمُؤَذِّنِ: د مؤذن اذان كول مراد دى.

**تسهيلات:** -**قوله:** "خَوْفٌ

**د خوف څخه مراد:**-كه ځناور وى او كه دښمن نه دهغوئ ويره په دې وجه چې هغه په كور مونځ كوي.

**قوله:** اوأَمَرَضٌ:

**د مرض څخه مراد:**- يا داسې مرض ورته لاحق شوې وى چې جمات ته تړې نه شى تللې.

**قوله:** لَمْ تُقْبَلْ مِنْهُ الصَّلَاةُ الَّتِي صَلَّى:

**دعدم قبول څخه مراد:**- عدم قبول څخه مراد قبوليت كامله نفى مقصود ده.يعنى اجروثواب كښې به ئې كمې راشي. فرض به ادا شي .دا مطلب نه دې چې مونځ ئې اونشو.

**۱۰۶۹—د اقامت په دوران كښې د قضاء حاجت ضرورت پيښيدو په صورت كښې مونځ پريخودل**

۱۰۶۹—(۲)[۱۸][۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَرْقَمَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [۲] "«إِذَا أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ، وَوَجَدَ أَحَدُكُمُ الْخَلَاءَ [۳] فَلْيَبْدَأْ بِالْخَلَاءِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَرَوَى مَالِكٌ، وَأَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ نَحْوَهُ.

---

[۱] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة/باب فى التشديد فى ترك الجماعة (رقم-۵۵۱)وابن ماجة كتاب المساجد والجماعات/باب التغليظ فى التخلف عن الجماعة (رقم-۷۹۳)

[۲] اخرجه ابوداود كتاب الطهارة ، باب أيصلى الرجل وهو حاقن؟ (رقم-۸۸)والترمذى كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء إذا أقيمت الصلاة ووجد أحدكم الخلاء فليبدأ بالخلاء (رقم-۱۴۲) وابن ماجة باب ما جاء فى النهى للحاقن أن يصلى (رقم-۶۱۶) ومالک فى الموطا كتاب قصر الصلاة فى السفر ، باب النهى عن الصلاة والإنسان يريد حاجة (رقم-۴۹) والدارمى كتاب الصلاة/باب النهى عن دفع الأخبثين فى الصلاة (رقم-۱۴۶۷)

**ترجمه:** [۱] عبدالله ابن رقم رضي الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي[۲] چه کله د لمانځه (د پاره) جماعت ودريږي او په تاسو کې چاته د اودس ماتي (لويو بولو) حاجت وي[۳] نو هغه ته پکار دي چې مخکې اودس ماتي ته لاړ شي (اگر که جماعت ترک شي). (ترمذي، مالك، ابوداود، نسايي.)

**حل اللغات:-** ① الْخَلَاءَ: أي: احْتِيَاجُهُ: د اودس ماتي (يعنی د لويو بولو) حاجت نې وی.

**تسهيلات:-**

**قوله: فَلْيَبْدَأْ بِالْخَلَاءِ:**

**داودس دضرورت په وخت کښې د مونځ د کراهت دوه وجوهات:-**

① يعنی دچا ته چې بيت الخلاء حاجت شي نو هغه ته پکار دی چې اول هلته لاړشي چې په مونځ کښې خضوع اوخشوع برابره پاتې شی.څکه که مونځگذار د اودس ماتی په شدت سره ضرورت محسوسوی اوبيا هم مونځ کښې مشغوله کيږی.په داسې کيفيت کښې مونځ کښې خشوع باقی نه پاتې کيږی.

② هغه ته به خپله هم تکليف وی.اود قضاء حاجت د ضرورت په وخت کښې اودس ماتې اويسارول د طبی اصولومطابق هم غلط اثر غورځوی.چې د نورو بيمارو سبب گرځی. څکه اول ځان فارغول پکار دی.

**۱۰۷۰- د درې څيزونو ممانعت**

۱۰۷۰-()[۱۹] [۱] وَعَنْ ثَوْبَانَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «ثَلَاثٌ لَا يَحِلُّ لِأَحَدٍ أَنْ يَفْعَلَهُنَّ: [۳] لَا يَؤُمَّنَّ رَجُلٌ قَوْمًا فَيَخُصَّ نَفْسَهُ بِالدُّعَاءِ دُونَهُمْ، [۴] فَإِنْ فَعَلَ ذٰلِكَ فَقَدْ خَانَهُمْ، [۵] وَلَا يَنْظُرْ فِي قَعْرِ بَيْتٍ قَبْلَ أَنْ يَسْتَأْذِنَ، [۶] فَإِنْ فَعَلَ ذٰلِكَ فَقَدْ خَانَهُمْ. [۷] وَلَا يُصَلِّ وَهُوَ حَقِنٌ حَتّٰى يَتَخَفَّفَ» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. وَلِلتِّرْمِذِيِّ نَحْوُهُ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ثوبان رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] چه درې څيزونه داسې دي چې د هغې کول د هيچا د پاره حلال نه دي [۳] ① اول خو دا که يو سړي د يو جمات امام جوړ شي او په دعا کې د جماعت د شريکولو نه بغير خپل ذات مخصوص کړي [۴] که چا داسې وکړل نو هغه د جماعت سره خيانت وکړو [۵] ② دويم دا چې هيڅ سړي دي د چا په کور کې د اجازت حاصلولو نه بغير نظر نه اچوي [۶] که چا داسې وکړل نو هغه د کور والؤ سره خيانت وکړو [۷] ③ دريم دا چې هيڅ سړي دي په داسې حالت کې مونځ نه کوي چې هغه

[1] اخرجه ابوداود كتاب الطهارة، باب أيصلي الرجل وهو حاقن؟ (رقم-٩١) والترمذی كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی كراهية أن يخص الإمام نفسه بالدعاء )(رقم-٣٥٧)وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب لا يخص الإمام نفسه بالدعاء (رقم-٩٢٣)

متیازو یا لویو بولو تنګ کړې وي تر دي چې هغه (د استنجاء څخه فارغیدو سره) سپک شي. (ابوداؤد، ترمذي.)

**حل اللغات:** - ① لَقَرَ: أَيْ: دَاخِلَ مَكَانٍ مَسْتُورٍ لِلْقَذَرِ: دکور دننه ځای ته وانی. ② حَقِنٌ: أَيْ: وَهُوَ يُدَافِعُهُ الْبَوْلُ أَوِالْغَائِطُ: چاته چه تشي متیازو یا ډک اودس ماتی زور ورکړې وی. ③ يَتَخَفَّفَ: أَيْ: يُزِيلَ مَا يُؤْذِيهِ مِنْ ذَلِكَ: یعنی حاجت پوره کړی او ځان سپک کړی.

**تسهیلات:** -

**قوله: فَيَخُصَّ نَفْسَهُ:**

**د امام ځپل ځان په دعا کښې د خاص کولو ممانعت:** - یعنی چه قوم پرېږدی اوپیش امام دَ خپل ځان دَپاره دعاغواړی اوخلق امین وائی دَ امام دا عمل غلط دې.

**اشکال:** - نبی کریم ﷺ حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته کومې دعاګانې خودلې وې. هغه ځان له اودَ خپل نفس سره خاص وې او حضرت ابوبکر رضی الله عنه هغه غوښتل نو دلتـه څنګـه حضورپاك ﷺ نفی اوفرمائیله؟

**د اشکال جواب:** - دَ تخصیص دا ممانعت دَ قنوت نازلـه پـه دعـا کـښې دې دَ عـامو دعاګانومسئله نه ده. دویم جواب دادې چه دا نهی دَ هغه وخت دَ دعـا دَپاره ده کله چه دَ دعا دَ اجابت وخت وی خلق صرف امین وائی او پیش امام دَ منفرد صیغه دَ خپل ځان دَ پاره استعمالولوسره دعا غواړی نودا قوم سره خیانت دې.

**په تشهد کښې ځان په دعا کښې د خاص کولو جواز:** - حضرت مولانا شیخ شمس الدین رحمه الله دَ مشکوة شرح التعلیق الفصیح کښې لیکی چه پـه کومـو مـاثوره دعاګانوکښې مقتدی په امام باندې اعتماد نه کوی بلکه پخپله هم غواړی لکه دَ تشهد نه پس دعاګانې چه دی. په داسې دعاګانوکښې امام دَ خپل ځان دَپاره دَ مفرد صیغه استعمالولې شی. لیکن چه مقتدی امین وائی نو پـه داسې صورت کښې امام باندې لازم دی چه هغوی دې عام صیغې استعمالوی او خپل ځان دې دعا سره نه خاص کوی.

**(۱۰۷)- د طعام په وجه په مانځه کښې د تاخیر ممانعت**

> (۱۰۷)-()[۲۰] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «لَا تُؤَخِّرُوا الصَّلَاةَ لِطَعَامٍ وَلَا لِغَيْرِهِ». رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** [۱] حضرت جابر رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ (صحابه رضی الله عنهم مخاطب کولوسره) وفرمایل [۲] د طعام د پاره یا په یوي بلي وجي سره مونځ (د هغي دوخت څخه) مه مؤخر کوئ. (شرح السنة.)

[1]) اخرجه ابوداود کتاب الأطعمة /باب إذا حضرت الصلاة والعشاء (رقم-۳۷۵۸)

**تسهیلات:-**

**قوله:** لَا تُؤَخِّرُوا الصَّلَاةَ لِطَعَامٍ

**د تعارض اشکال:-** دَدي حدیث دَدي نه وړاندې حدیث نمبر ۱۰۵۷ سره تعارض دي. په دې کښې دی چه دَ خوراك دَوجې نه په مانځه کښې تاخیر کیدې شي لیکن په دې حدیث کښې دی چه په هیڅ وجه په مانځه کښې تاخیر نه دی کول پکار.

**د تعارض د اشکال جواب:-** دَ زیربحث حدیث تعلق په دې صورت سره دې کله چه دَ مانځه وخت ختمیږي په داسې صورت کښې مونځ دَ څه وجې نه نه دی روستو کول پکار. او دَ حدیث نمبر ۱۰۵۷ تعلق هغه صورت سره دې چه په وخت کښې وسعت دې لهذا مونځ مؤخر کولې شي دې دَپاره چه خوراك اوکړې شي او خراب نه شي یعنی دَ عذر او بې عذر په احوالو باندې دواړه احادیث محمول دی.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## ۱۰۷۲-د جمعې د مونځ تاکید

۱۰۷۲-()[۲۱] [۱] عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] لَقَدْ رَأَيْتُنَا وَمَا يَتَخَلَّفُ عَنِ الصَّلَاةِ إِلَّا مُنَافِقٌ قَدْ عُلِمَ نِفَاقُهُ، [۳] أَوْ مَرِيضٌ ; إِنْ كَانَ الْمَرِيضُ لَيَمْشِي بَيْنَ رَجُلَيْنِ. حَتَّى يَأْتِيَ الصَّلَاةَ [۴] وَقَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَّمَنَا سُنَنَ الْهُدَى، [۵] وَإِنَّ مِنْ سُنَنِ الْهُدَى الصَّلَاةُ فِي الْمَسْجِدِ الَّذِي يُؤَذَّنُ فِيهِ.

**ترجمه:** [۱] عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه فرمایي [۲] چې مونږ لیدلي دي چې په جماعت سره د لمانځه څخه به یوازي هغه منافق کس وروسته پاتې کیدلو چې د هغه نفاق به معلوم اوښکاره وو (یعني د کومو خلقو نفاق چې پټ وو هغوي به هم په جماعت کې حاضریدل) [۳] یا به بیمار وو (یعني کوم مریض ته چې به مسجد ته د راتلو څه نه څه طاقت وو هغه به هم جماعت ته راتلو چنانچه) چې کوم مریض به د دوو سړو په مینځ کې (یعني د هغوئ په سَهارا) تللي شو نو هغه به هم لمانځه ته راتلو [۴] (د دې څخه وروسته) عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه وفرمایل بیشکه رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته د هدایت طریقي ښودلي دي [۵] او د هدایت په هغه طریقو کې (یوه طریقه) په هغه مسجد کې (په جماعت سره) مونځ کول دي چې په هغې کې اذان کیږي

[۱] وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: "مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَلْقَى اللّٰهَ تَعَالَى غَدًا مُسْلِمًا ; [۲] فَلْيُحَافِظْ عَلَى هٰذِهِ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ، [۳] حَيْثُ يُنَادَى بِهِنَّ، [۴] فَإِنَّ اللّٰهَ شَرَعَ لِنَبِيِّكُمْ سُنَنَ الْهُدَى، [۵] وَإِنَّهُنَّ مِنْ سُنَنِ الْهُدَى، [۶] وَلَوْ أَنَّكُمْ صَلَّيْتُمْ فِي بُيُوتِكُمْ

[1] ) اخرجه مسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة / باب صلاة الجماعة من سنن الهدی (رقم)۲۵۶ - (۶۵۴) وابوداود کتاب الصلاة/بباب فی التشدید فی ترک الجماعة (رقم-۵۵۰)والنسائی کتاب الإمامة /باب المحافظة علی الصلوات حیث ینادی بهن (رقم-۸۴۹)

كَمَا يُصَلِّي هَذَا الْمُتَخَلِّفُ فِي بَيْتِهِ ⑦ لَتَرَكْتُمْ سُنَّةَ نَبِيِّكُمْ، ⑧ وَلَوْ تَرَكْتُمْ سُنَّةَ نَبِيِّكُمْ لَضَلَلْتُمْ، ⑨ وَمَا مِنْ رَجُلٍ يَتَطَهَّرُ فَيُحْسِنُ الطُّهُورَ،

**ترجمه:** ① د یو بل روایت الفاظ دا دي چې عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه وفرمایل د کوم سړي چې دا خبره خوښه وي چې هغه صبا ورځ د الله جل جلاله سره د کامل مسلمان په حیثیت سره ملاقات وکړي ② نو هغه ته پکار دي چې د دې پنځه لمونځونو په هغه ځای حفاظت وکړي ③ چرته چې د دې پنځه لمونځونو د پاره اذان کیږي (یعني په مسجدونو کې دې دا پنځه واړه لمونځونه په جماعت سره او په پابندي سره اداء کوي) ④ ځکه چې الله جل شانه ستاسو د نبي صلی الله علیه وسلم د پاره د هدایت (تولي) طریقې مقرر کړي دي ⑤ او د دې پنځه واړو لمونځونو په جماعت سره کول هم د هدایت د طریقو څخه یوه طریقه ده ⑥ که تاسو خپل لمونځونه په خپلو کورونو کې (اګر چې په جماعت سره) کوي څنګه چې دا وروسته پاتې کیدونکي (یعني منافق) مونځ کوي ⑦ (نو پوهه شي چې) تاسو به د خپل نبي صلی الله علیه وسلم سنت پریښودونکي یئ ⑧ او که د خپل نبي صلی الله علیه وسلم سنت پریږدي نو بیشکه ګمراه به شئ ⑨ او کوم سړي چې پاك کیدو سره ښه اودس کوي (یعني د اودس د پوره حقوقو او ادابو لحاظ اوساتي او د هغې ټول واجبات او سنن اداء کوي)

**حل اللغات:** ① مَا يَتَخَلَّفُ: روسته نه پاتې کیږي (د جماعت د مونځ نه). ② سُنَنَ الْهُدَىٰ: أَيْ: طَرِيقُ الْهُدَىٰ: د هدایت نیغه لار مراد ده.

① ثُمَّ يَعْمِدُ إِلَى مَسْجِدٍ مِنْ هَذِهِ الْمَسَاجِدِ، ② إِلَّا كَتَبَ اللهُ لَهُ بِكُلِّ خُطْوَةٍ يَخْطُوهَا حَسَنَةً، ③ وَرَفَعَهُ بِهَا دَرَجَةً، ④ وَحَطَّ عَنْهُ بِهَا سَيِّئَةً، ④ وَلَقَدْ رَأَيْتُنَا وَمَا يَتَخَلَّفُ عَنْهَا إِلَّا مُنَافِقٌ مَعْلُومُ النِّفَاقِ، ⑤ وَلَقَدْ كَانَ الرَّجُلُ يُؤْتَى بِهِ يُهَادَى بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ ⑥ حَتَّى يُقَامَ فِي الصَّفِّ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او بیا هغه په مسجدونو کې یو مسجد ته ځي ② نو خداوند قدوس د هغه د هر قدم په بدله کې چې هغه (د مسجد په لارکې) اږدي یوه نیکي لیکي ③ او د هغه یوه درجه اوچتوي ④ او یوه بدي ځیني لرې کوي ④ مونږ لیدلي دي چې د ښکاره منافق څخه علاوه هیڅ سړي به د جماعت څخه وروسته نه پاتې کیدلو (یعني جماعت یي نه ترک کولو) ⑤ تر دې چې بیمار سړي به په دې حالت کې مونځ ته راوستل کیدو چې هغه به د انتهایي ضعف او کمزوري په وجه د دوو سړو (امداد) حاصلولو ⑥ او هغه به صف کې ودرول شو.

**حل اللغات:** ③ حَطَّ: أَيْ: وَضَعَ وَمَحَا: لرې کوی او ورانوی. ④ يُهَادَى: أَيْ: يَمْشِي وَيَتَمَايَلُ: یعنی د بل چا په سهاره او مدد سره به راوستلې شو.

**تسهیلات:**

**قوله:** مِنْ سُنَنِ الْهُدَىٰ:

**د مسنون اعمالو دوه قسمونه:**

① هغه افعال چه حضورپاك ﷺ به دَ عبادت په طریقه کول هغې ته سنن هدیٰ وائی اوهم دغه سنت مؤکده دی لکه دَ سحر ماسپخین مابنسام اوماسخوتن دَ مونځونونه وړاندې روستو دولس رکعته سنت دی

② کوم اعمال چه حضورپاك ﷺ دَ عادت په توګه کول هغې ته سنن زواندوائی کوم چه دَ قبیل مستحبات نه دی. لکه دَ حضورپاك ﷺ لباس اوخوراك څښاك اودَ دې دَپاره څه کیفیت خپلول وغیره وغیره.

**په دویم قسم باندې د ثواب ملاویدشرط:**- په سنن زواندباندې عمل کولوثواب هله ملاویږی چه سړې دَ اتباع النبی ﷺ نیت اوکړی که دَ اتباع نیت نه وی نو ثواب به نه ملاویږی لکه دَ بعض قومونو پټکی چه دَ قومی روایاتو دَ وجې نه وی په هغې کښې ثواب نشته یا لکه چه بعض قومونه لنګ په قومی جذبه تړلې وی په دې کښې به ثواب هغه وخت ملاویږی چه سړې دَ حضورپاك ﷺ دَ اتباع نیت اوکړی.

**۱۰۷۳- د جمعې پریخودنکی ګناهګاریدل**

۱۰۷۳-()[۲۲] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: ٢ " «لَوْلَا مَا فِي الْبُيُوتِ مِنَ النِّسَاءِ وَالذُّرِّيَّةِ، ٣ أَقَمْتُ صَلَاةَ الْعِشَاءِ، ٤ وَأَمَرْتُ فِتْيَانِي يُحْرِقُونَ مَا فِي الْبُيُوتِ بِالنَّارِ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ١ ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ که په کورونو کې ښځې او ماشومان نه وې ٣ نو ما به د ماسخوتن مونځ قائم کړې وې ٤ او خادمانو ته به مې حکم ورکړې وې چې (کوم خلق په لمانځه کې حاضر نشي) د هغوئ کورنوته اور ولګوي.(احمد)

**حل اللغات:**- ① فِتْيَانِي :أَيْ: غِلْمَانِي وَخَدَمِي: یعنی زکا غلامان او خادمان

**تسهیلات:**-

**قوله:** مِنَ النِّسَاءِ وَالذُّرِّيَّةِ:

**دماشومانواوزنانود ذکر کولووجه:**-اګرچې څاروی او نور حشرات الارض هم په کور کښې بعضې وخت موجود وی.اودهغوی وزول هم حرام وو.خونبی کریم صرف د دې دواړو صفونو ذکر اوکړو.د دې وجوهات دا لاندې دی.

① یعنی ښځې اوماشومان صاحب الاعذارجماعت ته په حاضری باندې مکلف نه دی.

② په جماعت کښې ددوی شمولیت ضروری نه دې.

③ په کورکښې په عامه توګه هم دا دواړه قسمه خلق موجود وی. په دې وجه ئې ددې دواړو ذکر اوکړو.

---

[1] اخرجه احمد في المسند ۲۶۷/۲

**۱۰۷۴ــ د اذان څخه روسته د جمات څخه د وتلو ممانعت**

۱۰۷۴ــ (¹)[۲۳] ۱ وَعَنْهُ، قَالَ: أَمَرَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«إِذَا كُنْتُمْ فِي الْمَسْجِدِ فَنُودِيَ بِالصَّلَاةِ ۳ فَلَا يَخْرُجْ أَحَدُكُمْ حَتَّى يُصَلِّيَ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ۱ ابوهریره ﷛ فرمایي چې رسول الله ﷺ مونږ ته حکم کړي وو ۲ چې هر کله تاسو په مسجد کې موجود یئ او د لمانځه د پاره اذان وشي ۳ نو په تاسو کې دي هیڅوک بغیر د لمانځه کولو د مسجد څخه نه وځي. (احمد)

**تسهیلات:** - قوله: فَلَا يَخْرُجْ:

**نوټ:** - د خروج من المسجد د مسئلې وضاحت او شرح په راروان درې احادیثو کښې راځي هلته ئې مطالعه کړئ.

**۱۰۷۵ــ د اذان څخه ورسته د جمات څخه د وتلو حکم**

۱۰۷۵ــ (²)[۲۴] ۱ وَعَنْ أَبِي الشَّعْثَاءِ، قَالَ: ۲ خَرَجَ رَجُلٌ مِنَ الْمَسْجِدِ بَعْدَمَا أُذِّنَ فِيهِ. ۳ فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: أَمَّا هَذَا فَقَدْ عَصَى أَبَا الْقَاسِمِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ ابوشعثاء فرمایي ۲ چې (یوه ورځ) د اذان کیدو څخه وروسته یو سړي د مسجد څخه وتلو ۳ نو ابوهریره ﷛ وفرمایل چې دې سړي د ابو القاسم (یعني د رسول الله ﷺ) نافرماني وکړه. (مسلم.)

**حل اللغات:** - ① عَصَى: نافرماني ئې اوکړه، ② أَبَا الْقَاسِمِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: د رسول الله ﷺ کنیت دې.

**تسهیلات:** -

**قوله:** فَقَدْ عَصَى أَبَا الْقَاسِمِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**په خارج من المسجد باندې د عاصی د اطلاق وجه:** ــحضرت ابوهریره ﷛ ته به دقرائنو څخه معلومه شوې وی چې دا کس د واپسۍ اراده نه لرې. او دابه ورته هم د قرائنوڅخه معلومه شوې وی چې ددې جمات امام هم نشته دې.په دې وجه ئې دا الفاظ اوفرمائیل.

[1]) اخرجه احمد فی المسند ۵۳۷/۲

[2]) اخرجه مسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة/ باب النهی عن الخروج من المسجد إذا أذن المؤذن (رقم) ۲۵۸ - (۶۵۵) وابوداود کتاب الصلاة،باب الخروج من المسجد بعد الأذان (رقم۵۳۶)والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی کراهية الخروج من المسجد بعد الأذان (رقم-۲۰٤) والنسائی کتاب الأذان/باب التشدید فی الخروج من المسجد بعد الأذان (رقم-۶۸۳) وابن ماجة کتاب الأذان، والسنة فيه/باب إذا أذن وأنت فی المسجد فلا تخرج (رقم-۷۳۳)والدارمی باب فی النهی عن صیام یوم الشک (رقم-۱۷۲٤)

۱۰۷۶—بغير مونځ د جمات څخه وتونکي باندې د منافق اطلاق

۱۰۷۶—(¹)[۲۵] [۱] وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«مَنْ أَدْرَكَهُ الْأَذَانُ فِي الْمَسْجِدِ، [۳] ثُمَّ خَرَجَ لَمْ يَخْرُجْ لِحَاجَةٍ، [۴] وَهُوَ لَا يُرِيدُ الرَّجْعَةَ، فَهُوَ مُنَافِقٌ»" رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] حضرت عثمان ابن عفان رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم سړي چې په مسجد كې وي او اذان وشي [۳] بيا هغه بغير د څه ضرورته د مسجد څخه ووځي [۴] او (په جماعت كې د شريكيدو دپاره) د واپس راتلو اراده هم نه لري نو هغه منافق دي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① الرَّجْعَةَ: أَي: الرُّجُوعَ: واپس راتلل (چه په جماعت سره مونځ كښې شريک شي).

**تسهيلات:** -

**قوله:** وَهُوَ لَا يُرِيدُ الرَّجْعَةَ، فَهُوَ مُنَافِقٌ

**د منافق څخه مراد:** —دلته د منافق نه مراد عاصي دي. هغه ته منافق په دې وجه اوونيلې شو څكه چې هغه جماعت ترک كړو.

**اشكال:** —منافق هغه كس ته وائي چې په هغه د منافق علامات اوليدلې شي ،او د منافق درې علامات دی كوم چې ماقبل حديث كښې تيرې شوې، نو دلته خو د منافق هيڅ يو علامت هم نشته دې؟

**د اشكال جواب:** — دلته د نفاق اطلاق شايد په دې وجه اوشو چې هغه كس اجابت قولي او فعلي اوكړو بيا بهر راوتلو سره ئې هغه قولي او فعلي اجابت ترک كړو يعني هغه خلقو ته دروغ اوونيل. او دروغ وئيل د نفاق علاماتوڅخه يوه علامه ده.

۱۰۷۷—په ژبه او عمل سره د اذان جواب وركول

۱۰۷۷—(²)[۲۶] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: [۲] "«مَنْ سَمِعَ النِّدَاءَ فَلَمْ يُجِبْهُ، [۳] فَلَا صَلَاةَ لَهُ إِلَّا مِنْ عُذْرٍ»". رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابن عباس رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم سړي چې اذان واوريدو او د هغې جواب يي ورنه كړو [۳] نو د هغه مونځ نه كامل كيږي (يا نه قبليږي) خو د څه عذر په وجه سره (كه داسې يي وكړل نو څه حرج نشته). (دارقطني)

**تسهيلات:** -

**داذان د اجابت دوه طريقې:** - ① په ژبه سره ده چه دَاذان دَ كلماتوجواب وركړې شي ② دَ عملي طور د اذان اجابت كول يعنى چه مؤذن څنګه اووائي "حي على الصلاة" نوچه

(¹) اخرجه ابن ماجة كتاب الأذان، والسنة فيه/باب إذا أذن وأنت في المسجد فلا تخرج (رقم-۷۳٤)
(²) اخرجه ابن ماجة كتاب المساجد والجماعات/باب التغليظ في التخلف عن الجماعة (رقم-۷۹۳)

اوريدونکې روان شي.

**د وعيد څخه مستثنى کسان:-** ①علماء وائي چه کوم سړي په عمل سره اجابت کوی نو په ژبه سره اجابت نه کونکې به دَدغه وعيد مستحق نه وی.

② دغه شان هغه سړې چه په جمات کښې ناست وی اوتلاوت کوی که هغه دَاذان جواب ورنه کړی نو په دغه وعيد کښې به نه راځی ځکه چه هغه دَ اول نه موجود دې

**تسهيلات:-**

**قوله:** إِلَّامِنْ عُذْرٍ

**دخروج من المسجد ده جواز صورتونه:-** دپه کوم جمات کښې چې اذان اوشی نو دهغې څخه وتل جائز نه دی البته که لاندينی صورتونو کښې يوصورت وی نو بيا وتلی شی.

① په جمات کښې د استنجاء ځائې نه وی نود اودس په غرض بهرته اوځی.

② ورکوتی يا غټ اودس ماتی ضرورت محسوسوی.

③ دبل جمات متولی وی اوچابيانې ده سره وی يا امام يا نائب امام وی.

**۱۰۷۸-د نابينا د جماعت پريښودو حکم**

۱۰۷۸-()[۲۷] ①«وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ أُمِّ مَكْتُومٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، ②قَالَ: يَارَسُولَ اللهِ! إِنَّ الْمَدِينَةَ كَثِيرَةُ الْهَوَامِّ وَالسِّبَاعِ، ③وَأَنَا ضَرِيرُ الْبَصَرِ، ④فَهَلْ تَجِدُ لِي مِنْ رُخْصَةٍ؟ ⑤قَالَ: "هَلْ تَسْمَعُ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ؟ "قَالَ: نَعَمْ، ⑥قَالَ: "فَحَيَّهَلًا". وَلَمْ يُرَخِّصْ لَهُ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① عبدالله ابن ام مکتوم رضي الله عنه فرمايي ②چې ما عرض وکړو يا رسول الله ﷺ په مدينه کې موذي ځناور او درندګان زيات دي③ او زه نابينا يم ④(د دي عذر په وجه) آيا تاسو ماته اجازت راکوئ چې زه جماعت ته نه راځم (او په کورکي به مونځ کوم)؟⑤ رسول الله ﷺ (دا اوريدو سره) وفرمايل آيا ته حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ اوحَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ اوري ما عرض وکړو چې هو⑥ نو وي فرمايل جماعت ته راځه او هغه ته يي د جماعت پريښودو اجازت ورنه کړو (ابوداؤد، نسايي.)

**حل اللغات:-** ①الْهَوَامِّ: أَيِ: الْمُؤْذِيَاتِ: ضرر رسونکی ځناور (مثلا لړمان او ماران وغيره). ②السِّبَاعِ: درنده او شلونکی ځناور (مثلا شرمخان، سپی وغيره). ③ ضَرِيرُ الْبَصَرِ: أَيْ أَعْمَى: د سترګو بيمار يعنی ړوند، نابينا. ④فَحَيَّهَلًا: كَلِمَةُ حَثٍّ وَاسْتِعْجَالٍ وُضِعَتْ مَوْضِعَ أَجِبْ: دا د راشه په ځائې د ترغيب او تلوارې دپاره استعماليږی.

[1]) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة/باب فی التشديد فی ترک الجماعة (رقم-۵۵۳) والنسائی کتاب الإمامة/باب المحافظة على الصلوات حيث ينادى بهن (رقم-۸۵۱) وابن ماجة کتاب المساجد والجماعات/باب التغليظ فی التخلف عن الجماعة (رقم-۷۹۲)

**تسهيلات:- قوله:** كَثِيرَةُ الْهَوَامِّ وَالسِّبَاعِ:

**هوام اوسباع څخه مراد:-** دكثيرالهوام ددې څخه مراد لړمانان او ماران وغيره دی.اود السباع څخه مراد ځيرونکی ځناور او سپی دی، يا بالعموم موذی ځناور دی.

**قوله:** وَلَمْ يُرَخِّصْ لَهُ:

**د رواياتو د تعارض اشکال:** دې حديث کښې نبی کريم ﷺ حضرت عبدالله ابن ام مکتوم ﷺ ته د موذوی ځناورو د ويرې په وجه اجازت ورنکړو.اوپه ماقبل کښې دحضرت ابن عباس ﷺ حديث کښې دی.د عذر په وجه د جماعت پريخودو اجازت ورکړې دې.اوعذر نبی کريم ويره او مرض خودلې وو.

② د ابن عباس ﷺ دحديث واقعه وړاندينۍ وه ،په هغه وخت کښې ابادی کمه وه نوخوف عذر اوګرځولې شو.اود عبدالله ابن ام مکتوم ﷺ واقعه روستنۍ ده آبادی زياته شوې وه.اوحشرات الارض ختم شوې وو.څکه نبی کريم اجازت ورنکړو؟

**داشکال جوابونه:-**

① نبی کريم ﷺ دواړو ځايونو کښې د صحابه کرامو دمقام او مرتبې لحاظ سره جواب ورکړو.کوم صحابی چې مرتبه کښې کم وو هغه ته ئې اجازت ورکړو او کوم صحابی چې مرتبه کښې اوچت وو هغه ته ئې په عزيمت باندې دعمل کولو حکم ورکړو.

② نبی کريم ﷺ ته معلومه وه چې خطرناکه لاره ده ،خو نبی کريم ﷺ د ابن ام مکتوم ﷺ جذبې ته اوکتل او اجازت ئې ورنه کړو.

### ۱۰۷۹-دامت محمدی امتيازی صفت

۱۰۷۹-()[۲۸] ① وَعَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ② دَخَلَ عَلَيَّ أَبُو الدَّرْدَاءِ وَهُوَ مُغْضَبٌ، فَقُلْتُ: مَا أَغْضَبَكَ؟ ③ قَالَ: وَاللّٰهِ مَا أَعْرِفُ مِنْ أَمْرِ أُمَّةِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا إِلَّا أَنَّهُمْ يُصَلُّونَ جَمِيعًا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① بي بي ام درداء ﷺ فرمايي ② چې (يوه ورځ زما خاوند) ابو درداء ﷺ د غصې څخه ډك مالره راغې (د هغه د حالت ليدو سره) ما ځيني پوښتنه وکړه کوم شي ته غضبناك کړې يې؟ ③ هغه اوويل قسم په الله د حضور ﷺ د امت په باره کې (د مخکې په شان)يوازې دا يوه خبره پيژنم چې هغوي په جماعت سره مونځ کوي (خو اوس هغه هم پريږدي) (بخاري.)

**حل اللغات:-** ① مُغْضَبٌ:دا دَ اسم مفعول صيغه ده يعنی هغه دَ غصې نه ډك شوې وو لکه چه چا په غصه کښې اچولې وو.

[1]) اخرجه البخاری کتاب الاذان/ باب فضل صلاة الفجر فی جماعة (رقم-۶۵۰)

**تسهيلات:-**

**قوله: وَهُوَ مُغْضَبٌ:**

**د سوال او جواب د عدم مطابقت اشكال:-** دَ ام الدرداء رضي الله عنها دَ سوال په جواب كښې ابودرداء رضي الله عنه هغه د سوال سره مطابقت نه خوري؟

**د اشكال جواب:-**

① ابودرداء رضي الله عنه هډو جواب نه دې وركړې لكه چه په لمعات كښې دى.

② ملاعلى قارى رحمه الله يو توجيه دا كړې ده اودائې دَ تولو نه ښه ګرځولې ده فرمائى: أي اغضبتني الامور المنكر المحدثة في امة محمد لاني والله ما اعرف من امرهم شيئا على الجادة الا انهم يصلون جميعا فيكون الجواب محذوفا والمذكور دليل الجواب. يعنى زه دې څيز په غصه كښې اخته كړم چه په امت محمديه كښې قسم قسم منكرات او بدعات پيدا شو. اوس خو هيڅ څيز هم په خپل اصلى حالت كښې باقى پاتې نه شو. او صرف په جمع سره مونځ كوى. هم دغه يو څيز باقى دې كوم چه په خپل اعتدال باندې دې اوس هغه هم رخصت كيږى.

**۱۰۸۰- د سحر مونځ په جمعې سره كولو فضيلت**

۱۰۸۰-(1)[۲۹] ① وَعَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ سُلَيْمَانَ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ، قَالَ: ② إِنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، فَقَدَ سُلَيْمَانَ بْنَ أَبِي حَثْمَةَ فِي صَلَاةِ الصُّبْحِ، ③ وَإِنَّ عُمَرَ غَدَا إِلَى السُّوقِ، ④ وَمَسْكَنُ سُلَيْمَانَ بَيْنَ الْمَسْجِدِ وَالسُّوقِ، ⑤ فَمَرَّ عَلَى الشِّفَاءِ أُمِّ سُلَيْمَانَ، ⑥ فَقَالَ لَهَا: لَمْ أَرَ سُلَيْمَانَ فِي الصُّبْحِ، ⑦ فَقَالَتْ: إِنَّهُ بَاتَ يُصَلِّي فَغَلَبَتْهُ عَيْنَاهُ، ⑧ فَقَالَ عُمَرُ: لَأَنْ أَشْهَدَ صَلَاةَ الصُّبْحِ فِي جَمَاعَةٍ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أَقُومَ لَيْلَةً. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** ① ابوبكر بن سليمان ابن ابي حثمه فرمايي ② چې (يوه ورځ) حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د سحر په لمانځه كې (زما پلار) سليمان ابن ابي حثمه ونه ليدلو ③ حضرت عمر رضي الله عنه چې كله سحر بازار ته تلو ④ نو د سليمان كور د مسجد او بازار په مينځ كې وو ⑤ ځكه هغه د سليمان مور شفاء لره ورغلې ⑥ او د هغه ښځه يې پوښتنه وكړه (څه وجه ده) چې نن ما سليمان د سحر په لمانځه كې ونه ليدلو؟ (هغه د سحر مونځ ته حاضر نه وو) ⑦ هغې ورته اوويل (چې خبره دا ده چې) سليمان نن توله شپه په لمانځه كولو كې تيره كړې وه او (سحر كيدو ته نزدې) د هغه ستركې پټې شوې ⑧ نو ځكه حاضر نه وو حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل زه د سحر مونځ په جماعت سره كول د تولې شپې (د عبادت د پاره) د ودريدلو ځخه بهتره ګڼړم. (مالك.)

**حل اللغات:-** ① فَقَدَ: أَيْ: مَا وَجَدَهُ: بيائې نه موندلو، ② غَدَا: أَيْ: ذَهَبَ: سحر وختې لاړو.

---

[1] اخرجه مالک فى الموطا كتاب صلاة الجماعة/باب ما جاء فى العتمة والصبح (رقم-۷) من كتاب صلاة الجماعة

**تسهیلات:-**

**د تهجدو څخه د جماعت د مونځ افضلیت:-** عمرفاروق رضی الله عنه دَوخت خلیفه اوامیرالمؤمنین دي سلیمان رضی الله عنه یوصحابی دي دَ امیرالمؤمنین دینی فکرته ګورئی چه دَ مانځه باره کښې دَ خپلو ملګرو څومره لوئی فکرکوی. دَ صحابه کرامو په دومره لویه ډله کښې دَ یوصحابی غیرحاضری محسوس کوی. بیا په بازارکښې هم دَهغه دَ مور شفاء رضی الله عنها نه تپوس کوی چه ما نن دَ سحر په مونځ کښې سلیمان رضی الله عنه اونه لیدلو خیرخودې. بل طرف ته دَ صحابه کرامو دَ عبادت اندازه اولګوئی چه مور ئې جواب ورکوی چه هغه ټوله شپه تهجد کړې سحرئې سترګې پټې شوې اوجمع ترې لاړه. دَ حضرت عمرفاروق رضی الله عنه دَ جمع دَ لوئی اهمیت اندازه اولګوئی چه فرمائی زماخوجمع دَدې نه ډیره خوښه ده چه ټوله شپه تهجداوکړم او سحر په جمع کښې غیرحاضر پاتې شم. سبحان الله څه دینی ماحول وو.

۱۰۸۱—په دوؤکسانود جمعې د مونځ منعقد کیدل

۱۰۸۱—(۱)[۳۰] [۱] وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«اثْنَانِ فَمَا فَوْقَهُمَا جَمَاعَةٌ»". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] ابوموسي اشعري رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] دوه سړي وي یا د دوو څخه زیات وي دوي څخه (جماعت کیدي) شي. (ابن ماجه.)

**تسهیلات:-**

**قوله: اثْنَانِ فَمَا فَوْقَهُمَا جَمَاعَةٌ:**

**دجماعت دپاره د کثرت افرادو عدم ضرورت:-** مطلب دادې چه دَ جمع دَ صحت دَپاره دا ضروری نه ده چه ډیر زیات شمیرکښې دې خلق راجمع شی یا دَ کم نه کم درې کسان ضروری وی داسې معامله نه ده بلکه دَدوو کسانوجمع هم صحیح ده چه یوامام شی دویم مقتدی وی اودَ مقتدی دَ امام ښی طرف ته کیدل ضروری دی.

۱۰۸۲—ښځوته د جمعې په مونځ کښې د شرکت اجازت

۱۰۸۲—(۲)[۳۱] [۱] وَعَنْ بِلَالِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«لَا تَمْنَعُوا النِّسَاءَ حُظُوظَهُنَّ مِنَ الْمَسَاجِدِ إِذَا اسْتَأْذَنَّكُمْ»". [۳] فَقَالَ بِلَالٌ: وَاللّٰهِ لَنَمْنَعُهُنَّ، [۴] فَقَالَ لَهُ عَبْدُ اللّٰهِ: أَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَتَقُولُ أَنْتَ: لَنَمْنَعُهُنَّ.

---

[۱] اخرجه ابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/بباب الاثنان جماعة (رقم-۹۷۲)

[۲] اخرجه مسلم في كتاب الصلاة/ كتاب الصلاة/باب خروج النساء إلى المساجد إذا لم يترتب عليه فتنة، وأنها لا تخرج مطيبة(رقم) ۱۴۰ - (۴۴۲) وابوداود كتاب الصلاة،باب ما جاء في خروج النساء إلى المسجد (رقم-۵۶۶) وابن ماجة باب تعظيم حديث رسول الله صلى الله عليه وسلم، والتغليظ على من عارضه(رقم-۱۶)

**ترجمه:** [۱] بلال ابن عبد الله رحمه الله د خپل پلار بزرگوار (عبد الله ابن عمر رضی الله عنه) څخه روایت کوي چې هغه (یوه ورځ) اوویل چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] هر کله چې ښځې ستاسو څخه مسجد ته د تلو اجازت وغواړي نو تاسو هغوي لره (منع کولو سره) هغوي د مسجدونو د حصې څخه مه محرومه کوي (یعني مسجد ته د تلو ثواب هغوي ته حاصلیږي تاسو هغوي مسجدونو ته د تلو څخه منع کولو سره هغوي د ثواب حاصلولو څخه مه منع کوي) [۳] بلال اوویل قسم په الله مونږ خو به هغوي ضرور منع کوو [۴] عبد الله رضی الله عنه بلال ته وفرمایل زه خو وایم چې دا د رسول الله ﷺ ارشاد دي او ته وایې چې مونږ به ضرور هغوي منع کوو.

**حل اللغات:-** ① حُظُوظَهُنَّ: أَيْ: ثَوَابَهُنَّ: یعني چه هغوی ته مسجد ته په تلو کښې په مونځ باندې کوم ثواب حاصلیږي.

**تسهیلات:-**

**قوله:** لَا تَمْنَعُوا النِّسَاءَ

**جماتونو ته د زنانوحاضریدل:-** یعنی کومې ښځې چې مونځ دپاره یا طواف دپاره مسجد حرام ته راځي نو هغوی مه منع کوئی. یا دبیت الله طواف کولو نه ئې مه منع کوئ. ځکه چې د حضور ﷺ په زمانه کښې منافقین هم ویریدل چې که مونږ څه حرکت اوکړو نو وحی به راشي او تر قیامته به رسوا شو.خو ددې څخه روسته کله چې د وحی زمانه منقطع شوه نو ښځې جماتونوته د تلو نه منع کړې شوې.دا په دې وجه چې د هر قسمه فتنو نه محفوظ پاتې شی .لکه څنګه چې حدیث الباب څخه معلومیږی.

**ښځودپاره جمات ته دتلو استثنائی صورتونه:-** ددې څخه د حج طواف یا عمرې فرض طواف یا مسجد حرام کښې مونځ کول مستثنی دی.

۱۰۸۳-(۱)[۲] [۱] وَفِي رِوَايَةِ سَالِمٍ عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: [۲] فَأَقْبَلَ عَلَيْهِ عَبْدُ اللهِ فَسَبَّهُ سَبًّا مَا سَمِعْتُ سَبَّهُ مِثْلَهُ قَطُّ، [۳] وَقَالَ: أُخْبِرُكَ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَتَقُولُ: وَاللهِ لَنَمْنَعُهُنَّ! رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] یو بل روایت کې سالم د خپل پلار څخه نقل کوي [۲] چې بیا (د دې څخه وروسته) حضرت عبد الله رضی الله عنه بلال طرف ته متوجه شو او دومره بد رد یې ورته اوویل چې ما هیڅ کله د حضرت عبد الله رضی الله عنه د ژبې څخه دومره بد رد ویل چېرته نه دي اوریدلي [۳] او بیا یې اوویل چې زه خو وایم چې دا خو رسول الله ﷺ فرمایلي دي او ته وایې چې مونږ به هغوي ضرور منع کوو. (مسلم.)

**حل اللغات:-** ① فَسَبَّهُ سَبًّا: بد رد ئې ورته اووئیل.

---

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الصلاة/ کتاب الصلاة/باب خروج النساء إلی المساجد إذا لم يترتب علیه فتنة، وأنها لا تخرج مطیبة(رقم) ۱۴۰ - (۴۴۲)

**تسهيلات:- قوله: وَاللّٰهِ لَنَمْنَعُهُنَّ:**

**د ابن عمر رضی الله عنه په حدیث نبوی باندې غیرت:-** حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه ښځو متعلق جمات ته لاړو په جمع سره د مونځ کولو حدیث ئی بیان کړو په کوم کښې چه دا ووچه ښځې د جمات د تللو نه مه منع کوئی. په دې باندې د حضرت ابن عمر رضی الله عنه ځوئی حضرت بلال رضی الله عنه اوفرمائیل چه زه خو به ئی یقینًا منع کوم، په خبرو اترو کښې د دواړو دکلام تبادله داسې اوشوه چه په ظاهری توګه د حضرت بلال رضی الله عنه په کلام کښې حدیث نبوی سره د معارضه صورت پیدا شو. دا صرف صورةً معارضه وه حقیقةً بالکل نه وه ځکه چه حقیقةً معارضه خو انکار حدیث او د اسلام د یو حکم نه انکار دې د کوم چه د حضرت بلال رضی الله عنه نه تصور هم نه شی کیدې. بهرحال حضرت ابن عمر رضی الله عنه په دې صوری معارضه باندې سخه خفه شو او حضرت بلال رضی الله عنه ته ئی سخت سست اووئیل او قسم ئی اوخوړلو چه تا سره به تول عمر کلام نه کوم نو په تول ژوند کښې ئی خپل د زړه تکړې سره خبرې اونه کړې.

**اشکال:-** د دې حدیث نه معلومیږی چې خفګان د دریو ورځو نه زیات جائز دې. حالانکه بل حدیث کښې دی ((لا یحل لمسلم ان هجراخاه فوق ثلث)) او په دې درې ورځو نه په زیاتو باندې وعید دې؟

**داشکال جواب:-** هرکله چې د ترک کلام وجه دنیاوی وی نو بیا د دریو ورځو نه زیات جائز نه دی. او که د ترک کلام وجه دینی وی نو بیا د دریو ورځو نه زیات جائز دی. تر کومې چې هغه کس خپله اصلاح اونه کړی.

**۱۰۸۳- د حضرت عبدالله د خپل ځوی ځخه خفګان**

> ۱۰۸۳-()[۳۲] [۱] وَعَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "[۲] «لَا يَمْنَعَنَّ رَجُلٌ أَهْلَهُ أَنْ يَأْتُوا الْمَسَاجِدَ» ". [۳] فَقَالَ ابْنٌ لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ: فَإِنَّا نَمْنَعُهُنَّ. [۴] فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ: أُحَدِّثُكَ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَتَقُولُ هَذَا؟! [۵] قَالَ: فَمَا كَلَّمَهُ عَبْدُ اللّٰهِ حَتَّى مَاتَ. رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] مجاهد رحمه الله د عبدالله ابن عمر رضی الله عنه ځخه نقل کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي [۲] چې هیڅوك دي خپل اهل (یعني خپله ښځه) مسجدونو ته د تلو ځخه نه منع کوي [۳] (دي اوریدو سره) د عبدالله ﷺ یو زوي (بلال) اوویل چې مونږ خو به هغوي منع کوو [۴] عبدالله ابن عمر رضی الله عنه ورته وفرمایل زه درته د رسول الله ﷺ حدیث بیانوم او ته دا وایې (چې مونږ خو به یې منع کوو) [۵] د راوي بیان دي چې د دې ځخه وروسته حضرت عبدالله رضی الله عنه د خپل زوي (بلال) سره (تر آخر عمر پورې) خبرې ونه کړې تر دې چې وفات شو. (احمد.)

**تسهیلات:- نوټ:-** د دې حدیث تشریح په بل ځائې کښې په تفصیل سره ذکرشوې ده.

[1]) اخرجه احمد فی المسند ۳۶/۲

# [۴۰/۲۴]بَابُ تَسْوِيَةِ الصَّفِّ

**دصفونو د برابرولو بيان**

**خلاصة الباب:-**

**فيه أحد وعشرون حديثاً تشتمل على تسع مسائل:**

① تسوية الصفوف: ۱، ۲، ۳، ۴، ۶، ۹، ۱۰، ۱۳، ۱۴، ۱۶، ۱۸۔
② الزجر على من لا يسوي الصف: ۱، ۴، ۶۔
③ كون تسوية الصف من إقامة الصلوة: ۳۔
④ ترتيب الصفوف: ۴، ۵۔
⑤ اتمام الصف الأول وفضيلته: ۷، ۸، ۱۰، ۱۱، ۲۰۔
⑥ فضيلة الأيمن من الصف: ۱۲۔
⑦ فضيلة من يسوي الصف: ۱۵، ۱۷، ۱۸۔
⑧ توسط الإمام في الصفوف: ۱۹۔
⑨ الزجر على من يصلي خلف الصف: ۲۱ ۔

**په مانځه کښې دصفونو نيغ ساتلو په حکم کښې اختلاف:-** ① صفونه نيغ ساتل سنت مؤکده دی ② بعضو واجب وئيلي دی ځکه چه احاديثو کښې صف نيغ نه ساتلو باندې سخت وعيد راغلي دې کوم چه دَ وجوب دليل دې.

**دصفونو په مينځ کښې داتصال اوعدم اتصال مختلف صورتونه:-** ① دَ فقهاؤ په دې باندې اتفاق دې که دَ صفونو په مينځ کښې څه سړك يا نهر نه وی نودا صفوف متصله دی امامت او جماعت صحيح دې

② که دَامام اومقتديانو په مينځ کښې څه نهر يا سړك وی نودَ امام مالك رحمه الله او امام شافعی رحمه الله په نيزدا اقتداصحيح ده اود امام ابوحنيفه رحمه الله نيز دا اقتداصحيح نه ده.

③ که چرې امام په جمات کښې وی او مقتدی نيزدې چرته کور کښې وی اوپه مينځ کښې داسې څه وی چه امام نه ښکاری اوامام پسې صفونه هم نه ښکاری نوجمهور فرمائی چه دا اقتداء صحيح نه ده اودَامام ابوحنيفه رحمه الله مشهورقول دې چه دا اقتداء صحيح ده.

**دااختلاف بنياد:-**

لکه په راروان درې صورتونوکښې چې کوم مسائل بيانيږی نوپه دې کښې د امامانو په مينځ کښې داختلاف وجه په يوه قاعده کښې اختلاف دې.اوهغه اختلاف دا دې. چې ① دَ جمهوروپه نيز لرې والې اونيزديوالې څه حيثيت نه لری بلکه دَ حائل اوحاجب

اعتبار دی

۲ امام ابو حنیفه دَ قرب او بعد اعتبار کوی دَ حائل اعتبار نه کوی.

**صفونو څخه متعلق بعضي بنیادي مسائل :-** ۱ اول صف دې مکمل کړی بیا دې دویم صف شروع کړی بیا دَ دویم په پوره کیدو باندې دریم شروع کړی الی اخره.

۲ اول صف دې مکمل کړی بیا دې دویم صف شروع کړی بیا دَ دویم په پوره کیدو باندې دریم شروع کړی الی اخره.

۳ صفونه دې دَ یوبل نه په داسې فاصله باندې اوساتی چه په مینځ کښې صرف دَ سجدې په اندازه خائی وی په دې قاعده باندې دَعلماؤ یوځو مسائل هم اوګورئی.

۴ صف بالکل نیغ وی لکه چه دا په غشي سره نیغولې شی.

۵ پیش امام دَ صفونو په مینځ کښې په داسې مقام باندې ولاړ وی چه دواړه طرف ته دَ نبی اوګس مقتدیان برابر برابر وی.

۶ په صفونو کښې جخت والې وی یعنی داسې ترلې شوی وی چه په مینځ کښې دَ شیطان دَپاره څه خلی خائی نه وی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**۱۰۸۵- دصف برابر ساتلو حکم**

۱۰۸۵-()[۱] ۱ عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ۲ «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَوِّي صُفُوفَنَا ۳ حَتّٰى كَأَنَّمَا يُسَوِّي بِهَا الْقِدَاحَ ۴ حَتّٰى رَأَى أَنَّا قَدْ عَقَلْنَا عَنْهُ، ۵ ثُمَّ خَرَجَ يَوْمًا فَقَامَ حَتّٰى كَادَ أَنْ يُكَبِّرَ ۶ فَرَأَى رَجُلًا بَادِيًا صَدْرُهُ مِنَ الصَّفِّ، ۷ فَقَالَ: "عِبَادَ اللّٰهِ! لَتُسَوُّنَّ صُفُوفَكُمْ، ۸ أَوْ لَيُخَالِفَنَّ اللّٰهُ بَيْنَ وُجُوهِكُمْ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ نعمان بن بشیر رضی الله عنه فرمایی ۲ چې نبي کریم ﷺ به زمونږ صفونه (داسې) برابر (سیده) کول ۳ لکه چې غشي هم د هغه صفونو سره سیده کولي شو ۴ تر دې چې د نبي علیه السلام ګمان راغې چه مونږ هم د حضور ﷺ څخه (د صفونو برابرولو په اهمیت) پوه شو ۵ یوه ورځ رسول الله ﷺ (د مکان څخه راوتلو سره) تشریف راوړو او (د لمانځه د پاره) ودریدلو او تکبیر (تحریمه) یې ویلو ۶ چې د یو سړي سینه یې د صف څخه لره

[۱] اخرجه البخاری كتاب الاذان/ باب تسوية الصفوف عند الإقامة وبعدها (رقم-۷۱۷) ومسلم فی كتاب الصلاة/ كتاب الصلاة/باب تسوية الصفوف، وإقامتها، وفضل الأول فالأول منها، والازدحام على الصف الأول، والمسابقة إليها، ،تقديم أولي الفضل، وتقريبهم من الإمام (رقم) ۱۲۸ - (۴۳۶) وابوداود كتاب الصلاة،باب تسوية الصفوف (رقم-۶۶۳) والترمذی كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی إقامة الصفوف (رقم-۲۲۷) والنسائی كتاب الإمامة/باب كيف يقوم الإمام الصفوف (رقم-۸۱۰) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب إقامة الصفوف (رقم-۹۹٤)

راوتلي وليده [۷] نو وي فرمايل اي د الله بنده ګانو خپل صفونه سيده کړي [۸] ګيني الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ به ستاسو په مينځ کې اختلاف واچوي. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① يُسَوِّي: برابرول او سيدها کول ئي. ② الْقِدَاحَ: وَهُوَ السَّهْمُ: غشي، ③ عَقَلْنَا: أَيْ: فَهِمْنَا التَّسْوِيَةَ: مونږ پوهه شو (په اهمت د سيدها کولو دصفونو لره). ④ بَادِيًا: أَيْ: ظَاهِرًا خَارِجًا: ښکاره کړې وه، راوبستلې وه. ⑤ صَدْرُهُ: سينه خپله.

**تسهيلات:- توله:** كَأَنَّمَا يُسَوِّي بِهَا الْقِدَاحَ:

**د صفونو په نيغولو کښې مبالغه کول:-** عربو به دَ غشو په نيغولو کښې ډير کوشش کولو ځکه چه که په غشی کښې لږ شان کوګوالې پاتې شی نو هغه په نښه باندې صحيح نه لګی لهذا دهغوی په نيزدَ غشی نيغوالې دومره مشهور اومسلم وو چه هغوی به دَ نورو څيزونو نيغوالې اوهواری تشبيه هم غشی سره ورکوله دلته هم دغه مبالغه بيان کړې شوې ده چه صفونه به رسول الله ﷺ داسې نيغول لکه چه دَدې په ذرعه ئې غشی نيغول غوښتل.

**توله:** أَوْلَيُخَالِفَنَّ اللَّهُ:

**د مخالفت ظاهری په مخالفت باطنی باندې اثر:-** علامه مظهری رحمه الله فرمائی چه ظاهری ادب او حکم منل چونکه دَ باطنی ادب اوحکم منلو علامت وی لهذا که چرې تاسو په صفونو کښې غلط ولاړوئی اوظاهری اطاعت اوفرمانبرداری نه کوئی نو ستاسودا ظاهری نافرمانی به تاسو باطنی نافرمانئی ته اورسوی. يعنی دَ زړونودَ اختلاف طرف ته به مو اورسوی دَ کوم انجام چه به دا شی چه وړاندې تلوسره به دا نافرمانی به په خپل مينځ کښې عداوت او رقابت ذريعه جوړه شی په کوم سره چه به په زړونو کښې ورانې اواختلاف پيداشی اودَ زړونودَ اختلاف نتيجه به داشی چه دَ يو بل نه به ډډه کول او انقباض شروع شی په کوم سره چه به ستاسو معاشرتی اوسماجی ژوندون تباه شی. په زيربحث حديث کښې هم دا پس منظربيان کړې شوې دې.

**۱۰۸۶- صفونه په ترتيب سره برابرول**

۱۰۸۶-()[۲] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ، فَأَقْبَلَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِوَجْهِهِ، [۳] فَقَالَ: " أَقِيمُوا صُفُوفَكُمْ وَتَرَاصُّوا ; فَإِنِّي أَرَاكُمْ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِي» " رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. [۴] وَفِي الْمُتَّفَقِ عَلَيْهِ قَالَ: "«أَتِمُّوا الصُّفُوفَ ; فَإِنِّي أَرَاكُمْ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِي» ".

**ترجمه:** [۱] حضرت انس رضی الله عنه راوي دي [۲] چې (يوه ورځ کله چې) مونځ ودريدلو نو حضور

---

[۱]) اخرجه البخاری کتاب الاذان/ باب إقبال الإمام على الناس، عند تسوية الصفوف (رقم-۷۱۹) ومسلم فی کتاب الصلاة/ کتاب الصلاة/باب تسوية الصفوف، وإقامتها، وفضل الأول فالأول منها، والازدحام على الصف الأول، والمسابقة إليها، وتقديم أولى الفضل، وتقريبهم من الإمام (رقم) ۱۲۸ - (۴۳۴) والنسائی کتاب الإمامة/باب حث الإمام على رص الصفوف والمقاربة بينها (رقم-۸۱۴)

ﷺ خپل مخ مبارك زمونږ طرف ته متوجه كړو[۳] او ويې وفرمايل خپل صفونه سيده كړي او يو ځاي نژدي سره ودريږي بيشكه زه د شا د طرف څخه هم تاسو وينم (يعني د لمانځه په حالت كې د مكاشفې په ذريعه د لمانځه كونكي په احوالو باندې خبريږم) دا روايت بخاري نقل كړي دي[۴] او د بخاري او د مسلم دواړو روايت دا دي چې (حضور ﷺ وفرمايل) صفونه پوره كړي زه تاسو د خپل شا د طرف څخه هم وينم.

**حل اللغات:-** ① وَتَرَاصُّوا: أَيْ: تَضَامُّوا وَتَلَاصَقُوا حَتَّى تَتَّصِلَ مَنَاكِبُكُمْ: يعنى نږدې نږدې جخت اودريږئ چه ستاسو اوږې خپلوكښې يوځاي شي.

**نوټ:-** په دې حديث باندې وړاندې بحث شوې دې.

**۱۰۸۷- د صفونو برابرولو اهميت**

۱۰۸۷- (۱)[۳][۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[۲] «سَوُّوا صُفُوفَكُمْ، فَإِنَّ تَسْوِيَةَ الصُّفُوفِ مِنْ إِقَامَةِ الصَّلَاةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. إلا ان عند مسلم من تمام الصلاة

**ترجمه:**[۱] حضرت انس رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] تاسو خپل صفونه برابر ساتي ځكه چې د لمانځه صفونه برابر ساتل د لمانځه د تكميل څخه دي، بخاري، او د مسلم په يو بل روايت كې د من اقامة الصلوٰة په ځاي من تمام الصلوٰة الفاظ دي.

**تسهيلات:-** **قوله:** مِنْ إِقَامَةِ الصَّلَاةِ:

**په اقامة الصلاة كښې مشار اليه:-** قرآن كريم كښې (أَقِيمُوا الصَّلٰوةَ) يعنى مونځ دَ ټولو آدابو سره قائمولو حكم دې. دَ مانځه په آدابو كښې دَ تعديل اركان لحاظ ساتل اودَ سنن، آدابو او مستحبات خيال ساتل داخل دى. دلته په حديث كښې هم دغه آدابو نه يو ادب طرف ته اشاره كړې شوې ده چه صفونه نيغ كړئى ځكه چه صفونه نيغول دَ مانځه دَتكميل يوه حصه ده دكوم حكم ( أَقِيمُوا الصَّلٰوةَ) كښې وركړې شوې دې.

**۱۰۸۸- د صفونو كوږوالې د زړونو د كوږوالى سبب**

۱۰۸۸- (۲)[۴][۱] وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

---

[1] اخرجه البخارى كتاب الاذان/ باب: إقامة الصف من تمام الصلاة(رقم-۷۲۳) ومسلم فيكتاب الصلاة/باب تسوية الصفوف، وإقامتها، وفضل الأول فالأول منها، والازدحام على الصف الأول، والمسابقة إليها، وتقديم أولى الفضل، وتقريبهم من الإمام (رقم) ۱۲۴ - (۴۳۳) وابوداود كتاب الصلاة،باب تسوية الصفوف (رقم-۶۶۸) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب إقامة الصفوف (رقم-۹۹۳) والدارمى كتاب الصلاة/باب فى إقامة الصفوف (۱۲۹۸)

[2] اخرجه مسلم فيكتاب الصلاة/باب تسوية الصفوف، وإقامتها، وفضل الأول فالأول منها، والازدحام على الصف الأول، والمسابقة إليها، وتقديم أولى الفضل، وتقريبهم من الإمام (رقم) ۱۲۲ - (۴۳۲) وابوداود كتاب الصلاة،باب من يستحب أن يلى الإمام فى الصف وكراهية التأخر (رقم-۶۷۴) والنسائى كتاب الإمامة/باب موقف الإمام والمأموم صبى (رقم-۸۰۷) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب من يستحب أن يلى الإمام (رقم-۹۷۶)

يَمْسَحُ مَنَاكِبَنَا فِي الصَّلَاةِ، وَيَقُولُ [۳] "اسْتَوُوا وَلَا تَخْتَلِفُوا فَتَخْتَلِفَ قُلُوبُكُمْ، [۴] لِيَلِنِي مِنْكُمْ أُولُو الْأَحْلَامِ وَالنُّهَى، [۵] ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ، ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ» " ، [٦] قَالَ أَبُو مَسْعُودٍ: فَأَنْتُمُ الْيَوْمَ أَشَدُّ اخْتِلَافًا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] ابو مسعود رضی الله عنه فرمايي [۲] چې نبي کريم ﷺ (چي به کله د لمانځه کولو اراده فرمايله) نو زمونږ په اوږو خپل لاس مبارك ايښودلو سره به يي فرمايل [۳] برابر برابر اوسي مختلف (يعني مخکې او شاته اودريږي) مه کيږي ستاسو په زړونو کې به اختلاف پيدا شي [۴] او په تاسو کې چې کوم خلق عاقل او بالغ دي هغه دي ماته نزدي اودريږي [۵] بيا هغه خلق چې دهغوئ نزدې وي اوبيا هغه خلق چې دهغوئ نزدې وي [٦] ابومسعود رضی الله عنه (د خلقوپه مخکې دا حديث بيانولو سره) وفرمايل چې نن په تاسو خلقو کې اختلاف ډير زيات دي. (مسلم)

**حل اللغات:**- ① لِيَلِنِي: دا د ولی نه دي بِمَعْنَى الْقُرْبِ: يعنی نزدې اودريدل. ② أُولُو الْأَحْلَامِ: احلام جمع د حِلم ده سکون او وقار ته وائی او دغصې په وخت خان قابو کښې ساتلو ته هم وائی خو دلته ترې مراد عقل دې ځکه چه دا ټول کارونه د عقل مقتضيات دی، بلوغ ته هم وائی. ③ النُّهَى: د نُهْيَة جمع ده، وَهُوَ الْعَقْلُ النَّاهِي عَنِ الْقَبَائِحِ: عقل ته وائی چه بدو کارونونه منع کول کوی.

**تسهيلات:**-

**قوله:** يَمْسَحُ مَنَاكِبَنَا:

**دصفونو نيغولو يوه طريقه:**- دَ صف دَ نيغولو دَيو کيفيت بيان دې چه حضورپاك ﷺ به څنګه په ژبه مبارکه باندې دَدې بيان کولو دغه شان به ئی په عملی توګه باندې صفونه نيغول اوزمونږ په اوګو باندې به ئی لاس کيخودوسره صف نيغولو. دَدې وجه داده چه دَ صفونو دَنيغولو دَپاره دَ اوګواو ګيټو نيغول ضروری دی دَدې ذکر راتلونکې دې.

**قوله:** وَلَا تَخْتَلِفُوا:

**د اختلاف غلط اثر:**-يعنی په صفت کښې برابر اودريږئی دَ چادَ بدن څه حصه دې وړاندې روستونه وی په دې ظاهری افتراق سره به په تاسوکښې باطنی افتراق بغض حسد او عدات اونفرت پيداشی تفصيل وړاندې تيرشوې دې.

**قوله:** لِيَلِنِي:

**داهل علم د امام سره د نزدې اودريدو حکمت:**- يعنی کوم خلق چه دَعلم ودانش، فهم فراست والاکامل بالغ دی هغوی دې په وړاندې صف کښې ماسره نيزدې اودريږی دې دَپاره چه هغوی زما دَ مونځ پوره نقشه اوګوری اوامت ته ئی اورسوی. دَمانځه دَپوره احکامو په خپلو سترګو معائنه کولوسره زده کړه اوکړی اوکه چرته امام په مانځه کښې سهو شی چه په صحيح توګه فتح ورکړې شی يا که امام ته څه حادثه پيښه شی اوهغه خپل نائب مقررکول غواړی نو په صف کښې نيزدې داسې کسان موجود وی چه دَ دغه ذمه

وارثی قبلولو اهلیت لری.

**د صفونو ترتیب:** - ① په رومبی صفت کښې به عاقل بالغ خلق وی

② بیا به دَ هغوی نه پس قریب البلوغ مراهق خلق وی او ماشومان به هم وی

③ بیا به هغوی نه پس خنثی خلق وی یعنی په چا کښې چه دَ ښځو او سړو علامات په بوخت وی

④ بیا به دَ هغوی نه شاته په آخره کښې دَ ښځو صفونه وی.

قوله: اشد اختلافاً:

**د ابو مسعود انصاری رضی الله عنه د کلام مفهوم:** - دَحضرت ابو مسعود انصاری ﷺ دَ دې کلام مقصد دا دې چه نن تاسو خلق دَ مانځه صفونه نیغولو کښې احتیاط نه کوئی. لهذا تاسو په خپل خارجی ژوند کښې دَافتراق وانتشار او اختلاف ښکار شوئی. څو مره چه دَ مانځه په صفونو کښې افتراق دې هم هغه هومره به په تاسو کښې دَفتنو غویل وی. لهذا اول دَ مانځه داظاهری اختلاف ختم کړئی بیا دَ باطنی اختلاف دَ خاتمه فکر کوئی. بهرحال دَابو مسعود ﷺ صحابی داخطاب تابعین ته دې په کوموکښې چه دانقصان راغلې وو.

**۱۰۸۹-د پوها نو خلقو امام سره نزدې اودریدل**

۱۰۸۹-()[۵] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " [۲] «لِيَلِيَنِي مِنْكُمْ أُولُو الْأَحْلَامِ وَالنُّهَى، ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ" ثَلَاثًا" [۳] وَإِيَّاكُمْ وَهَيْشَاتِ الْأَسْوَاقِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] عبد الله ابن مسعود ﷺ راوي دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل [۲] کوم خلق چې صاحب د عقل او بالغ وي هغه دي (په لمانځه کې) ماته نزدې ودریږي بیا دي هغه خلق ودریږي چې هغوئ ته نزدې وي دا الفاظ حضور ﷺ درې خله وفرمایل [۳] او تاسو په مسجدونو کې د بازارونو په شان د شور شرخخه بچ شي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① هَيْشَاتِ: جمع د هَيْشَة ده، دَ باب نصر ينصر نه راځی، وَهِيَ رَفْعُ الْأَصْوَاتِ: آوازونه پورته کول، شور او غوغا جوړول. ② الْأَسْوَاقِ: د سوق جمع ده، بازار ته وائی.

**تسهيلات:** - قوله: وَإِيَّاكُمْ وَهَيْشَاتِ الْأَسْوَاقِ:

**د هيشات الاسواق په مفهوم کښې دوه اقوال:** -

① دَدې يوه ترجمه کړې وه کيدل هم ده د دې ترجمې مطابق د دې حديث مطلب به دا وی

[۱]) اخرجه مسلم فى كتاب الصلاة/باب تسوية الصفوف، وإقامتها، وفضل الأول فالأول منها، والازدحام على الصف الأول، والمسابقة إليها، وتقديم أولى الفضل، وتقريبهم من الإمام (رقم) ۱۲۳ - (۴۳۲) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء ليلينى منكم أولو الأحلام والنهى (رقم-۲۲۸) والدارمى كتاب الصلاة/باب من يلى الإمام من الناس (رقم-۱۳۰۳)

چې په جماتونو کښې دَ بازارونو په شان شور او غوغا مه کوئ بلکه په خاموشئ سره راشئ مونځ اوکړئ او په خاموشئ سره لاړشئ. دا مطلب زيات واضح دې اصل عبارت به داسې وی. "واياکم وهيشات کهيشات الاسواق"

④ دَ دې ترجمه شور او غوغا هم ده د دويمې ترجمې مطابق د دې حديث مطلب به دا وی چې تاسو په داسې مقاماتو کښې دَ مونځ کولو نه ځان اوساتئ چرته چه شور او شر وی او حضور قلبی حاصله نه وی لکه بازار وغيره دَ شور مقامات چه وی.

**قوله: ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ "ثَلَاثًا":**

**درې ځله د تکرار وجه:**- په دې حديث کښې دَ ښځودَ صف ذکر مخې ته وو په دې وجه حضورپاک ﷺ "ثم الذين" الفاظ درې ځل اوفرمائيل. دغه شان دَ صفونو دَ څلورو وارو درجو ذکر راغلو عاقل بالغ په اوله درجه کښې اومراهق او هلکان دويمه درجه کښې او خناثی په دريمه درجه کښې او ښځې په څلورمه درجه کښې، دې نه وړاندې حديث کښې دَ ښځودَ صف ذکر مخې ته نه وو په دې وجه هلته دوه ځل "ثم الذين يلونهم" اوفرمائيلې شو.

## ۱۰۹۰- په اول صف کښې د شامليدو کوشش

۱۰۹۰-()[۶] ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «رَأَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي أَصْحَابِهِ تَأَخُّرًا، فَقَالَ لَهُمْ: ③ "تَقَدَّمُوا وَأْتَمُّوا بِي، ④ وَلْيَأْتَمَّ بِكُمْ مَنْ بَعْدَكُمْ، ⑤ لَا يَزَالُ قَوْمٌ يَتَأَخَّرُونَ حَتَّى يُؤَخِّرَهُمُ اللَّهُ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① ابو سعيد خدري رضي الله عنه فرمايي ② چې رسول الله ﷺ (چې کله وليدل چې صحابه (اولني صف ته په راتلو کښې) تاخير کوي نو هغوئ ته يي وفرمايل ③ رامخکې شی او زما اقتداء وکړي ④ او هغه خلق چې تاسو څخه وروسته ولاړ وي ستاسو اقتداء دې وکړي (د دي څخه وروسته حضور ﷺ وفرمايل) ⑤ يو قوم به هميشه (په اولني صف کې په ودريدو کښې) تاخير کوي تر دي چې الله تعالى جل جلاله به هم (په خپل فضل او رحمت کښې) هغوي وروسته وغورځوي. (مسلم)

**حل اللغات:**- ① تَأَخُّرًا: روسته کيدل، تاخيرکول، ② تَقَدَّمُوا: رامخکښې شئ، ③ وَأْتَمُّوا بِي: أي: اصْنَعُوا كَمَا أَصْنَعُ: زما اقتداء اوکړئ يعنی زه چه څنګه کوم تاسو هم هغسې کوئ.

[1] اخرجه مسلم فى كتاب الصلاة/باب تسوية الصفوف، وإقامتها، وفضل الأول فالأول منها، والازدحام على الصف الأول، والمسابقة إليها، وتقديم أولى الفضل، وتقريبهم من الإمام (رقم) ۱۳۰ - (۴۳۸) وابوداود كتاب الصلاة........
........باب صف النساء وكراهية التأخر عن الصف الأول (رقم-۶۸۰) والنسائى كتاب الإمامة/باب الائتمام بمن يأتم بالإمام (رقم-۷۹۵) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب من يستحب أن يلى الإمام (رقم-۹۷۸)

**تسهيلات:-**

**قوله: وَلْيَأْتَمَّ بِكُمْ مَنْ بَعْدَكُمْ:**

**د مذكوره جملې معنى او مفهوم:-** دَدې مطلب دانه دې چه ړومبې صف دې زما اقتداء اوكړي او شاته خلق دې دَهغوى اقتداء اوكړي ځكه چه دَ يو صف خلق دَ بل صف دَ خلقو اقتداء نه كوى بلكه ټول خلق دَامام په اقتداء كښې وى. دَ حديث مطلب دادې چه ړومبى صف والا به ماته ګورى مونځ به كوى اودَهغوى نه شاته به دَهغوى متابعت كوى دا متابعت فى الافعال دې متابعت فى الاقتدا نه دې.

**۱۰۹۱- د صفونو پوره كول او برابرول**

۱۰۹۱-()[۲] ① وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: ② «خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَآنَا حِلَقًا فَقَالَ: ③ "مَالِي أَرَاكُمْ عِزِينَ؟!". ثُمَّ خَرَجَ عَلَيْنَا فَقَالَ: ④ "أَلَا تَصُفُّونَ كَمَا تَصُفُّ الْمَلَائِكَةُ عِنْدَ رَبِّهَا؟ ⑤ "فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللهِ! وَكَيْفَ تَصُفُّ الْمَلَائِكَةُ عِنْدَ رَبِّهَا؟ ⑥ قَالَ: "يُتِمُّونَ الصُّفُوفَ الْأُولَى، وَيَتَرَاصُّونَ فِي الصَّفِّ» "رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① جابر ابن سمره رضي الله عنه فرمايي ② چې (يوه ورځ) نبي كريم ﷺ زمونږ مينځ ته تشريف راوړو او مونږ يې په مختلفو حلقو كې ناست ليدو سره وفرمايل ③ څه وجه ده چې زه تاسو د جدا جدا جماعتونو په صورت كې (ناست) وينم (يعني داسې جدا جدا جماعت جوړولو سره مه كينې ځكه چې دا د نااتفاقي او انتشار علامت دې) بيا دغسې (يوه ورځ) حضور ﷺ زمونږ مينځ ته تشريف راوړو او وي فرمايل ④ چې تاسو خلق (په لمانځه كې) داسې صف ولې نه تړي څنګه چې فرشتې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په حضور كې (د بندګي د پاره دريږي او) صف تړي ⑤ مونږ عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ فرشتې د خپل پروردګار په حضور كې څنګه صف تړي؟ ⑥ وي فرمايل اولني صفونه پوره كوي او په صف كې يو ځاي كيدو سره (برابر برابر) دريږي. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① حِلَقًا: د حَلْقَة جمع ده، أَيْ جُلُوسًا حَلْقَةً حَلْقَةً: يعنى مختلفو ټولګو او حلقو كښې ناست وو. ② عِزِينَ: د عِزَة جمع ده، أَيْ: جَمَاعَاتٍ مُتَفَرِّقِينَ: يعنى مختلفو ټولګو كښې تقسيم شوى وو. ③ يَتَرَاصُّونَ: يوځاىٔ يوځاىٔ په صفونو كښې سيدها اودريدلو ته وائى.

**تسهيلات:-** **نوټ:** د ترجمې اوحل اللغات څخه مطلب واضح دې.

[1] اخرجه مسلم فى كتاب الصلاة/باب الأمر بالسكون فى الصلاة، والنهى عن الإشارة باليد، ورفعها عند السلام، وإتمام الصفوف الأول والتراص فيها والأمر بالاجتماع (رقم-۱۱۹ - (۴۳۰) وابوداود كتاب الصلاة،باب تسوية الصفوف (رقم-۶۶۱) والنسائى كتاب الإمامة/باب حث الإمام على رص الصفوف والمقاربة بينها (رقم-۸۱۶) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب إقامة الصفوف (رقم-۹۹۲)

۱۰۹۳- بهترين او بدترين صفونه

۱۰۹۳-( )[۸] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«خَيْرُ صُفُوفِ الرِّجَالِ أَوَّلُهَا، وَشَرُّهَا آخِرُهَا. [۳] وَخَيْرُ صُفُوفِ النِّسَاءِ آخِرُهَا، وَشَرُّهَا أَوَّلُهَا»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل [۲] د سړو بهترين صف اولني صف دي او بدترين صف وروسته صف دي [۳] او د ښځو بهترين صف وروسته صف دي او بدترين صف مخکيني صف دي. (مسلم)[1]

**تسهيلات:** -

**قوله: خَيْرُ صُفُوفِ الرِّجَالِ:**

**دسړو دپاره د اول صف د فضيلت دوه وجوهات:** -

① اول صف فضيلت دَ دويم اودريم نه په مقابله کښې زيات دې نو په دې اعتبارسره فرمائيلې شوی دی چه دَ سړو ړومبې صف دَ نورو صفونو په مقابله کښې دَ ثواب په لحاظ بهتردې يعنی دَدې ثواب زيات دې.

② دَ سړو ړومبې صف هغه وخت بهترين صف دې چه کله شاته دَ ښځو صفونه هم وی نودَ ښځودَ صفونو نه دَ سړو دا صف ډير لرې دې او شيطانی وسوسې او نسوانی وسوسې دوی ته نه شی رسيدلې په دې وجه دا دَتولونه بهترين صف دې اودَ سړو آخری صف ته خراب صف ځکه اووئيلې شو چه يوخوهغه دَامام او محراب نه ډير لرې دې بله وجه دا چه هغه ښځوته ډيرنيزدې دې په کوم کښې چه دَ شيطانی اونسوانی وسواس کلك احتمال دې.

**قوله: وَخَيْرُ صُفُوفِ النِّسَاءِ:**

**د ښځو دپاره د آخری صف د افضليت وجه:** - دا صف دَ سړو نه ډير لرې وی او شيطانی او مردانی وسوسونه ډير محفوظ وی په دې وجه دَ ثواب په اعتبارسره دې کښې ثواب زيات ملاويږی

**د ښځو د اولنی صف د خرابوالی وجه:** - دَ ښځو ړومبې صف بدتر يعنی خراب ځکه دې چه دَ ښځوامام سره دَ نيزدې کيدو ثواب خوملاويږی نه لهذا دَدې فضيلت نه خو دَ وړاندې نه محروم پاتې شوې اوچونکه دَهغوی ړومبې صف دَ سړو سره نيزدې وی په کوم کښې چه

---

[1]) اخرجه مسلم فى كتاب الصلاة/باب تسوية الصفوف، وإقامتها، وفضل الأول فالأول منها، والازدحام على الصف الأول، والمسابقة إليها، وتقديم أولى الفضل، وتقريبهم من الإمام (رقم) ۱۳۲ - (٤٤٠) وابوداود كتاب الصلاة،باب صف النساء وكراهية التأخر عن الصف الأول (رقم-٦٧٨) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى فضل الصف الأول (رقم-٢٢٤) والنسائى كتاب الإمامة/باب ذكر خير صفوف النساء وشر صفوف الرجال (رقم-٨٢٠) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب صفوف النساء (رقم-١٠٠٠) والدارمى كتاب الصلاة/باب أى صفوف النساء أفضل (رقم-١٣٠٤)

شیطانی اومردانی وسوسو قوی احتمال دې په دې وجه دَ ثواب په لحاظ ئی دا خراب صف یادکړو چه په دې کښې ثواب کم ملاویږی اوخطره زیاته ده.

**د ښځو آخری صف ته د شر په نسبت کولو کښې دوه وجوهات:-**

① بدترین صف دَ مانځه دَ صف حیثیت سره نه دی فرمائیلی بلکه دَا صف دَخارجی بدو اثراتودَ وجې نه دې ته بدترین وئیلی شوی دی.

② دلته "شرها" خیرها" په مقابله کښې راغلي دې دَدې ترجمه بدترین نه دې بلکه دَافضل په مقابله کښې غیرافضل دې اوافضلیت اوغیرافضلیت دَ ثواب دَ کمی زیاتی په اعتبارسره دې نودَ ښځودَپاره په ړومبی صف کښې ثواب کم دې اودَ سړو دَپاره په آخری صفت کښې ثواب کم دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### ۱۰۹۳- په صفونو کښې د خالی ځائې پرېښودو ممانعت

۱۰۹۳-()[۹] ① عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«رُصُّوا صُفُوفَكُمْ، وَقَارِبُوا بَيْنَهَا، ③ وَحَاذُوا بِالْأَعْنَاقِ؛ ④ فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، ⑤ إِنِّي لَأَرَى الشَّيْطَانَ يَدْخُلُ مِنْ خَلَلِ الصَّفِّ كَأَنَّهَا الْحَذَفُ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① حضرت انس رضی الله عنه راوي دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل ② خپل صفونه پيوست ساتي (يعني په خپلو کې ښه يو ځاي کيدو سره اودريږي) او د صفونو په مينځ کښې نزديکت ساتي (يعني د دوه صفونو په مينځ کې دي دومره فاصله نه وي چې يوصف بل پکښې راځي) ③ او خپل څټونه برابر ساتي (يعني په صف کې په تاسو کې دي څوك په اوچت ځاي باندې نه اودريږي بلکه په هوار ځاي دي اودريږي چې د تولو څټونه برابر وي) ④ قسم دي په هغه ذات چې د هغه په قبضه کې زما ساه ده ⑤ زه شيطان د بزي (چيلئ) د تور بچي په شان ستاسو د صفونو په مينځ کې ننوتونکي وينم. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① رُصُّوا: أَيْ: سَوُّوهَا وَضُمُّوا بَعْضَكُمْ إِلَى بَعْضٍ: صفونه نيغ ساتئ او يوبل سره نزدې اودريږئ. ② وَحَاذُوا: دادَ محاذات نه دې دَ برابرئی په معنی کښې دې يعنی ستونه او اوګي يوبل سره نيغې ساتئی دادَ وړاندې روستوکيدو ممانعت دې. ③ خَلَلِ الصَّفِّ: أَيْ: فُرْجَتِهِ: په صف کښې دَ مونځ کذارو په مينځ کښې فاصلې ته وائی. ④ الْحَذَفُ: وَهُوَ الْغَنَمُ السُّودُ الصِّغَارُ: د ګډې تور بچې چه نه ئې غوږونه وی نه لکئ.

[1] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة/باب تسوية الصفوف (رقم-۶۶۷)والنسائی کتاب الإمامة/باب حث الإمام على رص الصفوف والمقاربة بينها (رقم-۸۱۵)

**تسهیلات: - قوله: وَقَارِبُوا بَيْنَهَا:**

**د قربت په مفهوم کښې دوه اقوال: -**

① په خپل مینځ کښې نیزدې نیزدې اودریږئی چه په مینځ کښې خالی ځائی نه وی.

② دَ دوو صفونو په مینځ کښې دومره فاصله مه ساتئی چه په هغې کښې یوبل صف هم اودریدې شی

**قوله: وَحَاذُوا:**

**دحاذوا په مفهوم کښې دوه اقوال: -** ① یعنی دا محاذات برابری په معنی کښې استعمال شوې دې یعنی ځټونه اواوږې یو بل سره مخامخ ساتئ چې وړاندې روسته نه وی.

② ملاعلی قاری رحمه الله دا اوله توجیه نه خوښه وی هغه فرمائی چه ستونه برابراوساتئی مطلب دادې چه په صفونو کښې څوك په اوچت ځائی دې څوك ښکته یا امام پورته دې مقتدیان لاندې دی په کوم سره چه به دَ بعضو ځټ اوچت اودَ بعضو ځټ ښکته پاتې کیږی.

**قوله: الْحَذَفُ:**

**دحذف په مصداق کښې دوه اقوال: -**

① دَ ګډې هغه وړوکی بچی ته وائی چه بالکل تور وی دَ کوم چه نه غوږ وی او نه لکې داقسم بچی دَ حجاز او یمن دَ ګډو وی دادَ شیطان دَ اولاد پوره فوټوکاپی معلومیږی.

② په حدیث نمبر ۱۱۰۱ کښې دَ حذف تفسیر "اولادالضان الصغار" سره راوی کړې دې هغه یو مستند تفسیر دې.

**قوله: كَأَنَّهَا:**

**د کانها په ضمیر کښې تعارض: -** ① په دې روایت کښې ضمیر دَ تانیث دې

② په یوبل روایت کښې کانه ضمیر دَمذکر دې؟

**د تعارض دوه جوابونه: -** ① قاعده ده چه "زیدهاهو" یعنی که دَ لفظ زید طرف ته ضمیر راګرځوې نودَ هو ضمیر به راځی خو که هم دغه لفظ زید "كَلِمَةٌ" په معنی کښې راګرځولې نو دَ هَاء ضمیر به راځی داقاعده هرځائی جاری ده دلته به هم داسې کیږی "كأنه اي لفظ شيطان" او "كانها اي كلمة الشيطان"

② دَمذکر ضمیر دَ شیطان طرف ته راجع دې اودَ مؤنث ضمیر به اعتبار دَ خبر دې ځکه چه حذف مؤنث دې. (مرقات)

۱۰۹۴- ليمكړتيا په آخري صفت كښې

۱۰۹۴-( )[۱۰] ۱ وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ " «أَتِمُّوا الصَّفَّ الْمُقَدَّمَ، ثُمَّ الَّذِي يَلِيهِ. ۳ فَمَا كَانَ مِنْ نَقْصٍ فَلْيَكُنْ فِي الصَّفِّ الْمُؤَخَّرِ» "، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ انس رضي الله عنه راوي دي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل ۲ اولني صف پوره كړي بيا چې هغې ته نزدې وي (يعني د هغې څخه وروسته وي) هغه پوره كړي ۳ او په صف كې چې كمي پاتې شي نو هغه د ټولو څخه وروسته صف كې كيدل پكار دي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① يَلِيهِ: چه هغې ته نزدې وی. ② نَقْص: نقصان، كمې.

**تسهيلات:** -

**نوټ:** - د حديث د ترجمې څخه مطلب واضح دې.

۱۰۹۵- داولونو صفونو ثواب

۱۰۹۵-( )[۱۱] ۱ وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ۲ " «إِنَّ اللَّهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى الَّذِينَ يَلُونَ الصُّفُوفَ الْأُولَى، ۳ وَمَا مِنْ خُطْوَةٍ أَحَبُّ إِلَى اللَّهِ مِنْ خُطْوَةٍ يَمْشِيهَا يَصِلُ بِهَا صَفًّا» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ براء ابن عازب رضي الله عنه راوي دي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل ۲ كوم خلق چې اولنو صفونو ته نزدې وي په هغوئ د الله تعالى جل جلاله او د هغه فرشتي رحمت ليږي ۳ او د الله تعالى جل جلاله په نيز د هغه قدم څخه زيات محبوب هيڅ قدم نشته چې تلو سره په صف كې يو خاي شي (يعني كه په صف كې خاي خالي پاتې شوې وي نو هلته ورتلو سره ودريږي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① يَلُونَ: چه نزدې وی، ② خُطْوَة: أَيْ: يَمْشِيهَا الرَّجُلُ: قدم ته وائی. ③ يَصِلُ: يوخاي شی.

**تسهيلات:** -

**قوله:** يُصَلُّونَ عَلَى الَّذِينَ يَلُونَ الصُّفُوفَ الْأُولَى

**اشكال:** - د دې حديث نه معلوميږي چې خفګان د دريو ورځو نه زيات جائز دې. حالانكه بل حديث كښې دی ((لا يحل لمسلم ان هجر اخاه فوق ثلث)) او په دې درې ورځو نه په زياتو باندې وعيد دې.

**داشكال جواب:** - هركله چې د ترك كلام وجه دنياوي وي نو بيا د دريو ورځو نه زيات جائز

---

[1] ) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة، باب تسوية الصفوف (رقم-۶۷۱) والنسائى كتاب الإمامة /باب الصف المؤخر (رقم-۸۱۸)

[2] ) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة، باب تسوية الصفوف (رقم-۶۶۴) والنسائى كتاب الإمامة /باب كيف يقوم الإمام الصفوف (رقم-۸۱۱)

نه دی.او که د ترک کلام وجه دینی وی نو بیا د دریو ورځو نه زیات جائز دی تر کومې چې هغه کس خپله اصلاح اونه کړی.

### ۱۰۹۶- د صف ښي طرف ته د اودریدو فضیلت

۱۰۹۶-(۱)[۱۲] ① وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ: صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«إِنَّ اللّٰهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّوْنَ عَلَى مَيَامِنِ الصُّفُوْفِ»". رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د صفونو ښي طرف والا خلقو باندې الله تعالى ﷻ او د هغه فرشتې رحمت ليږي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① مَيَامِن: د مَيْمَنَة جمع ده، ښی طرف.

**تسهيلات:-**

**قوله: يُصَلُّوْنَ عَلَى مَيَامِنِ الصُّفُوْفِ:**

**دامام د ښي طرف الفضيلت:-** ددې حديث په وجه علماء کرامو ليکلی دی چې دامام ښي طرفته اودريدل دګس طرف د اودريدو څخه ډير بهتر او افضل دی.او که ګس طرف ته صف کښې خائې وی نو بيا ګس طرف ته اودريدل په دويم صف کښې د اودريدلو څخه بهتر دی.ددې وجه داده چې الله تعالى رحمت اول په رومبی صف اود امام په ښې طرف خلقو باندې نازلوی ،بيا دامام ګس طرفته ،هم په دې وجه د امام ښی طرفته اودريدل افضل دی.

### ۱۰۹۷- د صفونو برابرولو څخه وروسته مونځ شروع کول

۱۰۹۷-(۲)[۱۳] ① وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ قَالَ ② كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ يُسَوِّيْ صُفُوْفَنَا إِذَا قُمْنَا لِلصَّلَاةِ ③ فَإِذَا اسْتَوَيْنَا كَبَّرَ. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدُ

**ترجمه:** ① نعمان بن بشير رضي الله عنه فرمايي ② چې کله به مونږ خلق د لمانځه د پاره ودريدلو نو (مخکې) نبي کريم ﷺ به زمونږ صفونه (په ژبه يا لاس سره) برابرول ③ هر کله چې به صفونه برابر شو نو رسول الله ﷺ به تکبير تحريمه وئيلو (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① يُسَوِّيْ: برابرول او سيدها کول ئې.

**تسهيلات:-**

**قوله: فَإِذَا اسْتَوَيْنَا كَبَّرَ:**

**دصفونو نيغولو دريې مراد:-** ① ددې حديث نه معلوميږی چې اول به نبی کريم ﷺ خلق په

---

[1] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب من يستحب أن يلي الإمام في الصف وكراهية التأخر (رقم-۶۷۶)وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب فضل ميمنة الصف (رقم-۱۰۰۵)

[2] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب تسوية الصفوف (رقم-۶۶۵)

لاس د خلقو صفونه نيغول ،

② بيا روستو چې کله خلق پوهه شونو په خوله مبارکه به ئې ورته فرمائيل ،

③ بيا چې کله پورا واقف شو نوبيا به دفرمائيلو ضرورت نه وو بلکه خلق خپل ترخپله صفونو کښې نيغ اودريدل.

**۱۰۹۸— د صفونو برابرولو دپاره امام لره ښي اوګس طرف ته متوجه کيدل**

۱۰۹۸—()[۱۴]① وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ عَنْ يَمِينِهِ: "② اعْتَدِلُوا، سَوُّوا صُفُوفَكُمْ". ③ وَعَنْ يَسَارِهِ: "اعْتَدِلُوا، سَوُّوا صُفُوفَكُمْ"». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① انس رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم ﷺ (چې به کله مونځ شروع کولو نو مخکې به يې) خپل ښي طرف ته (متوجه کيدو سره) فرمايل ② سيده ودريږي او خپل صفونه برابر کړي ③ بيا به ګس طرف ته (هم متوجه کيدو سره يې دا) فرمايل سيده وديريږي او خپل صفونه برابر کړي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① اعْتَدِلُوا: أي: اسْتَقِيمُوا: سيدها اودريږئ. ② سَوُّوا: برابر کړئ، نيغ کړئ.

**تسهيلات:-** **قوله:** سَوُّوا صُفُوفَكُمْ:

**د صفونو برابرولو اهميت:-** دې حديث کښې دتسويت الصفوف اهميت بيان کړې شوې دې، او په دې باندې ئې دامر تاکيد کړې دې.

**۱۰۹۹— د صفونو په برابرولو کښې د نرمۍ افضليت**

۱۰۹۹—()[۱۵]① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «خِيَارُكُمْ أَلْيَنُكُمْ مَنَاكِبَ فِي الصَّلَاةِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① حضرت ابن عباس رضي الله عنهما راوي دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل ② په تاسو کې بهترين خلق هغه دي چې د هغوئ اوږې په لمانځه کې ډيرې نرمې وي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① خِيَارُكُمْ: أي: فِي الْأَخْلَاقِ وَالْآدَابِ: په تاسوکښې چه د اخلاقو او ادابو په لحاظ سره څوک غوره وی ② أَلْيَنُكُمْ: چېه تاسو کښې چې نرم خويه وی.

**تسهيلات:-**

**قوله:** أَلْيَنُكُمْ مَنَاكِبَ:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې درې اقوال:-**

① دَ صفونونيغولودپاره کله يوسړې راشی او په صف کښې ولاړسړی په صفت کښې

---

۱) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة،باب تسوية الصفوف (رقم-۶۷۰)

۲) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة،باب تسوية الصفوف (رقم-۶۷۲)

برابرولودَ پاره ډهغوی اوګې په لاس کښې نيولوسره وړاندې روستو کول غواړی نوبهترين سرې هغه دي چه خپلې اوګې دَ دغه سړی په لاس کښې ورکړی اوضد اونه کړی اوتکبراوه کړی دي دَپاره چه هغه سړې په بهترطريقه باندې صف نيغ کړی دا مفهوم په ټولوکښې غوره اوراجح معلوميږی.

② په مانځه کښې ښه خشوع اوخضوع سره اوګې نرمې او ټيټې ساتنی دامطلب څه لږې معلوميږی.

③ که په مانځه کښې ځانی تنګ وی نودَ نوی راتلونکی مونځ ګذاردَپاره يا خواکې اودريدونکی ملګری دَپاره خپلې اوګې نرمې کړنی او په اوګو او ځنګلوباندې ملګروته ديکې مه ورکوئی دامطلب هم ډيرښه دي بعض نادانان دا نادانی کوی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**۱۱۰۰–دامام مقتديانوته دصفونوبرابرولوتاکيد کول**

۱۱۰۰–(۱)[۱۶]① عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ② "اسْتَوُوا، اسْتَوُوا، فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، ③ إِنِّي لَأَرَاكُمْ مِنْ خَلْفِي كَمَا أَرَاكُمْ مِنْ بَيْنِ يَدَيَّ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① انس رضي الله عنه راوي دي چې نبي کريم ﷺ به فرمايل② تاسو (په لمانځه کي) برابر اودريږي برابر اودريږي برابر اودريږي او قسم دي په هغه ذات چې د هغه په قبضه کي زما ساه ده③ ځکه چې زه مخې ته تاسو وينم دغسې (د مشاهدي او مکاشفي په ذريعه) د خپل وروسته څخه هم تاسو وينم، (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① اسْتَوُوا: نيغ اودريږئ، ② مِنْ خَلْفِي: د خپل خان نه روسته (په مشاهدې سره يا په مکاشفې سره).

**تسهيلات:- نوټ:–** ددې حديث تسهيل بل ځاې کښې تفصيل سره ذکر دي.

**۱۱۰۱–داولنی صف په مقابله کښې د دويم صف د فضيلت کموالې**

۱۱۰۱–(۲)[۱۷]① وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «إِنَّ اللّٰهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى الصَّفِّ الْأَوَّلِ "، ③ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! وَعَلَى الثَّانِي؟ ④ قَالَ: " إِنَّ اللّٰهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى الصَّفِّ الْأَوَّلِ "، ⑤ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! وَعَلَى الثَّانِي؟ ⑥ قَالَ: إِنَّ اللّٰهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى الصَّفِّ الْأَوَّلِ "،

**ترجمه:** ① حضرت ابو امامه رضي الله عنه راوي دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل② الله تعالی جل جلاله

---

[1] اخرجه النسائی کتاب الإمامة /باب کم مرة يقول استووا (رقم-۸۱۳)

[2] اخرجه احمد فی المسند ۹۶۲/۵

او د هغه فرشتي په اولني صف والا باندې رحمت ليږي۳ (د دې په اوريدو سره) صحابه ؤ ﷺ عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ په دويم صف والا هم (يعني دا وفرمايه چې په اولني او دويم صف باندې هم رحمت ليږي خو)۴ حضور ﷺ (دا ځل هم د دويم صف ذكر ونه كړو بلكه) وي فرمايل چې الله تعالى ﷻ او د هغه فرشتي په اولني صف باندې رحمت ليږي۵ صحابه ؤ ﷺ عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ او دويم صف باندې هم ۶ حضور ﷺ بيا دا وفرمايل چې الله تعالى ﷻ او د هغه فرشتي په اولني صف رحمت ليږي

۱قَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! وَعَلَى الثَّانِي؟ قَالَ: " وَعَلَى الثَّانِي۲ " وَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " سَوُّوا صُفُوفَكُمْ، وَحَاذُوا بَيْنَ مَنَاكِبِكُمْ،۳ وَلِينُوا فِي أَيْدِي إِخْوَانِكُمْ،۴ وَسُدُّوا الْخَلَلَ،۵ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَدْخُلُ فِيمَا بَيْنَكُمْ بِمَنْزِلَةِ الْحَذَفِ» "۶ يَعْنِي أَوْلَادَ الضَّأْنِ الصِّغَارِ. رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:**۱ صحابه ؤ ﷺ عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ او په دويم صف باندې هم (الله تعالى ﷻ او د هغه فرشتي رحمت ليږي) رسول الله ﷺ وفرمايل اوپردويم صف باندې هم،۲ بيا رسول الله ﷺ دا وفرمايل چې خپل صفونه برابر كړي او خپلي وږي اواري لري (يعني په يوه سطح او په هموار ځاي باندې ودريږي شكته او پورته كيدو سره مه اودريږي)۳ او د خپلو ورونو د لاسونو مخكې نرم اوسيږي (يعني كه يو سړي په اوږه لاس اينبودلو سره تا په صف كې برابر كړي نو دې ځخه انكار مه كوه بلكه برابر شه)۴ او په صفونو كې خلا مه پيدا كوئ۵ ځكه چې شيطان د حذف پشان ستاسو په مينځ كې راننوځي۶ يعني د پسه د وړوكي بچي پشان، احمد.

**حل اللغات:**- ① وَحَاذُوا: دا دَ محاذات نه دې دَ برابرئې په معنى كښې دې يعنې ستونه او اوګې يوبل سره نيغې ساتئې دادَ وړاندې روستوكيدو ممانعت دې. ② لِينُوا: نرم اوسيږئ، نرم شئ، ③ سُدُّوا: بند كړئ. ④ الْخَلَلَ: خالي والې، خلا، ⑤ الْحَذَفِ: يَعْنِي أَوْلَادَ الضَّأْنِ الصِّغَارِ: د ګډې وړوكي بچې. ⑥ الضَّأْنِ: ګډه.

**تسهيلات:**-

**قوله: وَعَلَى الثَّانِي:**

**د دويم صف فضيلت:**- دې ته عطف تلقين وائى يعنى صحابه كرام دَ حضورپاك ﷺ توجه دَ دويم صف دَ فضيلت طرف ته راګرحول غواړى چه يا رسول الله ﷺ دَ اول صف فضيلت خوتاسو بيان كړودَې دويم صف فضيلت هم بيان كړئې چه الله تعالى په دويم صف باندې هم رحمت راليګى بياحضوراكرم په دريم ځل باندې دَ دويم صف فضيلت هم بيان كړو.

**قوله: مَنَاكِبِكُمْ:**

**د مناكب د تكرار وجه:**- دلتـه دَاوګوذكر بار بار راغلې دې په بعض رواياتوكښې دَ قدمونوهم ذكر راغلې دې اصل خبره داده چه كه دَ انسان دَ بدن هغه حصه معلومول وى

د کوم نیغولو او برابرولو سره چه ټول انسانان برابر اودریږی نو هغه دَ انسان اوګې اودَخپو ګیټې دی. دا هغه اندامونه دی چه که دا برابر شی نو پوره صف به نیغ شی. دَ انسان دَخپو وړاندې او روستو حصوسره صف نه نیغیږی ځکه چه دَ چا خیې اوږدې وی دَ چا وړې وی لیکن ګیټې داسې په مینځ کښې واقع دی چه دَ دې برابر کیدوسره ټول اندامونه برابریږی.

**۱۱۰۲- په جماعت کښې اوږې برابرول**

۱۱۰۲-()[۱۸] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② " «أَقِيمُوا الصُّفُوفَ، وَحَاذُوا بَيْنَ الْمَنَاكِبِ، ③ وَسُدُّوا الْخَلَلَ، ④ وَلِينُوا بِأَيْدِي إِخْوَانِكُمْ، ⑤ وَلَا تَذَرُوا فُرُجَاتِ الشَّيْطَانِ، ⑥ وَمَنْ وَصَلَ صَفًّا وَصَلَهُ اللهُ، ⑦ وَمَنْ قَطَعَهُ قَطَعَهُ اللهُ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَرَوَى النَّسَائِيُّ مِنْهُ قوله ومن وصل صفا إلى آخره

**ترجمه:** ① حضرت ابن عمر رضی الله عنهما راوي دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل ② صفونه سيده کړي د خپلو وږو په مينځ کې همواري (آوارتيا) وساتي ③ د صفونو خلا ډکه کړي ④ د خپلو ورونو په لاسونو کې نرم اوسي (يعني که يو سړي تاسو لاس نيولو سره په صف کې مو برابر وي نو د هغه دا خبره مني) ⑤ او په صفونو کي د شيطان د پاره خلا (خالي ځاي) مه پريږدي ⑥ او وي فرمايل کوم سړي چې صف يو ځاي کړي (يعني په صف کې په خالي ځاي ودريدلو) نو الله تعالی جل جلاله به هغه (د خپل فضل او رحمت سره) يو ځاي کړي ⑦ او (ياد ساتي) کوم سړي چې صف مات کړي نو الله تعالی جل جلاله به هغه مات کړي (يعني د مقام قرب ځخه به يي لرې کړي) ابوداؤد، او نسايي دا حديث د مَنْ وَصَلَ صَفًّا ځخه تر آخره پورې نقل کړي دي (يعني د نسايي په روايت کې د مَنْ وَصَلَ صَفًا ځخه مخکې عبارت نشته).

**حل اللغات:-** ① أَقِيمُوا: أَيْ: عَدِّلُوهَا وَسَوُّوهَا: سيدها او برابر کړئ ② وَحَاذُوا: دا دَ محاذات نه دې دَ برابرئی په معنی کښې دې يعنی ستونه او اوګې يوبل سره نيغې ساتئی دادَ وړاندې روستوکيدو ممانعت دې ③ لاتَذَرُوا: أَيْ: لَاتَتْرُكُوا: مه پريږدئ ④ فُرُجَاتِ: د فُرْجَة جمع ده، خالی ځای ⑤ وَصَلَ: يو ځای کړی (يعنی خالی ځای بند کړی) ⑥ قَطَعَهُ: مات ئې کړی (يعنی صف کښې خالی ځای پريږدی).

**قوله: "وَمَنْ وَصَلَ صَفًّا" إِلَى آخِرِهِ.**

**تسهيلات:-**

**قوله: وَمَنْ وَصَلَ صَفًّا وَصَلَهُ اللهُ**

**د مذکوره جملې وضاحت:-** کوم چه صف يوځائې کړی الله پاک به هغه د خپل رحمت سره يوځائې کړی، د يوځائې کولو يو صورت دا دې چه په مينځ کښې که چرته خلل وی نو هغه دې ختم کړی يا وړاندې صف ناقص وی په هغې کښې د يو يا دوه سړو ګنجائش وی نو

[1]) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة رقم الحديث ۶۶۶ والنسائی فی السنن رقم الحديث ۸۱۹

هغه دې پوره کړي.

**قوله:** وَمَنْ قَطَعَهُ صَفًّا قَطَعَهُ اللهُ

**دمذکوره جملې وضاحت:**- د قطع صف يو صورت دا دې چه يو سړې کوم چه په مانځه کښې شريک نه دې هغه دې د صف په مينځ کښې ناست وی يا يو سړې په صف کښې د گنجائش کيدو باوجود په دې کښې د داخليدو والامنع کړي. (افاده السندی).

**۱۱۰۳-د امام دپاره په مينځ کښې اودريدل**

۱۱۰۳-(۱)[۱۹] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«تَوَسَّطُوا الْإِمَامَ وَسُدُّوا الْخَلَلَ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① ابوهريره ﷺ راوي دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل② امام په مينځ کې ساتي (يعني صف بندي داسې کوي چې د امام ښي او گس طرف ته سړي برابر وي) او (د صف) خلا بنده کړئ. (ابوداؤد)

**حل اللغات:**- ① تَوَسَّطُوا: أي اجْعَلُوا إِمَامَكُمْ مُتَوَسِّطًا: يعنی امام د صف په مينځ کښې مخکښې ساتئ. ② سُدُّوا: بند کړئ. ③ الْخَلَلَ: خالی والې، خلا.

**تسهيلات:**-

**قوله:** اسْتَوُوا اسْتَوُوا:

**دامام په مينځ کښې د ساتلو مطلب:**- دامام په مينځ کښې د ساتلو مطلب مع تقدم الامام دې چې امام وړاندې وی او باقی مقتديان ښی او گس طرف ته برابر ولاړ وی.

**۱۱۰۴-داولنی صف څخه د روسته کيدو وعيد**

۱۱۰۴-(۲)[۲۰] ① وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "② «لَا يَزَالُ قَوْمٌ يَتَأَخَّرُونَ عَنِ الصَّفِّ الْأَوَّلِ ③ حَتَّى يُؤَخِّرَهُمُ اللهُ فِي النَّارِ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① بي بي عائشه صديقه ﷺ راوي ده چې نبي کريم ﷺ وفرمايل② څه خلق هميشه د اولني صف څخه وروسته کيږي ③ تر دې چې الله تعالی به هغوي په دوزخ کې وروسته وغورځوي. (ابوداؤد)

**تسهيلات:**- **قوله:** يَتَأَخَّرُونَ عَنِ الصَّفِّ الْأَوَّلِ:

**دحديث مطلب:**- مراد دا دې چه يو سړې مثلاً په هره نيکئی کښې سستی کوی تاخير کوی او ﴿فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَٰتِ﴾ [بقره: ۱۴۸] پرواه نه کوی نو هغه ته دهغه ددې عمل عين مطابق سزا

---

[1]) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب مقام الإمام من الصف (رقم-۶۸۱)

[2]) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب صف النساء وكراهية التأخر عن الصف الأول (رقم-۶۷۹)

ملاويږي اوهغه سزا دا ده چه داسې سړې په ټولو نيکوکښې شاته پاتې کيږي دکوم اثرچه دا وى چه دا سړې به آخر دوزخ ته ځى. يعنى آخركار دا سړې به دَ دوزخ والوته اورسيږى هم دغه مطلب زيات واضحه دې.

**دحديث مصداق:** -په ظاهره داسې معلوميږى چه دَدې حديث وعيد دَمنافقانودَپاره وو دچاچه هم دغه عادت وو اودَ نفاق په وجه به ئى داسې كول. لكه چه په دويم حديث كښې دى "لاياتون الى الصلوة الادبرا" او په قرآن پاك كښې دى ﴿ وَاِذَاقَامُوْٓااِلَى الصَّلٰوةِقَامُوْاكُسَالٰى ﴾ [نساء الايه: ١٤٢] دَدې توجيه ځكه ضرورت دې چه ټول مسلمانان خو په رومبې صف كښې اودريدې نه شى آخردَ صحابه كرامو په دوركښې به هم خلق په اتم او لسم صف كښې اودريدل.

**١٠٥-د صف ځخه وروسته ديوازې اودريدو ممانعت**

١٠٥-( )[٢١] [١] وَعَنْ وَابِصَةَ بْنِ مَعْبَدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [٢] «رَأَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا يُصَلِّي خَلْفَ الصَّفِّ وَحْدَهُ، [٣] فَأَمَرَهُ أَنْ يُعِيدَ الصَّلَاةَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، [۴] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ.

**ترجمه:** [١] وابصه بن معبد رضي الله عنه فرمايي [٢] چې (يوه ورځ) نبي كريم ﷺ يو سړي وليدلو چې هغه د صف ځخه وروسته يوازې (ولاړوو) مونځ يي كولو [٣] حضور ﷺ هغه ته دوباره د لمانځه حكم وركړو، ابوداؤد ترمذي، [۴] امام ترمذي رحمه الله وايي چې دا حديث حسن دي.

**تسهيلات:** -

**قوله:** أَنْ يُعِيدَ الصَّلَاةَ:

**د صف ځا ته انفراداً د مونځ كولو په حكم كښې مذاهب:** -

په مخكى صف كښې دَ ځائى كيدو سره يوسړې په پوره مونځ ځان له صف كښې شاته اودريدو سره مونځ كوى نودَ هغه مونځ به كيږى كه نه؟ په دې باره كښې دَ علماؤ اختلاف دې.

① امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائى چه دَ دغه سړى مونځ اونه شو لهذا دَ مونځ فاسد كيدو دَ وجې نه دې دا سړې مونځ راؤګرځوى.

② ائمه ثلاثه يعنى جمهور فرمائى چه داسې كول مكروه تحريمي دى دَ دې سړي مونځ خو اوشو ليكن دَ كراهت تحريمى دَ وجې نه راګرځول دى كه استحباباً وى او كه لزوماً وى.

**داول فريق دليل:** - زير بحث حديث د وابصه رضي الله عنه د دوى مستدل دې په كوم كښې چه واضحه الفاظ دى چه مونځ دې راؤګرځوى لهذا اعاده په وجه دَ بطلان صلوة ده.

---

[١] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب الرجل يصلى وحده خلف الصف (رقم-٦٨٢) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فى الصلاة خلف الصف وحده (رقم-٢٣١)

**د اول فريق د دليل جوابونه :-**

① په دې حديث کښې امام ترمذي رحمه الله د اضطراب ذکر کړې دې. علامه ابن رشد مالکي رحمه الله اوفرمائيل چه په دې حديث کښې اضطراب دې لهذا قابل د استدلال نه دې.

② که چرې اعاده د امام احمد رحمه الله او اسحاق رحمه الله په نيز شته دې نو نور ائمه هم د اعادې خبره کوی لهذا داحديث دهغوی په مخالفت کښې نه شی پيش کيدې. البته د اعادې نوعيت او حيثيت جدا جدا دې. امام احمد رحمه الله او اسحاق رحمه الله په نيز دا اعاده د بطلان صلوة د وجې نه ده او د جمهورو په نيز د کراهت تحريميه د وجې نه ده. بهرحال اعاده خوده که هغه د هرې وجې نه وی.

صاحب د هدايه ليکلی دی چه د کراهت د وجې نه هم د مونځ اعاده کيږی.

③ دلته د اعادې حکم په توګه د زجر، تشديد او په توګه د توبيخ او تهديد دې. شيخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې فرمائی چه دا اختلاف هغه وخت دې کله چه يو سړې پوره مونځ صف پسې شاته اوکړی او په صف کښې چه کوم خالی ځائی دې هغې ته لاړنه شی. ليکن که هغه نيت د صف نه بهر اوکړو او بيا په مزه مزه په صف کښې شامل شو نو د داسې سړی دپاره د اعادې حکم نه دې. [اشعة المعات: ۵،۸]

**د دويم فريق دليل :-** د حضرت ابوبکر رضی الله عنه روايت د دوی مستدل دې چه په باب الموقف کښې فصل اول حديث نمبر ۵ دې کوم چه بخاری شريف ذکرکړې دې. په دې کښې ذکر دی چه حضرت ابوبکر رضی الله عنه د صف نه بهر دروازې سره نيت اوکړو اود رکوع په حالت کښې راتيرشو په صف کښې شامل شو مګر حضورپاک صلی الله عليه وسلم ورته د اعادې حکم ورنه کړو.

**د فتاوی ظهيريه فتوی :-** فتاوی ظهيريه کښې داحنافو دعلماؤ دمسلك مطابق داسې تفصيل دې چه مخکښې صف ډك شوې وی او يو سړې روستو راشی نو هغه له پکار دی چه د يو بل کس د راتلو انتظار دې اوکړی که چرې د رکوع پورې څوك رانغلو نودا سړې دې د مخکينی صف نه څوك راکاږی او مونځ دې اوکړی البته که د فتنې خطره وی نوڅوك دې نه راکاږی بلکه خان له دې اودريږی او مونځ دې اوکړی مونځ ئې اوشو. ليکن که د دې امورو خيال اونه ساتلې شی نو مونځ به ئې مکروه وی.

**دمحدث بنوری قول :-** محدث العصر علامه محمديوسف بنوری رحمه الله د علماؤ فتوی نقل کړې ده چه د نن صبا دور کښې د فساد د زمانې د وجې نه اود علم دکموالی اود جهل د غلبې د وجې نه دا بهتر ده چه سړې دې خان له اودريږی څوك دې نه راکاږی ګنی په مونځ کښې به جګړه شروع شی.

# [۴۱/۲۵] بَابُ الْمَوْقِفِ

## په مونځ كښې د اودريدو بيان

**خلاصة الباب :-**

**فيه أحد عشر حديثاً مشتملة على تسع مسائل:**

① مقام قيام الواحد خلف الإمام : ۱، ۲، ۴.

② مقام قيام المراءة خلف الإمام : ۳، ۴.

③ مقام قيام الغلمان خلف الإمام : ۱۰.

④ مقام قيام الإثنين خلف الإمام : ۲، ۶۲.

⑤ الشروع في الصلاة قبل الوصول إلى الصف : ۵.

⑥ عدم قيام الإمام فى مكان أرفع من المأموم: ۷.

⑦ جواز القيام على المنبر للتعليم: ۸.

⑧ وقوف الإمام فى الحجرة : ۹.

⑨ قرب أولى الأحلام إلى الإمام : ۱۱.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۱۱۰۶] د يو مقتدي په صورت كښې د جمعې د مونځ طريقه

۱۱۰۶—()[۱] [۱] «عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [۲] بِتُّ فِي بَيْتِ خَالَتِي مَيْمُونَةَ، فَقَامَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي، [۳] فَقُمْتُ عَنْ يَسَارِهِ، [۴] فَأَخَذَ بِيَدِي مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِهِ فَعَدَلَنِي [۵] كَذٰلِكَ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِهِ إِلَى الشِّقِّ الْأَيْمَنِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] عبد الله ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي [۲] چې ما د خپلې ترور (خاله، د مور خور) ام المؤمنين بي بي ميمونه رضي الله عنها سره شپه تيره كړه كوم وخت چې نبي كريم ﷺ د تهجد د پاره ودريدلو [۳] نو زه هم د حضور ﷺ كس طرف ته ودريدم [۴] حضور ﷺ د خپل د شاه طرفه زما لاس نيولو سره داسې وګرځولم [۵] چې زه يي د خپل د شا طرفه ښخه راوستو سره

[۱]) اخرجه البخارى كتاب الاذان/باب: يقوم عن يمين الإمام، بحذائه سواء إذا كانا اثنين (رقم-۶۹۷) ومسلم فى كتاب صلاة المسافرين/- باب الدعاء فى صلاة الليل وقيامه (رقم) ۱۹۲ - (۷۶۳) وابوداود كتاب الصلاة،باب الرجلين يؤم أحدهما صاحبه كيف يقومان (رقم-۶۱۰) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الرجل يصلى ومعه رجل (رقم-۲۳۲) والنسائى كتاب الإمامة/باب الجماعة إذا كانوا اثنين (رقم-۸٤۲) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/بباب الاثنان جماعة (رقم-۹۷۳) والدارمى كتاب الصلاة /بباب: مقام من يصلى مع الإمام إذا كان وحده (رقم-۱۲۹۰)

بني طرف ته ودرولم. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات**:- ① بِتُّ: أَيْ: رَقَدْتُ: شپه مې تيره کړه. ② فَعَدَلَنِي: أَيْ: أَمَالَنِي، وَصَرَفَنِي: راوئې گرځولم، راتاؤ ئې کړم. ③ الشِّقِّ الأَيْمَنِ: ښى طرف.

**تسهیلات**:- **قوله: فَأَخَذَ بِيَدِي**:

اکثر روایاتو کښې راغلي دي چه د غوږونه نيولوسره ئې راتاؤکړو.

**د حدیث څخه مستنبط مسئلې**:-

① د مقتدي د پاره د امام نه مخکښې کيدل منع دي سره د دې چه د څه وخت د پاره وي ځکه چه حضور پاک ﷺ محبت کولوسره حضرت ابن عباس رضی الله عنهما شا ته طرف ته تاوولوسره ښى طرف ته کړو.

② د داسې سړي اقتدا کول جائز دي کوم چه په شروع کښې د جمع اراده نه وي کړې او اوس ئې اراده اوکړه.

③ بغير د تداعي په غيرارادي توګه باندې د نفلو جمع جائز ده.

④ په مونځ کښې عمل قليل کولې شي.

⑤ که چرې امام سره په جمع کښې صرف يو مقتدي وي نوهغه له امام پسې شاته ګس طرف ته نه دي اودريدل پکار بلکه ښى طرف ته دې اودريږي.

**[۱۱۰۷] د درې کسانو د جمعې کيفيت**

۱۱۰۷-(۲)[1] ① وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «قَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيُصَلِّيَ، ③ فَجِئْتُ حَتَّى قُمْتُ عَنْ يَسَارِهِ، ④ فَأَخَذَ بِيَدِي فَأَدَارَنِي حَتَّى أَقَامَنِي عَنْ يَمِينِهِ، ⑤ ثُمَّ جَاءَ جَبَّارُ بْنُ صَخْرٍ، فَقَامَ عَنْ يَسَارِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ⑥ فَأَخَذَ بِيَدَيْنَا جَمِيعًا، فَدَفَعَنَا حَتَّى أَقَامَنَا خَلْفَهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ① حضرت جابر رضی الله عنه فرمايي ② (يو ځل) نبي کريم ﷺ د لمانځه کولو د پاره ودريدلو ③ نو زه هم راغلم او ګس طرف ته يې ودريدم ④ حضور ﷺ (خپل د شا څخه يې) زما (ښي) لاس ونيولو او (د خپل د شا د طرف څخه يې زه راوستو سره) خپل ښي طرف ته ودرولم ⑤ بيا جبار ابن صخر رضی الله عنه راغي او د حضور ﷺ ګس طرف ته ودريدلو ⑥ حضور ﷺ زمونږ د دواړو لاسونه يو ځاي ونيول (يعني په خپل ښي لاس سره يې د يو ګس لاس ونيولو او خپل ګس لاس سره يې د دويم ښي لاس ونيولو) او مونږ يې (د خپل خپل ځاي څخه) اخوا کولو سره خپل شاته ودرولو. (مسلم)

**حل اللغات**:- ① فَأَدَارَنِي: أَيْ: أَمَالَنِي، وَصَرَفَنِي: راوئې ګرځولم، راتاؤ ئې کړم (د ګس طرف نه ښي طرف ته). ② فَدَفَعَنَا: أَيْ: أَخَّرَنَا: مونږه ئې روسته کړو.

[1] اخرجه مسلم فى كتاب صلاة المسافرين/ باب الدعاء فى صلاة الليل وقيامه (رقم) ۱۸۱ - (۷۶۳)

**تسهيلات:-**

**قوله:- فَدَفَعَنَا حَتّٰى أَقَامَنَا خَلْفَهُ:**

**د دوؤ مقتديانو داودريدو مقام:-** كه چرې مقتدى صرف يووى نودَهغه خبره خو وړاندې معلومه شوه ليكن كه مقتديان دوه وى نودَ څه حضراتو خيال دې چه امام دې په مينځ كښې اودريږى اوښى اوګس طرف ته دې دواړه مقتديان اودريږى. خو په دې حديث سره په واضحه توګه دامسئله معلومه شوه چه دا دواړه به امام پسې شاته اودريږى.

**په نفلوكښې سهولت:-** دَدې حديث نه داهم معلومه شوه چه په يوځائى په مانځه كښې دواړو لاسونوته حركت وركول جائزدى خودا دَ نوافل خبره ده په كوم كښې چه سهولت دې حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دَ علقمه رضي الله عنه او اسود رضي الله عنه په مينځ كښې اودريدو مونځ ئى وركړو كيدې شى چه ځائى تنګ وى يابه بل څه عذر وى دا يوه جزئى واقعه ده مسنون طريقه نه ده.

**[۱۱۰۸] د سړى ، ماشوم او ښځې د جمعې ترتيب**

۱۱۰۸-()[۳] ۱ «وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ۲ صَلَّيْتُ أَنَا وَيَتِيمٌ فِي بَيْتِنَا خَلْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ۳ وَأُمُّ سُلَيْمٍ خَلْفَنَا.» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ انس رضي الله عنه فرمايي ۲ چې ما او يتيم په خپل مكان كې د نبي كريم ﷺ شاته مونځ (د جماعت سره) وكړو ۳ او ام سليم رضي الله عنها زمونږ وروسته وه. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① يَتِيمٌ: اسْمُ عَلَمٍ لِأَخِي أَنَسٍ: دَحضرت انس رضي الله عنه دَ رور نوم يتيم وو بعض وئيلى نوم ئى ضميره وو په يتيم باندې مشهوروو

**تسهيلات:- قوله: أُمُّ سُلَيْمٍ**

**دام سليم تعارف:-** دَ حضرت انس رضي الله عنه دَ مور نوم دې په يوروايت كښې "العجوزورائنا" الفاظ هم دى مراد هم اوم سليم رضي الله عنها ده دا بى بى دَرسول الله ﷺ رضاعى ترور يا ماسى وه.

**دښځو دسړو څخه روسته اودريدل:-** دَدې حديث نه معلومه شوه كه مقتديان ښځې اوسړى مشترك وى نودَ ښځو صف شاته ځان له پكاردې كه هغه ښځې دَ محارم نه ولې نه وى.

**دښځې د سړوپه مينځ كښې اودريدوسره د سړو دمونځ په فسادكښې اختلاف:-**

① كه ښځې دَ سړو په صف كښې اودريدې دَ ائمه ثلاثه په نيزبه مونځ نه باطل كيږى. امام كه دَښځودَ امامت نيت اونه كړو نودَښځومونځ به فاسد شى.

② دَامام ابوحنيفه رحمه الله طرف ته منسوب دې چه په مذكوره صورت كښې دَهغوى په نيز دَ ښځې ښى اوګس اودَهغې شاته يعنى دَدريو كسانو مونځ به باطل شى مګر دَښځې خپل مونځ به صحيح شى.

[1] اخرجه البخاري في كتاب الاذان/باب: المرأة وحدها تكون صفا (رقم-۷۲۷)

**[۱۱۰۹] د جمعې په مونځ کښې د ماشوم او ښځې د اودریدو مقام**

۱۱۰۹-(۱)[۴] ۱ (وَعَنْهُ) «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى بِهِ وَبِأُمِّهِ أَوْ خَالَتِهِ، ۲ قَالَ: فَأَقَامَنِي عَنْ يَمِينِهِ، ۳ وَأَقَامَ الْمَرْأَةَ خَلْفَنَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ انس رضی الله عنه څخه روایت دي چې (یو ځل) نبي کریم ﷺ انس رضی الله عنه او د هغه مور (ام سلیم رضی الله عنها) یا ترور (خاله، د مور خور) سره مونځ وکړو ۲ انس رضی الله عنه وايي (په دي موقع) حضور ﷺ زه خپل ښي طرف ته ودرولم ۳ او ښځه (یعني د هغه مور یا خاله) یې زمونږ وروسته ودروله. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① خَالَتِهِ: ترور (د مور خورته خاله وائی).

**تسهیلات:-**

**قوله:** فَأَقَامَنِي عَنْ يَمِينِهِ، وَأَقَامَ الْمَرْأَةَ خَلْفَنَا:

**دسړی او ښځې په یو امام پسې د اقتداء کیفیت:**-ددې حدیث نه معلوم شو چې که یو سړی او یوه ښځه وی نو سړی به ښی طرف ته او ښځه به روستو اودریږی.

**[۱۱۱۰] په روانه په رکوع کښې د امام سره د شرکت کولو مما نعت**

۱۱۱۰-(۲)[۵] ۱ وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ: «أَنَّهُ انْتَهَى إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ رَاكِعٌ، ۲ فَرَكَعَ قَبْلَ أَنْ يَصِلَ إِلَى الصَّفِّ، ثُمَّ مَشَى إِلَى الصَّفِّ. ۳ فَذَكَرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ۴ فَقَالَ: "زَادَكَ اللَّهُ حِرْصًا، وَلَا تَعُدْ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ۱ د ابوبکره رضی الله عنه په باره کې روایت دي هغه (یو ځل په لمانځه کې شاملیدو د پاره) حضور ﷺ ته په داسې وخت کې ورسیدو چې حضور ﷺ په رکوع کې وو ۲ هغه (د دي خبري په خاطر چې رکوع ځیني لاړه نشي د نیت او تکبیر تحریمه څخه وروسته) صف ته د رسیدو څخه مخکې رکوع ته لاړو بیا په آرام آرام تلو سره په صف کې شامل شو ۳ حضور ﷺ ته د دې واقعي ذکر وشو ۴ نو حضور ﷺ هغه ته وفرمایل الله تعالی جل جلاله دي (د اطاعت او نیک کار په باره کي) ستا حرص نور هم زیات کړي لیکن آئنده د پاره داسې مه کوه. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① حِرْصًا: أي الْمُبَادَرَةِ إِلَى الْعِبَادَةِ: لالچ د عبادت او اطاعت. ② لَا تَعُدْ: دَ باب نصر ینصر نه، د عود نه دي واپس راګرځیدوته وائی أي: لَا تَفْعَلُهُ مِثْلَ مَا فَعَلْتَهُ ثَانِيًا: یعنی بیا داسې کار مه کوه.

**تسهیلات:-**

**قوله:** فَرَكَعَ قَبْلَ أَنْ يَصِلَ إِلَى الصَّفِّ:

[۱] اخرجه النسائی کتاب الإمامة/باب إذا کانوا رجلین وامرأتین (رقم-۸۰۳)
[۲] اخرجه البخاری فی کتاب الاذان/ باب إذا رکع دون الصف (رقم-۷۸۳)

**د ابوبکرة رضی الله عنه رکعت رالاندې کولو کښې جلتی کول:** -یعنی دغه وخت په صف کښې شامل شوې نه وو مګر دَ جمع حاصلولو په غرض جماعت ته داخل شو اوهم دَ دغه خائی رکوع ته لاړو او بیا دَ رکوع په حالت کښې په تلو تلو سره صف کښې شامل شو. دا کار حضرت ابوبکرة رضی الله عنه حضور پاك سره دَ مونځ کولو دوران کښې اوکړو اوبیا ئې دَ حضورپاك ﷺ نه دَ مسئلې تپوس اوکړو. حضورپاك ﷺ مونځ خو صحیح اوګرځولو لیکن دَدې عمل کولو نه ئې دوباره منع کړو.

**دحدیث څخه د دوؤ مسئلو استنباط:** -

① امام پسې فاتحه لوستل فرض یا واجب نه دی که چرې داسې وې نو حضورپاك ﷺ به دغه صحابی ته حکم کولوچه ورشه مونځ راؤګرځوه حالانکه دغه صحابی فاتحه نه ده وئیلې او دَ وئیلو وخت ورسره چرته وو؟

بله دا چه شوافع حضرات هم وائی چه په رکوع کښې یومقتدی امام سره شریك شو نوهغه دا رکعت حاصل کړو مونږ وایو چه که هغه رکعت حاصل کړو نو فاتحه ئې کوم وخت اووئیله؟ اومونځ ئې څنګه صحیح شو؟ معلومه شوه چه په مقتدی باندې فاتحه وئیل فرض نه دی.

② خان له صف کښې شاته اودریدو سره مونځ فاسد کیږی نه لکه چه اول دَ جمهورو مسلك بیان کړې شوې دې.

**توله:** وَلَا تَعُدْ:

**د لاتعد په مفهوم کښې درې اقوال:** -

① یعنی دوباره داسې مه کوه څکه چه په دې کښې دَ صف نه جدا اودریدل لازم راځی بیا دَ رکوع په حالت کښې تلل دی. دا مطلب زیات واضح اومناسب دې.

② دا لفظ دَ باب افعال نه هم کیدې شی کوم چه دَ اعادې په معنی کښې دې یعنی دَ مونځ راګرځولو ضرورت نشته دې مه ئې راګرځوه.

③ دا لفظ عدا یعدو نه هم دې چه دَمنډې په معنی کښې دې یعنی داسې منډې وهلوسره په صف کښې دَ شاملیدو کوشش مه کوه. بلکه په وقار او سکون سره راشه ثواب خو ملاویږی بیا دَ منډې وهلو فائده څه ده.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۱۱۱۱] د دریو کسانو د جمعې کیفیت

۱۱۱۱-()[٦] ⓵ عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ⓶ «أَمَرَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كُنَّا

[1]) اخرجه الترمذي كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الرجل يصلي مع الرجلين (رقم-۲۳۳)

ثَلَاثَةً أَنْ يَتَقَدَّمَنَا أَحَدُنَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:**[۱] سمرة ابن جندب رضي الله عنه فرمايي[۲] چې نبي كريم ﷺ مونږ ته دا حكم راكړي دي چې هر كله مونږ دري سړي (لمونځ كونكي) يو نو په مونږ كې دي يو سړي (چې په مونږ كې بهتر وي) زمونږ نه مخكې شي (يعني زمونږ امام دي جوړ شي). (ترمذي)

**تسهيلات:** -

**نوټ:** د ترجمې څخه مطلب واضح دي.

**[۱۱۱۲] د امام د پاره يواځې په اوچت ځائي د اودريدو كراهت**

۱۴-()[۷][۱] وَعَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ أَنَّهُ أَمَّ النَّاسَ بِالْمَدَائِنِ،[۲] وَقَامَ عَلَى دُكَّانٍ يُصَلِّي وَالنَّاسُ أَسْفَلَ مِنْهُ،[۳] فَتَقَدَّمَ حُذَيْفَةُ فَأَخَذَ عَلَى يَدَيْهِ،[۴] فَاتَّبَعَهُ عَمَّارٌ حَتَّى أَنْزَلَهُ حُذَيْفَةُ،[۵] فَلَمَّا فَرَغَ عَمَّارٌ مِنْ صَلَاتِهِ، قَالَ لَهُ حُذَيْفَةُ:[۶] أَلَمْ تَسْمَعْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:[۷] "«إِذَا أَمَّ الرَّجُلُ الْقَوْمَ فَلَا يَقُمْ فِي مَقَامٍ أَرْفَعَ مِنْ مَقَامِهِمْ، أَوْ نَحْوَ ذَلِكَ»"؟

**ترجمه:**[۱] د حضرت عمار رضي الله عنه په باره كې روايت دي چې هغه (يوه ورځ) په مداين كې (چې كوفي ته نزدې يو ښار دي) د خلقو امامت وكړو[۲] نو هغه مونځ وركولو د پاره په يوه دوكانچه (چبوتره) ودريدلو مقتديان د هغه څخه لاندې ولاړ وه[۳] (دې ليدو سره) حضرت حذيفه رضي الله عنه (د صف څخه وتلو سره) ورمخكې شو او عمار رضي الله عنه يې د دواړو لاسونو څخه ونيولو (او هغه يې لاندې طرف ته راښكلو چې هغه د لوړي (پورته) څخه ښكته شي د مقتديانو برابر ودريږي)[۴] عمار رضي الله عنه د حذيفه رضي الله عنه سره څه اختلاف ونه كړو نو حذيفه رضي الله عنه هغه د اوچت ځائې (لوړي) څخه راښكته كړو[۵] عمار چې لمانځه كولو څخه فارغ شو نو حذيفه رضي الله عنه هغه ته اوويل[۶] آيا تا دا نه دي اوريدلي چې نبي كريم ﷺ فرمايلي دي[۷] هر كله چې يو سړي د يو جماعت امام جوړ شي نو هغه دې په هغه ځاي نه دريږي چې د مقتديانو د ودريدو د ځاي څخه اوچت وي يا د دې په شان الفاظ يې وفرمايل.

**حل اللغات:** - ① دُكَّانٍ: هِيَ الْمَكَانُ الْأَعْلَى: اوچت ځائ ته وائي.

[۱] فَقَالَ عَمَّارٌ:[۲] لِذَلِكَ اتَّبَعْتُكَ حِينَ أَخَذْتَ عَلَى يَدَيَّ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:**[۱] عمار جواب وركړو[۲] ځكه خو كله چې تا زما لاس ونيولو نو ما ستا اتباع (پيروي) وكړله (يعني څه مخالفت مې ونكړو ستا خبره مې ومنله او ښكته شوم). (ابوداؤد)

**تسهيلات:** -

**قوله:** أَمَّ النَّاسَ بِالْمَدَائِنِ:

**دحديث پس منظر:** -دا دَ حكومت ساساني اوكسرىٰ دَفارس دارالخلافه وه كوم چه په

[۱]) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب الإمام يقوم مكانا أرفع من مكان القوم (رقم-۵۹۸)

قصرابيض سره يادولې شوه. حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه دا فتح کړه اودکسری په هغه سرکاری پارليمنټ کښې ئی دَ جامع مسجد بنياد کيخودو او په دغه علاقه کښې ئی رومبې جمعه اداکړه. تر نن پورې دا مسجد جامع مدائن په نوم باندې قائم دې. حضرت عماربن ياسر رضی الله عنه دَمدائن په يومقام کښې جمع کوله نوحضرت حذيفه بن اليمان رضی الله عنه چه دَ فارس ګورنروو هغه هم هلته وو.

**قوله:وَقَامَ عَلَى دُكَّانٍ يُصَلِّي وَالنَّاسُ أَسْفَلَ مِنْهُ:**

حضرت عمار بن ياسر رضی الله عنه چرته په اوچت ځائی باندې مونځ ورکول غوښتل پخپله پاس وو اومقتديان لاندې وو. حضرت حذيفه رضی الله عنه وروړاندې شو اوهغه ئی دَ لاس نه اونيولو راښکته ئی کړو. ممکن ده چه هغه تردغه وخته پورې نيت نه وو تړلې البته اراده ئی کوله چه حضرت حذيفه رضی الله عنه هغه دَ لاس نه اونيولوراښکته ئی کړو. ليکن دَدې حديث دَ الفاظو اندازه داسې ده چه حضرت عمار رضی الله عنه نيت کړې وو.

شيخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې فرمائی "فأخذعلى يديه" اي جرحذيفة عمارامن خلف ظهره بنزله، شاته دَ ملانه نيول او دَ پوندو په مخ راښکل دَدې خبرې دليل دې چه هغه مونځ قائم کړې وو او په اوچت ځائی اودريدل مکروه وو په دې وجه حذيفه رضی الله عنه لاندې راکوز کړو.

**دَ کراهت وجه:-** شيخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې په اوچت ځائی اودريدوسره دَامامت کولودَ کراهت دا وجه ليکلې ده چه په دې کښې اهل کتاب يهوداونصاریٰ سره مشابهت راځی ځکه چه هغوی به خپل امام په يوخاص اوچت ځائی باندې اودرولو. مسلمانان دَدې نه منع کړې شو خوکه په اوچت ځائی باندې امام سره څه خلق هم شريك وی نوبيا کراهت نشته دې

**د امام په ښکته ځائې کښې د اودريدو په صورت کښې دوه اقوال:-**

① که امام ښکته ولاړ وی اومقتديان اوچت اودريږی دَامام طحاوی رحمه الله خيال دې چه دا صورت مکروه نه دې ځکه چه په دې کښې اهل کتاب سره مشابهت نشته لهذا جائزدی.

② جمهور احناف فرمائی چه داصورت هم مکروه دې خو په دې کښې دکراهت وجه جدا ده اوهغه داده چه په دې صورت کښې دَامام توهين اوتحقير لازم راځی چه هغه دې لاندې په کوهی يا کنده کښې "اسوءحالاً" په توګه ولاړ وی او مقتدی پورته "احسن حالاً" ولاړوی که امام سره دَ سپکاوی سلوك چرته مکروه نه وی نوڅه دې؟

**دَ اوچتوالی په حد کښې درې اقوال:-** ① په کتلوکښې کله امام ښکاره اوممتاز په نظر راځی نودا حد مکروه دې.

② قول دا چه ذراع يعنی يولاس اوچتوالی باندې وی نومکروه دې ګنی نه دې هم دغه آسان او واضح دی.

⑨ شیخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې لیکلی دی چه دَ اوچتوالی دَ کراهت په مقدار کښې یوقول دې چه درمیانه سړی دَ قدوقامت برابر که چرته اوچتوالي وی نومکروه دی گڼی نه دی.

**د نبی کریم ﷺ په اوچت ځائې د جماعت ورکولو وجه:-** باقی که بعضې وخت رسول الله ﷺ په اوچت ځائی باندې مونځ ورکړی وی نوهغه دَامت دَ تعلیم دَپاره دَ حضورپاك ﷺ خصوصیت وو دَ بل چا دَ پاره جائزنه دی.

باقی حضرت عمار رضی الله عنه ته دامسئله معلومه وه چې په اوچت ځائې دامامت ورکولو ځخه نبی علیه السلام منع کړې وه خوکیدې شی چې دهغوی ځخه دا مسئله هیره شوې وه او په وریادولو سره وریاده شوی وی نو ځکه یې اقرار اوکړو.د هیرې توجیه ځکه کوو چې حضرات صحابه کرامو د خپل محبوب پیغمبر هریو حدیث باندې عمل کولو هغوی هیڅ کله د قصداً عمداً د سنت خلاف نه دې کړې.

**قوله: أَوْنَحْوَذٰلِكَ:**

**د انحو ذلک وئیلو وجه:-** دَحضرت حذیفه رضی الله عنه دارِوایت شایدبالمعنی وو ځکه نی اوفرمائیل چه دَ حضورپاك ﷺ الفاظ داسې وو یا دَدې په شان وو.

**[١١١٢] د تعلیم دپاره د امام په اوچت ځائې داودریدو جواز**

١١١٢-()[٨] [١] «وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ، أَنَّهُ سُئِلَ: [٢] مِنْ أَيِّ شَيْءٍ الْمِنْبَرُ؟ فَقَالَ: هُوَمِنْ أَثْلِ الْغَابَةِ، [٣] عَمِلَهُ فُلَانٌ مَوْلَى فُلَانَةَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، [٤] وَقَامَ عَلَيْهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ عُمِلَ وَوُضِعَ، [٥] فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ وَكَبَّرَ، وَقَامَ النَّاسُ خَلْفَهُ، [٦] فَقَرَأَ وَرَكَعَ، وَرَكَعَ النَّاسُ خَلْفَهُ، [٧] ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ، ثُمَّ رَجَعَ الْقَهْقَرَى،

**ترجمه:** [١] د سهل ابن سعد ساعدي رضی الله عنه په باره کې منقول دي چه د هغه ځخه (يوه ورځ) پوښتنه وشوه [٢] چې د نبي کریم ﷺ منبر د څه شي (يعني د کوم لرګي وو؟) هغه وفرمایل هغه د ځنګلي جهاؤ (يوه ونه چې اکثر د سيندونو په غاړه وي او د نري ځانګو او د لښتو ځخه يې توکري وغيره جوړيږي) لرګي وو[٣] چې فلاني سړي کوم چې د فلاني ښځي آزاد کرده غلام وو د رسول الله ﷺ د پاره جوړ کړي وو[٤] کوم وخت چې هغه تيار شو او (په مسجد کي) کيښودل شو نو حضور ﷺ (په هغې ودريدلو)[٥] او مخ په قبله کيدو سره (د لمانځه د پاره يي) تکبير تحريمه اووئيلو او ټول خلق حضور ﷺ پسي ودريدل [٦] حضور ﷺ (په منبر) قراءت وکړو او رکوع يي وکړه نورو خلقو هم په حضور ﷺ پسي رکوع وکړه[٧] بيا حضور ﷺ خپل سر مبارك د رکوع ځخه اوچت کړو او پښي وروسته کولو سره (يعني د منبر ځخه ښکته کيدو سره)

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الصلاة/ باب الخطبة علی المنبر (رقم-٩١٧)ومسلم فی کتاب المساجدمواضع الصلاة/ باب جواز الخطوة والخطوتین فی الصلاة (رقم) ٤٤ - (٥٤٤)

١ فَسَجَدَ عَلَى الْأَرْضِ، ثُمَّ عَادَ إِلَى الْمِنْبَرِ، ٢ ثُمَّ قَرَأَ، ثُمَّ رَكَعَ، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ، ٣ ثُمَّ رَجَعَ الْقَهْقَرَى، حَتَّى سَجَدَ بِالْأَرْضِ». ۴ هَذَا لَفْظُ الْبُخَارِيِّ، وَفِي الْمُتَّفَقِ عَلَيْهِ نَحْوُهُ، ۵ وَقَالَ فِي آخِرِهِ: «فَلَمَّا فَرَغَ أَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ فَقَالَ: "أَيُّهَا النَّاسُ! ٦ إِنَّمَا صَنَعْتُ هَذَا لِتَأْتَمُّوا بِي وَلِتَعْلَمُوا صَلَاتِي»".

**ترجمه:** ١ په زمکه يې سجده وکړه او بيا منبرته اوختلو ٢ بيا ئې قراءت وکړو اوبيا ئې ركوع وكړه اوبيا ئې خپل سر پورته كړو ٣ اوبيا واپس راغلو تردې چې سجده ئې وكړه په زمكه باندې ۴ دا الفاظ د بخاري دي او د بخاري او مسلم متفقه روايت هم داسې دی ۵ د دې حديث راوي د حديث په آخر كې دا هم ويلي دي چې كوم وخت چې (د لمانځه ځخه) حضور ﷺ فارغ شو نو وي فرمايل اې خلقو! ٦ داسې ما ځكه كړي دي چې تاسو خلق زما پيروي وكړي او زما د لمانځه (كيفيات او د هغې احكام او مسائل) زده كړئ.

**حل اللغات:**- ① أَثْل: أي الطَّرْفَاء: د نرې ځانګو او لښتو والا ځنګلي ونه، جهاؤ ورته وائي، پښتو كښې ورته خر ووله يا ووله وائي، د اوبو په غاړه باندې كيږي. ② الْغَابَة: غَيْضَةٌ ذَاتُ شَجَرٍ كَثِيرٍ: ځنګل چرته چه ډيرې ونې وى، دَمدينې منورې نه تقريباً په نهه ميله باندې يو ځنګل دې كوم ته چه غابه وائي هلته ونې ډيرې زياتې وی. ③ عَمِلَهُ: جوړ كړې وو دا ممبر، ④ مَوْلَى: آزاد كړې شوې غلام، ⑤ رَجَعَ الْقَهْقَرَى: وَهُوَ الرُّجُوعُ إِلَى خَلْفٍ: په شا طرف تلل.

**تسهيلات:**- **قوله:** مِنْ أَثْلِ الْغَابَةِ:

**دااثل معنى:**— په دويم روايت كښې "طرفاء" لفظ راغلې دې. دا دواړه هم دَ يو قسم ونې نوم دې. كوم ته چه جهاؤ وائي (دا يو قسم ونه ده چه دَ درياب په غاړه كيږي او دَدې نه تو كرئ جوړيږي)

**قوله:** فُلَانٌ:

**د فلان مصداق:**— دې نه مراد باقوم رومی دې دا يو هوښيار تركهان وو. دَحضرت سعيدبن العاص رضي الله عنه غلام وو هغه منبر نبوی ۲ هجری كښې جوړ كړې وو.

**قوله:** مَوْلَى فُلَانَةَ:

**د اعتراض حل:**—په دې روايت كښې په واضحه توګه ذكر دی چه دادَ يوې ښځې غلام وو نو په دې كښې هيڅ تعارض يا منافات نتشه دې ځكه چه غلام چرته هم چاسره وى هم غلام وى. اول حضرت سعيد رضي الله عنه سره وو بيا عائشه انصاريه سره راغلو. دَ فلانه نه عائشه انصاريه ښځه مراد ده.

**د نبى ﷺ د منبر پاؤكى:**— علماؤ ليكلي دى چه دَ نبى كريم ﷺ منبر په دريو ورو پاؤړو باندې مشتمل وو. نو يوه پاؤړئی ختل كوزيدل عمل كثير نه وو بلكه عمل قليل وو. كه چرې كثير هم وى نودَ تعليم امت دَپاره جائز نه بلكه ضروری وو.

**[۱۱۱۴] په اعتکاف کښې خلقوته امامت کول**

۱۱۱۴ -(۱)[۹] [۱] «وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حُجْرَتِهِ [۲] وَالنَّاسُ يَأْتَمُّونَ بِهِ مِنْ وَرَاءِ الْحُجْرَةِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] ام المؤمنين بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي چې نبي کريم ﷺ په خپلې حجره کې دننه مونځ وکړو [۲] او خلقو د حجرې څخه بهر د حضور ﷺ اقتداء وکړه. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① حُجْرَتِهِ: حُجرة په حاء باندې پيش، کله د کوټې په معنی اوکله کوټې ته مخامخ د صحن په معنی کښې استعماليږي خو دلته: وَهِيَ مَوْضِعٌ صَنَعَهُ مِنَ الْحَصِيرِ فِي الْمَسْجِدِ لِلْإِعْتِكَافِ: د معتکف هغه مخصوص ځائې دپاره استعمال شوې کوم چه د پوزکی يا څادر نه جوړشوې وی.

**تسهيلات:-**

**قوله: فِي حُجْرَتِهِ:**

**دحجرې مصداق:-** دې نه دَ کور کمره مرادنه ده بلکه دَ اعتکاف دوران رمضان کښې په جمات کښې دننه دَ پوزکی يو چارديواری وه هغې ته به ئې حجره وئيل. او چونکه په هغې کښې به دَ حضورپاك ﷺ آواز هم راتللو هغوی به ښکاريدل هم نو په دې کښې هيڅ اشکال نشته چه په مانځه کښې مکان يوپکاردې څکه چه مکان هم يووو.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۱۱۱۵] د صفونو جوړولو طريقه**

۱۱۱۵ -(۲)[۱۰] [۱] «عَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ، قَالَ: أَلَا أُحَدِّثُكُمْ بِصَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۲] قَالَ: أَقَامَ الصَّلَاةَ، وَصَفَّ الرِّجَالَ، [۳] وَصَفَّ خَلْفَهُمُ الْغِلْمَانَ، [۴] ثُمَّ صَلَّى بِهِمْ، فَذَكَرَ صَلَاتَهُ [۵] ثُمَّ قَالَ "هَكَذَا صَلَاةُ" [۶] قَالَ عَبْدُ الْأَعْلَى: لَا أَحْسَبُهُ إِلَّا قَالَ: "أُمَّتِي». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] د ابو مالك اشعري رضي الله عنه په باره کې روايت دي چې هغه (خلقو ته) اوويل چې آيا زه تاسو د نبي کريم ﷺ د لمانځه (د کيفيت څخه) خبر نه کړم؟ [۲] (نو واورئ چې) حضور ﷺ (د لمانځه د پاره خلق) ودرول (اول) يي د سړو صفونه قائم کړل [۳] بيا د هغوئ څخه وروسته د هلکانو صف يي وتړلو [۴] او هغوئ ته يي مونځ وکړو ابو مالك رضي الله عنه د حضور ﷺ د لمانځه (کيفيت) بيان کړو [۵] او اوويل چې حضور ﷺ (لمونځ کولو نه پس) وفرمايل مونځ داسي کول پکار دي [۶] عبد الاعلي (چې هغه دا روايت د ابو مالك څخه نقل کړي دي) وايي چې زما خيال دي چې ابو مالك رضي الله عنه اِلّا امتي زما د امت (هم) ويلي دي

[۱]) اخرجه ابوداود فى السنن رقم الحديث ۱۱۱۶

[۲]) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب مقام الإمام من الصف (رقم-۶۷۷)

يعنی ابو مالك ﷺ د حديث آخري الفاظ داسې نقل کړي دي چې حضور ﷺ وفرمايل هٰكَذَا صَلٰوةُ أُمَّتِيْ (يعني زما) د امت مونځ داسي کيدل پکار دي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① الغِلْمَانَ: أي: الصِّبْيَانَ: ماشومان هلکان.

**تسهيلات:-قوله: هٰكَذَا صَلَاةُ:**

**د صفونو ترتيب:-** دې مذکوره حديث کښې د صفونو ترتيب اوخودلې شو چې تر قيامته پورې به د مونځ صفونه داسې پکار دي. اول صف به د سړو وی، دويم به د ماشومانو وی.

**په الا کښې دوه ترکيبونه:-** ① الاحرف تنبيه وی.

② همزه د استفهام وی. حافظ بن حجردې دې دويم قول ته ترجيح ورکړې ده.

**[١١١٦] د حاکمانو هلاکت**

١١١٦-(١١)[١] «وَعَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادٍ، قَالَ: [٢] بَيْنَا أَنَا فِي الْمَسْجِدِ، فِي الصَّفِّ الْمُقَدَّمِ، [٣] فَجَبَذَنِي رَجُلٌ مِنْ خَلْفِي جَبْذَةً، [٤] فَنَحَّانِي، وَقَامَ مَقَامِي، [٥] فَوَاللهِ مَا عَقَلْتُ صَلَاتِي، [٦] فَلَمَّا انْصَرَفَ، إِذَا هُوَ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ، [٧] فَقَالَ: يَا فَتَى لَا يَسُوءُكَ اللهُ، [٨] إِنَّ هٰذَا عهد مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْنَا أَنْ نَلِيَهُ، [٩] ثُمَّ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ، [١٠] فَقَالَ: هَلَكَ أَهْلُ الْعُقَدِ وَرَبِّ الْكَعْبَةِ، ثَلَاثًا،

**ترجمه:** [١] قيس ابن عباد (تابعي) رحمه الله فرمايي [٢] چې (يوه ورځ) زه په مسجد کې په اولني صف کې په لمانځه کولو ولاړوم [٣] چې يو سړي د شا څخه زه راکش کړم [٤] او ما لره يو طرف ته کولو سره پخپله زما په ځاي ودريدلو [٥] قسم په الله (د دې غصي د وجهی چې هغه زه د اولني صف څخه چې افضل دي راکش کړم سره د دې چې زه هلته مخکې نه ولاړوم) ما ته د خپل لمانځه هم هوش پاتې نه شو (چې زه مونځ څنګه اداء کوم او څو رکعاته کوم) [٦] کوم وخت چې هغه سړي مونځ وکړو (او ما هم د لمانځه څخه وروسته وليدلو) نو معلومه شوه چې هغه حضرت ابي ابن کعب ﷺ وو [٧] (مالره د غصي په حالت کې ليدلو سره) هغه وفرمايل اي ځلميه دا وخت چې ما ستا سره څه وکړل د هغې په وجه دي الله تعالی جل جلاله تا غمجن نه کړي [٨] (ځکه چې) زمونږ د پاره د رسول الله ﷺ دا وصيت دي چې مونږ د حضور ﷺ سره نزدي ودريږو (په دې وجه د حضور ﷺ څخه وروسته اوس مونږ د امام نزدې د ودريدو کوشش کوو) [٩] بيا يې د قبلي طرف ته مخ کړو [١٠] او درې خله يې دا وفرمايل د کعبې په رب مې دي قسم وي چه اهل عقد (يعني سرداران) هلاك شو

**حل اللغات:-** ① فَجَبَذَنِي: دا د جَذَبَنِي نه مقلوب دې، که دا کلمه جذبني اولوستلې شی نو بيائی هم معنی يوه ده، يعنی زه ئی رابنکلم. دامصدر دَ عدد دَپاره هم اخستې شي يعنی "مرةواحدة" اودا دَ تاکيد دَپاره هم استعمالولې شی "ای جَبْذَةً شديدةً". ② فَنَحَّانِي: أَيْ: بَعَّدَنِي وَأَخَّرَنِي: يعنی زه ئی

[١] اخرجه النسائی كتاب الإمامة/باب موقف الإمام والمأموم صبی (رقم-٨٠٨)

دَخپل ځائی نه اخوا کړم یوطرف ته ئی اودرولم او پخپله هم زما په ځائی باندې اودریدو. ③لَا يَسُوْءُكَ اللّٰهُ: مَعْنَاهُ لَا يُحْزِنُكَ اللّٰهُ بِي وَبِسَبَبِ فِعْلِي: ما چه اوس تا سره څه وکړل د هغې په وجه دي الله تعالی ﷻ تا غمجن نه کړی. ④ تَلِيَهُ: چې مونږ د حضور ﷺ سره نزدې ودریږو (نونن صبا دامام سره نزدې اودریدل پکار دی). ⑤ أَهْلُ الْعُقَدِ: أَيِ الْأُمَرَاءُ: دا یو اصطلاحی لفظ دې پوره لفظ "اهل الحل والعقد" دی، د دې نه مراد حکمران طبقه ده چه دَ خلقو دَ معاملاتو تړل پرانستل کوی.

① ثُمَّ قَالَ: وَاللّٰهِ مَا عَلَيْهِمْ آسَى ② وَلٰكِنْ آسَى عَلَى مَنْ أَضَلُّوا. ③ قُلْتُ: يَا أَبَا يَعْقُوبَ مَا تَعْنِي بِأَهْلِ الْعُقَدِ؟ ④ قَالَ: الْأُمَرَاءُ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① او وې فرمایل قسم په الله زما سره د سردارانو هیڅ غم نشته ② غم خو د دې خلقو (یعنې د رعایا) دې چې سرداران یې گمراه کوي (په دې طور چې کوم کار سرداران کوي هغه کار د هغوئ رعایا کوي) ③ قیس ابن عباد رحمه الله وایي چې ما حضرت ابي ابن کعب رضي الله عنه ته عرض وکړو چې ابو یعقوب د اهل عقد څخه ستا څه مراد دي؟ ④ وې فرمایل امراء (یعنې سردار او حکام). (نسایي)

**حل اللغات:** - ① آسَى: أَيْ: أَحْزَنُ: خفه کیږم، غمجن کیږم. ② أَضَلُّوا: چه گمراه کوی ئې (دا سرداران او حاکمان یعنی متبعینو باندې خفه کیږم).

**تسهيلات:** - **قوله:** مَا عَقَلْتُ صَلَاتِي:

**دعقلت مفهوم:** - یعنی داسې زما اخواکولواو مادَ‌نه ځائی نه شاته کول او زما په ځائی پخپله اودریدل ماته دومره غصه راغله اوزه دومره خفه شوم چه ماته هډو پته اونه لگیده چه مامونځ څنګه اوکړو څورکعته مې اوکړه او څنګه مې اوکړه.

**قوله:** إِنَّ هٰذَا عَهْدٌ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**د مذکوره جملې مطلب:** - یعنی دادَ حضورپاك ﷺ وصیت ووچه اولوالاحلام یعنی دَ عقل اودانش او زیات عمر فضلاء علماء به وړاندې وی او ماشومان به په آخره کښې وی، قیس بن عباد وړوکې وو دا صحابی نه بلکه تابعی وو.

**قوله:** هَلَكَ أَهْلُ الْعُقَدِ:

**دابی بن کعب مقصد:** -دَحضرت ابی بن کعب رضي الله عنه مقصد دادې چه په حکمرانانو دَ رعایا دَ اصلاح او لارخودنې او په خو لارو باندې دَ اچولو ذمه واری ده هغوی دا نه کوی لهذا پخپله گمراه شو.

**د حکمران مصداق:** - حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه دَ لوئی شان والاصحابی دې هغه چه په حکمرانانو باندې کوم طعن کړې دې نو ممکن دی چه راتلونکی حکمرانان مراد وی یا دَهغوی دَ زمانې حکمرانان مراد وی. خوهغه پخپله دَحضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه په زمانه کښې وولهذا دَ حضرت عثمان رضي الله عنه بعض گورنران دَ دغه طعن نشانه کیدې شو هغه پخپله بالکل نه وو.

# [۴۲/۲۶] بَابُ الإِمَامَةِ

## دا باب دامامت داحکامو په بیان کښې دې

**خلاصة الباب:-**

**فيه اثنا عشر حديثاً مشتملة على سبع مسائل:**

① الأحق بالإقامة : ۱، ۲، ۳، ۱۱-
② عدم إمامة أحد بغير إذن صاحب الإمامة: ۱، ۴-
③ حكم إمامة الأعمى: ۵-
④ الزجر على الإمامة مع كراهية القوم له: ۶، ۷، ۱۳-
⑤ عدم وجود الإمام من أشراط الساعة: ۸-
⑥ جواز الصلوة خلف كل مسلم: ۹-
⑦ حكم إمامة الصبي: ۱۰-

**د امامت دوه قسمونه:-**

① امامت کبریٰ ② امامت صغریٰ دې.

**دامامت کبری تعریف:-** امامت کبریٰ کوم ته چه خلافت او امارت هم وئیلی شی دَدې تعریف دادې چه دَ شریعت په رنړاکښې دَ انسانانو دَدین اودنیا ټول امورو قیادت اوسیادت اواصلاح نوم خلافت اوامامت دې.

**دامامت صغری تعریف:-** امامت صغری دې ته وائی چې یو مسلمان په مانځه کښې د نورو مسلمانانو قیادت اوکړی.دې وړاندې وی او نور مونځګذار وریسې ورستو ولاړ وی.

**د امامت صغری شرطونه:-** په اسلام کښې څنګه دَ امامت کبریٰ دَ ذمه وارئی اوچتونکی دَ پاره یومعیارمتعین دې اودَ هغه دَپاره یوڅو شرائط کیخودلې شوی دی دغه شان دَامامت صغریٰ دَ سنبالونکی دَپاره هم څه شرائط اوترجیحات دی څکه که لائق امام وی اوخلق هغه پریخودو سره نالائق امام جوړه وی نو ټول خلق به دَ سنت پریخودونکی جوړشی. دَ محلې دَ مونځ ګذارو ذمه واری ده چه هغوی دې مستندعالم متقی پرهیزګار سړې امام جوړکړی او ذاتی ترجیحات دې یوطرف ته کړی اودَ دین اسلام دَ ترقئ فکردې اوکړی.

**په امام باندې د اختلاف صورت:-** اوکه په محله کښې دَامام په مقررولوباندې تنازعه پیداشی نودَ مخلص دیندار مونځ ګذارو اکثریت چه کوم متفق شی هغه دې امام جوړکړی. کله چه مقتدیانو په اتفاق سره یوامام مقررکړو نواوس هم هغه سړې باقاعده امام دې دَهغه په موجودګئی کښې دَ یو لوئی نه لوئی عالم دَهغه دَ اجازت نه بغیر مونځ نه شی ورکولې ګنی انتظام به دَ ګړبړ ښکارشی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۱۱۱۷] د امامت مستحق څوک

۱۱۱۷-()[۱] ۱ «عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ " يَؤُمُّ الْقَوْمَ أَقْرَؤُهُمْ لِكِتَابِ اللَّهِ؛ ۳ فَإِنْ كَانُوا فِي الْقِرَاءَةِ سَوَاءً، فَأَعْلَمُهُمْ بِالسُّنَّةِ؛ ۴ فَإِنْ كَانُوا فِي السُّنَّةِ سَوَاءً، فَأَقْدَمُهُمْ هِجْرَةً؛ ۵ فَإِنْ كَانُوا فِي الْهِجْرَةِ سَوَاءً، فَأَقْدَمُهُمْ سِنًّا، ۶ وَلَا يَؤُمَّنَّ الرَّجُلُ الرَّجُلَ فِي سُلْطَانِهِ. ۷ وَلَا يَقْعُدْ فِي بَيْتِهِ عَلَى تَكْرِمَتِهِ إِلَّا بِإِذْنِهِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ. ۸ وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ: " «وَلَا يَؤُمَّنَّ الرَّجُلُ الرَّجُلَ فِي أَهْلِهِ» ".

**ترجمه:** ۱ ابو مسعود رضی الله عنه راوي دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل ۲ د قوم امامت دې هغه سړي کوي چې د لمانځه په احکامو او مسائلو باندې پوهيدو سره قرآن مجيد د ټولو څخه اعلی وايي (يعني د تجويد څخه واقف وي او په حاضرينو کې د ټولو څخه ښه قاري وي) ۳ که د قرآن مجيد په ښه ويلو کې ټول برابر وي نو هغه سړي دې امامت وکړي چې (قرائت مسنونه په ښه شان ويلو سره) د سنت په علم د ټولو څخه زيات پوهيږي ۴ که (په قرآن ويلو او) د سنت په علم پوهيدو کښې ټول برابر وي نو هغه سړي دې امامت وکړي چې (مديني ته) د ټولو څخه مخکې هجرت کولو سره راغلي وي ۵ او که (په علم قراءت او) هجرت کې هم ټول برابر وي نو هغه سړي دې امامت وکړي چې په عمر کې د ټولو څخه زيات وي ۶ او هيڅ سړي دې د بل په علاقه کې امامت نه کوي (يعني د دويم مقرر امام په ځاي امامت نه کوي) ۷ او د چا په کورکي دې د هغه په مسند د هغه د اجازت څخه بغير دې نه کيني، مسلم. ۸ او د مسلم په يو بل روايت کې دا الفاظ دي (چې حضور ﷺ وفرمايل) هيڅ سړي دې د بل چا په کورکي (د هغه د اجازت څخه بغير اګر که هغه د صاحب خانه څخه افضل ولي نه وي) امامت نه کوي.

**حل اللغات:-** ① سِنًّا: زيات عمر والا (دلته ددې نه تقدم فی الاسلام مراد دې). ② سُلْطَانِهِ: أَيْ: فِي مَظْهَرِ سَلْطَنَتِهِ وَمَحَلِّ وِلَايَتِهِ: يعنی دهغه د سلطنت او ولايت په ځاي کښې. ③ تَكْرِمَتِهِ: كَسَجَّادَتِهِ أَوْ سَرِيرِهِ: د عزت ځاي مثلاً ګدئ يا کټ يا کرسي وغيره کوم چه دهرچا په خپل ځاي کښې د ناستې پاستې يوخاص ځاي مقرروي).

**تسهيلات:-**

**قوله: فِي الْقِرَاءَةِ سَوَاءً:**

**دامامت د افضليت معيار او صورت:-** لکه چه اول اشاره کړې شوې ده چه په جمات کښې مقرر امام موجود وي نو بيا دَامامت هغه دَ ټولو زيات حق داردې. په دې حديث کښې دَ امام

[۱]) اخرجه مسلم فی کتاب المساجدمواضع الصلاة/ باب من أحق بالإمامة (رقم) ۲۹۰ - (۶/۳) وابوداود كتاب الصلاة،باب من أحق بالإمامة (رقم-۵۸۲) والنسائی کتاب الإمامة /باب من أحق بالإمامة (رقم-۷۸۰) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب من أحق بالإمامة (رقم-۹۸۰)

دَ اعلی ادنی افضل اوغیرافضل اوصفات حسنه قلت اوکثرت اوترجیحات بیان کړې شوی دی. دادَهغه وخت خبره ده کله چه امام راتب اومعین نه وی مثلاً خلق په سفر کښې وی
**د امامت د استحقاق ترتیب:-** دَامامت دَاستحقاق دَپاره مذکوره حدیث کښې یوځو ترجیحات دی

① دَتولونه زیات دَ کتاب اوسنت عالم وی
② که په دې کښې برابروی نوبیاچه دَ چا قراءت تجوید سره ښکلې وی.
③ که په دې دوارو صفتونوکښې برابر دی نوبیا هغه سړې کوم چه زیات متقی اوپرهیزګار وی.
④ که په دې کښې هم برابروی نوبیاچه دَ چا اخلاق ښه وی
⑤ که چرې دې کښې هم برابری وی نو بیا په دوی کښې چه وجیه اوشکیل وی.
⑥ که په دې کښې هم یوشان وی نو بیاچه په نسب کښې کوم یواوچت وی.
⑦ که په دې ټولو صفاتوکښې دا علماء برابر وی نوبیابه خسنړې اچولې شی.

**د بعضې نورو صفاتو ذکر:-** په زیربحث حدیث کښې دَ څلورو صفاتوذکرکړې شوې دې په کوم کښې چه اول قراءت دویم علم دریم هجرت او څلورم دَعمرزیاتوالي دې. سره دَدې چه فقهاؤ دَ یوڅو نورو صفات دَ آثار صحابه اقوال تابعین په رنړاکښې اضافه کړې دهٔ

**د امامت دپاره د أقرأ او أعلم په تقدم کښې مذاهب**

دَدې ټولو صفاتو په ترتیب کښې دَفقهاء کرامو اتفاق دې صرف دوو صفاتوکښې اختلاف دې یعنی اقرأ مقدم دې یا اعلم مقدم دې.

**دقاری او عالم تعریف:-** دَ قاری نه مراد هغه چه دَ فن قراءت ماهر وی اوهغه ته قرآن زیات یاد وی اودَ عالم نه مرادهغه چه دَ احکام شریعت ماهروی.
مطلب دادې چه یوجید قاری دې دویم جید عالم دې په دوی کښې کوم یو مقدم کړې شی په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.

① امام احمدبن حنبل رحمه الله او اسحاق بن راهویه رحمه الله اوامام ابویوسف رحمه الله مسلك دادې چه دَ امامت دَپاره "اقرأ" زیات مستحق دې دَدې نه پس "اعلم" دې. دَ امام شافعی رحمه الله یوقول هم دغه دې.
② دَامام ابوحنیفه رحمه الله امام مالك رحمه الله او امام شافعی رحمه الله مسلك دا دې چه "أعلم" دَ امامت زیات مستحق دې دامقدم دې بیا دَ "اقرأ" نمبردې.

**داول فریق دلائل:-** ① زیربحث دَابومسعود رضی الله عنه حدیث د دوی مستدل دې
**د اول فریق د دلیل جواب:-**
① دَ زیربحث حدیث یوجواب خودادې چه دَدې څه خاطرخوا جواب نشته دې. کومو

حضراتو چه داجواب ورکړې دې په هغه زمانه کښې به اقرأ هم هغه وو چه اعلم به وو نو په دې جواب سره خو یوډ زیربحث ټول ترتیب ماتیږی حالانکه دا ترتیب حضورپاک ﷺ قائم کړې دې. اودویم اشکال دا راځی چه په دې سره به حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه د ټولونه زیات عالم منلې شی حالانکه د صدیق اکبر رضی الله عنه باره کښې د ټولو صحابه کرامو اتفاق دې چه "ابوبکر اعلمنا" دې نو خبره هم په هغه ځائی باندې راغله چه دَدې حدیث یوجواب دادې چه دَدې څه جواب نشته دې.

④ دَ اسلام په شروع کښې رسول الله ﷺ دَ قرآن عظیم الشان اشاعت اودا دَ عام کولو دومره اهتمام کړې ووچه دَ قرآن په ذریعه سره نکاح کول دَ قرآن په وجه دَ مجاهدینو امیر جوړیدل دَ کثرت قرآن دَ وجې نه اجتماعی قبرونو کښې حافظ قرآن مقدم کیخودل او دَ کثرت قرآن دَوجې نه په جماتونو کښې امام ساتل دا ټول اهتمام دَدې دَپاره وو چه خلق دَ زیات نه زیات دَ قرآن کریم دَ الفاظو یادولو کوشش اوکړی. هم په دې سلسله کښې اوهم په دې زمانه کښې نې داحدیث ارشاد فرمائیلې وو اودَدې نه پس دَدې حکم موقوف شو اودَ علم په ترغیب باندې زور ورکړې شو. په دې وجه صدیق اکبر رضی الله عنه مقدم کړې شو دې دَپاره چه دَعلم اصلی حیثیت په ځائی راشی لهذا نن هم هغه حیثیت په ځائی دې اوعالم عام خلق هم په قاریانو باندې په امامت کښې مقدم کوی. صرف قراءت اوریدل او خوشحالیدل او دَ دې محافل دَ حسن قراءت قائمول دا ځان له څیزدې. (یاالله! دَ نیغې اوحق لارې نه اخوا کیدو اولرې کیدو نه زمادَ سوچ اوزمادَ قلم حفاظت اوکړې آمین. راقم الحروف)

**داول فریق دویم دلیل:-**

② قراءت دَ مونځ دَ ارکان نه یواهم رکن دې لهذا دَدې زیات اهتمام دې.

**ددویم فریق دلائل:-**

① دَحضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه امامت د دوی مستدل دې چه په حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه باندې حضورپاک ﷺ صدیق اکبر رضی الله عنه مقدم کړو چه اعلم بکتاب الله وو حالانکه ابی بن کعب رضی الله عنه خو اقرأ وو لکه چه دَ حدیث الفاظ دی "واقرأهم ابی بن کعب" معلومه شوه چه علم مقدم دې

② قراءت سره دَدې چې رکن صلوة دې لیکن دَدې ضرورت صرف په یو رکن کښې پیښیږی اودَعلم ضرورت دَ مانځه په ټولو ارکانو کښې پیښیږی. دَ تکبیرتحریمه نه واخله ترسلام پورې هم په علم باندې دَ مونځ دارومداردې.

**قوله:** وَلَا يَؤُمَّنَّ الرَّجُلُ الرَّجُلَ فِي سُلْطَانِهِ

مرقاة شرح مشکوة کښې ملاعلی قاری رحمه الله دکلام نه داسې معلومیږی چه درې قسم خلق دی دَ چا په نیزچه دَهغوی دَ اجازت نه بغیر دَ امامت نه منع کړې شوی دی اودریوارو ته یوقسم سیادت اوقیادت حاصل دې.

**د سلطان څخه په مراد کېښي درې اقوال:-**

① په مذکوره حدیث کښې دَ "سلطانه" لفظ دې دَدې نه بادشاه وخت مراد اخستې شی یعنی دَ حاکم وخت ځائی ته په تللوسره دَهغه په ځائی دې امامت نه کوی یادَهغه دَ طرف نه مقررکړې شوې امام اونائب په ځائی دې امامت نه کوی خاص کر دَ جمعه او اخترونو په موقع خو بالکل مناسب نه دی.

② دغه شان دَ سلطان اطلاق دَ جمات په امام باندې هم کیدې شی ځکه چه جمات اودَجمات امامت دَهغه په دائره اختیارکښې دې نودَهغه په ځائی دَهغه دَ اجازت نه بغیر جمع ورکول دَ یوغیرکس دَپاره منع دی.

③ دغه شان یوسړې دَخپل خاندان مشر دې اوهغه خپل قوم ته مونځ ورکوی دَهغه په ځائی هم مونځ ورکول دَهغه دَ اجازت نه بغیرناجائزدی.

په دویم روایت کښې "فی اهله" الفاظ راغلی دی دَ کوم نه مراد چه هم داقسم خلق کیدې شی.

④ دغه شان یوسړې دَخپل کور خلق راجمع کوی او مونځ ورکوی دَهغه په ځائی باندې هم دَ هغه دَ اجازت نه بغیردَ چادَپاره جائز نه دی چه مونځ ورکړی. نوکه دَامامت کبریٰ والاوی اوکه دَامامت صغریٰ والاوی دَ هریو یوقسم سلطنت قائم دې دَهغوی دَ اجازت نه بغیر مونځ ورکول دَ شریعت خلاف دی ځکه چه په اسلام کښې دَجمع او امامت دَ مشروعیت مقصد هم اتفاق اتحاد او محبت اورور ولی ده اوداحرکتونه بغض عناد او شرفساد پیداکوی. په دې وجه حضورپاك ﷺ دَدې څیزونو مخ نیوې اوکړو. دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما غوندې جلیل القدر صحابی په حجاج بن یوسف غوندې ظالم پسې آخر دَ څه مقصد دَپاره مونځ کولو.

**قوله: عَلَى تَكْرِمَتِهِ:**

تکرمةتفعلة په وزن باندې مصدردې دَ باب تفعیل نه دَتکریم عزت اواکرام په معنی کښې دې دلته په کور وغیره کښې هغه خاص ځائی ته تکرمه وئیلې شوې ده چرته چه دَ کور مشر کینی که په دغه ځائی بغیردَ اجازت نه څوك راشی کینی نوهغه ته تکلیف کیږی. نن صبا په عربوکښې هم په دې خبره پاندې سخت خفګان پیداکیږی. او په عجم کښې دَ پیرانو صاحبانو په خاص ځایونو اوخانقاهونوکښې دننه دَهغوی دَپاره چه کوم خاص ځائی وی هغه هم مراد کیدې شی او په مدارسوکښې دَ بعض مهتمم حضراتودَپاره خاص تخت اودَ ناستې ځائی وی په هغې باندې هم بغیر اجازت نه کیناستل مناسب نه دی.

### [۱۱۱۸] د امامت زيات حقدار

۱۱۱۸-(¹)[۲] ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② " «إِذَا كَانُوا ثَلَاثَةً فَلْيَؤُمَّهُمْ أَحَدُهُمْ، ③ وَأَحَقُّهُمْ بِالْإِمَامَةِ أَقْرَؤُهُمْ» ". ④ رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَذُكِرَ حَدِيثُ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ فِي بَابٍ بَعْدَ بَابِ "فَضْلِ الْأَذَانِ".

**ترجمه:** ① ابو سعيد خدري رضي الله عنه راوي دي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل ② هر كله چې د لمانځه كولو د پاره دري سړي جمع شی نو په هغوئ كې دي يو امام جوړ شی ③ او په هغوئ كې د امامت زيات مستحق هغه دي چې زيات عالم وي، مسلم. ④ امامسلم د دې روايت كړې دې اود مالک بن حويرث حديث ئې په باب فضل الاذان كښې ذكر كړې دې.

**تسهيلات:** -

**قوله: وَأَحَقُّهُمْ بِالْإِمَامَةِ أَقْرَؤُهُمْ:**

**تشريح:** كه قاری او عالم امامت اوكړی نو دا افضل دی ،خو كه ددوئ نه سوا بل چا امامت اوكړو نو مونځ ادا كيږی .ددې نه معلومه شوه كه افضل موجود وی او مفضول امام جوړ شی نو دا جائز دی.او ددې به د افضل په افضليت باندې هيڅ اثر نه پريوزی.لكه څنګه چې روايت كښې ذكر دی چې حضرت بلال رضي الله عنه به جنت كښې دخادم په طور نبی كريم ﷺ نه وړاندې روان وی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۱۱۱۹] داذان او امامت دپاره دغوره خلقو انتخاب

۱۱۱۹-(²)[۳] ① عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② " «لِيُؤَذِّنْ لَكُمْ خِيَارُكُمْ وَلْيَؤُمَّكُمْ قُرَّاؤُكُمْ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① ابن عباس رضي الله عنهما راوي دي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل ② په تاسو كې چې كوم خلق بهتر دي هغوئ ته اذان كول پكار دي او په تاسو كې چې كوم خلق ښه عالمان وي هغوئ له ستاسو امامت كول پكار دي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:**- ① خِيَارُكُمْ: أَيْ: مَنْ هُوَ أَكْثَرُ صَلَاحًا: غوره اوبهتر يعنی كوم چه په تاسو كښې زيات صلاحيت او قابليت لری.

**تسهيلات:** - **قوله:** لِيُؤَذِّنْ لَكُمْ:

**دغوره شخصيت موذن جوړولو حكمت:** – يعنی مؤذن دټولونه ښه سړی كيدل پكاردی څكه

---

[1] اخرجه مسلم فی كتاب المساجدمواضع الصلاة/ باب من أحق بالإمامة (رقم) ۲۸۹ - (۶۷۲) والنسائی كتاب الإمامة /باب اجتماع القوم فی موضع هم فيه سواء (رقم-۷۸۲)

[2] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب من أحق بالإمامة (رقم-۵۹۰)

چه هغه دَ وختونو امانت ګر وی دې دَپاره چه په وختونوکښې خيانت اونه کړی بل هغه دَ اذان دَپاره چت ته ځی په څه سره چه خاؤشا کورونوباندې نظر پريوتې شی. دغه شان دَ تجربه نه ثابته ده چه دَ قوم اوامام په مينځ کښې اختلاف اودَ افتراق سبب مؤذن جوړيږی. کله چه مؤذن ديانت دار اواماندار وی نودَ څه خيانت خباثت خطره به نه وی اوامام عالم کيدل پکاردی دې دَپاره چه دَمانځه په مسائلوکښې غلطی رانه شی.

**[۱۱۲۰] خپل کس لره امام جوړولو حکم**

۱۱۲۰–()[۴] [۱] وَعَنْ أَبِي عَطِيَّةَ الْعُقَيْلِيِّ، قَالَ: [۲] كَانَ مَالِكُ بْنُ الْحُوَيْرِثِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَأْتِينَا إِلَى مُصَلَّانَا يَتَحَدَّثُ، [۳] فَحَضَرَتِ الصَّلَاةُ يَوْمًا، [۴] قَالَ أَبُو عَطِيَّةَ: فَقُلْنَا لَهُ: تَقَدَّمْ فَصَلِّهْ، [۵] قَالَ لَنَا: قَدِّمُوا رَجُلًا مِنْكُمْ يُصَلِّي بِكُمْ، [۶] وَسَأُحَدِّثُكُمْ لِمَ لَا أُصَلِّي بِكُمْ؟ [۷] سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [۸] "«مَنْ زَارَ قَوْمًا فَلَا يَؤُمَّهُمْ وَلْيَؤُمَّهُمْ رَجُلٌ مِنْهُمْ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، [۹] وَالنَّسَائِيُّ إِلَّا أَنَّهُ اقْتَصَرَ عَلَى لَفْظِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**ترجمه:** [۱] ابو عطيه عقيلي (تابعي) رحمه الله فرمايي [۲] چې مالك ابن حويرث (صحابي) رضي الله عنه به زمونږ مسجد ته راتلو (او زمونږ په مخکې به يې د حضور ﷺ حديث بيانول (او خبري به يې کولي) [۳] يوه ورځ (چې هغه زمونږ په مينځ کې په مسجد کښې موجود وو) د لمانځه وخت شو [۴] ابو عطيه فرمايي چه مونږ مالك رضي الله عنه ته (د هغه د شان صحابيت د عظمت او فضيلت په خاطر) اوويل چې مخکې شه او مونږ ته مونځ راکړه [۵] حضرت مالك رضي الله عنه وفرمايل تاسو په خپلو کې څوك مخکې کړي چې هغه مونځ درکړي [۶] او زه تاسو ته وايم چې زه ولي مونځ نه درکوم [۷] (نو واورئ چې) ما د نبي کريم ﷺ څخه اوريدلي دي [۸] کوم سړي چې د يو قوم سره ملاقات وکړي نو د هغوئ امامت دې نه کوي بلکه د هغوئ څخه يو سړي لره د هغوئ امامت پکار دي، ابواؤد ترمذي، [۹] نسايي هم دا روايت نقل کړي دي خو يوازي د حضور ﷺ په الفاظو يې اکتفا کړي ده [يعنی هغه په خپل روايت کې د حضرت مالك رضي الله عنه مسجد ته د راتلو واقعه او د هغه د امامت څخه انکار کول نه دي ذکر کړي بلکه يوازي د حضور ﷺ الفاظ د من زار څخه تر اخر پورې يې نقل کړي دي].

**حل اللغات:** - ① يَتَحَدَّثُ: أَيْ: مِنْ كَلَامِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: حديث به ئې بيانول. ② تَقَدَّمْ: مخکښې شه، ③ فَصَلِّهْ: مونږ ته مونځ راکړه. ④ زَارَ: زيارت له لاړشي، ملاقات اوکړي.

**تسهيلات:** -

**قوله: مَنْ زَارَ قَوْمًا فَلَا يَؤُمَّهُمْ:**

**اشکال:** – دې حديث کښې حضرت مالك بن حويرث رضي الله عنه فرمائی چې کوم کس د بهر نه

[1]) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب إمامة الزائر (رقم-۵۹۶) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فيمن زار قوما فلا يصل بهم (رقم-۳۵۶) والنسائى كتاب الإمامة/باب إمامة الزائر (رقم-۷۸۷)

راشي نو هغه امامت نشی کولی حالانکه ماقبل د فصل اول حدیث کوم چې د حضرت ابن مسعود ﷺ نه روایت دې هغې کښې د استثنی الفاظ دی: الاباذنه: نو دلته حضرت مالك بن حویرث ﷺ جماعت ولې اونه کړو حالانکه خلقو اجازت ورکړې وو؟

**د اشکال درې جوابونه :-**

① دا دهغوئ خپل اجتهاد دې .دحضرت مالك بن حويرث ﷺ خيال دا وو چې د استثنی تعلق څه بلې مسئلې سره دې.

② صحابه کرامو به د دريو کارونو نه ځان ساتلو ،په هغې کښې یو امامت هم وو.

③ خلقو ته ئې دا مسئله خودله چې کله افضل موجود وی نو بیا هم دمفضول امامت جائز دې.څکه حضرت مالك بن حويرث ﷺ مفضول پسې مونځ اوکړو او ددې جواز طرف ته ئې اشاره اوکړه.

## [۱۱۲۱] د نابینا د امامت جواز

---()[٥] ① «وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② اسْتَخْلَفَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ابْنَ أُمِّ مَكْتُومٍ يَؤُمُّ النَّاسَ ③ وَهُوَ أَعْمَى». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① حضرت انس رضي الله عنه فرمايي ② چې نبي کريم ﷺ حضرت عبدالله ابن ام مکتوم رضي الله عنه خپل قائم مقام مقرر کړو چې هغه خلقو ته مونځ ورکوي ③ او هغه نابينا وو. (ابوداؤد)

**دعبدالله بن ام مکتوم مختصر تعارف :-**

عبدالله ابن ام مکتوم رضي الله عنه يونابينا صحابی وو. په مکه مکرمه کښې يوځل دَ حضورپاك ﷺ په مجلس کښې داخل شو اودَ مسئلې تپوس ئې اوکړو. هغه وخت حضورپاك ﷺ دَ مکې سردرانو سره مشغول وو. دې صحابی ته په جواب ورکولو کښې لږه شان بې توجهی اوشوه الله تعالی سورت عبس نازل کړو او حضورپاك ﷺ ته محبت آميز عتاب اوکړې شو اودَ دغه صحابی شان ئې بيان کړو. حضورپاك ﷺ چه به کله هم ابن ام مکتوم رضي الله عنه راتلونکې کتلو نوفرمائيل به ئې "مرحبا بمن عاتبنی فيه ربی". هم دَدې وجه نه حضورپاك ﷺ دَدې صحابی دَ زړه ساتنې دَپاره ځوارلس ځل په مدينه منوره باندې خپل نائب مقررکړو. حضورپاك ﷺ به جهادته تلو اوابن ام مکتوم رضي الله عنه به ئې په مدينه کښې په خپل ځائې نائب لګولو. په زيربحث حديث دَحضرت انس رضي الله عنه کښې هم دغه خبره ده چه حضورپاك ﷺ حضرت عبدالله بن ام مکتوم رضي الله عنه خپل نائب اوقائمقام جوړکړو نوهغه اميرهم وو اودَ خلقو امامت به ئې هم کولو سره دَدې چه هغه نابيناوو.

**تسهیلات:- قوله:** يَؤُمُّ النَّاسَ وَهُوَ أَعْمَى:

---

[1] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب إمامة الأعمى (رقم-٥٩٥)

**د روندد امامت صحت:** - اوس دامسئله محل بحث ده چه نابینا امام جوړیدې شی که نه؟ نو"رحمة الامة فی اختلاف الائمة" د اتمې صدئ مشهور شافعی عالم محمد بن عبدالرحمن دمشقی لیکلی دی چه "وامامة الاعمی صحیحة بالاتفاق غیر مکروهة الا عند ابن سیرین. (ص ۵۰)

**داحنافو په نیزد اعمی دامامت د کراهت وجه:** - نابینا باره کښې دې چه خپل ځان د ګندګئ نه بچ کولې نه شی چه ګنده وی یا پلیت وی یا بالکل هغه سره علم اوتقوی نه وی اودده په مقابل اعلی اوښکلې بینا عالم موجود وی نو هغه وخت د نابینا امامت مکروه دې.

**[۱۱۲۲] د درې قسمه خلقو مونځ نه قبلیدل**

۱۱۲۲ - ()[۶] [۱] وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«ثَلَاثَةٌ لَا تُجَاوِزُ صَلَاتُهُمْ آذَانَهُمْ: [۳] الْعَبْدُ الْآبِقُ حَتَّى يَرْجِعَ، [۴] وَامْرَأَةٌ بَاتَتْ وَزَوْجُهَا عَلَيْهَا سَاخِطٌ، [۵] وَإِمَامُ قَوْمٍ وَهُمْ لَهُ كَارِهُونَ»". [۶] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] ابو امامه رضي الله عنه راوي دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل [۲] درې سړي داسې دي چې د هغوئ مونځ د هغوئ دغوږونو څخه نه اوچتیږي (یعني درجه قبولیت ته نه رسیږي) [۳] ① یو خو د خپل مالك څخه تښتیدلې غلام تر څو پورې چې هغه (خپل مالک ته) واپس رانشي [۴] ② دویم هغه ښځه چې په دې حالت کې شپه تیره کړي چې د هغې خاوند د هغې څخه ناراضه وي [۵] ③ دریم هغه امام چې قوم (مقتدیان) یې نه خوښوي، [۶] امام ترمذي دا روایت نقل کړي دي او ویلي یې دي چې دا حدیث غریب دي.

**حل اللغات:** - ① لَا تُجَاوِزُ: أَي لَا تُرْفَعُ إِلَى اللَّهِ: نه اوچتیږی یعنی نه قبلیږی، ② الْآبِقُ: چه تختیدلې وی (دخپل مالک نه). ③ بَاتَتْ: چه شپه تیره کړی ښځه، ④ سَاخِطٌ: أَي مَا أَرْضَتْهُ: چه خفه وی (یعنی خاوند پرې خوشحاله نه وی). ⑤ كَارِهُونَ: خوښ نې نه ګڼړی هغوی (یعنی قوم، مقتدیان).

**تسهیلات:** -

**قوله:** وَامْرَأَةٌ بَاتَتْ:

**د امراة مصداق:** - داهغه وخت ده چه کله ښځه بداخلاقه وی، نافرمانه اوبې ادبه وی، په دې وجه خاوند خفه وی. اوکه د ښځې په ځائی دا جرم د خاوند هغه بداخلاق، ظالم او د ښځې نه خفه اوسیږی نوپه دې صورت کښې ښځه ګناهګاره نه ده بلکه خاوندبه ګناهګاروی.

**قوله:** وَهُمْ لَهُ كَارِهُونَ

**د امام مصداق:** - یعنی یو شرعی عیب، بدعت، فسق اود بې علمئ د وجې نه چه قوم خفه وی نودا وعید د امام دپاره دې. لیکن که په امام کښې څه شرعی عیب نه وی اومقتدی د دنیاوی اغراضو او یا ذاتی مفاداتو د وجې نه امام سره عداوت اونفرت ساتی

() اخرجه الترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فیمن أم قوما وهم له کارهون(رقم۳۵۸)

نو په دې صورت کښې امام نه بلکه مقتدیان به ګناهګار وی. باقی څنګه چه امام الحی پیش امام کښې دا تفصیل دې. بالکل هم دغه تفصیل اوحکم دَ ملك دَ بادشاه او وطن دَ امام هم دې.

**[۱۱۲۲] د ناخوښه امام د مونځ کراهت**

۱۱۲۲-(۷)[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «ثَلَاثَةٌ لَا تُقْبَلُ مِنْهُمْ صَلَاتُهُمْ: [۳] مَنْ تَقَدَّمَ قَوْمًا وَهُمْ لَهُ كَارِهُونَ، [۴] وَرَجُلٌ أَتَى الصَّلَاةَ دِبَارًا [۵] وَالدِّبَارُ: أَنْ يَأْتِيَهَا بَعْدَ أَنْ تَفُوتَهُ [۶] وَرَجُلٌ اعْتَبَدَ مُحَرَّرَةً» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] ابن عمر رضي الله عنهما راوي دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل [۲] دري سړي داسې دي چې د هغوئ مونځ نه قبلیږي (یعني هغوئ ته د لمانځه ثواب نه حاصلیږي) [۳] ① یو هغه سړي چې د یو قوم امام وي او قوم د هغه څخه خوشحاله نه وي [۴] ② دویم هغه سړي چې لمانځه ته وروسته راځي [۵] او د وروسته مطلب دا دي چې د لمونځونو د (مستحب) وخت وتلو څخه وروسته راځي [۶] ③ او دریم هغه سړي چې آزاده ښځه وینځه جوړه کړي او یا آزاد سړي غلام جوړ کړي. (ابوداؤد، ابن ماجه)

**حل اللغات:**- ① تَقَدَّمَ: أَيْ لِلْإِمَامَةِ الصُّغْرَى أَوِ الْكُبْرَى: چه مخکښې شی امامت ته (که هغه د مونځ دپاره وی اوکه د سلطنت دپاره وی). ② دِبَارًا: دا جمع د دُبُر ده وَهُوَ آخِرُ أَوْقَاتِ الشَّيْءِ: دهر یو څیز آخرته وائی (دلته ترې مراد دمستحب وخت ختمیدل دی). ③ مُحَرَّرَةً: آزاده (چه وینځه نه وی یعنی اصیله ښځه).

**توضیح**

**قوله:** بَعْدَ أَنْ تَفُوتَهُ:

**د مونځ د فوت کیدوپه مطلب کښې درې اقوال:**- په لاندې درې واړه صورتونو طرف ته "لاتقبل" متوجه دي.

① چې دَمونځ پوره وخت اوځی

② چې جمع لاړه شی.

③ چې مستحب وخت اوځی

**قوله:** لَا تُقْبَلُ:

**د لاتقبل څخه مراد:**- دلته په لاتقبل کښې نفی دَ کمال ده یعنی په کامل توګه باندې به ئې مونځ نه قبلیږی یا دَمکمل مونځ نفی ده. لیکن داهغه وخت دی کله چه څوك سړې خپل عادت داسې جوړ کړی چه څوك همیشه هم داسې کوی.

**قوله:** وَرَجُلٌ اعْتَبَدَ مُحَرَّرَةً:

[۱]) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة رقم الحدیث ۵۹۳ وابن ماجة ۱/ ۳۱۱

**دمذكوره جملې په مفهوم كښې دوه اقوال:-**

① يوغلام ئې آزاد كړو ليكن هغه ته ئې اونه خودل اودَ آزادئي نه پس ئې هغه غلام جوړكړو هغه ئې هلوو خبرنه كړو چه ته آزاد كړې شوې ئې.

② چه آزاد سړې نيولوسره ئې غلام جوړكړو اوبيا ئې دَ خرڅولو سلسله شروع كړه.

**[١١٢٤] دامامت دپاره نه وړاندې كيدل**

۱۱۲۴-()[۸] ① وَعَنْ سَلَامَةَ بِنْتِ الْحُرِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«إِنَّ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ أَنْ يَتَدَافَعَ أَهْلُ الْمَسْجِدِ ③ لَا يَجِدُونَ إِمَامًا يُصَلِّي بِهِمْ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① بي بي سلامه بنت حر رَضِيَ اللهُ عَنْهَا راويه ده (روايت كوي) چې نبي ﷺ وفرمايل ② د قيامت د علامتونو څخه (يوه علامه دا ده) چې د مسجد خلق به امامت دفع كوي (يعنی د امـام جوړيـدو څخـه بـه تيـښته كـوي) ③ او څـوك مـونځ وركـونكي بـه هغـوئ تـه نـه ملاويږي.(احمد ،ابوداؤد ،ابن ماجه)

**حل اللغات:-** ① أَشْرَاطِ: د شَرَطِ جمع ده، نښې او علامت ته وائی. ② السَّاعَةِ: قيامت، ③ يَتَدَافَعَ: أي يَدْفَعُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا إِلَى الْمَسْجِدِ، أَوِالْمِحْرَابِ لِيَؤُمَّ الْجَمَاعَةَ: يوبـل تـه جمات تـه يـا محراب تـه دامامت دپاره وړاندې كوي.(اوخپل ځان روسته كوي)

**تسهيلات:-**

**قوله:** أَنْ يَتَدَافَعَ أَهْلُ الْمَسْجِدِ:

**دامامت دپاره يوبل وړاندې كول:-** داقيامت سره نيزدې دَزمانې نقشه پيش كړې شوې ده چه جهل اوفسق به دومره عام شی چه دې نه به محلې ډكې شی او خلق به دومره نااهل پيداشي چه څوك به دَ امامت اهل پاتې نه شی. خلق به يوبل ته ديكې وركولوسره دَ مانځه دَپاره وائی مګر هرسړې به دَ خپلې نااهلې دَوجې نه تختی او مونځ به نه وركوی [نن صبادا نقشه په مكمل توګه تياره ده ځكه چه محله په محله ويران پرتې دی په دې كښې به هيڅ يوعالم نه وی دې دَپاره چه يومحلې ته لاړشی خلقوته مونځ وركړې شی.]

**[١١٢٥] دفاسق د امامت جواز**

۱۱۲۵-(٢)[۹] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«الْجِهَادُ وَاجِبٌ عَلَيْكُمْ مَعَ كُلِّ أَمِيرٍ، بَرًّا كَانَ أَوْ فَاجِرًا، ③ وَإِنْ عَمِلَ الْكَبَائِرَ، ④ وَالصَّلَاةُ وَاجِبَةٌ عَلَيْكُمْ خَلْفَ كُلِّ مُسْلِمٍ بَرًّا كَانَ أَوْ فَاجِرًا، ⑤ وَإِنْ عَمِلَ الْكَبَائِرَ، ⑥ وَالصَّلَاةُ وَاجِبَةٌ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ، بَرًّا كَانَ أَوْ فَاجِرًا، ⑦ وَإِنْ عَمِلَ الْكَبَائِرَ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

[1]) اخرجه ابوداود باب فی كراهية التدافع علی الإمامة (رقم-۵۸۱) واحمد فی المسند ۶/ ۳۸۱

[2]) اخرجه ابوداود فی السنن رقم الحديث ۲۵۳۳

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل② په تاسو باندې جهاد د هر امير سره كه هغه نيك وي اوكه بد واجب دي③ اگر كه هغه (سردار او امير) گناه كبيره كوي④ او په تاسو باندې مونځ په هرمسلمان پسې واجب دي كه هغه (لمونځ وركونكي) نيك وي او كه بد واجب دي⑤ اگر كه هغه گناه كبيره كوي⑥ او د جنازې مونځ په هر مسلمان باندې واجب دي كه نيك وي او كه بد ⑦ اگر كه هغه گناه كبيره كوي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① بَرًّا: نيک، ② فَاجِرًا: بدكاره.

**تسهيلات:** - **قوله:** اَلْجِهَادُ وَاجِبٌ:

**د فاسق امام په قيادت كښې هم د جهاد حكم:** - دلته واجب دَ فرض په معنى كښې دې اود جهاد دوه قسمونه دي. فرض كفايه وي اويا فرض عين وي. مطلب دا چه يوجهادي امير كه هغه بادشاه وي اويا دَ بادشاه نائب وي كله چه هغه دَ جهاد جهنډا اوچته كړي او مسلمانان دَ كافرانو په مقابله كښې جنگوي نودَهغه په ماتحتئى كښې جهادكوئى كه هغه اميرفاسق ولې نه وي يعنى هغه دكبيره گناه ارتكاب كوى نودا دَهغه خپل عمل دې تاسوخوئى په ښه كارلگولې يئې. تاسو خپل نيك عمل ته گورئى اميرته مه گورئى. ښكاره خبره دې معصوم فرښته خو راتلې نه شى كه داسې چينجى لټوئى نودَ جهادنه به پاتې شئى ځكه چه كوم سړې بې عيب يا لټوى هغه بې ياره پاتې كيږى.

**قوله:** خَلْفَ كُلِّ مُسْلِمٍ:

**دفاسق امام په اقتداء كښې د مونځ كولو جواز:** - يعنى هرامام پسې مونځ كوئى كه نيك امام وى اوكه فاسق وى دلته هم دغه پورتنې تقريردې البته دلته مطلب داسې دې چه مثلاً يو ظالم جابر حكمران په تاسو باندې مسلط شو اوهغه مونځ وركوى نوتاسو هغه پسې مونځ كوئى سره دَدې چه هغه پخپله فاسق دې ليكن دا يادساتئى دَدې فسق نه مراد په مانځه كښې دننه فسق نه دى بلكه دَمانځه نه بهردَ فسق ارتكاب دې لكه چه په حديث كښې دَ يوې مجبورئى ذكر دې چه جبراً امام جوړشوې دې يا دَ امام جوړيدونه پس فسق كوى.

**دحديث په مفهوم كښې دوه غلطيانې:** -

① دَ حديث مطلب دانه دې چه تاسو فاسق فاجر سړې امام جوړ كړئى

② دَ حديث مطلب داهم نه دې چه په مانځه كښې دننه فسق كوى مثلاً بې اودسه مونځ وركوى يا قراءت غلط لولى بلكه دَمانځه نه بهر دَ فسق ارتكاب مراددې.

**قوله:** ،وَالصَّلَاةُ وَاجِبَةٌ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ:

**د صلاة مصداق:** - د دې نه دَجنازې مونځ مراددې يعنى دَهرمسلمان دَ جنازې مونځ كوئى سره دَدې چه فاسق فاجر وى خوچه كافرنه وى چه نوم ئى دَ مسلمانانووى اوعقيده ئى دكفر وى مثلاً قاديانې دې رافضى دې يامنكرحديث دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [١١٢٦] د نابالغ د امامت حکم

١١٢٦ —()[١٠] [١] «عَنْ عَمْرِو بْنِ سَلِمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [٢] كُنَّا بِمَاءٍ مَمَرِّ النَّاسِ، [٣] يَمُرُّ بِنَا الرُّكْبَانُ نَسْأَلُهُمْ: [٤] مَا لِلنَّاسِ؟ مَا لِلنَّاسِ؟ [٥] مَا هٰذَا الرَّجُلُ؟ [٦] فَيَقُولُونَ: يَزْعُمُ أَنَّ اللّٰهَ أَرْسَلَهُ أَوْحَى إِلَيْهِ، أَوْحَى إِلَيْهِ كَذَا. [٧] فَكُنْتُ أَحْفَظُ ذٰلِكَ الْكَلَامَ، [٨] فَكَأَنَّمَا يُغْرَى فِي صَدْرِي،

**ترجمه:** [١] عمرو ابن سلمه رضی اللہ عنہ فرمايي [٢] چې مونږ د اوبو په غاړه وسيدو [٣] چې د خلقو د تيريدو ځاي وو کومي قافلي چې به زمونږ سره تيريدي مونږ به د هغوئ ځخه پوښتنه کوله [۴] چې د خلقو د پاره (يو سړي يعنی حضور ﷺ چې کوم دين راپيستلي دي هغه) څه دي؟ [٥] او د هغه سړي (يعني د حضور ﷺ) صفات څه دي؟ [٦] هغه خلقو به مونږ ته بيان کولو چې هغه (رسول ﷺ) دعوٰی کوي چې الله جل جلاله هغه (خپل نبي بر حق جوړولو سره) راليږلي دي او (د قافلي خلقو به د قرآن آيتونه اورول او ويل به يي چې دا) هغه ته وحي راځي (دغسي) هغه ته وحي راځي [٧] نو (ما به د حضور ﷺ اوصاف چې قافلي والا به بيانول او کلام) يعنی قافلي والاچې به کوم آيتونه اورول هغه به مي داسي يادول [٨] لکه چې زما په سينه کې به ټينګيدل (يعني د قرآن آيتونه به ماته ښه ياديدل)

**حل اللغات:-** ① مَمَرّالنَّاسِ: دَخلقو دَ تيريدو ځائی مراد دې. ② الرُّكْبَانُ: د راکب جمع ده، د اوښ سورو (د اوښانو د قافلي) دپاره خاص طورسره استعماليږی. ③ يَزْعُمُ: يَعْنِي: يَظُنُّ: ګمان کوی، ④ يُغْرَي: دا صيغه غری يغری، سمع يسمع نه دَ معروف صيغه ده دَدې معنی دَ اينختو ده يعنی ما به يادولو بلکه زما سينې او زړه سره به دا کلام انختلو.

[١] وَكَانَتِ الْعَرَبُ تَلَوَّمُ بِإِسْلَامِهِمُ الْفَتْحَ. [٢] فَيَقُولُونَ: اتْرُكُوهُ وَقَوْمَهُ؛ فَإِنَّهُ إِنْ ظَهَرَ عَلَيْهِمْ فَهُوَ نَبِيٌّ صَادِقٌ، [٣] فَلَمَّا كَانَتْ وَقْعَةُ الْفَتْحِ، [۴] بَادَرَ كُلُّ قَوْمٍ بِإِسْلَامِهِمْ، [٥] وَبَدَرَ أَبِي قَوْمِي بِإِسْلَامِهِمْ، [٦] فَلَمَّا قَدِمَ، قَالَ: جِئْتُكُمْ وَاللّٰهِ مِنْ عِنْدِ النَّبِيِّ حَقًّا، [٧] فَقَالَ: "صَلُّوا صَلَاةَ كَذَا فِي حِينِ كَذَا، [٨] وَصَلَاةَ كَذَا فِي حِينِ كَذَا،

**ترجمه:** [١] اهل عرب (د حضور ﷺ د جماعت ځخه علاوه) د اسلام راوړلو په سلسله کې د مکي د فتح کيدو انتظار کولي (يعني دا به يي ويل که مکه فتح شوه نو مونږ به اسلام راوړو) [٢] (او دا به يي) ويل چې دا (رسول ﷺ) د هغه قوم ته پريږدي که هغه په دوي غالب شو (او مکه يي فتح کړه) نو پوه شی چې هغه رښتيني نبي دي (ځکه د هغه د دې ظاهري بې سرو ساماني او مادي کمزوري باوجود په اهل عرب باندې غالب راتلل او مکه فتح کول به د هغه معجزه وي او معجزه يوازي د ريښتيني نبي ځخه ظاهري دي شی) [٣] (نو کله چې الله تعالی جل جلاله د خپل دين کلمه اوچته کړه) او مکه فتح شوه [۴] نو خلق د اسلام قبلولو د

---

) اخرجه البخاري في كتاب المغازي / باب: (رقم-۴۳۰۲)

پاره رامات شو۵ زما پلار د خپل قوم څخه مخکې شو او (د ټولو څخه مخکې) یې اسلام راوړي۶ کوم وخت چې زما پلار واپس راغي نو (خپل قوم ته یې) اوویل قسم په الله زه د ربښتیني نبي ﷺ څخه راغلي یم۷ هغه ﷺ فرمایلي دي چې په فلاني وخت کې داسې (او دومره) لمونځونه کوي۸ او په فلاني وخت کې داسې (او دومره) لمنځونه کوي (یعني ده ﷺ د لمانځه کنبي فیات او اوقات بیان کړل)

**حل اللغات:** - ⑤تَلَوَّمُ: بِمَعْنَى تَنْتَظِرُ: دا صیغه دَ باب تفعل نه ده دَ انتظار په معنی کنبې دې. اصل کنبې "تتلوم" وو یعنی عرب په دې انتظار کنبې وو چه دا سړې مکه مکرمه فتح کولې شی که نه؟ ځکه چه په مکه باندې غلط سړې نه شی راتلې که چرته ده مکه فتح کړه نودا به رښتونې نبی وی. ⑥ظَهَرَ: أَيْ: غَلَبَ: یعنی که غالب شونبی علیه السلام. ⑦بَادَرَ: أَيْ: سَارَعَ وَسَابَقَ: دَمبادره نه دَ تادئ کولو په معنی کنبې دې.

۱ فَإِذَا حَضَرَتِ الصَّلَاةُ فَلْيُؤَذِّنْ أَحَدُكُمْ، ۲ وَيَؤُمَّكُمْ أَكْثَرُكُمْ قُرْآنًا". ۳ فَنَظَرُوا فَلَمْ يَكُنْ أَحَدٌ أَكْثَرَ قُرْآنًا مِنِّي، ۴ لَمَّا كُنْتُ أَتَلَقَّى مِنَ الرُّكْبَانِ، ۵ فَقَدَّمُونِي بَيْنَ أَيْدِيهِمْ، ۶ وَأَنَا ابْنُ سِتٍّ أَوْ سَبْعِ سِنِينَ، ۷ وَكَانَتْ عَلَيَّ بُرْدَةٌ كُنْتُ إِذَا سَجَدْتُ تَقَلَّصَتْ عَنِّي. ۸ فَقَالَتِ امْرَأَةٌ مِنَ الْحَيِّ: أَلَا تُغَطُّونَ عَنَّا اسْتَ قَارِئِكُمْ؟ ۹ ! فَاشْتَرَوْا، فَقَطَعُوا لِي قَمِيصًا. ۱۰ فَمَا فَرِحْتُ بِشَيْءٍ فَرَحِي بِذَلِكَ الْقَمِيصِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او کله چې د لمانځه وخت شی نو په تاسو کې دي یو سړې اذان وکړي ۲ او په تاسو کې چې چاته قرآن زیات یاد وي هغه دي ستاسو امامت وکړي ۳ کله چې د لمانځه وخت راغې او جماعت تیار شو نو خلقو په خپلوکي وکتل (چي امام څوك جوړ کړې شي؟) نو زما څخه زیات په قرآن پوهیدونکي څوك نه وو ۴ ځکه چې ما (خو،به د مخکې څخه) د قافلي والا څخه قرآن زده کولو ۵ نو خلقو زه مخکې کړم (او په لمانځه کې یې زما اقتداء وکړه) ۶ هغه وخت زما عمر د شپږو یا اوو کالو وو ۷ او زما په بدن صرف یو څادر وو ما چې به سجده کوله نو هغه څادر به زما د بدن څخه وښویدو (اوتشي به مي ښکاره شوه) ۸ په قوم کې یوې ښځې (د دې په لیدو سره) اوویل چې زمونږ د مخ څخه تاسو خلق د خپل امام شرمګاه ولې نه پټوي؟ ۹ نو بیا قوم جامه واخستله او زما د پاره یې قمیص جوړ کړو ۱۰ د هغه قمیص په وجه چې ماته کومه خوشحالي وشوه داسې خوشحالي راته هیڅیري نه وه شوي. (بخاري)

**حل اللغات:** - ⑧أَتَلَقَّى: أَيْ: أَتَلَقَّنُ وَآخُذُ وَأَتَعَلَّمُ: یعنی زه به هغوی سره ملاویدم او زده کړه به مې ترې کوله. ⑨فَقَدَّمُونِي: أَيْ: لِلْإِمَامَةِ: زه ئې مخکښې کړم امام جوړولو دپاره، ⑩بُرْدَةٌ: څادر، ⑪تَقَلَّصَتْ: أَيْ: اجْتَمَعَتْ وَانْضَمَّتْ وَارْتَفَعَتْ إِلَى أَعَالِي الْبَدَنِ: دَباب تفعل نه دَ راغونډیدو په معنی کښې دې څادر وړوکې وو نودَ سجدې په حالت کښې به راغونډیدو سره شرمګاه ښکاریده. ⑫الْحَيّ: أَيْ: الْقَبِيلَةَ: قبیله، ⑬تُغَطُّونَ: یعنی دَ خپل امام کوناتې زمونږ نه پټولې نه شئ یعنی تاسو نه دومره هم نه شی

کیدي چه هغه له یو لونی څادر ورکړی. ⑭ تَقَطَّعُوا: أَيْ: فَصَلُوا: هغوی جوړ کړو. ⑮ فَرِحْتُ: ډیر خوشحاله شوم.

**تسهیلات:-**

**قوله: عَمْرُوبْنِ سَلِمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا:**

**دعمرو بن سلمه اعراب:-** چرته هم چه دَ سلمه نوم په احادیثوکښې راغلې دې په ټولو کښې په لام باندې فتحه ده صرف دَعمرو بن سلمه کښې په لام باندې کسره ده.

په دې حدیث کښې یو څو الفاظ تشریح غواړی اول دَ هغې تشریح ضروری ده.

**قوله: فَقَدَّمُونِي بَيْنَ أَيْدِيهِمْ:**

**د عمرو بن سلمه دامامت واقعه:-** په دې واقعه کښې بنیادی خبره دا ده چه عمرو بن سلمه رضی الله عنه یو نابالغ وړوکې ماشوم دې چه دَ شپږو کالو وو دَ هغه امامت څنګه جائز شو؟ بل دا چه ده نفل کول نو ده پسې شاته دَ فرض ادا کونکو اقتدا څنګه صحیح شوه؟ په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې کوم چه اول هم لیکلې شوې دې. لیکن دلته به بیا اشاره کوم دې دَپاره چه زیر بحث حدیث ته ددې څه حق ملاؤ شی.

**د نابالغه په امامت کښې مذاهب:-**

① دَامام شافعی رحمه الله او امام بخاری رحمه الله په نیز نابالغ ماشوم امام جوړیدې شی البته دَ جمعې په مونځ کښې دَ امام شافعی رحمه الله دوه اقوال دی یو دَ جواز دې او بل دَ عدم جواز دې.

② دَ امام ابوحنیفه رحمه الله امام مالك رحمه الله اوامام احمد بن حنبل رحمه الله په نیز نابالغ هلك پسې مونځ جائز نه دې لهذا نابالغ هلك امام نه شی جوړیدې.

**د اول فریق دلیل:-** دَ عمرو بن سلمه رضی الله عنه دَ زیر بحث حدیث د دوی مستدل دې چه په خپله مدعا باندې یو واضحه دلیل دې.

**داول فریق د دلیل جواب:-** دَ عمرو بن سلمه رضی الله عنه دَ امامت واقعه دَهغه خلقو اوهغه علاقې دَ پاره بالکل دَ شروع مسئله وه اودا یوه جزئی واقعه وه. دا دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په اجازت سره هم نه وه. نه په دې باندې دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم تقریر شته. نه دَ حضورپاك صلی الله علیه وسلم مخکښې دا مسئله پیش کړې شوې ده. ددې محتملې واقعې سره دَ یوې ضابطې دَپاره استدلال نه شی کیدې. ګورئی چه دَعمرو بن سلمه رضی الله عنه په مونځ ستر ښکاره کیدو ولې دا به هم دَ یو ضابطې په توګه اخستلې شی؟ چه په مونځ کښې ستر ښکاره کیدل جائز دی.

خلاصه دا چه عمرو بن سلمه رضی الله عنه امام جوړول دَ هغه علاقې دَ خلقو خپله یو اجتهادی معامله وه.

**د دویم فریق دلائل:-**

① "الإمام ضامن والمؤذن مؤتمن" غوندې روایات د دوی مستدلات دی یعنی چې کله امام د

مقتدی د مونځ ضامن دې نو دَ مقتدی مونځ په هغې کښې ضم او دَ هغې په ضمن کښې به وی. لهذا دَ امام حالت دَ مقتدی دَ حالت نه اوچتیدل ضروری دی او متنفل امام اضعف حالاًوی لهذا هغه دا مضبوطه مورچه نه شی سنبالولې.

④ دَ حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اثر هم د دوی مستدل دې ارشاد فرمائی "لایؤمن الغلام الذي لاتجب علیه الحدود" (رواه اثرم فی سننه)

⑤ دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اثر هم د دوی مستدل دې فرمائی "لایؤم الغلام حتی یحتلم" (مصنف عبدالرزاق ۲/۳۹۸)

**د نابالغه د تروایح په امامت کښې اختلاف:**- البته دَ ائمه احناف په خپل مینځ کښې دې باره کښې اختلاف دې چه نابالغ ماشوم په نفلو کښې امام جوړیدې شی که نه؟ مثلاً په تراویح یا نوافل کښې قرآن اوروی نودا څنګه دی؟

① دَ احنافو دَ فقهاؤ نه دَ بلخ او بخارا علماء او دَ مصر اوشام دَ علماؤ دا موقف وو چه نوافل کښې نابالغ ماشوم امام جوړیدې شی. دې حضرات په دې فتویٰ باندې هم عمل کولو.

② دَ دوی نه علاوه دَ احنافو دَ ټولو فقهاؤ موقف دادې چه نابالغ هلك په نوافل کښې هم امام نه شی جوړیدې. بهرحال دا یو ضمنی خبره وه دا پریږدئی.

**د احقر شاه فیصل رائې:**- په تروایحو کښې د ختم دپاره د ماشوم امامت جائز ګرځول پکار دی.ځکه چې د قرآن پاک هیرول په لوئې ګناهونو کښې نبي کریم صلى الله عليه وسلم شمار کړې دې.او په تروایحو کښې د قرآن پاک ختم کولو سره قرآن ډیر زیات پخیږی.او په پوره کال کښې د رمضان میاشت یوه موقع وی چې حافظان په کښې پوره قرآن اوروی.نو د قرآن پاک د هیرولو د لوئې ګناه څخه بچ کیدو په غرض د نابالغه هلک امامت پکار دې چې جائز شی.او په دې کښې د بلخ او بخارا د عالمانو په قول فتوی ورکړې شی.

### [۱۱۲۷] دآزاد شوی غلام امامت

۱۱۲۷-(١)[١١] ①وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ②لَمَّا قَدِمَ الْمُهَاجِرُونَ الْأَوَّلُونَ الْمَدِينَةَ، ③كَانَ يَؤُمُّهُمْ سَالِمٌ مَوْلَى أَبِي حُذَيْفَةَ، ④وَفِيهِمْ عُمَرُ، وَأَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الْأَسَدِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① ابن عمر رضي الله عنهما فرمایي ② چې مدیني ته چې مخکې راتلونکي مهاجرین راغلل ③ نو د ابي حذیفه آزاد کرده غلام حضرت سالم رضي الله عنه به هغوئ ته مونځ ورکولو ④ او په هغه (مقتد یانو) کې حضرت عمر رضي الله عنه، حضرت ابوسلمه ابن عبدالاسد (هم) وو. (بخاري)

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الاذان/باب إمامة العبد والمولی (رقم-۶۹۲)

**تسهيلات:- قوله:** كَانَ يَؤُمُّهُمْ سَالِمٌ:

**دافضل په موجودګۍ کښې د مفضول دامامت حکم:**-حضرت سالم ﷺ دَ حضرت حذيفه ﷺ آزاد کړې شوې غلام وو دَ قرآن کريم يو ډير ښه قاري وو. نودَ قرآن دَ برکته هغه دَ دومره لوئی جليل القدر صحابه امام جوړشو په کوم کښې چه حضرت عمر ﷺ اوحضرت ابوسلمه بن الاسد ﷺ غوندې نوموړی صحابه وو. رښتيادی "دا قرآن بعضې خلق دَ ترقئی آسمان ته رسوی" دَدې حديث نه دَ افضل په موجودګئی کښې دَ مفضول دَ امام جوړيدو جواز ملاوېږی. په دې حديث سره دَ اسلام دَ هغه عادلانه نظام اندازه هم کيږی چا چه آقا اوغلام په يو صف کښې راوستل ويدرول اودَ هرصاحب کمال اکرام ئی اوکړو اودَ اسلامی مساوات علمبردار جوړشو.

**[۱۱۲۸] د دري قسمه خلقو مونځ نه قبليدل**

۱۱۲۸-()[۱۲] ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«ثَلَاثَةٌ لَا تُرْفَعُ لَهُمْ صَلَاتُهُمْ فَوْقَ رُءُوسِهِمْ شِبْرًا: ③ رَجُلٌ أَمَّ قَوْمًا وَهُمْ لَهُ كَارِهُونَ، ④ وَامْرَأَةٌ بَاتَتْ وَزَوْجُهَا عَلَيْهَا سَاخِطٌ، ⑤ وَأَخَوَانِ مُتَصَارِمَانِ»". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① ابن عباس ﷺ راوي دي چې نبي کريم وفرمايل ② دري قسمه خلق داسې دي چې د هغوئ مونځ د هغوئ د سر څخه يو لويشت اندازه (هم) پورته نه ځي (يعني د قبوليت درجي ته نه رسيږي) ③ ① يو خو هغه سړي چې د قوم امام وي او قوم د هغه څخه (په ديني امورو کي) ناراضه وي ④ ② او دويم هغه ښځه چې په داسې حالت کې شپه تيره کړي چې د هغې خاوند (د هغې دنافرماني يا د هغې د طرف څخه د خپل حق د عدم ادائيګي په وجه) خفه وي ⑤ ③ او دريم داسې دوه ورونه چې په خپلو کي ناراضه وي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:-** ① لَا تُرْفَعُ: وَهُوَ كِنَايَةٌ عَنْ عَدَمِ الْقُبُولِ: د اوچتيدو نه مراد عدم قبوليت دي. ② شِبْرًا: لويشت، ③ بَاتَتْ: چه شپه تيره کړی ښځه، ④ سَاخِطٌ: أَی مَا أَرْضَتْهُ: چه خفه وی (يعنی خاوند پرې خوشحاله نه وی). ⑤ مُتَصَارِمَانِ: أَيْ: مُتَقَاطِعَانِ لِعَدَمِ قِيَامِهِمَا بِحَقِّ الْأُخُوَّةِ: دَ صرم نه دي پرې کولو نه وائی مراد هغه دوه مسلمانان رونړه دی چه بغيردَ څه شرعی عذر نه دَ دريوورځوپورې خبرې بندې کړې وی.

[1] اخرجه ابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب من أم قوما وهم له كارهون (رقم-۹۷۱)

# [۴۳/۲۷]بَابُ مَا عَلَى الْإِمَامِ

## دا باب د هغه څیزونو په بیان کښې دې کوم چې په مقتدی لازم دی

**خلاصة الباب:-**

**فیه سبعة أحادیث مشتملة علی ثلاث مسائل:**

① تخفیف النبی ﷺ فی الصلوة لبعض أعذار المامومین: ۱، ۲.

② الأمر بتخفیف الصلاة لأجل بعض أعذار المامومین: ۳، ۴، ۶، ۷.

③ ما علی الإمام من الوزر: ۵.

**د مقتدیانو ذمه واری:-** دَمقتدیانو اهم ذمه واری دادې چه هغوی دې دَامام متابعت اوتابعداری اوکړی چه دَامام نه وړاندې په رکوع اوسجده کښې لاړنه شی امام پسې چه کوم اعمال دَهغوی دَ کولودی هغه په ښه شان سره پوره کړی. بهترین اودس سره اول صف ته اورسی اوبیا تکبیراولی سره په مانځه کښې شامل شی.

**دامام ذمه واری:-** دَامام اهم ذمه واری داده چه هغه په مانځه کښې دَ خپلو مقتدیانو خیال اوساتی او مونځ په داسې انداز سره اوکړی چه شاته دَ بوډاګانو بیمارانو اوحاجت مندو خلقو پوره پوره خیال اوساتلې شی. مونځ لنډ اومختصر ورکړی اودومره ئی دروند نه کړی چه شاته خلق تنګ شی اونفرت شروع کړی لیکن دَدې مطلب دانه دې چه رکوع سجده قومه جلسه کښې تعدیل دَارکانو خیال اونه ساتی اومسنون قراءت هم پریږدی بلکه دَمسنون قراءت ذکرچه کوم په احادیثواو فقه کښې راغلې دې دَهغې خیال اوساتی. دغه شان په تسبیحاتوکښې دَ اعتدال نه کاروا خلی درې تسبیحات په آرام آرام سره اولولی که زیاته وی نو ترپنځوخلوپورې دې اووائی زیات دې نه وائی الایه که دَ قوم دَ طرف نه دَ زیات مطالبه اوشوق وی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۱۱۲۹]په مونځ کښې آسانی کول

۱۱۲۹—(')[1]① «عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② مَا صَلَّيْتُ وَرَاءَ إِمَامٍ قَطُّ أَخَفَّ صَلَاةً وَلَا أَتَمَّ صَلَاةً مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ③ وَإِنْ كَانَ لَيَسْمَعُ بُكَاءَ الصَّبِيِّ ④ فَيُخَفِّفُ مَخَافَةَ أَنْ تُفْتَنَ أُمُّهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الاذان/ باب من أخف الصلاة عند بکاء الصبی (رقم-۷۰۸) ومسلم فی کتاب الصلاة/ باب أمر الأئمة بتخفیف الصلاة فی تمام (رقم-۱۹۰ - (۴۶۹) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء أن النبی صلی الله علیه وسلم قال: «إنی لأسمع بکاء الصبی فی الصلاة، فأخفف»(رقم-۳۷۶) والنسائی کتاب الإمامة/باب ما علی الإمام من التخفیف (رقم-۸۲۵) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها/باب الإمام یخفف الصلاة إذا حدث أمر (رقم-۹۹۰)

**ترجمه:**[۱] حضرت انس رضی الله عنه فرمايي[۲] چې ما د رسول الله ﷺ څخه زيات مختصر او كامل مونځ په يو امام پسي نه دي كړي[۳] او د حضور ﷺ (عادت دا وو چې) كله به يې (په لمانځه كي) د يو ماشوم د ژړا آواز واوريدو[۴] نو دي انديښنې څخه چې د هغه مور چېرته فكر منده نشي، مونځ به يې مختصر كړي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:**- ① أَخَفَّ: خِفَّةُ الصَّلَاةِ عِبَارَةٌ عَنْ عَدَمِ تَطْوِيلِ قِرَاءَتِهَا: دسپک او مختصر مونځ نه مراد قراءت كښې اختصاركول دي. ② أَتَمَّ: وَتَمَامُهَا عِبَارَةٌ عَنِ الإِتْيَانِ بِجَمِيعِ الأَرْكَانِ وَالسُّنَنِ: يعنې دَ حضورپاك ﷺ قرأت به مختصر وو خو تعديل اركان به وو سجده، ركوع، قومه او جلسه ټول به مكمل وو.

**تسهيلات:-**

**قوله: أَخَفَّ صَلَاةً وَلَا أَتَمَّ صَلَاةً:**

**په اخف او اتم كښې فرق:-**دَ "اخف"تعلق په عام توګه دَ قرأت تخفيف سره وی او دَ "اتم" لفظ په عام توګه دَ تعديل اركان دَپاره استعماليږی. مطلب دا چه دَ حضورپاك ﷺ قرأت به مختصر وو او سجده، ركوع، قومه او جلسه ټول به مكمل وو.

**قوله: مَخَافَةَ أَنْ تُفْتَنَ أُمُّهُ:**

**د راتلونكى كس دپاره دامام په انتظاركښې مذاهب:-**

① علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه په مانځه كښې كه چرې امام ته معلومه شی چه څوك راتلونكې راځی نو امام دَ هغه انتظاركولې شی چه هغه سرې په ركوع كښې شريك شی. امام مالك رحمه الله هم دَدې انتظارقائل دې.

② احناف فرمائی كه چرې يو امام دَ تقرب الى الله په غرض سره نه بلكه دَ يو سړی لحاظ ساتلو سره داسې كوی نودا مكروه تحريمی دې بلكه په دې كښې دَ شرك دَ ارتكاب احتمال دې.

③ بعضې علماء فرمائی چه كه چرې امام په ذاتی توګه باندې راتلونكې سړې نه پيژنی نو بيا ګنجائش شته ليكن دَدې ترك كول هم اولی دی.

**[۱۱۳۰] د نبی عليه السلام په خپل امت باندې شفقت**

۱۱۳۰–()[۲][۱] وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "إِنِّي لَأَدْخُلُ فِي الصَّلَاةِ وَأَنَا أُرِيدُ إِطَالَتَهَا، [۳] فَأَسْمَعُ بُكَاءَ الصَّبِيِّ فَأَتَجَوَّزُ فِي صَلَاتِي، [۴] مِمَّا أَعْلَمُ مِنْ شِدَّةِ وَجْدِ أُمِّهِ مِنْ بُكَائِهِ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:**[۱] ابو قتاده رضی الله عنه راوي دي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل[۲] زه چې په لمانځه كي

[۱] اخرجه البخاری فی كتاب الاذان/ باب من أخف الصلاة عند بكاء الصبی (رقم-۷۰۹) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب الإمام يخفف الصلاة إذا حدث أمر (رقم-۹۸۹)

داخل شم نو د لمانځه د اوږدولو اراده کوم[۳] خو کله چې د يو ماشوم د ژړا آواز واورم نو په لمانځه کې تخفيف کوم[۴] په دې خيال کولو سره چې د ماشوم د ژړا په وجه د هغه مور سخته فکر منده شي. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① إِطَالَتَهَا: اوږدول دمونځ، ② فَأَتَجَوَّزُ:أي:أختصر: مختصر کوم

**تسهيلات:- قوله: فَأَتَجَوَّزُ فِي صَلَاتِي:**

**په مونځ کښې د تخفيف حکم:**-ددې روايت نه معلومه شوه چې مقتديانو سره رعايت پکار دې.ځکه چې په هغوئ کښې هرقسمه خلق وی.مريضان ،ضعيف ،فالج وهلی ،ضرورت مند او معذوره، په دې وجه مونځ کښې تخفيف پکار دې.

**داوږدمونځ کولود جواز صورت:**-د تخفيف صلوة حکم به هله وی چې کله مقتدی دهغه د قراءت نه خوشحاله نه وی.اوکه خوشحاله وی نو بيا اوږد قراءت جائز دې.لکه څنګه حضرات خلفاء راشدينو به اوږدۀ اوږده قراءتونه کول.هغوئ ته معلوم وو چې زمونږ مقتديان په دې باندې خوشحاله دی.

**په حديث باندې اشکال:**-حضرت تهانوی رحمة الله عليه په دې مقام باندې اشکال کړې دې چې د محمد ﷺ په امت کښې داسې خلق هم تير شوی دی چې هغوئ ته بۀ دمونځ په حالت کښې ددنيا ومافيها هډو علم نه وو.لکه څنګه چې د حضرت علی ؓ متعلق راځی چې د مونځ په دوران کښې دهغوئ د بدن نه غشې اوويستلې شو او په دې باندې هغوئ هډو پوهه نشو.او چې کله به يو ماشوم ژړل نو نبی کريم ﷺ به مونځ مختصر کولو.نبی کريم ﷺ داسې مونځ ولې کولو؟

**داشکال جواب:**-دحضور نبی کريم ﷺ شخصيت عوامو او خواصو دواړو دپاره يو نمونه وو.او په دې کښې دهر کس دپاره دهغه د حال مطابق آسانتيا موجوده ده .او هم د شفقت علی الخلق وجه وه چې نبی کريم ﷺ به د ماشوم د آواز په آوريدو خپل مونځ مختصر کولو.باقی دحضرت علی ؓ واقعه دهغوئ په حال مبنی ده.

**[۱۱۳۱] امام دپاره دکمزورو مقتديانو خيال ساتل**

۱۱۳۱-()[۳][۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:[۲] "«إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ لِلنَّاسِ فَلْيُخَفِّفْ،[۳] فَإِنَّ فِيهِمُ السَّقِيمَ وَالضَّعِيفَ وَالْكَبِيرَ،[۴] وَإِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ لِنَفْسِهِ فَلْيُطَوِّلْ مَا شَاءَ»" مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

[۱]) اخرجه البخاري فى كتاب الاذان/ باب: إذا صلى لنفسه فليطول ما شاء (رقم-۷۰۳) ومسلم فى كتاب الصلاة/ باب أمر الأئمة بتخفيف الصلاة فى تمام (رقم) ۱۸۳ - (٤٦۷) وابوداود كتاب الصلاة/باب فى تخفيف الصلاة (رقم-۷۹٤) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء إذا أم أحدكم الناس فليخفف (رقم-۲۳٦) والنسائى كتاب الإمامة/باب ما على الإمام من التخفيف (رقم-۸۲۳) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب من أم قوما فليخفف (رقم-۹۸۷)

**ترجمه:** ۱ ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل ۲ هر كله چې په تاسو كې يو كس خلقو ته مونځ وركوي نو هغه ته پكار دي چې مونځ مختصر كړي ۳ ځكه چې په مقتديانو كې بيمار، كمزوري او سپين ږيري هم وي (او د هغوئ رعايت ضروري دي) ۴ او هر كله چې په تاسو كې يو سړي ځان ته مونځ كوي نو هغه ته اختيار دي چې څومره غواړي مونځ دې اوږد كړي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:**- ① فَلْيُخَفِّفْ: مختصر كوى دې مونځ يعنى قراءت دې نه اوږدوى. ② السَّقِيمَ: أَيِ الْمَرِيضَ: بيمار، ③ الضَّعِيفَ: كمزوري (يا په صحت كښې يا په عبادت كښې د سستئ په وجه). ④ الْكَبِيرَ: أَيْ فِي السِّنِّ: عمر ئې زيات وى، بوډا وى.

**تسهيلات:- قوله: فَإِنَّ فِيهِمُ السَّقِيمَ وَالضَّعِيفَ:**

**دضعيف په مصداق كښې دوه اقوال:-** ددې نه خو يا خلقتًا ضعيف مراد دې يا ترې بوډاګان خلق مراد دى. اوكبير څخه مراد عمر كښې زيات خلق دى. دې زمانه كښې اكثر حضرات خانله مونځ مختصر كوى او د جمعې مونځ كښې اوږدوالى كوى. الله تعالى دې ورته هدايت اوكړى.

**[۱۱۳۲] د متقديانو متنفره كولو ممانعت**

۱۱۳۲-()[۴] ۱ «وَعَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ۲ أَنَّ رَجُلًا قَالَ: وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي لَأَتَأَخَّرُ عَنْ صَلَاةِ الْغَدَاةِ ۳ مِنْ أَجْلِ فُلَانٍ مِمَّا يُطِيلُ بِنَا، ۴ فَمَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَوْعِظَةٍ أَشَدَّ غَضَبًا مِنْهُ يَوْمَئِذٍ، ۵ ثُمَّ قَالَ: "إِنَّ مِنْكُمْ مُنَفِّرِينَ، ۶ فَأَيُّكُمْ مَا صَلَّى بِالنَّاسِ فَلْيَتَجَوَّزْ، ۷ فَإِنَّ فِيهِمُ الضَّعِيفَ، وَالْكَبِيرَ، وَذَا الْحَاجَةِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ قيس ابن ابي حازم وايي چې حضرت ابو مسعود رضي الله عنه ماته وفرمايل ۲ (يوه ورځ) يو سړي د نبي كريم ﷺ په خدمت كې عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ زه د سحر د لمانځه څخه ځكه پاتې كيږم ۳ چې فلاني سړي مونږ ته ډير اوږد مونځ راكوي ۴ ابو مسعود رضي الله عنه وايي چه ما حضور ﷺ د نصيحت كولو په باره كې د هغې ورځ په شان د غصي څخه ډك هيڅ كله نه وو ليدلي ۵ حضور ﷺ وفرمايل په تاسو كې بعضې خلق (طويل مونځ كولو سره د جماعت څخه) خلقو ته نفرت وركونكي دي ۶ (خبردار) په تاسو كې چې كوم سړي خلقو ته مونځ وركوي نو هغه ته پكار دي چې هغه مختصر مونځ وركړي ۷ ځكه چې په مقتديانو كې كمزوري بوډا او حاجتمند خلق هم وي. (بخاري، مسلم)

---

[1] اخرجه البخارى فى كتاب الاذان/باب من شكا إمامه إذا طول (رقم-۷۰٤) ) ومسلم فى كتاب الصلاة/ باب أمر الأئمة بتخفيف الصلاة فى تمام (رقم) ۱۸۲ - (٤٦٦) وابوداود كتاب الصلاة/باب فى تخفيف الصلاة (رقم-۷۹۵) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب من أم قوما فليخفف (رقم-۹۸٤)والدارمى كتاب الصلاة /باب ما أمر الإمام من التخفيف فى الصلاة (رقم-۱۲۹٤)

**حل اللغات:-** ① لَا تَأَخَّرُ: روسته کیږم، پاتې کیږم. ② صَلَاةِ الْغَدَاةِ: أَيْ: صَلَاةِ الصُّبْحِ: د سحر مونځ، ③ مُنَفِّرِينَ: نفرت پیدا کونکی، ④ فَلْيَتَجَوَّزْ: أَيْ: لِيَقْتَصِرْ: مختصر مونځ دې کوی (قراءت دې مختصر کوی). ⑤ ذَا الْحَاجَةِ: حاجت مند، ضرورت مند (یعنی تکړه به وی خو دغه وخت به ئې بل څه سخت ضرورت او حاجت وی).

**د راوي مختصر تعارف:** بعضې وائی چه دَ ده نوم عبد بن عوف وو اودَ بعضو په نیز عوف الاحمسی وو. دَ بجلی قبیلې سره ئی تعلق وو او ابوعبدالله ئی کنیت وو. وائی چه دې دَخپل کور نه دَ رسول الله ﷺ دَ بیعت کولو دَ پاره لاړو اوس لادې په لار وو چه دَحضور ﷺ انتقال اوشو. دَ هغه پلار دَ رسول الله ﷺ صحابی رضي الله عنه وو دا واحد تابعی دې چه دَ عشره مبشره نه روایت نقل کوی.(۲) خوامام ابوواسع فرمائی دَ عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه نه علاوه دَ ټولونه روایت نقل کوی. (۳)

**وفات:-** ۸۴ھ یا ۸۷ھ یا ۸۸ھ کښې وفات شوې وو. (۴)

**تسهیلات:-**

**قوله: مِنْ أَجْلِ فُلَانٍ مِمَّا يُطِيلُ بِنَا:**

**د فلان مصداق:-** دَدې حدیث نه دامعلومه نه شوه چه سوال کونکې سړې څوك وو او "من اجل فلان" کښې دَ فلان نه ابی بن کعب رضي الله عنه مراد دې.

**[۱۱۳۲] دامام د مونځ صحت او فساد**

١١٣٢-(١)[٥] ⓵ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ⓶ "«يُصَلُّونَ لَكُمْ فَإِنْ أَصَابُوا فَلَكُمْ، ⓷ وَإِنْ أَخْطَئُوا فَلَكُمْ وَعَلَيْهِمْ»". ⓸ رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. وَهَذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الثَّانِي.

**ترجمه:** ⓵ ابوهریره رضي الله عنه راوي دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل ⓶ تاسو ته به امامان لمونځونه درکوي که هغوئ مونځ په ښه شان درکړي نو د ددې فائده ستاسو د پاره ده (او د هغوئ د پاره هم ده) ⓷ او که هغوئ خطا وکړه (په ښه شان مونځ يي درنه کړو) نو تاسو ته (به بيا هم) ثواب ملاويږي او د هغوئ ګناه به په هغوئ وي، ⓸ بخاري. او دا باب د فصل ثاني نه خالي دې.

**حل اللغات:-** ① أَصَابُوا: أَيْ: أَتَوْا بِجَمِيعِ مَا عَلَيْهِمْ مِنَ الْأَرْكَانِ وَالشَّرَائِطِ: که په ښه شان ئې مونځ درکوو یعنی دمونځ دټولو ارکانو او شرائطو لحاظ ئې ساتلو. ② أَخْطَئُوا: بِأَنْ أَخَلُّوا بِبَعْضِ ذَلِكَ عَمْدًا أَوْ سَهْوًا: څه غلطی ئې اوکړه یعنی په قصد سره یا به هیره سره ئې په مونځ کښې څه پریخودل.

**تسهیلات:-** **قوله:** يُصَلُّونَ لَكُمْ

**د زیربحث حدیث پس منظر:-** دا پوره جمله خبر واقع دې اومبتدأ محذوف دې کوم چه

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الاذان/ باب إذا لم يتم الإمام وأتم من خلفه (رقم-۶۹۴)

"ائمتکم" دي. دَدې حديث تعلق هغه امامانو سره دې کوم چه حکمران وی اوهم حکمرانان دَ دين ورانونکی وی. دَدې حديث پوره پس منظر داسې دې چه حضورپاك ﷺ دَ راتلونکی حکمرانانو باره کښې فرمائيلی دی چه هغوی به مونځ خرابوی. نو صحابه کرامو عرض اوکړو چه بيا هغوی پسې مونځ نه دی کول پکار. حضورپاك ﷺ اوفرمائيل چه هغوی به مونځونه ورکوی تاسو هغوی سره مونځ کوئی که چرې هغوی په صحيح توګه باندې مونځ ورکړو نودَ هغوی اوستاسو دواړو فائده ده خو که هغوی په غلطه طريقه سره مونځ ورکړو نودَ غلطئی ذمه دار به هغوی پخپله وی اوپخپله به مجرمان جوړيږی. تاسو خو ښه کار اوکړو په تاسو به دَهغوی دَ غلطئی اثر نه پريوځی.

وهذا الباب خال عن الفصل الثاني

**نوټ:** يعنی دا باب د دريم فصل څخه خالي دی.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۱۱۲٤] امام دپاره دبوډاګانو او بيمارانو خيال ساتل

۱۱۳۳—()[۲] [۱] «عَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] آخِرُ مَا عَهِدَ إِلَيَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۳] "إِذَا أَمَمْتَ قَوْمًا فَأَخِفَّ بِهِمُ الصَّلَاةَ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ. [۴] وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ: أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لَهُ: " «أُمَّ قَوْمَكَ "، [۵] قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! إِنِّي أَجِدُ فِي نَفْسِي شَيْئًا. قَالَ: " ادْنُهْ "، [۶] فَأَجْلَسَنِي بَيْنَ يَدَيْهِ، ثُمَّ وَضَعَ كَفَّهُ فِي صَدْرِي بَيْنَ ثَدْيَيَّ،

**ترجمه:** [۱] عثمان ابن ابي العاص رضي الله عنه فرمايي [۲] چې نبي کريم ﷺ چې ماته آخري وصيت کړي وو [۳] هغه دا وو چې هر کله ته د خلقو امامت کوي نو هغوئ ته مختصر مونځ ورکوه، مسلم [۴] د مسلم د يو بل روايت الفاظ دا دي چې حضور ﷺ حضرت عثمان رضي الله عنه ته وفرمايل چې د خپل قوم امامت کوه [۵] حضرت عثمان رضي الله عنه وايي چې ما عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ زه په خپل زړه کې څه خدشه محسوسوم حضور ﷺ (دي اوريدو سره) وفرمايل ماته رانژدي شه [۶] (کوم وخت چې زه حضور ﷺ ته نژدي شوم نو) حضور ﷺ زه خپل مخې ته کينولم او زما په سينه يې د دواړو تيو په مينځ کې خپل لاس مبارك کينبودلو

**حل اللغات:** - ① فَأَخِفَّ: خِفَّةُ الصَّلَاةِ عِبَارَةٌ عَنْ عَدَمِ تَطْوِيلِ قِرَاءَتِهَا: دسپک او مختصر مونځ نه مراد قراءت کښې اختصار کول دی. ② ادْنُهْ: دا د دُنُوّ نه د امر صيغه ده. أَيْ اقْرُبْ مِنِّي: رانژدې شه ماته. ③ ثَدْيَيَّ: دواړه تينونه، د سينې دواړه طرفونه،

[۱] ثُمَّ قَالَ: "تَحَوَّلْ"، فَوَضَعَهَا فِي ظَهْرِي بَيْنَ كَتِفَيَّ، [۲] ثُمَّ قَالَ: أُمَّ قَوْمَكَ، فَمَنْ أَمَّ قَوْمًا فَلْيُخَفِّفْ، [۳] فَإِنَّ فِيهِمُ الْكَبِيرَ، وَإِنَّ فِيهِمُ الْمَرِيضَ، وَإِنَّ فِيهِمُ الضَّعِيفَ، وَإِنَّ فِيهِمْ ذَا الْحَاجَةِ، [۴] فَإِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ وَحْدَهُ فَلْيُصَلِّ كَيْفَ شَاءَ»".

[۱] اخرجه مسلم فی كتاب الصلاة/ باب أمر الأئمة بتخفيف الصلاة فی تمام (رقم) ۱۸۶ - (٤۶۸)

**ترجمه:** ① بیا یې وفرمایل شا کړه (ما خپله شا د حضور ﷺ طرف ته کړه) نو حضور ﷺ زما په شا د دواړو اوږو په مینځ کې خپل لاس مبارك کیښودلو② او ویې وفرمایل چې (څه) او د خپل قوم امامت کوه او (دا یاد ساته) چې هر کله یو سړي د یو قوم امام جوړ شي نو هغه ته پکار دي چې مختصر مونځ ورکوي③ څکه چې په هغوئ کې به سپین ږیري هم وي او بیماران هم او کمزوري خلق هم او حاجتمند هم④ او کله چې سړي خان له مونځ کوي نو هغه ته اختیار دي چې څنګه غواړي اوږد مونځ دي وکړي.

**حل اللغات:** - ⑥ تَحَوَّلْ: أي انْقَلِبْ: راتاو شه، شاکړه.

**تسهیلات:** -

**قوله:** ثُمَّ وَضَعَ كَفَّهُ فِي صَدْرِي بَيْنَ ثَدْيَيَّ:

**په سینه د لاس کیخودو حکمت:** - ددې حکمت دا دې چې راوی د حدیث د خیني وسوسو او قرآن اوحدیث او فقه کښې د قلت علم په وجه یو قسم له ضعف محسوسولو، نو نبی کریم ﷺ خپل دست مبارك سره هغه ته تقویت ورکړو.

**[۱۱۲۵] په مانځه کښې د تخفیف حکم**

۱۱۲۵ – ()[٤] ①«وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ② كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُنَا بِالتَّخْفِيفِ، ③ وَيَؤُمُّنَا بِـ(الصَّافَّاتِ)». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① ابن عمر رضي الله عنهما فرمایي ② چې نبي کریم ﷺ به مونږ ته د مختصر مونځ ورکولو حکم کوي③ او پخپله چې به یې مونږ ته مونځ راکولو نو د سورة صافات قراءت به یې کولو. (نسایي)

**تسهیلات:** -

**قوله:** وَيَؤُمُّنَا بِالصَّافَّاتِ:

**دحدیث په دوؤ جملو کښې دتعارض اشکال:** - دَدې حدیث په دواړو ټکړوکښې په ظاهره تعارض دې اوهغه دادې چه حضورپاك ﷺ به صحابه کرامو ته دَتخفیف صلاة بنه تاکید فرمائیلو لیکن پخپله به ئی په سورت صافات سره مونځ ورکولو چه یواوږد سورت دې؟

**دتعارض جواب:** -

① دَ حضورپاك ﷺ دَ خوند والا دَ مونځ نه به خلقو مزه اوچتوله هلته دَ ستړیوالی تصورنه وو په دې وجه به ئی اوږد سورت لوستلو په نورو کښې داخصوصیت چرته وو

② دَ حضورپاك ﷺ دَ لوستلو انداز عجیبه وو چه په لږ وخت کښې به ئی اوږد سورت لوستلو اوپه نورو خلقوکښې داخیزنه وو په دې وجه به ئی هغوی منع کول.

[1]) اخرجه النسائي في السنن رقم الحديث ۸۲۶

# [٢٨/٤٤] بَابُ مَا عَلَى الْمَأْمُومِ مِنَ الْمُتَابَعَةِ وَحُكْمِ الْمَسْبُوقِ]

**دا باب په مقتدی باندې د امام د تابعدارۍ او د مسبوق د مونځ بیان کښې دې**

**خلاصة الباب:-**

**فيه أربعة عشر حديثاً مشتملة على تسع مسائل:**

① التخلف عن الإمام فى الأفعال: ١-

② النهي عن السبق على الإمام: ٢، ٣، ۶، ١۴-

③ معية المأموم مع أفعال الإمام: ٣، ۴-

④ كيفية إقتداء القائمين باالإمام الجالس: ۴، ۵، ١٢-

⑤ وقت شروع المسبوق في الصلاة: ٧، ٩-

⑥ فضيلة الشركة فى تكبير الإفتتاح: ٩ -

⑦ نيل الثواب بنية الجماعة: ١٠-

⑧ حكم الجماعة الثانية: ١١-

⑨ إدراك الركعة بإدراك الركوع: ٨، ١٣-

**دامام د تابعدارۍ دوه حکمونه:-** په دې باب کښې ددې بیان کيږي چه مقتدی له دامام تابعداری په کوموځیزونوکښې څنګه کول پکاردی.

① په مانځه کښې په مقتدیانوباندې دامام تابعداری صرف په فرضو او واجباتو کښې ضروری ده

② په سنتو کښې واجب نه ده تسبیح تسمیه رفع الیدین وغیره،

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[١١٣٦] په مانځه کښې د صحابوؤ د نبی علیه السلام متابعت**

١١٣٦-()[1]① «عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② كُنَّا نُصَلِّي خَلْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ③ فَإِذَا قَالَ: "سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ" لَمْ يَحْنِ أَحَدٌ مِنَّا ظَهْرَهُ ④ حَتَّى يَضَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: جَبْهَتَهُ عَلَى الْأَرْضِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① براء ابن عازب رضي الله عنه فرمایي ② چې مونږ به په نبي کریم ﷺ پسې مونځ کولو ③

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الاذان/ باب: متی یسجد من خلف الإمام؟ (رقم-٦٩٠) ومسلم فی کتاب الصلاة/باب متابعة الإمام والعمل بعده (رقم١٩٧ - (٤٧٤) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی کراهية أن يبادر الإمام فی الركوع والسجود(رقم-٢٨١)

کله چې به حضور ﷺ سمع الله لمن حمده ویل نو په مونږ کې به یو سړي خپله شا نه بنکته کوله ۲ تر څو پورې چې به حضور ﷺ د سجدې د پاره خپل تندي مبارك په زمکه نه وو ایښودلي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:-** ① لَمْ يَحْنِ: أَيْ: لَمْ يَعْوَجْ: يَحْنُ دَ باب ضرب اونصر دواړو نه راځي. حنا يحنو دَ ټيټيدو اوکګيدو په معنی کښې دې. ② جَبْهَتَهُ: جبهة تندی ته وائي.

**تسهيلات:-**

**قوله: لَمْ يَحْنِ أَحَدٌ مِنَّا ظَهْرَهُ:**

**د امام څخه د وړاندی والي څخه پرهيز کول:-** مراد دادې چه کله به مونږ دَ رکوع نه واپس قومې ته تلو نوولاړ به وو اوترکومې پورې چه به رسول الله ﷺ په زمکه باندې سجده نه کوله مونږ به نه کګيدو دې دپاره چه دَ حضورپاك ﷺ نه په سجده کښې وړاندیوالي لازم رانه شي.

**دامام د تابعدارۍ دوه صورتونه:-** اوس دلته فقهي مسئله داسې ده چه دَ امام نه مخکښې کیدل دَ ټولو ائمؤ په نیز حرام دی بلکه متابعت کول پکار دی. بیا دَ متابعت دوه صورتونه دی

① مقارنت هغه وی چه دَ امام دَ افعالو سره متصلاً دَ مقتدی فعل شروع شي

② موافقت هغه وی چه دَامام دَ افعالو نه څه وخت بعد دَ مقتدی فعل شروع شي.

**امام سره د مقارنت اوموافقت په افضليت کښې مذاهب:-**

① دَ شوافعو په نیز تأنّی او تأخر افضل دې چه دَ امام دَ فعل په آخره کښې دَ مقتدی دَ فعل شروع وی.

② دَ احنافو په نیز مقارنت افضل دې صرف په تکبیر تحریمه کښې موافقت افضل دې یعنی تکبیر تحریمه کښې دَ امام نه پس تکبیر وئیل.اوپه باقی اعمالو کښې د امام څخه روستو والي افضل دې.

**داول فريق دليل:-** زیربحث حدیث د دوی مستدل دې.

**داول فريق د دليل جواب:-** دَدې حدیث مطلب دانه دې چه ترکومې به حضورپاك ﷺ سجدې ته نه وو رسیدلې یو صحابی ته دَ حرکت کولو حق نه وو.لیکن اصل مقصد دا وو چه حضور پاك چونکه تیز حرکت نه شو کولې نوتاسو انتظار کوئی چرته داسې نه وی چه تاسو دَ حضورپاك ﷺ نه مخکښې نه شئ. په دې وجه ئې اوفرمائیل "لم یحن" یعنی څوك به کګیدلو نه.

**د دويم فريق دليل:-** احناف فرمائی چه داحدیث دَ هغه اوږد حدیث ټکړه ده په کوم کښې چه مسابقت نه ممانعت راغلې دې. اصل مقصد دا دې چه مسابقت رانه شي. کله چه دَ

حضورپاك ﷺ بدن مبارك دروند شو اوعمر مبارك ئې زيات شو نوهغه وخت دَ مسابقت خطره زياته شوه. په دې باندې حضورپاك ﷺ اوفرمائيل چه مسابقت مه کوئی ترکومې چه زه سجدې ته لاړنه شم تاسو لړ شان هم مه ټيټيږئ نوصحابه کرام به نه ټيټيدل.

**[۱۱۳۷] مقتدي دې د امام څخه مخکې هيڅ رکن نه اداء کوي**

۱۱۳۷–(۱)[۲] ۱ «وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ ۲ فَلَمَّا قَضَى صَلَاتَهُ أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ. ۳ فَقَالَ: "أَيُّهَا النَّاسُ! إِنِّي إِمَامُكُمْ ۴ فَلَا تَسْبِقُونِي بِالرُّكُوعِ، وَلَا بِالسُّجُودِ، وَلَا بِالْقِيَامِ، وَلَا بِالِانْصِرَافِ; ۵ فَإِنِّي أَرَاكُمْ أَمَامِي وَمِنْ خَلْفِي» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې (يوه ورځ) نبي کريم ﷺ مونږ ته مونځ راکړو ۲ کوم وخت چې مونځ يې راکړو نو خپل مخ مبارك يې زمونږ طرف ته متوجه کړو ۳ او وي فرمايل خلقو زه ستاسو امام يم ۴ نو تاسو په رکوع کولو، سجده کولو، ودريدو او ګرځيدو (يعني د لمانځه څخه په فارغيدو کې) زما څخه مخکې کيږئ مه ۵ زه تاسو خپل وړاندې او (په ذريعه د مکاشفې يا په طور د معجزې يا په ذريعه د مشاهدې) د خپل وروسته څخه هم وينم. (مسلم)

**تسهيلات:- قوله:** فَلَا تَسْبِقُونِي بِالرُّكُوعِ:

**دامام څخه د وړاندې رکوع کولو حکم:**–امام نه په يو رکن کښې سبقت کول جائز نه دی. که دامام نه وړاندې رکوع ته لاړو او رکوع کښې امام سره شريك شو نو دا رکوع صحيح ده، اګرچې دا مکروه دی. اوکه سره شريك نه شو نوبيا دا رکوع صحيح نه ده. اودغه رکعت اونشو. نوکه دغه رکعت ئې په مونځ کښې حساب کړو او سلام ئې اوګرځولو. مونځ ئې فاسد شو.

**قوله:** وَلَا بِالِانْصِرَافِ:

**دمذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:-**

① انصراف بمعنی کورونو ته تلل يعنی زما نه وړاندې کورونو ته مه ځئ دا حکم دې دپاره چې سړی اوښځې يو بل سره يو ځائې نه شی.

② تاسو په سلام ګرزولو کښې زما څخه وړاندې والې مه کوئ.

**[۱۱۳۸] د امام پوره پيروي کول**

۱۱۳۸–(۱)[۳] ۱ «وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ " لَا تُبَادِرُوا

[۱]) اخرجه مسلم فی کتاب الصلاة/باب النهی عن سبق الإمام برکوع أو سجود ونحوهما(رقم-۱۱۲ - (۴۲۶) والدارمی کتاب الصلاة /باب النهی عن مبادرة الأئمة بالرکوع والسجود (رقم-۱۳۵٤)

[۲]) اخرجه مسلم فی کتاب الصلاة/باب النهی عن مبادرة الإمام بالتکبير وغيره(رقم-۸۷ - (۴۱۵) والنسائی کتاب الإمامة/باب مبادرة الإمام (رقم-۸۳۰) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة. والسنة فيها/باب النهی أن يسبق الإمام بالرکوع والسجود (رقم-۹۶۰)

الْإِمَامَ: إِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوا، [۳] وَإِذَا قَالَ: ﴿وَلَا الضَّالِّينَ﴾ [الفاتحة: ۷] فَقُولُوا: آمِينَ، [۴] وَإِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوا، [۵] وَإِذَا قَالَ: سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، فَقُولُوا: اللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ» "[۶] مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ; إِلَّا أَنَّ الْبُخَارِيَّ لَمْ يَذْكُرْ: "وَإِذَا قَالَ: ﴿وَلَا الضَّالِّينَ﴾ [الفاتحة: ۷]

**ترجمه:** [۱] ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل [۲] تاسو د خپل امام څخه مه مخکې کيږي هر کله چې امام تکبير وکړي نو تاسو (هم د هغه سره) تکبير وکړئ [۳] هر کله چې امام ولاالضالين اووائي نو تاسو د هغه سره آمين اووايئ [۴] هر کله چې امام رکوع ته لاړ شي نو تاسو رکوع ته لاړ شئ [۵] او کله چې هغه سمع الله لمن حمده اووائي نو تاسو اللهم ربنا لك الحمد (اي الله زمونږ ربه ټول تعريفونه تالره دي) اووايئ. [۶] دا روايت بخاري او مسلم نقل کړي دي خوبخاري په خپل روايت کې د إِذَا قَالَ وَلَا الضَّالِّينَ الفاظ نه دي نقل کړي.

**حل اللغات:-** ① لَا تُبَادِرُوا: أَيْ: لَا تَسْبِقُوهُ: مه مخکښې کيږئ.

**تسهيلات:-**

**قوله: وَإِذَا قَالَ: وَلَا الضَّالِّينَ فَقُولُوا: آمِينَ:**

**په مقارنت اوعدم قراءة فاتحه خلف الامام باندې دليل:-** دا حديث هم د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دې چې دامام سره مقارنت د معاقبت څخه اولى او افضل دي.بله په دې حديث کښې د تقسيم څخه دا هم معلوميږي چې مقتدى به سورة فاتحه نه لولي.ځکه چې نبى كريم ﷺ فرمائى چې کله امام ولاالضالين اووائى نو تاسو آمين وائې دا ئې نه دى فرمائيلى چې کله تاسو ولاالضالين اووائې نو آمين وايې.

**[۱۱۲۹] که امام په ناسته مونځ ورکوي نو مقتديان دې په ناسته مونځ کوي که په ولاړه؟**

۱۱۳۹ –(۱)[۳] [۱] «وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهِ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكِبَ فَرَسًا، [۲] فَصُرِعَ عَنْهُ فَجُحِشَ شِقُّهُ الْأَيْمَنُ، [۳] فَصَلَّى صَلَاةً مِنَ الصَّلَوَاتِ وَهُوَ قَاعِدٌ [۴] فَصَلَّيْنَا وَرَاءَهُ قُعُودًا، [۵] فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ: "[۶] إِنَّمَا جُعِلَ الْإِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهِ، [۷] فَإِذَا صَلَّى قَائِمًا فَصَلُّوا قِيَامًا، [۸] وَإِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوا، وَإِذَا رَفَعَ فَارْفَعُوا، [۹] وَإِذَا قَالَ: سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ فَقُولُوا: رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ، [۱۰] وَإِذَا صَلَّى جَالِسًا فَصَلُّوا جُلُوسًا أَجْمَعُونَ» ".

**ترجمه:** [۱] انس رضي الله عنه فرمايي چې (يو ځل د يو سفر په دوران کې) نبي کريم ﷺ په اس سور وو [۲] چې (اتفاقا) حضور ﷺ ښکته را ايله شو (راپريوتلو) چه د هغې په وجه د حضور ﷺ ښي اړخ (داسي) خوږ شو (چې په ولاړه سره په لمانځه کولو باندې حضور ﷺ قادر

---

[۱] اخرجه البخارى فى كتاب الاذان/ باب: إنما جعل الإمام ليؤتم به (رقم-۶۸۹) ومسلم فى كتاب الصلاة/باب ائتمام المأموم بالإمام(رقم-۷۹ - (۴۱۱) وابوداود كتاب الصلاة،باب الإمام يصلى من قعود (رقم-۶۰۱) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء إذا صلى الإمام قاعدا فصلوا قعودا (رقم-۳۶۱) والنسائى كتاب الإمامة/باب الائتمام بالإمام يصلى قاعدا (رقم-۸۳۲) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فى إنما جعل الإمام ليؤتم به (رقم-۱۲۳۷)

نه وو،[۳] نو حضور ﷺ په (دي پنځو فرض) لمونځونو کې يو مونځ مونږ ته په ناسته راکړو[۴] مونږ هم په حضور ﷺ پسي په ناسته مونځ وکړو[۵] کوم وخت چې حضور ﷺ د لمانځه څخه فارغ شو نو (مونږ ته مخاطب کيدو سره) وي فرمايل[۶] امام د دې د پاره مقرر شوې دې چې د هغه اقتداء وشي[۷] نو هر کله چې امام په ولاړه مونځ کوي نو تاسو هم په ولاړه مونځ کوئ[۸] هر کله چې رکوع وکړي نو تاسو هم رکوع وکړي او کله چې هغه د رکوع څخه پاڅيږي نو تاسو هم د رکوع څخه پاڅيږئ[۹] کله چې هغه سمع الله لمن حمده اووائي نو تاسو ربنالك الحمد اووايئ[۱۰] او کله چې هغه په ناسته مونځ کوي نو تاسو ټول مقتديان هم په ناسته مونځ کوئ.

**حل اللغات:-** ① فَصُرِعَ: د مجهول صيغه ده، أي: سَقَطَ: ښکته راوغورځيدو. ② فَجُحِشَ: أي انْخَدَشَ: خوږ شو، زخمي شو. ③ شِقُّهُ الْأَيْمَنُ: ښي طرف.

> [۱] قَالَ الْحُمَيْدِيُّ: قَوْلُهُ: "«إِذَا صَلَّى جَالِسًا فَصَلُّوا جُلُوسًا»[۲] " هُوَ فِي مَرَضِهِ الْقَدِيمِ،[۳] ثُمَّ صَلَّى بَعْدَ ذَلِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسًا[۴] وَالنَّاسُ خَلْفَهُ قِيَامٌ لَمْ يَأْمُرْهُمْ بِالْقُعُودِ،[۵] وَإِنَّمَا يُؤْخَذُ بِالْآخِرِ فَالْآخِرِ مِنْ فِعْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.[۶] هَذَا لَفْظُ الْبُخَارِيِّ. وَاتَّفَقَ مُسْلِمٌ إِلَى "أَجْمَعُونَ".[۷] وَزَادَ فِي رِوَايَةٍ. "«فَلَا تَخْتَلِفُوا عَلَيْهِ، وَإِذَا سَجَدَ فَاسْجُدُوا»".

**ترجمه:**[۱] حميدي رحمه الله وايي چې د حضور ﷺ دا ارشاد چې کله امام په ناسته مونځ ورکړي نو تاسو هم په ناسته مونځ کوئ[۲] دا د حضور ﷺ په اولني بيمارئ کې وو[۳] او د هغې څخه وروسته (د مرګ په مرض کې وفات کيدو څخه يوه ورځ مخکې) حضور ﷺ په ناسته مونځ ورکړو[۴] نو خلقو په حضور ﷺ پسې په ولاړه مونځ وکړو او حضور ﷺ هغوئ ته په ناسته د لمانځه کولو حکم ونه فرمايلو[۵] او د حضور ﷺ په هغه حکم عمل کولي شي کوم چې آخري دي (يعني اولني فعل منسوخ او دويم فعل ناسخ وي)[۶] دا الفاظ د بخاري دي او مسلم هم تر لفظ اجمعون پورې د بخاري موافق دي (يعني روايت تر دي لفظ پورې بخاري او مسلم دواړو نقل کړي دي)[۷] او په دويم روايت کې مسلم دا الفاظ مزيد نقل کړي دي چې حضور ﷺ دا هم وفرمايل چې د امام خلاف مه کوئ او هر کله چې امام سجده کوي نو تاسو هم سجده کوئ.

**تسهيلات:-**

**قوله:** فَصَلُّوا جُلُوسًا:

**دحديث پس منظر:-** دَدې حديث پس منظر داسې دې چه يو ځل حضورپاك ﷺ دَ اس نه پريوتلو اودَ حضورپاك ﷺ دَ ښي اړخ يو طرف په پوره توګه زخمي شو. حضورپاك ﷺ يو مونځ په جمع سره کورکښې داسې اداکړو چه حضورپاك ﷺ ناست وو او ملګرو ئې هم په

ناسته مونځ اداکولو. دَ مونځ نه فارغیدوسره حضورپاك ﷺ دَمعذور امام متعلق دا مسئله بیان کړه چه کله امام کینی نو تاسو هم کیننی او په ناسته باندې مونځ اداکړئ

قوله: إِذَا صَلَّى جَالِسًا فَصَلُّوا جُلُوسًا:

**د قائم په جالس پسې د اقتداء په صحت کښې مذاهب:-**

دَدې حدیث په وجه یوه اختلافی مسئله پیدا شوه اوهغه دا چه په قیام باندې دَ قادر کس اقتداء په قیام باندې دَ نه قادر کیدونکی شاته مونځ کول جائز دی که نه؟ یعنی که چرې امام په قیام باندې قادر نه وی اومقتدیان قادر وی نو آیا دا اقتداء جائز ده که نه؟ اوکه چرې جائز وی نو مقتدی به په ولاړه باندې مونځ کوی او که په ناسته؟ په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.

① دَ امام مالك رحمه الله او امام محمد رحمه الله مذهب دادې چه قادر علی القیام مقتدی عاجز عن القیام امام پسې مونځ هډو کولې نه شی.

② دَ امام احمدبن حنبل رحمه الله په نیزعاجز امام پسې د قادر مقتدیانو اقتداء صحیح ده لیکن مقتدی دې هم دَ امام په شان کینی مونځ دې کوی.

③ دَ امام ابوحنیفه رحمه الله، امام شافعی رحمه الله او امام ابویوسف رحمه الله په نیز قادرعلی القیام مقتدی په عاجزعلی القیام امام پسې اقتداء کولې شی لیکن قادر مقتدی به په ولاړه باندې مونځ کوی.

**د اول فریق دلیل:-** دا قتداء هډو صحیح نه ده ځکه چه دَ روغو جوړو مقتدیانو مونځ قوی دې اوقاعد امام مونځ ضعیف دې اودَ امام مونځ ضامن وی او دَ مقتدی مونځ دَدې په ضمن کښې وی. نو ضعیف مونځ قوی مونځ په خپل ضمن کښې څنګه اخستې شی او که چرې مقتدی کیناستو نوبیاهم مونځ صحیح نه دې ځکه چه دَ اصحاء دَپاره دَ کیناستو اجازت چرته دې؟ لهذا دا اقتداء باطل ده. دَ امام مالك رحمه الله دَدې طرز عمل اختیارولو سره هغه دَدې اختلاف نه اووتلو. اوس صرف امام احمدبن حنبل رحمه الله اودَ جمهورو مقابله پاتې شوې ده.

**د دویم فریق دلیل:-** زیر بحث حدیث د دوی مستدل دې چه په خپله مدعا باندې ډیر واضح دلیل دې.یعنی دا چې امام کله په ناسته مونځ کوی نوتاسوهم په ناسته مونځ کوئ.

**ددویم فریق د دلیل جواب:-** حدیث نه مستنبط دا حکم روستو راتلونکی حکم سره منسوخ شوې دې ځکه چه دا واقعه دَ ۵هجری ده اومونږ چه دَ کوم دلیل نه استدلال کوو هغه دَ حضورپاك ﷺ دَ ژوند مبارك آخری واقعه ده او په شریعت کښې هر متأخر حکم خپلولې شی ځکه چه هغه دَ نسخ نه محفوظ وی.

**د دریم فریق دلائل :-**

① دَ حضورپاك ﷺ دَ مرض الوفات په وخت دَمونځ ورکولو واقعه د دوی مستدل دې.

«وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: لَمَّا ثَقُلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، جَاءَ بِلَالٌ يُؤْذِنُهُ بِالصَّلَاةِ، فَقَالَ: "مُرُوا أَبَا بَكْرٍ أَنْ يُصَلِّيَ بِالنَّاسِ"، فَصَلَّى أَبُو بَكْرٍ تِلْكَ الْأَيَّامَ، ثُمَّ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَدَ فِي نَفْسِهِ خِفَّةً، فَقَامَ يُهَادَى بَيْنَ رَجُلَيْنِ، وَرِجْلَاهُ تَخُطَّانِ فِي الْأَرْضِ، حَتَّى دَخَلَ الْمَسْجِدَ، فَلَمَّا سَمِعَ أَبُو بَكْرٍ حِسَّهُ، ذَهَبَ يَتَأَخَّرُ، فَأَوْمَأَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ لَا يَتَأَخَّرَ، فَجَاءَ حَتَّى جَلَسَ عَنْ يَسَارِ أَبِي بَكْرٍ، وَكَانَ أَبُو بَكْرٍ يُصَلِّي قَائِمًا، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي قَاعِدًا، يَقْتَدِي أَبُو بَكْرٍ بِصَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَالنَّاسُ يَقْتَدُونَ بِصَلَاةِ أَبِي بَكْرٍ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا: يُسْمِعُ أَبُو بَكْرٍ النَّاسَ التَّكْبِيرَ.

په دې حديث کښې په واضحه توګه راغلی دی چه حضورپاك ﷺ په ناسته باندې مونځ ورکولو او صحابه شاته ولاړ وو.

② دَ قرآن پاك آیت ﴿ قُومُوا لِلَّهِ قَانِتِينَ ﴾ د دوی مستدل دې. په دې کښې قيام دَ هرصحت مند مسلمان دَپاره فرض کړې شوې دې اودَ قوموا امر نه دَمونځ قيام مراد دې ځکه چه بل هيڅ يو قيام داسې نه دې کوم ته چه دَ عبادت درجه حاصله وی اوهغه مامور به وی.

**قوله:** قَالَ الْحُمَيْدِيُّ:

**دامام حمیدی تعارف:-** داحمیدی رحمه الله دَ امام بخاری رحمه الله استاذ دې دَ جامع صحیحین والا حمیدی نه دې. دا حضرت هم دغه فرمائی چه دَ حضورپاك ﷺ هر هغه عمل کوم چه په آخره کښې کړې شوې وی هم هغه به اخستې شی ځکه چه په هغې کښې دَ نسخ احتمال نه وی.

**[١١٤٠] د نبی علیه السلام علالت (بیماري) او د حضرت ابوبکر رضي الله عنه د امامت واقعه**

١١٤٠-()[٥] ① «وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ② لَمَّا ثَقُلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، جَاءَ بِلَالٌ يُؤْذِنُهُ بِالصَّلَاةِ، ③ فَقَالَ: "مُرُوا أَبَا بَكْرٍ أَنْ يُصَلِّيَ بِالنَّاسِ" ④ فَصَلَّى أَبُو بَكْرٍ تِلْكَ الْأَيَّامَ ⑤ ثُمَّ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَدَ فِي نَفْسِهِ خِفَّةً، ⑥ فَقَامَ يُهَادَى بَيْنَ رَجُلَيْنِ، ⑦ وَرِجْلَاهُ تَخُطَّانِ فِي الْأَرْضِ، حَتَّى دَخَلَ الْمَسْجِدَ، ⑧ فَلَمَّا سَمِعَ أَبُو بَكْرٍ حِسَّهُ، ذَهَبَ يَتَأَخَّرُ،

**ترجمه:** ① ام المؤمنين بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي ② کوم وخت چې نبي کريم ﷺ ډير زيات ناروغه (بيمار) وو نو (يوه ورځ) بلال رضي الله عنه حضور ﷺ ته د لمانځه ورکولو د پاره

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الاذان/ باب: الرجل یأتم بالإمام ویأتم الناس بالمأموم (رقم-٧١٣) ومسلم فی کتاب الصلاة/ کتاب الصلاة/باب استخلاف الإمام إذا عرض له عذر من مرض وسفر، وغيرهما من يصلي بالناس، وأن من صلى خلف إمام جالس لعجزه عن القيام لزمه القيام إذا قدر عليه، ونسخ القعود خلف القاعد فی حق من قدر علی القيام(رقم-٩٥ - (٤١٨) والنسائی کتاب الإمامة/باب الائتمام بالإمام يصلی قاعدا (رقم-٨٣٣) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فی صلاة رسول الله صلی الله علیه وسلم فی مرضه (رقم -١٢٣٢) والدارمی باب فی وفاة النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-٨٣)

راغي۳ حضور ﷺ ورته وفرمايل ابو بکر ؓ ته اووایه چې هغه خلقو ته مونځ ورکړي ۴ نو ابو بکر خلقو ته اوولس لمونځونه ورکړل ۵ (يوه ورځ چې) حضور ﷺ په خپل طبیعت کې لږ شان ښه والې محسوس کړو ٦ نو حضور ﷺ (د لمانځه د پاره مسجد ته) د دوو سړو په سهاره داسې لاړلو چې خپل لاسونه مبارك يې د صحابه ؤ په اوږو ایښي وه ۷ او د ضعف او کمزوري په سبب) د حضور ﷺ پښې مبارکې په زمکه راښکلې کیدې کوم وخت چې حضور ﷺ په مسجد کې داخل شو ۸ نو حضرت ابوبکر ؓ د حضور ﷺ راتګ محسوس کړو او شاته کیدل يې شروع کړل (چې حضور ﷺ د هغه په ځاي ودریږي او امامت وکړي)

**حل اللغات:**- ① ثَقُلَ: أَيْ: اشْتَدَّ مَرَضُهُ: دروند شو يعني بيمارشو او کمزوري شو. ② خِفَّةً: أَيْ: قُوَّةً وَزَالَ بَعْضُ الْمَرَضِ: بيمارئ کښې ئې کمی راغله او څه قوت ئې محسوس کړو. ③ يُهَادَى بَيْنَ رَجُلَيْنِ: أَيْ: يَمْشِي مُعْتَمِدًا عَلَيْهِمَا مِنْ ضَعْفِهِ: دَ دوو سړو په اوږو باندې لاسونه کیخودو سره دَ هغوی په واړ تللو ته تهادی وائی. ④ تَخُطَّانِ: أَيْ: تُمَدَّانِ: راښکلې ئې خپې، ⑤ حِسَّهُ: أَيْ حَرَكَتَهُ أَوْ صَوْتَهُ: دنبی علیه السلام حرکت یا آواز،

۱ فَأَوْمَأَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ لَا يَتَأَخَّرَ، ۲ فَجَاءَ حَتَّى جَلَسَ عَنْ يَسَارِ أَبِي بَكْرٍ، ۳ وَكَانَ أَبُو بَكْرٍ يُصَلِّي قَائِمًا، ۴ وَكَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي قَاعِدًا، ۵ يَقْتَدِي أَبُو بَكْرٍ بِصَلَاةِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ٦ وَالنَّاسُ يَقْتَدُونَ بِصَلَاةِ أَبِي بَكْرٍ»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ۷ وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا: يُسْمِعُ أَبُو بَكْرٍ النَّاسَ التَّكْبِيرَ.

**ترجمه:** ۱ حضور ﷺ (دي ليدو سره) حضرت ابوبکر ؓ طرف ته اشاره وکړه چې مه وروسته کیږه ۲ بیا حضور ﷺ (مخکې) شو او د حضرت ابوبکر ؓ کس طرف ته کیناستلو ۳ حضرت ابوبکر ؓ په ولاړه مونځ وکړو ۴ او حضور ﷺ (د ضعف او کمزوري په وجه) په ناسته مونځ کولو ۵ حضرت ابوبکر ؓ د حضور ﷺ د لمانځه اقتداء کوله ٦ او خلقو د حضرت ابوبکر ؓ د لمانځه اقتداء کوله. (بخاري، مسلم) ۷ او بخاري او مسلم په يو بل روايت کښې دې چه ابوبکر به خلقو ته تکبير اورولو.

**حل اللغات:**- ⑥ يُسْمِعُ: دا د اسماع نه دې، أَيْ: يُبَلِّغُ: يعنی رسولو ئې آواز د نبی علیه السلام خلقو ته.

**تسهیلات:**-

**قوله:** مُرُوا أَبَا بَكْرٍ أَنْ يُصَلِّيَ بِالنَّاسِ:

**دحضرت ابوبکر رضی الله عنه خلافت ته اشاره:**- په امامت صغریٰ باندې حضرت ابوبکر ؓ مقررول دَ امامت کبریٰ طرف ته اشاره وه. چنانچه حضرت علي ؓ هم دَدې نه استدلال کړې دې چه نبی پاك ﷺ حضرت ابوبکر ؓ زمونږ دَ دين امام جوړ کړو نوهغه زمونږ دَ دنیا هم امام دې. که چرې دَ خلافت طرف ته اشاره نه وه نو حضورپاك ﷺ به دَ

ابوبکر ﷺ دَ پاره دومره اصرار نه کولو. دَ عمر فاروق ﷺ باره کښې دَ ازواج مطهرات سفارش هم وو ليکن حضورپاك ﷺ په سختئی سره منع کړې او هم حضرت ابوبکرصديق ﷺ ئې په امامت باندې اوساتلو.

**قوله:** وَالنَّاسُ يَقْتَدُونَ بِصَلَاةِ أَبِي بَكْرٍ

**نبی کريم ﷺته د امامت انتقال:-** يعنی دَ حضورپاك ﷺ دَ خصوصيت وجه داوه چه بغيردَ استخلاف حضورپاك ﷺ پخپله خليفه جوړ شو اودَ حضرت ابوبکر ﷺ نه دَ امامت منصب پخپله دَ حضورپاك ﷺ طرف ته منتقل شو. لهذا اوس امام رسول الله ﷺ وو اوحضرت ابوبکر ﷺ دَ حضورپاك ﷺ دَ طرفه مُكَبِّرْ (تکبيرويونکې)وو چه په ظاهره امام ښکاريدو.

**[۱۱٤۱] د امام څخه مخکې پر سر پورته کولو باندې وعيد (سزا)**

۱۱۴۱-()[٦] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «أَمَا يَخْشَى الَّذِي يَرْفَعُ رَأْسَهُ قَبْلَ الْإِمَامِ [۳] أَنْ يُحَوِّلَ اللَّهُ رَأْسَهُ رَأْسَ حِمَارٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

**ترجمه:** [۱] ابوهريره ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هغه سړي چې د امام څخه مخکې (د رکوع او سجدي څخه) سر پورته کوي دي خبري څخه نه ويريږي [۳] چې الله تعالى ﷻ د هغه سر د خره د سر په شان کړي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:-** ① يُحَوِّلَ اللَّهُ: أَيْ: أَنْ يُبَدِّلَ وَيُغَيِّرَ: بدل به کړی الله تعالى.

**تسهيلات:-**

**قوله:** رَأْسَ حِمَارٍ:

يعنی کوم سړې چه دَ امام نه مخکښې دَ سجدې او رکوع نه سر اوچتوی دَهغه باره کښې دا خطره موجود ده چه دَ هغه سر دَ خر سر جوړشی. علماؤ دَ دې حديث څو مطلبونه بيان کړی دی.

**دحديث په مفهوم کښې درې اقوال:-**

① علامه ابن حجر ﷫ دا بيان کړې دې چه دا مسخ کيدل خاص دی چه دَ يو جزئی حالت سره متعلق دی. دَدې واقع کيدل منع نه دی او يو عام مسخ ده چه پوره امت مسخ شی هغه منع دې. لهذا په احاديثو کښې چه دَ کوم مسخ دَ ممانعت خبره راغلې ده هغه هم دغه عام مسخ ده. لهذا په دې احاديثو کښې هيڅ تعارض باقی نه پاتې کيږی.

[1] اخرجه البخاري في كتاب الاذان/ باب إثم من رفع رأسه قبل الإمام (رقم-٦٩١) ومسلم في كتاب الصلاة/باب النهي عن سبق الإمام بركوع أو سجود ونحوهما(رقم-١١٤ - (٤٢٧) وابوداود كتاب الصلاة،باب التشديد فيمن يرفع قبل الإمام او يضع قبله (رقم-٦٢٣) والترمذي كتاب السفر/باب ما جاء في التشديد في الذي يرفع رأسه قبل الإمام (رقم-٥٨٢) والنسائي كتاب الإمامة/باب مبادرة الإمام (رقم-٨٢٨) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب النهي أن يسبق الإمام بالركوع والسجود (رقم-٩٦١)

⑤ دا کلام په حقیقت باندې مبنی نه دې بلکه په مجاز باندې محمول دې یعنی دَ هغه سر دَ خر سر نه جوړیږی البته دا سړې دَ خر په شان ناپوهه او بې عقل دې لکه چه دا کلام په تشبیه باندې محمول دې.

④ دَ مسخ نه مراد حقیقی مسخ هم کیدې شی اودا امکان رد کولې نه شی لکه چه په اشراط الساعة کې دَ مسخ دَ واقعاتو ذکر موجود دې او په تیرو شوو زمانوکښې هم دَمسخ حقیقی واقعات کله کله واقع شوی دی.

**دیومحدث مخ د خر مخ کرځیدل:-** ملاعلی قاری رحمه الله دَدې حدیث لاندې په مرقات ج۳ ص ۹۸ کښې یوه عبرتناکه قصه لیکلې ده چه یو جلیل القدر محدث دَ علم حدیث دَ حصول دَپاره یومشهور شیخ الحدیث له دمشق ته اورسیدو دَ چا دَ علم اوحدیث چه په هغه وخت کښې ډیره مشهورتیا وه. دَعلم حدیث دې شوقین طالبعلم دَ هغه نه حدیث اخستل شروع کړه او ټول احادیث ئې دَ دغه شیخ الحدیث نه حاصل کړل. لیکن عجیبه صورتحال دا پیښ شو چه پوره موده کښې استاذ خپل عقیدت مند شاګرد ته کله مخ اونه خودلو بلکه په پرده کښې به ئې هغه ته سبق خودلو. کله چه اوستاذ ته اندازه اوشوه چه اوس شاګرد ته پوره دَ عقیدت اودَ خدمت پوره جذبه اودَ حدیث پوره شوق حاصل شوې دې او اوس دې دَ اعتماد قابل دې نواستاذ دَمخې نه پرده لرې کړه. شاګرد چه کله اوکتل نو حیران پاتې شو ځکه چه دَهغه دَ استاذ مخ دَ خر مخ وو. په دې حیرانتیا باندې استاذ اووئیل چه بچې دَ امام نه دَ مونځ په ارکان کښې دَ وړاندې کیدو نه ځان ساته (اودَ حدیث تعلیم او فرمان کښې دَ شك کولو نه بچ اوسیږه) ځکه چه ما کله دا حدیث واورېدو نو زما یقین رانغلو چه واقعةً داسې کیدې شی. نوزه دَ امام نه مخکښې لاړم نوزما مخ دَ خر مخ جوړ شو کوم چه ته وینې. والعیاذبالله.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۱۱٤۲] دامام د موافقت کولو حُکم

١١٣٢-()[۷] [١]عَنْ عَلِيٍّ، وَمُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "«إِذَا أَتَى أَحَدُكُمُ الصَّلَاةَ وَالْإِمَامُ عَلَى حَالٍ، [٣] فَلْيَصْنَعْ كَمَا يَصْنَعُ الْإِمَامُ»". [۴] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت علي رضي الله عنه او معاذ ابن جبل رضي الله عنه راویان دي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل [٢] هر کله چې په تاسو کې یو سړي (په جماعت کې د شریکیدو د پاره) لمانځه ته راشي او امام په یو حالت کې وي [٣] نو څه چې امام کوي هغه ته هغسي کول پکار دي، [۴] دا حدیث

[1] اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحدیث ٥٩١

امام ترمذي رحمه الله نقل كړي دي او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دي.

**حل اللغات:-** ① فَلْيَصْنَعْ: أَيْ: فَلْيَقْتَدِ بِهِ: هم په هغه حالت كښې دې اقتداء اوكړى (كه هغه په قيام كښې وى، كه په ركوع كښې وى او كه په سجده كښې وى).

**تسهيلات:-**

**قوله: فَلْيَصْنَعْ كَمَا يَصْنَعُ الْإِمَامُ:**

**دحديث په مفهوم كښې دوه اقوال:-**

① ددې حديث مبارك په شرح كښې ابن الملك رحمة الله عليه فرمائي چې هرامام په مونځ ولاړ وى او يو كس ورسره شامليدل غواړى نو چې په كوم حالت كښې امام وى په هغه حالت كښې دې ورسره شامل شى، كه په ركوع كښې وى او كه په سجده كښې وى.كله چې امام په سجده كښې وى نوبعضې خلق په دې انتظار كښې وى چې كله به امام د سجدې راپورته شى چې زه ورسره شامل شم.دا صحيح نه دى.څكه چاته څه معلوم دى چې د مونځ كومه يوه حصه دالله تعالى په نيز مقبوله ده او كومه نه ده .

② مسبوق دې خپل باقى مونځ نه كوى بلكه امام سره دې شريك شى.او كله چې امام سلام واړوى نو بيا دې خپل مونځ پورا كړى .البته لاحق دې خپل هغه مونځ اول پورا كړى كوم چې دده نه تير شوې وو .بيا دې امام سره شامل شى .

**دامام ترمذى قول:**-امام ترمذى رحمة الله عليه فرمائي چې دا حديث غريب دې.او د علماء كرامو په دې باندې عمل ثابت دې.امام نووى رحمة الله عليه خپله دا نظريه پيش كړې ده چې په كوم حديث باندې د علماء كرامو عمل وى نو امام ترمذى رحمة الله عليه هغې ته صحيح وائى .والله اعلم.

**[۱۱۴۳] په ركوع كښې د شريكيدو نكې ركعت پوره كيږي**

۱۱۴۳-(۸)[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «إِذَا جِئْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ، وَنَحْنُ سُجُودٌ، فَاسْجُدُوا [۳] وَلَا تَعُدُّوهُ شَيْئًا، [۴] وَمَنْ أَدْرَكَ رَكْعَةً فَقَدْ أَدْرَكَ الصَّلَاةَ» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:**[۱] حضرت ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل[۲] هر كله چې تاسو (په جماعت كې د شريكيدو د پاره) لمانځه ته راشئ او ما د سجدې په حالت كې ووينې نو تاسو هم سجدې ته لاړ شئ[۳] او هغه سجده په څه حساب كې مه لګوئ[۴] هو كوم سړي چې (د امام سره) ركوع ومونده نو هغه پوره ركعت ومونده لو. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① لَا تَعُدُّوهُ: أَيْ لَا تَحْسِبُوا ذَلِكَ: يعنى دغه سجده د مونځ په ركعت وغيره كښې مه شميرئ.

**تسهيلات:- قوله: فَاسْجُدُوا:**

[1]) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة/باب فى الرجل يدرك الإمام ساجدا كيف يصنع؟ (رقم-۸۹۳)

**په سجده کښې د امام سره د شرکت حکم:-** بعض خلق امام په سجده کښې ګوری نو پخپله اودریږی او انتظارکوی چه کله امام پاسی نوموږ به هغه سره شریك شو. په دې حديث کښې خودلې شي چه تاسو سجدې ته لاړشئ اوشریك شئ خوډ یوې سجدې حاصلولوسره دا یورکعت مه ګڼړئ اوکه چرې رکوع ملاؤشی نوبیا تاسو پوره رکعت حاصل کړو.

**قوله: وَمَنْ أَدْرَكَ رَكْعَةً فَقَدْ أَدْرَكَ الصَّلَاةَ:**

**د مذکوره جملې په مطلب کښې دوه اقوال:-**

① کوم سړی په پوره مونځ کښې یورکعت هم امام سره اوکړو نوهغه پوره مونځ اوکړو لهذا هغه ته به دجمع ثواب ملاؤ شی. په دې سره غیرمقلدینو ته سخت تکلیف رسی څکه چه د فاتحه نه بغیرد مقتدی مونځ هم صحیح شو اوهغه ته رکعت هم ملاؤشو.

② چاچه رکوع کښې شرکت اوکړو دهغه مونځ پوره شو یعنی هغه ته دا رکعت ملاؤ شو دلته د رکعةً نه مراد رکوع ده اود صلاة نه مراد رکعت دې.

**[١١٤٤] څلویښت ورځې د تکبیر اولې سره د باجماعت مونځ کونکې د پاره زیرې**

۳۲-()[۹] ⓵ وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ⓶ " «مَنْ صَلَّى لِلَّهِ أَرْبَعِينَ يَوْمًا فِي جَمَاعَةٍ ⓷ يُدْرِكُ التَّكْبِيرَةَ الْأُولَى، ⓸ كُتِبَ لَهُ بَرَاءَتَانِ: ⓹ بَرَاءَةٌ مِنَ النَّارِ، ⓺ وَبَرَاءَةٌ مِنَ النِّفَاقِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ⓵ حضرت انس رضی الله عنه راوي دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل ⓶ کوم سړي چې تر څلويښت ورځو پورې د الله تعالی جل جلاله د پاره په جماعت سره داسې مونځ کوي ⓷ چې هغه تکبير اولی هم لاندي کړي ⓸ نو د هغه د پاره دوه قسمه نجات ليکل کيږی ⓹ ① يو خو د دوزخ څخه نجات (خلاصي) ⓺ ② او دويم د نفاق څخه نجات. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① بَرَاءَتَانِ: دا د براءة تثنيه ده أَيْ: خَلَاصٌ وَنَجَاةٌ: خلاصي او نجات.

**تسهیلات:-**

**قوله: أَرْبَعِينَ يَوْمًا فِي جَمَاعَةٍ:**

**د اربعین عدد خاص کولووجه:-** دې ځائې کښې ئې د اربعين عدد څکه خاص کړوچې انسانی تخليق هم دې دوؤ ادوارو سره بدليږی رابدليږی.لکه اول نطفه ،بيا ټينګې اوبه ،بيا د غوښې ټکړا ، په دې ټولو کښې د څلويښتو ورځو فاصله وی.تر دې کله چې دې دنيا ته راشی نو دده مور ته څلويښت ورځې نفاس وی.او دده عقل څلويښت کاله پس کامل کيږی.باقی دڅلويښت عدد په باره کښې الله تعالی ته ښۀ معلومات دی.

[1] اخرجه الترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فی فضل التکبيرة الأولی (رقم-۲۴۱)

**قوله: يُدْرِكُ التَّكْبِيرَةَ الْأُولَى:**

**دتکبیر اولی په تعریف کښې مختلف اقوال:-**

① تکبیر اولی نه مراد تکبیر تحریمه دې.

② رکوع کښې امام سره شاملیدل مراد دی.

③ قرأت شروع کیدو نه وړاندې امام سره شاملیدل مراد دی.

④ تکبیر اولی د سبحانك اللهم د ختمیدو نه وړاندې وړاندې شاملیدل مراد دی.

**د راجح قول تعیین:**- راجح قول اولنې دې. دداسې کس دپاره دوه فضیلتونه دی. ① جهنم نه نجات. ② نفاق نه براءة.

**نفاق څخه د براءت دوه مطلبونه:-**

① نفاق څخه د براءة مطلب دا دې چې الله تعالى به دې د منافقانو دعمل نه په خپل حفظ وامان کښې لرى. ده ته به اخلاص نصیب کړی. دحشرنشر عذاب نه به ورته نجات ورکړی. او د ایمان په حالت کښې به ورته مرګ راشی.

② دا کس به د منافقانو په شان نه شی حاضرولې. (إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ، إِذَا قَامُوْٓا إِلَى الصَّلٰوةِ قَامُوْا كُسَالٰى) كله چې منافقان مونځ دپاره اودریږی نو سست پست اودریږی، ددې نه ده ته حفاظت ملاؤ شی.

**[۱۱۴۵] د جماعت رالاندې کولو کوشش کولو د جماعت ثواب ملاویدل**

۱۱۴۵-()[۱۰] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ وُضُوءَهُ، ③ ثُمَّ رَاحَ، فَوَجَدَ النَّاسَ قَدْ صَلَّوْا؛ ④ أَعْطَاهُ اللّٰهُ مِثْلَ أَجْرِ مَنْ صَلَّاهَا، وَحَضَرَهَا، ⑤ لَا يَنْقُصُ ذٰلِكَ مِنْ أُجُوْرِهِمْ شَيْئًا» ". رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل ② کوم سړي چې اودس وکړو او ښه (یعنې پوره شرائط او آداب او د زړه د حضور سره) اودس ئې وکړو ③ بیا (مسجد ته) لاړلو هلته یې ولیدل چې خلقو مونځ کړي دي ④ نو الله تعالى جل جلاله هغه ته د هغه مونځ کونکو برابر ثواب عطا کوي چې هغوي هلته په جماعت کې حاضریدو سره مونځ کړي وو ⑤ او هغه ته د نورو په شان ثواب ورکولو سره د نورو (یعنې په جماعت کې د حاضریدونکو) په ثواب کې هیڅ کمي نه کیږي، ابوداؤد نسایي.

**حل اللغات:-** ① رَاحَ: أَيْ: ذَهَبَ إِلَى الْمَسْجِدِ: لاړلو مسجد ته. ② لَا يَنْقُصُ: نه کموی (یعنی کموالې نه راولی په ثواب دهغوی کښې).

---

[1] اخرجه ابوداود کتاب الصلاة/باب فیمن خرج یرید الصلاة فسبق بها (رقم-۵۶۴) والنسائی کتاب الإمامة/باب حد إدراک الجماعة (رقم-۸۵۵)

**تسهیلات:-**

**قوله: أَعْطَاهُ اللّٰهُ مِثْلَ أَجْرِ مَنْ صَلَّاهَا:**

**د جمعې په نیت جماعت ته د تللو حکم:-** دحدیث پاك حاصل دادې چې کوم کس په دې نیت د کور نه اووتلو چې جمعې سره مونځ اداکړم .کله چې جمات ته اورسیدو ،وې کتل چې جمعه شوې ده.نوالله تعالی به هغه ته د جمعې ثواب ورکړی.دا صورت په هغه وخت کښې دې چې کله هغه د کور نه په وخت وتلې وی.او په قصد سره ئې ناوخته کړی نه وی بلکه اتفاقی طور سره داسې شوی وی.یاورته وخت کښې اندازه لګولو کښې غلطی شوی وی.

**قوله: لَا يَنْقُصُ ذَلِكَ مِنْ أُجُورِهِمْ شَيْئًا:**

کوم مونځګذار روستو راشی او هغه ته کوم ثواب ملاویږی نو د نورو مونځګذارو ثواب کښې به څه کمې نه رازی.بلکه الله تعالی به په خپل فضل سره هغه ته هم ثواب ورکړی.

**[۱۱٤٦] د جماعت فضیلت**

۱۱۴۶-(۱)[۱] «وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] جَاءَ رَجُلٌ وَقَدْ صَلَّى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: [۳] "أَلَا رَجُلٌ يَتَصَدَّقُ عَلَى هَذَا فَيُصَلِّيَ مَعَهُ؟ [۴]" فَقَامَ رَجُلٌ فَصَلَّى مَعَهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] ابو سعید خدري ﷛ فرمایي [۲] چې (یوه ورځ) په مسجد کې یو سړي داسې وخت راورسیدو چې نبي کریم ﷺ مونځ کړي وو حضور ﷺ (هغه سړي لیدو سره) وفرمایل [۳] آیا داسې څوك نشته چې ده ته د الله په لار کې (صدقه) ورکړي [۴] نو یو سړي (د حضور ﷺ دا ارشاد اوریدو سره) ودریدلو او هغه د هغه سړي سره مونځ وکړو. (ترمذي،ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① يَتَصَدَّقُ: أَيْ: يَتَفَضَّلُ عَلَيْهِ: دا دَ صدقه کولو په معنی کښې دی دلته احسان کول مراد دی.

**تسهیلات:- قوله: وَقَدْ صَلَّى رسول الله:**

**د مونځ مصداق:-** یعنی نبی کریم ﷺ مونځ ورکړې وو اوس دانه ده معلومه چه کوم یو مونځ وو. ائمه احناف فرمائی چه دَ مازیګر او ماښام نه علاوه بل یو مونځ وو ځکه چه دَ مازیګر نه پس نفل کول جائز نه دی او په ماښام کښې درې رکعته نفل کول په شریعت کښې معهود نه دی.

[1]) اخرجه الترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الجماعة فی مسجد قد صلی فیه مرة (رقم-۲۲۰)

**قوله:** أَلَا رَجُلٌ يَتَصَدَّقُ عَلَى هٰذَا:

**د جماعت موقع ورکولوته د صدقې نوم ورکولو وجه:**-علامه مظهر رحمه الله فرمائی چه دې عمل ته صدقه ځکه وئیلې شوې ده چه که چرې دې سړی ځان له مونځ کولې نو ده ته به دَ جمع ثواب نه ملاویدلو. کله چه هغه جمع سره مونځ اوکړو نولکه دَ جمع موقع ورکونکی کس په ده باندې احسان اوکړو چه دَ یو په ځائی دَ ۲۶زیاتی مونځونو ثواب هغه ته ملاؤ شو.

**د مفترض په متنفل پسې د اقتداء په حکم کښې مذاهب:**

① دامام شافعی رحمه الله مسلک دا دې چې د مفترض په متنفل پسې اقتداء جائز ده.

② احناف فرمائی چې د مفترض په متنفل پسې اقتداء صحیح نه ده.

**داول فریق دلیل:**- زیربحث حدیث د دوی مستدل دې. ځکه چې دلته دغه سړی سره یو ځائی جمع کونکې ابو بکرصدیق رضی الله عنه او حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه خپل مونځ کړې وو نو معلومه شوه چې د مفترض په متنفل پسې اقتداء جائز ده.

**داول فریق د دلیل دوه جوابونه:**-

① دا دَ هغه وخت خبره ده کوم وخت چه دوه ځل فرض کول جائز وو.

② دلته امام ابوبکر رضی الله عنه نه وو بلکه هغه سړې پخپله امام وو چه دَ چا نه مونځ پاتې شوې وو. ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه دَ اختلاف نه دَ وتلو صورت هم دغه دې په بل صورت کښې اختلاف دې نوبهتر هم دغه ده چه په دې صورت باندې داحدیث حمل کړې شی په کوم کښې چه اختلاف نه وی بلکه اتفاق وی.

**د دویم فریق دلیل:**- دویم فریق وائی چې مقتدی افضل دې او امام مفضول دې.او امام د مقتدی د مونځ ضامن دې.لکه حدیث کښې چې راغلی دی «الامام ضامن» نو متنفلی د مفترض د مونځ ضامن نشی جوړیدې.که چې په درجه کښې ترې متنفل ښکته ده.

**قوله:** فَقَامَ رَجُلٌ فَصَلَّى مَعَهُ:

دلته په اختصار سره د جماعت ثانیه حکم بیانولې شی.

**د دویمې جمعې مختلف صورتونه:**-

① علماء فرمائی چه که دَ لارې یا بازار جمات وی اودَ هغې دَپاره څوك امام مقرر نه وی نو دویمه جمع او ډیرې جمعې اتفاقًا جائز دی

② که چرې امام راتب اومتعین موجود وی اوهغه په جمع مونځ ورکړې وی. دې نه پس یو څو کسان راجمع شو او تداعی سره په شان دَ اول مونځ دَ ګنړې ئی دویمه جمع اوکړه نودا دَ ټولو فقهاؤ په نیز مکروه دی.

③ اوس که چرته تداعی هم نه وی په اول ځائی کښې هم جمع نه وی، ګنړه هم نه وی اوخلق ټول مقامی وی نو په دې صورت کښې اختلاف دې.

**په دریم صورت کښې د جماعت ثانیه په حکم کښې مذاهب:-**

① جمهور فقهاء فرمائی چه په دې آخری صورت کښې هم دویمه جمع مکروه ده

② امام احمد بن حنبل رحمه الله او صاحبین فرمائی چه دا بغیرد کراهت نه جائز ده.

**د اول فریق دلیل:-** داسې د دویمې جمع عادت جوړول د جماعت د غرض دپاره مُفوّت دی ځکه چه په یوه جمع کښې د ټولو رایوځائی کیدلوسره د اسلام شان او شوکت، اتفاق اواتحاد مظاهره کیږی. بل حضورپاک ﷺ د فوت شوی مونځ قضاء په کور کښې کړې ده په جمات کښې په جمع سره نه ده کړې.

**د اول فریق د دلیل جواب:-** د جواز او عدم جواز اصل بحث فرائض کښې دې اود زیر بحث حدیث تعلق فرائض سره نه بلکه دا متنفل جماعت وو ځکه چه حضرت ابوبکر رضی الله عنه فرض اول کړې وو.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[١١٤٧] د نبی علیه السلام د وفات په مرض کښې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه د امامت واقعه**

١١٤٧-()[١٣] [١] «عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، قَالَ: [٢] دَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ، فَقُلْتُ: [٣] أَلَا تُحَدِّثِينِي عَنْ مَرَضِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ [٤] قَالَتْ: بَلَى، ثَقُلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "أَصَلَّى النَّاسُ؟ [٥]" قُلْنَا: لَا يَا رَسُولَ اللهِ! وَهُمْ يَنْتَظِرُونَكَ. [٦] فَقَالَ: "ضَعُوا لِي مَاءً فِي الْمِخْضَبِ"،

**ترجمه:** [١] عبید الله ابن عبد الله فرمایي [٢] چي (یوه ورځ) زه د مؤمنانو د مور بي بي عائشي صدیقي رضی الله عنها په خدمت کې حاضر شوم او هغې ته مي عرض وکړو [٣] چې ماتـه بـه د نبـي کـریم ﷺ د بیماریٔ حال بیان نه کړي؟ (چي په هغې کې حضور ﷺ په آخري ځل مونځ کولو د پاره مسجد تـه تـشریف وړي وو) [٤] بي بي عائشي صدیقي رضی الله عنها وفرمایل چې هو (ولـي نـه اوره چي کوم وخت) حضور ﷺ زیات بیمار شو نو (د لمانځه په وخت یې) پوښتنه وکړه چي آیا خلقو مونځ کړي دي؟ [٥] مونږ اوویل اوس پورې یي لاتـه دي کړي یا رسـول الله ﷺ خلق ستاسو انتظار کوي [٦] (دي اوریدو سره) حضور ﷺ وفرمایل (ښه) دي زما د پاره په لګن کې اوبه کیږدي

**حل اللغات:-** ① أَلَا تُحَدِّثِينِي: آیا تاسوبه بیان نه کړئ ماته یعنی بیـان کـړئ راتـه، ② ثَقُلَ: أَيْ: اشْتَدَّ مَرَضُهُ: بیمارشو او کمزورې شو. ③ ضَعُوا: دا د وضع نه د امر صیغه ده، کیږدئ راتـه، ④ الْمِخْضَبُ: أَيْ شِبْهُ الْمِرْكَنِ وَهِيَ إِجَّانَةٌ يُغْسَلُ فِيهَا الثِّيَابُ: ځانک، لګن یعنی ټب کوم کښې چه جامې وینځلې کیږی.

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الاذان/ باب: إنما جعل الإمام ليؤتم به (رقم-٦٨٧) ومسلم فی کتاب الصلاة/باب النهی عن مبادرة الإمام بالتكبير وغيره(رقم-٩٥ - (٤١٨) والنسائی کتاب الإمامة/باب الائتمام بالإمام يصلی قاعدا (رقم-٨٣٤)

[۱] قَالَتْ: فَفَعَلْنَا، فَاغْتَسَلَ، [۲] فَذَهَبَ لِيَنُوءَ، [۳] فَأُغْمِيَ عَلَيْهِ، ثُمَّ أَفَاقَ، [۴] فَقَالَ: "أَصَلَّى النَّاسُ؟" فَقُلْنَا: لَا هُمْ يَنْتَظِرُونَكَ يَا رَسُولَ اللهِ! [۵] قَالَ: "ضَعُوا لِي مَاءً فِي الْمِخْضَبِ". [۶] قَالَتْ: فَقَعَدَ فَاغْتَسَلَ، [۷] ثُمَّ ذَهَبَ لِيَنُوءَ، فَأُغْمِيَ عَلَيْهِ، [۸] ثُمَّ أَفَاقَ، فَقَالَ: "أَصَلَّى النَّاسُ؟" [۹] فَقُلْنَا: لَا هُمْ يَنْتَظِرُونَكَ يَا رَسُولَ اللهِ؟ [۱۰] قَالَ: "ضَعُوا لِي مَاءً فِي الْمِخْضَبِ". [۱۱] فَقَعَدَ فَاغْتَسَلَ، ثُمَّ ذَهَبَ لِيَنُوءَ، [۱۲] فَأُغْمِيَ عَلَيْهِ، ثُمَّ أَفَاقَ، فَقَالَ: "أَصَلَّى النَّاسُ؟" [۱۳] قُلْنَا: لَا، هُمْ يَنْتَظِرُونَكَ يَا رَسُولَ اللهِ.

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه ﷞ فرمايي چه مونږ په لګن کې اوبه کېښودلي نو حضور ﷺ غسل وکړو [۲] او غوښتل يې چې اودرېږي [۳] خو (د کمزوري په وجه) حضور ﷺ بې هوشه شو کوم وخت چې په هوش کې راغې [۴] بيا يې وفرمايل آيا خلقو مونځ کړي دي؟ مونږ اوويل اوس پورې يې لاته دې کړي خلق ستا منتظر دي يا رسول الله ﷺ، [۵] حضور ﷺ وفرمايل په لګن کې اوبه کېږدي [۶] بي بي عائشه ﷞ فرمايي چه مونږ په لګن کې اوبه کېښودلي نو حضور ﷺ غسل وکړو [۷] او غوښتل يې چې ودرېږي خو بيهوشه شو [۸] چې هوش کې راغې نو بيا يې پوښتنه وکړه چې آيا خلقو مونځ کړي دي؟ [۹] مونږ عرض وکړو چه نه خلق ستا منتظر دي يا رسول الله ﷺ، [۱۰] حضور ﷺ وفرمايل په لګن کې اوبه کېږدي [۱۱] مونږ چې اوبه کېښودلي نو حضور ﷺ کيناستلو او غسل يې وکړو بيا چې پاڅيدل يې وغوښتل [۱۲] نو بيهوشه شو چې په هوش کې راغې نو وې فرمايل آيا خلقو مونځ کړي دي؟ [۱۳] مونږ عرض وکړو چه نه خلق ستا منتظر دي يا رسول الله ﷺ

**حل اللغات:** - ⑤ لِيَنُوءَ: أَيْ يَقُومَ: چه اودرېږي. ⑥ فَأُغْمِيَ: بې هوشي پرې راغله يعنی اندامونو نې حرکت پريخودلو. ⑥ أَفَاقَ: په هوش کښې راغې.

[۱] وَالنَّاسُ عُكُوفٌ فِي الْمَسْجِدِ [۲] يَنْتَظِرُونَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِصَلَاةِ الْعِشَاءِ الْآخِرَةِ، [۳] فَأَرْسَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى أَبِي بَكْرٍ بِأَنْ يُصَلِّيَ بِالنَّاسِ، [۴] فَأَتَاهُ الرَّسُولُ، فَقَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُكَ أَنْ تُصَلِّيَ بِالنَّاسِ، [۵] فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ - وَكَانَ رَجُلًا رَقِيقًا -: يَا عُمَرُ! صَلِّ بِالنَّاسِ، [۶] فَقَالَ لَهُ عُمَرُ: أَنْتَ أَحَقُّ بِذَلِكَ، فَصَلَّى أَبُو بَكْرٍ تِلْكَ الْأَيَّامَ.

**ترجمه:** [۱] او خلق په مسجد کې ناست وه [۲] د ماسخوتن د لمانځه د پاره د حضور ﷺ انتظار يې کولو [۳] نو رسول الله ﷺ يو کس حضرت ابوبکر ﷛ ته وليږلو چې هغه خلقو ته مونځ ورکړي [۴] نو هغه قاصد هغه ته راغې ورته يې اوويل ستا د پاره د حضور ﷺ دا ارشاد دی چې ته خلقو ته مونځ ورکړې [۵] حضرت ابوبکر ﷛ يو نرم زړي سړي وو (دې اوريدو سره) حضرت عمر ﷛ ته يې اوويل چې عمر ﷛ ته خلقو ته مونځ ورکړه (ځکه چې زه خو د حضور ﷺ په ځاي ودريدل برداشت کولي نشم) [۶] ليکن حضرت عمر ﷛ وفرمايل چې د دې (عظيمې مرتبې) د ټولو ځنه زيات اهل ته يې نو حضرت ابوبکر ﷛ په هغه ورځو کې (يعني د حضور ﷺ د مرض په ورځو کې) خلقو ته اوولس لمونځونه ورکړل.

**حل اللغات:** - ⑧ عُكُوفٌ : أَيْ: عَاكِفُونَ مُقِيمُونَ: ناست دي انتظار كوي. ⑨ الرَّسُولُ: يعنى قاصد، استاذي، ⑩ رَقِيقًا: أَيْ: رَقِيقَ الْقَلْبِ: نرم زړه والا،

[۱] ثُمَّ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَدَ فِي نَفْسِهِ خِفَّةً، [۲] وَخَرَجَ بَيْنَ رَجُلَيْنِ أَحَدُهُمَا الْعَبَّاسُ لِصَلَاةِ الظُّهْرِ، [۳] وَأَبُو بَكْرٍ يُصَلِّي بِالنَّاسِ، [۴] فَلَمَّا رَآهُ أَبُو بَكْرٍ ذَهَبَ لِيَتَأَخَّرَ، [۵] فَأَوْمَأَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَنْ لَا يَتَأَخَّرَ [۶] قَالَ: "أَجْلِسَانِي إِلَى جَنْبِهِ"، فَأَجْلَسَاهُ إِلَى جَنْبِ أَبِي بَكْرٍ، [۷] وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَاعِدٌ،

**ترجمه:** [۱] بيا هر کله چې (يوه ورځ) حضور ﷺ په خپل مرض کې لږ شان تخفيف محسوس کړو [۲] نو د دوو سړو په مدد چې په هغې کې يو حضرت عباس رضي الله عنه وو د ماسپخين د مانځه د پاره (مسجد ته) يې تشريف يووړ [۳] حضرت ابوبکر رضي الله عنه خلقو ته مونځ ورکولو [۴] په دې کښې يې د حضور ﷺ د تشريف راوړلو کښې هاري (کشاري) محسوس کړو نو د وروسته کيدو ارداه يې وکړه [۵] حضور ﷺ د اشاري په ذريعه د وروسته کيدو څخه منع کړو [۶] او هغه دواړو ته يې (چې د هغوی په سهاره حضور ﷺ مسجد ته راغلي وو) وفرمايل چې ما د ابوبکر رضي الله عنه په خوا کې کينوئ نو هغوئ حضور د حضرت ابوبکر رضي الله عنه په خوا کې کينولو [۷] حضور ﷺ کيناستلو (لمونځ يې ورکړو)

**حل اللغات:** - ⑪ خِفَّةً: أَيْ: قُوَّةً وَزَالَ بَعْضُ الْمَرَضِ: بيمارئ کښې ئې کمی راغله او څه قوت ئې محسوس کړو. ⑫ فَأَوْمَأَ: أَيْ: أَشَارَ: اشاره ئې اوکړه،

[۱] وَقَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ: فَدَخَلْتُ عَلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، [۲] فَقُلْتُ لَهُ: أَلَا أَعْرِضُ عَلَيْكَ مَا حَدَّثَتْنِي عَائِشَةُ مِنْ مَرَضِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ [۳] قَالَ: هَاتِ، فَعَرَضْتُ عَلَيْهِ حَدِيثَهَا فَمَا أَنْكَرَ مِنْهُ شَيْئًا، [۴] غَيْرَ أَنَّهُ قَالَ: أَسَمَّتْ لَكَ الرَّجُلَ الَّذِي كَانَ مَعَ الْعَبَّاسِ؟ [۵] قُلْتُ: لَا، قَالَ: هُوَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت عبيد الله (د دي حديث راوي) وايي چې ما (د بي بي عائشي رضي الله عنها څخه دا حديث اوريدو سره) حضرت عبد الله ابن عباس رضي الله عنه ته ورغلم [۲] او هغه ته مي اوويل چې آيا زه تاسو ته هغه حديث بيان نه کړم چې ما د بي بي عائشي رضي الله عنها څخه د حضور ﷺ د بيماري په باره کې اوريدلي دي؟ [۳] حضرت ابن عباس رضي الله عنه وفرمايل چې هو بيان يې کړه نو ما د هغه په مخکې د بي بي عائشي رضي الله عنها حديث بيان کړو ابن عباس رضي الله عنه په هغې کې د هيڅ خبري څخه انکار ونه کړي [۴] البته دا يي وفرمايل چې بي بي عائشي رضي الله عنها تا ته د هغه بل سړي نوم بيان کړي دي چې د حضرت عباس رضي الله عنه سره وو؟ [۵] ما اوويل نه، نو ابن عباس رضي الله عنه اوويل چې هغه حضرت علي رضي الله عنه وو، (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ⑬ أَعْرِضُ: وړاندي کړم، بيان کړم، ⑭ هَاتِ: بِمَعْنَى أَحْضِرْ: راوړاندي کړه، بيان کړه، ⑮ أَسَمَّتْ: آيا نوم ئې درته بيان کړي دي؟ (د هغه بل سړي).

**تسهيلات:** - **قوله:** فَأُغْمِيَ عَلَيْهِ:

۵ **اغماء څخه مراد:-** ددې څخه مراد بې هوشی ده.ليونتوب نه دې.او دابې هوشی يو قسم بيماری ده.اوداپه انبياء كرامو باندې هم راتلې شی .قرآن كريم كښې دی: ﴿وَخَرَّ مُوسَىٰ صَعِقًا﴾[4].او جنون د عقل د خرابۍ په وجه رازی.ددې نه انبياء كرام محفوظ وی.

**[١١٤٨] سورة فاتحه نه ويلو سره د ما نځه نيم ثواب حاصليږي**

۱۱۳۸ -()[۱۳][۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ: [۲] مَنْ أَدْرَكَ الرَّكْعَةَ فَقَدْ أَدْرَكَ السَّجْدَةَ، [۳] وَمَنْ فَاتَتْهُ قِرَاءَةُ أُمِّ الْقُرْآنِ فَقَدْ فَاتَهُ خَيْرٌ كَثِيرٌ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** [۱] د ابوهريره رضي الله عنه په باره كې منقول دي چې هغه فرمايل [۲] چا چې ركوع اوموندله هغه پوره ركعت وموندلو [۳] او د كوم سړي نه چې سورة فاتحه د ويلو څخه پاتې شوه نو هغه د ډير ثواب څخه (هم محروم) پاتې شو. (مالك)

**تسهيلات:-**

**قوله:** فَاتَتْهُ قِرَاءَةُ أُمِّ الْقُرْآنِ:

**په حديث كښې داحنافو توجيه:-** ائمه احناف فرمائی چه دَدې حديث مطلب هم هغه دې كوم چه دَ "فصلاته خداج" مطلب دې يعنى مونځ ناقص دې ثواب كم ملاويږی. دې نه معلومه شوه چه امام پسې شاته فاتحه لوستل فرض نه دی فرض مطلق قرآن لوستل دی. فاتحه دَ خان له مونځ كونكی دَپاره واجب ده اوامام پسې دا ذمه واری هم نه پاتې كيږی.

**[١١٤٩] د امام څخه د مخكې كيدو عذاب (سزا)**

۱۱۳۹ -()[۱۴][۱] وَعَنْهُ أَنَّهُ قَالَ: الَّذِي يَرْفَعُ رَأْسَهُ وَيَخْفِضُهُ قَبْلَ الْإِمَامِ [۲] فَإِنَّمَا نَاصِيَتُهُ بِيَدِ الشَّيْطَانِ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** [۱] د ابوهريره رضي الله عنه په باره كې منقول دي چې هغه (دا هم) فرمايل چې كوم سړي (په ركوع او سجده كې) خپل سر د امام څخه مخكې پورته كړي يا ښكته كړي [۲] (نو پوهه شي) چې د هغه تندي د شيطان په لاس كې دي. (مالك)

**حل اللغات:-** ① يَخْفِضُهُ: ښكته كوی (سر خپل). ② نَاصِيَتُهُ: تندي د هغه (مونځگذار).

**تسهيلات:- قوله:** فَإِنَّمَا نَاصِيَتُهُ بِيَدِ الشَّيْطَانِ:

**د شيطان په تسلط كښې دوه احتمالات:-**

① يعنى دَهغه تندي دَ شيطان په لاس كښې دې هغه چه څنگه غواړی هغه تاووی. دا تسلط يا حقيقتًا دې چه واقعی دَ شيطان پټ لاس دَهغه دَ تندی په ويښتو كښې پروت دې

② يادامجازًا دی يعنى شيطان هغه په خپله مرضئی سره تاووی اوچلوی.

[1] اخرجه مالک فی الموطا کتاب وقوت الصلاة ،باب من أدرک رکعة من الصلاة (رقم-۱۸) من کتاب قوت الصلاة

[2] اخرجه مالک فی الموطا رقم الحديث ۵۷

# [۴۵/۲۹]بَابُ مَنْ صَلّٰی صَلَاةً مَرَّتَيْنِ]

## دوه ځله د مونځ کولو بیان

**خلاصة الباب: -**

**فيه تسعة أحاديث مشتملة على أربع مسائل:**

① ثبوت الصلوة مرتين: ۱، ۲.

② الحكم بالشركة فى الجماعة بعد الصلوة منفرداً وفضلها: ۳، ۴، ۵، ۶، ۷.

③ النه عن الصلوة مرتين: ۸.

④ النهي عن الشركة فى الجماعة في بعض الأوقات بعد أداء الصلاة منفرداً: ۹.

**په باب کښې د درې مسئلو بیان: -**

① چه سړی په کورکښې کوم مونځ کړې دې هغه مونځ به په فرض کښې شمیرلې شی که په فرض کښې به نه شی شمیرلې کوم چه دې سړی په جمات کښې جمع سره کړې دې. دَدې خبروبیان په دې باب کښې راتلونکو احادیثوکښې راتلونکې دي

② چه یوسړی په کورکښې فرض اوکړل جمات ته راغلو نوونی کتل چه جمع ولاړه ده. داسې سړې په دې جمع کښې شریکیدوسره مونځ کولې شی که نه؟ یوه دامسئله شوه

③ چه مونځ گذار به کوم یومونځ فرض گرځوی اوکوم به نفل گرځوی.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۱۱۵۰] حضرت معاذ رضی الله دوه ځله مونځ ولې اوکړو؟

۱۱۵۰–()[۱]① «عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: كَانَ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ يُصَلِّي مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ،② ثُمَّ يَأْتِي قَوْمَهُ فَيُصَلِّي بِهِمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**① جابر رضی الله عنه فرمایي چې معاذ ابن جبل رضی الله عنه به (مخکي خو) د نبي کریم صلی الله علیه وسلم سره مونځ وکړلو② بیا به خپل قوم ته راغي هغوئ ته به یي مونځ ورکولو. (بخاري، مسلم)

**تسهیلات: -**

**قوله: ثُمَّ يَأْتِي قَوْمَهُ فَيُصَلِّي بِهِمْ:**

**د مفترض په متنفل پسې د اقتدآء د جواز دلیل: -** حضرت معاذ رضی الله عنه یقینًا دوه ځل مونځ

[1] اخرجه البخارى فى كتاب الاذان/ باب إذا صلى ثم أم قوما (رقم-۷۱۱) و باب إذا طول الإمام. وكان للرجل حاجة. فخرج فصلى (رقم-۷۰۰) ومسلم كتاب الصلاة/بباب القراءة فى العشاء (رقم) ۱۸۰ - (٤٦۵) وابوداود كتاب الصلاة/باب فى تخفيف الصلاة (رقم-۷۹۰) والنسائى كتاب الافتتاح/باب القراءة فى العشاء الآخرة بسبح اسم ربك الأعلى (رقم-۹۹۷) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة. والسنة فيها/باب القراءة فى صلاة العشاء (رقم-۸۳۶)

کړې دي. دَ ماسخوتن مونځ ئې حضورپاك ﷺ سره کړې دي اوبيا راغلو خپل قوم ته ئې دَ ماسخوتن مونځ ورکړو. دې حديث سره بل حديث کښې تصريح ده چه دويم مونځ دَ هغه دپاره نفل جوړ شو. دې نه معلومه شوه چه حضرت معاذ رضي الله عنه متنفل وو اوقوم مفترض وو او متنفل پسې مونځ اداکړې شوې دې. دَدې مسئلې په جواز اوعدم جواز کښې دَ فقهاؤ سخت اختلاف دې ليکن دې نه مخکښې باب القرأة فى الصلوة دَدې تفصيل تيرشوې دې

## [۱۱۵۱] د جماعت ثانيه حکم

۱۱۵۱—(۱)[۲] ۱ وَعَنْهُ، قَالَ: «كَانَ مُعَاذٌ يُصَلِّي مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِشَاءَ ۲ ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَى قَوْمِهِ فَيُصَلِّي بِهِمُ الْعِشَاءَ ۳ وَهِيَ لَهُ نَافِلَةٌ.» رَوَاهُ.

**توجمه:** ۱ جابر رضي الله عنه فرمايي چې معاذ ابن جبل رضي الله عنه به د ماسخوتن مونځ (مخکې خو) د نبي کريم ﷺ سره کولو بيا به خپل قوم ته راغي او هغوئ ته به يې د ماسخوتن مونځ ورکولو او هغه به د هغه د پاره نفل وو. (بيهقي،دارقطني)

**تسهيلات:** -

**نوټ:** - د دې حديث سره متعلقه چې کومه مسئله ده هغه اقتداء د مفترض په متنفل پسې،ددې تفصيل وړاندې په باب القراءة في الصلاة کښې تيرشوې دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۱۱۵۲] دفرض څخه روسته د نفلو په حيثيت سره په جماعت کښې شرکت کول

۱۱۵۲—(۲)[۳] ۱ «عَنْ يَزِيدَ بْنِ الْأَسْوَدِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ۲ شَهِدْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَجَّتَهُ، ۳ فَصَلَّيْتُ مَعَهُ صَلَاةَ الصُّبْحِ فِي مَسْجِدِ الْخَيْفِ، ۴ فَلَمَّا قَضَى صَلَاتَهُ وَانْحَرَفَ. ۵ فَإِذَا هُوَ بِرَجُلَيْنِ فِي آخِرِ الْقَوْمِ لَمْ يُصَلِّيَا مَعَهُ، ۶ قَالَ: "عَلَيَّ بِهِمَا"، ۷ فَجِيءَ بِهِمَا تَرْعَدُ فَرَائِصُهُمَا. ۸ فَقَالَ: "مَا مَنَعَكُمَا أَنْ تُصَلِّيَا مَعَنَا؟"

**توجمه:** ۱ يزيد ابن اسود رضي الله عنه فرمايي ۲ چې زه د نبي کريم ﷺ سره په حج (حجة الوداع) کې شريك وم ۳ (په هغه موقع يوه ورځ) ما د حضور ﷺ سره په مسجد خيف کې د سحر مونځ وکړو ۴ کوم وخت چې حضور ﷺ د لمانځه څخه فارغ شو ۵ نو څه ګوري چې دوه سړي د جماعت په آخرکې ناست دي چې هغوئ د حضور ﷺ سره مونځ نه وو کړي ۶ حضور ﷺ (د هغوئ په ليدو سره) خلقو ته وفرمايل دا دواړه ماته راولئ ۷ هغه دواړه د

) [۱] اخرجه البخارى فى كتاب الاذان/ باب إذا طول الإمام، وكان للرجل حاجة، فخرج فصلى (رقم-۷۰۱) و باب إذا طول الإمام، وكان للرجل حاجة، فخرج فصلى (رقم-۷۰۰)ومسلم فى كتاب الصلاة/بباب أمر الأئمة بتخفيف الصلاة فى تمام (رقم) ۱۸۶ - (۴۶۸)

[۲] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة/باب فيمن صلى فى منزله ثم أدرك الجماعة يصلى معهم (رقم-۵۷۵)والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الرجل يصلى وحده ثم يدرك الجماعة (رقم-۲۱۹) والنسائى كتاب الإمامة/باب إعادة الفجر مع الجماعة لمن صلى وحده (رقم-۸۵۸)

حضور ﷺ په خدمت کې په داسې حال کې حاضر کړې شو چې (د حضور ﷺ د هیبت په وجه) د هغوئ د اوږو غوښه ریږدله ⑧ حضور ﷺ د هغوئ څخه پوښتنه وکړه چې تاسو زمونږ سره د لمانځه کولو څخه کوم شي منع کړي وئ؟

**حل اللغات:**- ① الحَرَفَ: أي: الصَرَفَ: راوګرځیدو، ② عَلَيَّ بِهِمَا: دا اسم فعل دي، أي: ائتوني بِهِمَا وَأَحْضِرُوهُمَا: دواړه ماته راولئ، حاضرئې کړئ ماته، ③ تُرْعَدُ: أي تُحَرِّكُ: ریږدلې (دا کنایه ده د ویرې او اضطراب نه). ④ فَرَائِصُهُمَا: د فریصة جمع ده، وَهِيَ اللَّحْمَةُ الَّتِي بَيْنَ جَنْبِ الدَّابَّةِ وَكَتِفِهَا: د اوږو او اړخ په مینځ کښې غوښې ته وائي.

① فَقَالَا: يَا رَسُولَ اللهِ! إِنَّا كُنَّا قَدْ صَلَّيْنَا فِي رِحَالِنَا، ② قَالَ: "فَلَا تَفْعَلَا، إِذَا صَلَّيْتُمَا فِي رِحَالِكُمَا، ③ ثُمَّ أَتَيْتُمَا مَسْجِدَ جَمَاعَةٍ فَصَلِّيَا مَعَهُمْ، ④ فَإِنَّهَا لَكُمَا نَافِلَةٌ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① هغوئ عرض وکړو چې یا رسول الله ﷺ مونږ په خپل مکان کې مونځ کړي وو ② حضور ﷺ ورته وفرمایل بیا داسې مه کوئ که تاسو په خپل مکان کې مونځ کړي وي ③ او هغه مسجد ته راشئ چرته چې جماعت کیږي نو د خلقو سره هم مونځ وکړئ ④ دا مونځ به ستاسو د پاره نقل شي. (ابوداؤد، نسايي)

**حل اللغات:**- ⑤ رِحَالِنَا: أي: مَنَازِلِنَا: په خپلو کورونو کښې.

**تسهيلات:**-

**قوله: فَإِنَّهَا لَكُمَا نَافِلَةٌ:**

**د انفراداً مونځ کولو څخه روسته په جماعت کښې د شریکیدو په حکم کښې مذاهب:**-

لکه څنګه چه مخکښې لیکلې شوی دی چه په دې مقام باندې ﷺ دوه مسئلې دی. اول مسئله دا چه یو سړی مثلاً په کور کښې مونځ اوکړو او جمات ته په راتلوسره هغه جمع اولیدله اوس هغه په جمع کښې بغیرد څه تأمل شامل شی که څه اوکړی؟ په دې کښې د فقهاؤ اختلاف دې.

① دَ امام شافعی رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله په نیز دا سړې په پنځوواړو مونځونو کښې شاملیدې شی دادَ هغه نفل مونځ دې. دَ سحر، ماسپښین، مازیګر، ماښام او ماسخوتن هرمونځ کښې دا سړې دَ نفل کولو په غرض سره شاملیدې شی.

② امام مالك رحمه الله فرمائی چه داسې سړې دَ ماښام په مونځ کښې دَ نفل کولو په غرض سره نه شی شاملیدې باقی څلورو مونځونو کښې شاملیدې شی. بعضې علماء دَ امام مالك رحمه الله مسلك هم دا ښائی چې سحر اوماښام دواړو کښې شاملیدل صحیح نه دی.

③ ائمه احناف فرمائی چه داسې سړې دَ نفل کولو په غرض سره صرف دَماسپخین او ماسخوتن په مونځ کښې شاملیدې شی باقی سحر، مازیګر او ماښام کښې شاملیدې نه شی.

**د اول فريق دليل:-**

زير بحث دَ يزيد بن الاسود ﷺ حديث د دوى مستدل دې. په دې كښې تصريح دې چه دَ منى مسجدخيف كښې حضورپاك ﷺ دَ سحر مونځ كښې دوو كسانوته په جمع كښې دَ شركت تعليم وركړو او وئى فرمائيل چه دا دويم مونځ كوم چه په جمع سره كړې دې دا ستاسو دپاره نفل دى. دا حديث په خپله مدعا باندې ډير واضح دليل دې.

**د اول فريق د دليل جوابونه:-**

① ډيره ممكنه ده چه دا دَ هغه وخت خبره وى كله چه په يو وخت كښې دوه ځل دَ فرض مونځ كولو اجازت وو.

② دا هم ډيره ممكنه ده چه دا جواز دَ هغه زمانې سره متعلق وى كله چه دَ سحر او مازيګر دَ مونځ نه پس دَ نفل كولو ممانعت حكم نه وو راغلې.

③ دلته دَ مبيح او محرم مسئله ده اودَ مبيح اومحرم چه كله مقابله راشى نو ترجيح محر ته وركولې شى لهذا احنافو محرم ته ترجيح وركړې ده.

**د دويم فريق دليل:-** بعضې رواياتو كښې "الاالمغرب" الفاظ دى كوم چه موطا مالك كښې موجود دى. دې نه علاوه په نورو مونځونو كښې دَ عام اجازت دَ رواياتو نه هغه استدلال كوى. د ماښام په وخت كښې دويم فريق هسې هم د دريم فريق يعنى احنافو سره دې نو جواب ته څه ضرورت نشته. البته په نورو مونځونو كښې داول فريق دليل په جواز كښې د دوى دليل هم دې. د دې وجې د اول فريق د مستدل نه چې كوم درې جوابونه ذكر شوى دى بعينها هم هغه جوابونه د دويم فريق د دليل نه هم ده.

**د دريم فريق دلائل:-**

① دَ سحر او مازيګر دَ مونځونونه پس نفل كول دَ متواتر احاديثو په رڼا كښې ممنوع دى او په دغه ممانعت كښې هيڅ شبه يا ابهام نشته او ممانعت عام دې. لهذا په كور كښې دَمونځ كولونه پس سحر اومازيګر كښې دَ نفل كولو نه عام متواتر احاديثو مخالفت لازم راځى. او په ماښام كښې خو هم يو "الاالمغرب" استثناء ده دَ كوم نه چه ممانعت ثابت دې.

② چه كوم سرې دَ ماښام نفل كوى نو يا به امام سره سلام ګرځوى نو درې ركعته نفل به جوړشى او درې نفل په اسلام كښې معهود اومعروف نه دى. او كه دا سرې پاسى او نور يو ركعت ورسره ملاؤ كړى څلور ركعته نفل جوړ كړى لكه څنګه چه شوافع فرمائى نو په دې سره دَ امام مخالفت لازم راځى كوم چه منع دې.

③ حضرت ابن عمر ﷺ اثر پخپله په مشكوة كښې دَدې باب آخره كښې حديث نمبر۹ كښې راتلونكې دې دَ كوم الفاظ چه داسې دى: ((من صلى المغرب والصبح ثم ادركهما مع الإمام فلا يعد لهما)) (رواه مالك)

**انفراداً او جماعة مونځ کښې کوم فرض حسابیږي په دې کښې مذاهب:-**
دلته دویمه مسئله داده چه که چرې فرض کونکی سړې راشي جمع سره مونځ اوکړي نو آیا اولنې مونځ به په فرض کښې شمیرلې کیږي که دویم مونځ به فرض شمیرلې کیږي؟ کوم یو مونځ هم چه فرض اوشمیرلې شي نو دویم به نفل شمیرلې کیږي.
① په دې کښې دَ شوافعو حضراتو یو قول دادې چه دَ تعین نه بغیر یو فرض دې او دویم به نفل جوړشي. دویم قول دادې چه دواړه به فرض شمیرلې کیږي. دریم قول دادې چه اول مونځ به فرض وي او دویم به نفل جوړیږي. هم دا دَ شوافعو په نیز مختار هم دی.
② ائمه احناف فرمائي چه وړمبې مونځ به فرض شمیرلې کیږي او دویم مونځ به نفل جوړیږي لکه څنګه چه دَ شوافع مختار قول دې.
دَ احنافو په دلیل او تائید کښې هغه ټول روایات دي په کوم کښې چه دویم مونځ ته صراحت سره نفل وئیلې شوې دې. "فانها لك نافلة" دې سړي ته به دَ جمع ثواب ملاویږي او نفل به ملاؤ شي. باقي فرض مخکښې شوی دی
**د مسئلة الباب حکم په الله تعالی باندې پریخودل:-** هسې دا مسئله مغیباتو سره تعلق لري چه په آخرت کښې به څه کیږي. په دې وجه دا دَ الله تعالی په رضا باندې پریخودل پکار دی. لهذا دا بحث په دنیاکښې هډو چیړل نه دي پکار لکه چه دَ ابن عمر ﷺ حدیث نمبر۷ کښې راغلی دی هغوی دَ چا نه تپوس اوکړو چه زه کوم یو مونځ فرض جوړ کړم. نو هغوی ورته په جواب کښې اوفرمائیل چه دا ستا کار نه دې بلکه داد الله تعالی په رضا باندې دې هغه چه کوم نه فرض جوړول غواړي جوړ به کړي.
**قوله: تُرْعَدُ:** دا دَ رعد نه دَ رچیدو په معنی کښې دې.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۱۱۵۳] دحضرت محجن رضی الله عنه څا لله مونځ کول**

۱۱۵۳–()[۴] [۱] «عَنْ بُسْرِ بْنِ مِحْجَنٍ عَنْ أَبِيهِ، رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، [۲] أَنَّهُ كَانَ فِي مَجْلِسٍ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأُذِّنَ بِالصَّلَاةِ، [۳] فَقَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى، [۴] وَرَجَعَ، وَمِحْجَنٌ فِي مَجْلِسِهِ، [۵] فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا مَنَعَكَ أَنْ تُصَلِّيَ مَعَ النَّاسِ؟ [۶] أَلَسْتَ بِرَجُلٍ مُسْلِمٍ؟ [۷] فَقَالَ: بَلَى، يَا رَسُولَ اللهِ! وَلَكِنِّي كُنْتُ قَدْ صَلَّيْتُ فِي أَهْلِي.

**ترجمه:** [۱] بسر ابن محجن د خپل پلار بزرګوار څخه روایت کوي [۲] چې د هغه پلار (محجن) په یو مجلس کې د نبي کریم ﷺ ملګري وو چې د لمانځه د پاره اذان وشو [۳]

[۱] اخرجه النسائی کتاب الإمامة/باب إعادةالصلاة مع الجماعة بعد صلاة الرجل لنفسه (رقم-۸۵۷) ومالک فی الموطا کتاب صلاة الجماعة ، باب إعادة الصلاة مع الإمام (رقم-۸)

حضور ﷺ د لمانځه د پاره ودريدلو ۴ د لمانځه ځخه چې فارغ شو نو وي ليدل چې محجن په خپل ځاي ناست دي ۵ حضور ﷺ د هغه ځخه پوښتنه وکړه چې د خلقو سره د لمانځه کولو ځخه ته څه شي منع کړي وي ٦ آيا ته مسلمان نه يې؟ چې مونځ دي ونه کړو ۷ ما عرض وکړو چې بيشکه زه مسلمان يم ليکن (خبره دا ده چې) ما په خپل کور کې مونځ کړي وو

۱ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ " إِذَا جِئْتَ الْمَسْجِدَ، وَكُنْتَ قَدْ صَلَّيْتَ، فَأُقِيمَتِ الصَّلَاةُ؛ ۳ فَصَلِّ مَعَ النَّاسِ وَإِنْ كُنْتَ قَدْ صَلَّيْتَ» ". رَوَاهُ مَالِكٌ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ۱ حضور ﷺ هغه ته وفرمايل هر کله چې ته مسجد ته راشي او مونځ (دي په خپل کور کې کړي وي) او په مسجد کې جماعت ولاړ وي نو د خلقو سره (دوباره) مونځ وکړه اګر که تا مونځ کړي وي. (مالك، نسايي)

**تسهيلات:-**

**قوله:** أَلَسْتَ بِرَجُلٍ مُسْلِمٍ:

**په جماعت کښې په عدم شرکت باندې سخته زورنه:-** يعنې ټول خلق په جمات کښې په جمع سره مونځ کوی او ته شاته ناست ئې او په مونځ کښې نه شامليږې ولې ته مسلمان نه ئې؟ ځکه چه دا طرزعمل خود مسلمانانو نه دې.

**دبې لمانځه مسلمان دپاره تنبيه:-** په دې جمله سره هرمسلمان له سوچ پکاردې چه مونځ نه کول دکافرانو طريقه ده مسلمان هم هغه وی چه مونځ کوی. صحابه کرامو به هم هغه سړې مسلمان نه ګنړلو چه مونځ به نې پريخودو.

### [١١٥٤] په دوباره مونځ کولو ثواب ملاويدل

۱۱۵۴-()[۵] ۱ «وَعَنْ رَجُلٍ مِنْ أَسَدِ بْنِ خُزَيْمَةَ، أَنَّهُ سَأَلَ أَبَا أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيَّ، ۲ قَالَ: يُصَلِّي أَحَدُنَا فِي مَنْزِلِهِ الصَّلَاةَ، ثُمَّ يَأْتِي الْمَسْجِدَ، ۳ وَتُقَامُ الصَّلَاةُ، فَأُصَلِّي مَعَهُمْ، ۴ فَأَجِدُ فِي نَفْسِي شَيْئًا مِنْ ذٰلِكَ، ۵ قَالَ أَبُو أَيُّوبَ: سَأَلْنَا عَنْ ذٰلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ٦ فَقَالَ: "فَذٰلِكَ لَهُ سَهْمُ جَمْعٍ» ". رَوَاهُ مَالِكٌ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ د قبيله اسد ابن خزيمه د يو سړي په باره کې روايت دي چې هغه د حضرت ابو ايوب انصاري رضي الله عنه ځخه پوښتنه وکړه ۲ چې په مونږکي يو سړي (په خپل کور کې) مونځ کوي بيا هغه مسجد ته راشي ۳ او (وينې چې) هلته مونځ کيږي نو آيا زه د هغوئ سره (دوباره) مونځ وکړم؟ ۴ زه په خپل زړه کې يوه خدشه محسوسوم (يعنې زما په زړه کې دا شبه پيدا کيږي چې آيا دوباره مونځ کول زما د پاره بهتر دي که نه؟) ۵ ابو ايوب انصاري رضي الله عنه ورته وفرمايل مونږ (هم دا سوال) د نبي کريم ﷺ ځخه کړي وو ٦ نو رسول الله ﷺ

[۱] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة/باب فيمن صلى فى منزله ثم أدرك الجماعة يصلى معهم (رقم-٥٧٨) ومالک فى الموطا كتاب صلاة الجماعة . باب إعادة الصلاة مع الإمام (رقم-١١)

وفرمايل چې دا (دوباره مونځ كول) د هغه د پاره د جماعت نصيبه ده، (مالك، ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① فَأَجِدُ فِي نَفْسِي شَيْئًا: أَيْ: شُبْهَةً: زما په زړه كښې يوه شبهه ده، ويره ده. ② سَهْمُ: أَيْ: نَصِيبٌ مِنْ ثَوَابٍ: حصه، (يعنى برخه د ثواب). ③ جَمْعٍ: اى الْجَمَاعَةِ: جماعت سره مونځ كول.

**تسهيلات:** -

**قوله: فَذٰلِكَ لَهُ سَهْمُ جَمْعٍ:**

**په جماعت كښې د نفلو په نيت شركت كول:** - مطلب دا چه يوسړى په كوركښې مونځ اوكړو اوبيا جمات ته راغلو اوجمع ئى ولاړه اوليدله نودې سړى له په دې كښې شامل كيدل پكاردى. دَ فرض ثواب هغه ته په اول ځل مونځ كولوسره ملاؤشو او په دې مونځ سره ده ته دَجمع فضيلت او سعادت ملاؤ شو.

**د حديث مصداق:** - يادلرئى دا دَماسپښين اوماسخوتن په مونځونوكښې كيدې شى لكه چه دَاحنافو اومالكيه مسلك دې. خودَشوافع او حنابله په نيزدا حديث مطلق دې په ټولو مونځونوكښې شامل كيدې شى لكه چه دَدې حديث تقاضاده، تفصيل اول شوې دې.

**[۱۱۵۵] دجماعت ثانيه حكم**

۱۱۵۵-(١)[٦] ① «وَعَنْ يَزِيدَ بْنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② جِئْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي الصَّلَاةِ، ③ فَجَلَسْتُ وَلَمْ أَدْخُلْ مَعَهُمْ فِي الصَّلَاةِ. ④ فَلَمَّا انْصَرَفَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَآنِي جَالِسًا، فَقَالَ: ⑤ "أَلَمْ تُسْلِمْ يَا يَزِيدُ؟" ⑥ قُلْتُ: بَلَى، يَا رَسُولَ اللّٰهِ! قَدْ أَسْلَمْتُ،

**ترجمه:** ① يزيد ابن عامر ﷺ فرمايي ② چې (يوه ورځ) زه د نبي كريم ﷺ په خدمت كې حاضر شوم او حضور ﷺ هغه وخت د خلقو سره مونځ كولو ③ زه يو طرف ته كيناستم او د هغه خلقو سره په جماعت كې شريك نه شوم ④ حضور ﷺ چې د لمانځه څخه فارغ شو او زه يي (يو طرف ته) ناست وليدم نو وي وفرمايل ⑤ يزيده آيا ته مسلمان نه يي؟ ⑥ (چې مونځ دي ونه كړو) ما عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ بيشكه زه مسلمان يم

① قَالَ: "وَمَا مَنَعَكَ أَنْ تَدْخُلَ مَعَ النَّاسِ فِي صَلَاتِهِمْ؟" ② قَالَ: إِنِّي كُنْتُ قَدْ صَلَّيْتُ فِي مَنْزِلِي، أَحْسَبُ أَنْ قَدْ صَلَّيْتُمْ. ③ فَقَالَ: "إِذَا جِئْتَ الصَّلَاةَ فَوَجَدْتَ النَّاسَ، فَصَلِّ مَعَهُمْ ④ وَإِنْ كُنْتَ قَدْ صَلَّيْتَ، ⑤ تَكُنْ لَكَ نَافِلَةً، وَهٰذِهِ مَكْتُوبَةٌ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① حضور ﷺ وفرمايل بيا د خلقو سره په لمانځه كې د شريكيدو څخه ته څه شي منع كړي؟ ② ما عرض وكړو چې ما په خپل مكان كې مونځ كړي وو (اوس د راتلو په وخت مي) دا خيال وو چې تاسو به هم د لمانځه څخه فارغ شوي يئ ③ حضور ﷺ وفرمايل هر كله چې ته مونځ ته راشي او خلق په لمانځه كولو ووينې نو ته هم د هغوئ سره په لمانځه

(١) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة/باب فيمن صلى فى منزله ثم أدرك الجماعة يصلى معهم (رقم-٥٧٧)

کې شامل شه ۴ اگر که تا (مخکې هغه) مونځ کړې وي ۵ او دا په دويم ځل مونځ به ستا د پاره نفل شي او هغه (اولني لمونځ) به فرض اداشي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① أَحْسَبُ: أَيْ: ظَانًا: زما گمان دې (چه تاسو به مونځ نه فارغ شوی يې).

**تسهيلات:- قوله: تَكُنْ لَكَ نَافِلَةً:**

**د تکن ضمير مرجع:-** د تکن ضمير مرجع هغه مونځ دې کوم چې جمعې سره ادا کړې شوې وی. او هذا مشار اليه هغه مونځ دې کوم چې ځانله ادا کړې شوې وی.

**[۱۱۵٦] په کور کښې اداکړې مونځ بيا په جماعت سره د ملاويدلو صورت**

۱۱۵٦-(١)[٧] ١ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، أَنَّ رَجُلًا سَأَلَهُ فَقَالَ: ٢ إِنِّي أُصَلِّي فِي بَيْتِي، ثُمَّ أُدْرِكُ الصَّلَاةَ فِي الْمَسْجِدِ مَعَ الْإِمَامِ، أَفَأُصَلِّي مَعَهُ؟ ٣ قَالَ لَهُ: نَعَمْ، ٤ قَالَ الرَّجُلُ، أَيَّتَهُمَا أَجْعَلُ صَلَاتِي؟ ٥ قَالَ ابْنُ عُمَرَ: وَذٰلِكَ إِلَيْكَ؟ ٦ إِنَّمَا ذٰلِكَ إِلَى اللّٰهِ عَزَّوَجَلَّ، يَجْعَلُ أَيَّتَهُمَا شَاءَ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** ١ د ابن عمر رضي الله عنهما په باره کې منقول دي چې د هغه څخه يو سړي پوښتنه وکړه ٢ چې زه په خپل کورکي مونځ کوم بيا مسجد ته (په داسې وخت رارسم) چې خلق امام پسې مونځ کوي نو آيا زه هم په هغه امام پسې مونځ وکړم؟ ٣ ابن عمر رضي الله عنهما وفرمايل هو، بيا ٤ هغه سړي پوښتنه وکړه چې (په دې کې) زه خپل (فرض لمونځ) کوم يو وګرځوم؟ (اولني يا دويم) ٥ ابن عمر رضي الله عنهما ورته وفرمايل آيا دا ستا کاردي؟ (يعني په دې کې يو فرض مونځ ګرځول ستا کار نه دي) ٦ دا خو د الله بزرگ وبرتر په اختيار کې دي چې هغه کوم غواړي ستا (فرض) مونځ وګرځوي. (مالك)

**تسهيلات:-**

**قوله: يَجْعَلُ أَيَّتَهُمَا شَاءَ:**

**د دواړو مونځو په ګرځولو کښې اختيار:-** په دې بناء ځيني علماء کرامو ليکلی دی چې کله دويمه جمعه کيږی نو هيڅوك دې په دې د نفلو نيت نه کوی. بس صرف دومره دې اووائي چې زه مونځ کوم.

**[۱۱۵۷] په يوه ورځ کښې يو مونځ دوباره کولو څخه ممانعت**

۱۱۵۷-(٢)[٨] ١ «وَعَنْ سُلَيْمَانَ مَوْلَى مَيْمُونَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ٢ أَتَيْنَا ابْنَ عُمَرَ عَلَى الْبَلَاطِ، وَهُمْ يُصَلُّونَ. ٣ فَقُلْتُ: أَلَا تُصَلِّي مَعَهُمْ؟ ٤ فَقَالَ: قَدْ صَلَّيْتُ، وَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ٥ "لَا تُصَلُّوا صَلَاةً فِي يَوْمٍ مَرَّتَيْنِ»" رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ١ د ام المؤمنين بي بي ميمونه رضي الله عنها آزاد کرده غلام سليمان رضي الله عنه فرمايي ٢ چې

[1] اخرجه مالک فی الموطا کتاب صلاة الجماعة. باب إعادة الصلاة مع الإمام (رقم-٩)

[2] اخرجه ابوداود فی السنن رقم الحديث ٥٧٩ والنسائی رقم الحديث ٨٦ واحمد فی المسند ٢/١٩

ﺑﻴﻮﻩ ﻭﺭځ ﻣﻮﻧږ ﺣﻀﺮﺕ ﺍﺑﻦ ﻋﻤﺮ ﺗﻪ ﭘﻪ ﻣﻘﺎﻡ ﺑﻼﻁ ﻛﻲ ﺭﺍﻏﻠﻮ ﺧﻠﻘﻮ ﻫﻐﻪ ﻭﺧﺖ (ﭘﻪ ﻣﺴﺠﺪ ﻛﻲ) ﻣﻮﻧځ ﻛﻮﻟﻮ[۳] ﻣﺎ ﺍﺑﻦ ﻋﻤﺮ ﺗﻪ ﻋﺮﺽ ﻭﻛړﻭ ﺁﻳﺎ ﺗﺎﺳﻮ ﺩ ﺧﻠﻘﻮ ﺳﺮﻩ ﻣﻮﻧځ ﻧﻪ ﻛﻮﺉ؟[۴] ﺍﺑﻦ ﻋﻤﺮ ﻭﻓﺮﻣﺎﻳﻞ ﭼﻲ ﻣﺎ ﻣﻮﻧځ ﻛړﻱ ﺩﻱ ﺍﻭ ﻣﺎ ﺩ ﻧﺒﻲ ﻛﺮﻳﻢ ﷺ ﺧﻨﻪ ﺩﺍ ﺍﻭﺭﻳﺪﻟﻲ ﺩﻱ[۵] ﭼﻲ ﺗﺎﺳﻮ ﻳﻮﻩ ﻭﺭځ (ﻳﻌﻨﻲ ﭘﻪ ﻳﻮ ﻭﺧﺖ ﻛﻲ ﻳﻮ ﻣﻮﻧځ ﺩﻭﻩ ﺧﻠﻪ ﻣﻪ ﻛﻮﺉ، (ابوداؤد، نسايي، احمد)

**حل اللغات:-** ① الْبَلَاطُ: ضَرْبٌ مِنَ الْحِجَارَةِ تُفْرَشُ بِهِ الْأَرْضُ، يو قسم كانړى دى چه په زمكه خورولي شى، وَهُوَ مَوْضِعٌ مَعْرُوفٌ بِالْمَدِينَةِ: مدينې منورې سره نژدې د يو خاص ځاى نوم دې هغې ته بلاط وائى.

**تسهيلات:- قوله:** أَتَيْنَا ابْنَ عُمَرَ عَلَى الْبَلَاطِ:

**په جمات كښې د دنياوى خبرو څخه ځان ساتلو د عمر رضى الله عنه طريقه:-** په مدينه منوره كښې دَمسجدنبوى نه بهرحضرت عمرفاروق يو ځائى جوړكړې وو دې دپاره چه خلق دنياوى خبرې دجمات په ځائى په دغه ځائى كښې كيناستوسره كوى هم ددغه ځائى نوم بلاط دې.

**قوله:** لَا تُصَلُّوا صَلَاةً فِي يَوْمٍ مَرَّتَيْنِ:

دَدې جملې مطلب دادې چه يو سړى اول فرض كړى وى او اوس په جمع سره بيا هم دغه فرض دوباره كوى اودا ممنوع اومنسوخ دى. دَ اسلام په شروع كښې به داسې كيدل ليكن بيا ممانعت راغلو.

**[۱۱۵۸] د منفرد دپاره د صبا او ماښام په مونځ كښې امام سره عدم شركت كول**

| |
|---|
| ۱۱۵۸-(¹)[۹] [۱] وَعَنْ نَافِعٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: إِنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ كَانَ يَقُولُ: [۲] مَنْ صَلَّى الْمَغْرِبَ أَوِ الصُّبْحَ، [۳] ثُمَّ أَدْرَكَهُمَا مَعَ الْإِمَامِ، [۴] فَلَا يَعُدْ لَهُمَا. رَوَاهُ مَالِكٌ. |

**ترجمه:**[۱] نافع رحمه الله راوي دي چې حضرت عبدالله ابن عمر به فرمايل[۲] كوم سړي چي د ماښام يا د سحر مونځ (تنها) وكړو[۳] بيا دا لمونځونه يي د امام سره بيا موندل (يعني چېرته چي جماعت كيدو هلته ورسيدو)[۴] نو هغه دي دوباره نه كوي (مالك)

**حل اللغات:-** ① فَلَا يَعُدْ: دا د عود نه دې واپس كول او دوباره كولوته وائى. يعنى بيا دې دوباره نه كوى.

**تسهيلات:-**

**دصحر او ماښام څخه روسته د امام سره عدم شركت:-** دا حديث دَ مالكيه اوحنفيه دواړو دپاره دليل دې چه څه وختونه داسې دى چه په هغې كښې دَفرضوكولونه پس نفل كول جائزنه دى. احنافو دَ مازيګردَ مونځ نه پس وخت په دې كښې شميركړې دې ځكه چه په احاديثوكښې په دغه وخت كښې دَ مونځ كولونه ممانعت ذكر هم دې.

¹) اخرجه مالک في الموطا كتاب صلاة الجماعة، باب إعادة الصلاة مع الإمام (رقم-۱۲)

# [۳۰/۴۶]بَابُ السُّنَنِ وَفَضَائِلِهَا]

## د سنتو د فضیلت بیان

**خلاصة الباب:-**

**فيه ثمانية وعشرون حديثاً مشتملة على ثلاث عشرة مسائل:**

① عدد السنن المؤكدة في اليوم والليلة: ۱، ۲، ۴.

② عدد السنن يوم الجمعة: ۳، ۸، ۲۸.

③ تاكيد سنة الفجر: ۵، ۶.

④ حكم الصلوة قبل المغرب : ۷، ۲۱، ۲۲، ۲۳.

⑤ فضيلة سنة الظهر: ۹ ،۱۰، ۱۱، ۱۹.

⑥ النفل قبل العصر: ۱۲ ،۱۳، ۱۴.

⑦ النفل بعد المغرب: ۱۵، ۱۶.

⑧ السنة بعد العشاء: ۱۷.

⑨ إثبات بعض السنن بنص القرآن: ۱۸، ۱۹.

⑩ حكم الصلوة بعد العصر: ۲۰، ۲۱.

⑪ الترغيب على أداء السنن في البيوت: ۲، ۳، ۴، ۲۴.

⑫ حكم أداء السنة في المسجد: ۲۵.

⑬ الفصل بين الفرض والسنة: ۲۷.

**د سنت لغوی معنی:-** سنت په لغت کښې لارې او طريقې ته وائی.

**د سنت اصطلاحی تعریف:-** د سنت تعريف دا دې. ((ماواظب عليه النبي صلى الله عليه وسلم وتركه مرة اومرتين)).

يعنی چې نبی کريم په کوم يوعمل باندې هميشوالې او مواظبت کړې وی اوبو ځل دوه ځله نې پريخودې وی. بلـه دا چې سنت تطوع، نفل، مستحب مترادف الفاظ دی دَ يوبل په ځائی باندې وئيلې شی.دلته په دې باب کښې د مانځه د سنتو بيان کيږی.

**د سنت دوه قسمونه:-**

① **سنت مؤکده:** د ته سنن رواتب هم وئيلی شی دا هغه سنت دی په کوم باندې چه حضورپاك ﷺ هميشه والې کړې دې سنن مؤكده تپول دولس دی

② **سنن زوائد:** دې ته غير رواتب هم وائی دا هغه دی چه په کوم باندې حضورپاك ﷺ

همیشه والي نه دي اختیار کړي. دَ سنن غیرمؤکده تحدید نشته دي البته دَدې دومره بیان دي چه دَ مازیګر نه وړاندې څلور کعته دي. دغه شان دَ ماسخوتن نه وړاندې څلور کعته دي.

**دسنتو د مشروعیت دوه فائدې:-**

① په فرائضو کښې چرته نقص پاتې شی دَدې نقص لرې کولو دَپاره سنت مشروع شوی دی.

② چې بدن په فرائضو ادا کولو اموخته شی د دې دپاره نفل او سنت مشروع شوی دی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۱۱۵۹] په شپه او ورځ کښې د دولس رکعته سنتو کولو فضیلت

۱۱۵۹-()[۱] [۱] عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«مَنْ صَلَّى فِي يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً ; [۳] بُنِيَ لَهُ بَيْتٌ فِي الْجَنَّةِ: [۴] أَرْبَعًا قَبْلَ الظُّهْرِ، وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَهَا، وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ" [۵] وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعِشَاءِ [۶] وَرَكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلَاةِ الْفَجْرِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] بي بي ام حبيبه رضي الله عنها راويه ده چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړي چې په ورځ او شپه کې دولس رکعاته مونځ وکړي [۳] نو هغه د پاره جنت کې کور جوړول کيږي [۴] (او هغه دولس رکعاته دا دي) څلور رکعاته دماسپخين (د فرض لمانځه) څخه مخکې او دوه رکعاته د هغې څخه وروسته او دوه رکعاته د ماښام (د فرضو) څخه وروسته [۵] او دوه رکعاته د ماسخوتن (د فرضو) څخه وروسته [۶] او دوه د سحر (د فرضو) څخه مخکې. (ترمذي)

[۱] وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ أَنَّهَا قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [۲] "«مَا مِنْ عَبْدٍ مُسْلِمٍ يُصَلِّي لِلّٰهِ كُلَّ يَوْمٍ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً تَطَوُّعًا غَيْرَ فَرِيضَةٍ ; [۳] إِلَّا بَنَى اللّٰهُ لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ [۴] أَوْ إِلَّا بُنِيَ لَهُ بَيْتٌ فِي الْجَنَّةِ»".

**ترجمه:** [۱] او د مسلم د يو روايت الفاظ دا دي چې بي بي ام حبيبه رضي الله عنها وفرمايل چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي [۲] چې کوم مسلمان بنده په هره ورځ کې د الله جل شانه دپاره د فرض لمونځونو څخه علاوه دولس رکعاته (سنت) کوي [۳] نو الله تعالى جل جلاله د هغه دپاره په جنت کې کور جوړوي [۴] يا وي فرمايل چې د هغه د پاره په جنت کې کور جوړولې شي.

**حل اللغات:-** ① تَطَوُّعًا: نفلو ته وائی دلته ترې سنت مونځونه مراد دی.

**تسهيلات:-**

**قوله:** مَنْ صَلَّى فِي يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً:

**د دولسو رکعتونو په کولو په جنت کښې محل جوړيدل:-** يعنی په خليريش ګهنټو کښې چه کوم سړې دولس رکعته سنت اوکړی دَ هغه دَپاره به په جنت کښې يو محل تيارېږی. هغه دولس رکعته داسې دی چه دَماسپخين نه مخکښې څلور او روستو دوه دی. دَماښام نه

۱) اخرجه مسلم في صحيحه رقم الحديث ۱۰۳/ ۷۲۸ وابوداود کتاب الصلاة باب تسوية الصفوف (رقم-۶۷۰)

پس دوه دی دَ ماسخوتن نه پس دوه دی اودَ سحر دَ مونځ نه مخکښې دوه رکعته دی. زیر بحث حدیث کښې هم دغه شان ترتیب دې. لیکن په څه نورو روایتونوکښې په دې ترتیب کښې دَماسپښین نه مخکښې سنتو کښې معمولی شان فرق دې دَ کوم په وجه چه په فقهاؤ کښې اختلاف راغلې دې.

**په دوؤ مسئلو کښې اختلاف:-** دَ فرض مونځونونه مخکښې او روستو چه کوم سنت دی په هغې کښې دَ فقهاؤ په نیز دوو مسئلو کښې اختلاف دې. یو خو په دې کښې اختلاف دې چه آیا په دې سنتوکښې څه تحدید او تعین شته که نه؟ یعنی چه دَدې رکعتونه محدود دی که محدود نه دی.

**د سنتو په تحدید کښې مذاهب:-**

① حضرت امام مالك رحمه الله فرمائی چه په دې کښې دَ دوو یا څلورو هیڅ تحدید نشته دې څومره چه یو سړې کول غواړی کولې شی. او هغه تعداد بهرحال افضل دې دَ کوم ذکر چه په احادیثو کښې راغلې دې اولکه څنګه چه په زیر بحث حدیث کښې دې.

② جمهور فرمائی چه ددې سنتو تعداد محدود اومتعین دې.

**د ماسپښین سنت قبلیؤ په تعداد کښې مذاهب:-**

دویمه اختلافی مسئله داده چه دَدې سنتو تعداد څومره دې؟

① نو امام شافعی رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی چه په شپه ورځ کښې دَدې سنتو تعداد لس دې. دَماسپخین دَ مونځ نه مخکښې څلور نه بلکه دوه رکعته دی.

② ائمه احناف فرمائی چه شپه ورځ کښې دَ دې سنتو شمیر دولس دې. دَماسپخین نه مخکښې دوه نه بلکه څلور سنت دی.

**داول فریق دلیل:-** دَحضرت ابن عمر رضی الله عنهما روایت د دوی مستدل دې چه دې سره دویم نمبر حدیث دې دکوم الفاظ چه دادی: ((صلی النبی صلی الله علیه وسلم رکعتین قبل الظهر))

**داول فریق د دلیل جواب:-** په دې روایت کښې دَ تحیة المسجد دَ دوو رکعتو ذکر دې دَماسپخین دَ څلورو رکعتو بیان نه دې دې دَپاره چه ټولو احادیثو سره دا روایت موافق او مطابق شی.

**د دویم فریق دلائل:-** ①زیر بحث د حضرت ام حبیبه رضی الله عنها روایت د دوی مستدل دې. په کوم کښې چه "اربعاقبل الظهر" صریح الفاظ راغلی دی.

② دغه شان حدیث نمبر ۴ کښې هم دَ څلورو رکعتونو لفظ موجود دې.

③ په حدیث نمبر ۹ کښې هم دَ څلورورکعتونو ذکر دې.

④ بیا حدیث نمبر ۱۰ کښې دَ څلورو رکعتونوذکر دې.

⑤ دغه شان حدیث نمبر ۱۱ دَ څلورو رکعتونوذکر دې.

⑥ حدیث نمبر ۱۹ کښې هم دَدې ثبوت ملاویږی.

## [۱۱۶۰] دماسپخين ، ماښام او ماسخوتن سنت

(۲)[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [۲] «صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ الظُّهْرِ، وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَهَا، [۳] وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ فِي بَيْتِهِ، [۴] وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعِشَاءِ فِي بَيْتِهِ» [۵] قَالَ: وَحَدَّثَتْنِي حَفْصَةُ: «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ حِينَ يَطْلُعُ الْفَجْرُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابن عمر رضي الله عنهما فرمايي [۲] چې ما د نبي كريم ﷺ سره دماسپخين (د فرض لمانځه) څخه مخكې دوه ركعاته د هغې څخه وروسته دوه ركعاته [۳] او د حضور ﷺ په كور (يعني د بي بي حفصي رضي الله عنها په حجره كې چې د ابن عمر رضي الله عنه خور وه) د ماښام (د فرض لمانځه څخه وروسته) دوه ركعاته [۴] او د حضور ﷺ په كوركې د ماسخوتن (د فرض لمانځه) څخه وروسته دوه ركعاته كړي دي [۵] او ابن عمر رضي الله عنه وفرمايل چه بي بي حفصه رضي الله عنها ماته بيان وكړو چې حضور ﷺ به دوه مختصر ركعاتونه هغه وخت كول چې سحر به طلوع شوې. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① خَفِيفَتَيْنِ: د خفيفة تثنيه ده، مختصر مونځ كول مراد دى.

**تسهيلات:** -

**قوله:** وَحَدَّثَتْنِي حَفْصَةُ:

**دسحر دوه ركعته سنتو دپاره د حفصې رضي الله عنها د حوالې وركولو وجه:** - حضرت ابن عمر رضي الله عنه دَ سحر دَ مونځ نه مخكښې دوه ركعتو ذكر دَحضرت حفصه رضي الله عنها په حواله سره اوكړو. دَدې وجه داده چه حضرت ابن عمر رضي الله عنه پخپله حضورپاك ﷺ په جمات كښې دوه ركعته سنت كولوسره نه وو ليدلي. په دې وجه ئې دَ حضرت حفصه رضي الله عنها په حواله سره تذكره اوكړه اوحضرت حفصه رضي الله عنها دَ رسول الله ﷺ دوه ركعته سنت په كوركښې كولو سره ليدلي وو په دې وجه هغې بيان اوكړو.

## [۱۱۶۱] د جمعې سنت

(۳)[۲] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُصَلِّي بَعْدَ الْجُمُعَةِ [۲] حَتَّى يَنْصَرِفَ فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ فِي بَيْتِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[۱] اخرجه البخاري في باب الصلاة بعد الجمعة وقبلها (رقم-۹۳۷)و في كتاب الجمعة/ باب التطوع بعد المكتوبة (رقم-۱۱۷۳) مسلم في كتاب الصلاة/ باب فضل السنن الراتبة قبل الفرائض وبعدهن، وبيان عددهن (رقم)-۱۰٤ (۷۲۹) ابوداود كتاب الصلاة،باب تفريع أبواب التطوع وركعات السنة (رقم-۱۲۵۰) والترمذي كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن أول ما يحاسب به العبد يوم القيامة الصلاة (رقم-٤١٤) والنسائي كتاب قيام الليل وتطوع النهار/باب ثواب من صلى في اليوم والليلة ثنتي عشرة ركعة سوى المكتوبة وذكر اختلاف الناقلين فيه لخبر أم حبيبة في ذلك والاختلاف على عطاء (رقم-۱۷۹٤) والدارمي

[۲] اخرجه البخاري في كتاب الجمعة/ باب الصلاة بعد الجمعة وقبلها (رقم-۹۳۷) ومسلم في كتاب الجمعة/ باب الصلاة بعد الجمعة (رقم-۷۱ - (۸۸۲) والدارمي كتاب الصلاة/باب في صلاة السنة والنسائي كتاب الجمعة/باب صلاة الإمام بعد الجمعة (رقم-۱٤۲۷) ومالک في الموطا كتاب قصر الصلاة في السفر ، باب العمل في جامع الصلاة (رقم- ۶۹)

**ترجمه:** ① ابن عمر رضي الله عنهما فرمايي چې نبي كريم ﷺ به د جمعې څخه وروسته هيڅ مونځ نه كولو ② تر دې چې حضور ﷺ به (كورته) واپس تشريف راوړو نو (په كور كښې) به يې دوه ركعاته كولو. (بخاري)

**تسهيلات:** -

**قوله:** فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ فِي بَيْتِهِ:

**د جمعې د مانځه څخه پس په كور كښې دوه ركعته نفل كول:** - په دې حديث كښې دا ذكرې دي چه د حضورپاك ﷺ معمول دا وو چه حضورپاك ﷺ به د جمعې د مونځ نه پس كور ته راتلو اودوه ركعته به ئې كول. په دې حديث كښې د دې مسئلې سره هيڅ بحث نه دې كړې شوې چه د جمعې نه مخكښې څومره ركعته وو. په دې وجه د دې اجمالي روايت نه د چا مسلك نه شي ثابتيدې لكه څنګه چه ئې شوافع ثابتول غواړي. د جمعې د سنتو بحث د دې باب حديث نمبر ٨ كښې راتلونكې دې لږ شان انتظار اوكړئې.

**[١١٦٢] د نبي عليه السلام د نفلو تعداد**

١١٦٢ - (٣) [٣] ① وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ شَقِيقٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «سَأَلْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عَنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، عَنْ تَطَوُّعِهِ، ③ فَقَالَتْ: كَانَ يُصَلِّي فِي بَيْتِي قَبْلَ الظُّهْرِ أَرْبَعًا، ④ ثم يخرج فيصلي بالناس ثُمَّ يَدْخُلُ فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ، ⑤ وَكَانَ يُصَلِّي بِالنَّاسِ الْمَغْرِبَ، ⑥ ثُمَّ يَدْخُلُ فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ ⑦ ثُمَّ يُصَلِّي بِالنَّاسِ الْعِشَاءَ، ⑧ وَيَدْخُلُ بَيْتِي فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ،

**ترجمه:** ① عبد الله ابن شقيق رحمه الله فرمايي ② چې ما د مؤمنانو د مور بي بي عائشې رضي الله عنها څخه د حضور ﷺ د نفل لمونځونو په باره كې پوښتنه وكړه ③ نو هغې وفرمايل چې حضور ﷺ به زما په كور كي د ماسپخين څلور ركعاته كول ④ بيا به يې (مسجد ته) تشريف وړو او (هلته به يې) د خلقو سره (د ماسپخين فرض لمونځ) كولو بيا به يې كورته تشريف راوړو او دوه ركعاته مونځ به يې كولو ⑤ د غسې به حضور ﷺ د ماښام مونځ د خلقو سره (په مسجد كې) اداء كولو ⑥ بيا به يې كور ته تشريف راوړلو سره دوه ركعاته مونځ كولو ⑦ او حضور ﷺ به د ماسخوتن مونځ د خلقو سره (په مسجد كې) كولو ⑧ بيا به يې زما كورته تشريف راوړلو سره دوه ركعاته مونځ كولو

① وَكَانَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ تِسْعَ رَكَعَاتٍ فِيهِنَّ الْوَتْرُ، ② وَكَانَ يُصَلِّي لَيْلًا طَوِيلًا قَائِمًا، ③ وَلَيْلًا طَوِيلًا قَاعِدًا، وكان إذا قرأ وهو قائم ركع وسجد هو قائم، ④ وَكَانَ إِذَا قَرَأَ قَاعِدًا رَكَعَ وَسَجَدَ وَهُوَ قَاعِدٌ، ⑤ وَكَانَ إِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. ⑥ وَزَادَ أَبُو دَاوُدَ: ثُمَّ يَخْرُجُ فَيُصَلِّي بِالنَّاسِ صَلَاةَ الْفَجْرِ.

[1]) اخرجه مسلم في كتاب الصلاة المسافرين/ باب جواز النافلة قائما وقاعدا، وفعل بعض الركعة قائما وبعضها قاعدا (رقم-١٠٥ - (٧٣٠) وابوداود كتاب الصلاة،باب تفريع أبواب التطوع وركعات السنة (رقم-١٢٥١)

**ترجمه:** [۱] او حضور ﷺ په شپه کې (د تهجد) مونځ کله نهه رکعاته کولو په هغې کې به وتر (لمونځ) هم شامل وو [۲] او د شپې به يې تر ډيره وخته پورې په ولاړه مونځ کولو [۳] او تر ډير وخته پورې په ناسته مونځ کولو او کله چې به يې په ولاړه مونځ کوي نو په ولاړه ولاړه به رکوع او سجدې ته تلو [۴] او کله چې به يې په ناسته مونځ کولو نو په ناسته به رکوع او سجدې ته تلو [۵] او کله چې به صبح صادق شو نو دوه رکعاته د سحر سنت به يې کول، مسلم، [۶] او ابوداؤد دا الفاظ مزيد نقل کړي دي چې (د سحر دوه سنت کولو سره) بيا به حضور ﷺ (مسجد ته) تشريف وړو او هلته به يې دخلقو سره دسحرفرض مونځ اداء کولو.

**تسهيلات:** - **قوله:** ثُمَّ يَدْخُلُ فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ:

**دنفلو په کور کښې د کولو افضليت:** - په دې حديث کښې په واضحه توګه بيان کړې شوی دی چه حضورپاک ﷺ به دَ سنتودکولودَپاره په اهتمام سره بار بار کورته تشريف اوړلو. دې سره دا مسئله واضحه شوه چه غوره هم دغه دی چه سنت هم په کور کښې اوکړې شی سره دَدې چه نوافل په جمات کښې کول جائزدی

**په کور کښې د نفلو کولو فائدې:** -

① دَ حضورپاک ﷺ په سنتو عمل کيږی.
② په کورکښې به په دې عبادت کولو سره برکت راځی.
③ د ماشومانو اوښځو په دې کتلوسره په هغوی کښې دَمانځه رغبت اوعادت پيدا کيږی.
④ په کورکښې دَ مانځه ماحول پيدا کيږی.

**قوله:** وَكَانَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ تِسْعَ رَكَعَاتٍ:

**دتهجدو دمانځه د رکعتونوپه تعداد کښې مختلف روايات:** - دلته دَ نهه رکعتوتذکره ده. دَ احنافو په نيزيه دې کښې شپږ رکعته دَ تهجد دی اودرې رکعته دَوتردی. دَ حضورپاک ﷺ دَ شپې دَتهجد په مونځ کښې دَ رکعتونو په تعدادکښې مختلف روايات دی په يوکښې دَ شپږو ذکر دې دغه شان دَ نهه اولسو تذکره هم ده اودَ يوولسو او ديارلسوذکر هم شته. نو په دې کښې هيڅ منافات نشته دې ځکه چه حضورپاک ﷺ په مختلف اوقاتوکښې په مختلف انداز سره تهجد کړی دی.

**قوله:** رَكَعَ وَسَجَدَ وَهُوَ قَاعِدٌ:

**د نبی عليه السلام د تهجدو څلور طريقې:** - په دې جمله باندې دَ پوهيدلودَپاره اول په دې خان پوهه کړنی چه دَ حضورپاک ﷺ دَ تهجد کولو درې طريقې دی

① پوره مونځ به ئی په ولاړه کولو
② پوره مونځ به ئی په ناسته کولو
③ قراءت به ئی په ناسته کولو اوبيابه اودريدو رکوع ته به لاړو اوبيابه سجدې ته تللو.

④ په دې زير بحث حديث كښې دَ دې دريم صورت دَ عكس نفى ده چه په حقيقت كښې څلورم صورت دې يعنى حضورپاك ﷺ به داسې مونځ نه كولو چه قراءت ئى په ولاړه كړې وى او بيا په ناسته باندې سجده كړې وى او څه تېتيدو سره دَ ناستې په حالت كښې ركوع كړې وى هم دَدې صورت نفى په دې حديث كښې مقصودده.

**[١١٦٣] دسحر د سنتو تاكيد**

۱۱۶۳ -()[٥] ⓵ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ⓶ «لَمْ يَكُنِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى شَيْءٍ مِنَ النَّوَافِلِ ⓷ أَشَدَّ تَعَاهُدًا مِنْهُ عَلَى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ⓵ ام المؤمنين بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي ⓶ چې نبي كريم ﷺ به په نوافلو كولو كې داسې هميشگي نه كوله ⓷ څنگه چې د سحر (سنت) دوه ركعاته كولو كې به يې هميشگي او پابندي كوله. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:-** ① أَشَدَّ تَعَاهُدًا: أَيْ: أَكْثَرَ مُحَافَظَةً وَمُدَاوَمَةً: ډير زيات حفاظت او هميشوالې كونكې.

**تسهيلات:-**

**قوله:** أَشَدَّ تَعَاهُدًا مِنْهُ عَلَى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ:

**دسحر د سنتو اهميت:-** په دې وجه وائى چې د سحر دوه سنت مستثنى دى.د سحر سنتو د اهميت او عظمت اندازه ددې نه لگولې شى چې فقهاء كرامو ليكلى دى چې بغير دڅه عذرنه دسحرسنت په ناسته كول صحيح نه دى.

**[١١٦٤] دسحر د سنتو فضيلت**

۱۱۶۴ -()[٦] ⓵ وَعَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ⓶ " «رَكْعَتَا الْفَجْرِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ⓵ ام المؤمنين بي بي عائشه رضي الله عنها روايت كوي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل ⓶ د سحر د سنتو دوه ركعاته د دنيا او د دنيا د ټولو څيزونوڅخه زيات بهتر دي. (مسلم)

**تسهيلات:-**

**قوله:** خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا:

**د دنيا وما فيها څخه د بهترۍ مفهوم:-** د نورو سنتوپه مقابله كښې د سحر دوه ركعته سنت د دنياومافيها څخه بهتر دى.وباقى پاتې شو د يو سبحان الله وئيل د دنياومافيها څخه بهتر كيدل هغه د نورو اذكارو په مقابله كښې د دنيا وما فيها څخه بهتر دى.

---

[1] اخرجه مسلم فى كتاب الجمعة/ باب استحباب ركعتى سنة الفجر، والحث عليهما وتخفيفهما، والمحافظة عليهما، وبيان ما يستحب أن يقرأ فيهما (رقم) ٩٥ - (٧٢٤)

[2] اخرجه الترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى ركعتى الفجر من الفضل (رقم-٤١۶)

**[۱۱۶۵] د مابنام د فرضو څخه مخکې د دوه رکعته نفلو کولو حکم**

۱۱۶۵-(۱)[۷] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُغَفَّلٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۲] «صَلُّوا قَبْلَ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ رَكْعَتَيْنِ»، «صَلُّوا قَبْلَ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ رَكْعَتَيْنِ» [۳] قَالَ فِي الثَّالِثَةِ: "لِمَنْ شَاءَ" [۴] كَرَاهِيَةَ أَنْ يَتَّخِذَهَا النَّاسُ سُنَّةً. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] عبدالله ابن مغفل رضي الله عنه راوي دي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل [۲] د مابنام د فرض لمانځه څخه مخكې (دوه ركعاته) مونځ كوي، د مابنام د فرض لمانځه څخه مخكې (دوه ركعاته) مونځ كوي [۳] حضور ﷺ په دريم ځل يې دا وفرمايل چې څوك غواړي ودي كړي [۴] په وجه د دې خبرې د مكروه ګڼلو چې خلق يې سنت ونه ګرځوي. (بخاري، مسلم)

**تسهيلات:-**

**قوله: صَلُّوا قَبْلَ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ:**

يعنې دَ مابنام دَ اذان نه پس دَ فرض مونځ كولونه مخكښې دوه ركعته كوئى ليكن ضرورى نه دى چه هر سړې دې داسې كوي.

**د مابنام څخه وړاندې د دوؤ ركعتونو په باره كښې درې قسمه روايات:-** دَ مابنام دَ مونځ نه مخكښې دوه ركعته كول اونه كولو باره كښې درې قسمه روايات موجود دى.

① اول هغه روايات دى په كوم كښې چه دَ كولو بيان دې.

② دويم هغه روايات دى په كوم كښې چه دَ نه كولو بيان ددې.

③ دريم هغه روايات دى په كوم كښې چه دَ دواړو اختيار وركړې شوې دې. هم په دې وجه دَ فقهاؤ كرامو په مينځ كښې څه اختلاف راغلې دې. [المرتقات ۲۴۵/۳]

**د مابنام څخه وړاندې د دوؤ ركعتونو په حكم كښې مذاهب:-**

① دَ امام احمدبن حنبل رحمه الله په نيز دا دوه ركعته مستحب دى حالانكه موجوده عرب دا دَ فرضو په شان ضرورى ګڼړى.

② دَ جمهورو په نيز دَدې دوو ركعتو درجه دَ استحباب نه ده بلكه صرف دَ اباحت ده او په دې شرط سره چه دَدې كول مباح دى چه دَ مابنام دَ مونځ دَ فوت كيدو خطره هم نه وى او په دې سره تاخير هم نه راځي. حضورپاك ﷺ نه ددې نه صحابه منع كړى دى او نه ئى حكم وركړې دې بلكه صحابه كرام ئې په خپل اختيار باندې پريخودې دى. لهذا دلته دَ استحباب دليل هم موجود نه دې. دَدې مسئلې تفصيل باب فضل الاذان حديث نمبر ۹

[۱] اخرجه البخاري في كتاب الأذان/باب: بين كل أذانين صلاة لمن شاء(رقم-۶۲۷) وكتاب الجمعة/ باب الصلاة قبل المغرب (رقم-۱۱۸۳)ومسلم في صلاة المسافرين/ باب بين كل أذانين صلاة (رقم) ۳۰۴ - (۸۳۸) وابوداود كتاب الصلاة،باب الصلاة قبل المغرب (رقم-۱۲۸۱) والترمذي كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الصلاة قبل المغرب (رقم-۱۸۵) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء في الركعتين قبل المغرب (رقم-۱۱۶۲)

لاندې تیرشوې دې.

**د ملا علي قاري رائې:-** ملاعلي قاري رحمه الله فرمائی چه ډیر احادیث دَدې دوو رکعتو کولوسره متعلق راغلی دی لهذا دا دوه رکعته مستحب دی لکه چه امام احمدبن حنبل رحمه الله او اسحاق بن راهویه رحمه الله مسلك دې فرمائی "والاصح مستحب" (مرقات: ۳/۱۱۲)

بهتره دغه ده چه چرته دَ کولو موقع ملاویږی نو کول ئی پکار دی دَنفل ثواب به کیږی او چرته چه موقع نه وی نو دَموقع جوړولو ضرورت نشته دې نه دې کوی لکه چه په هندوستان او پاکستان کښې نه کیږی.

## [۱۱٦٦] د جمعي څخه وروسته څلور رکعته سنت

۱۱۶۶-( )[۸] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② " «مَنْ كَانَ مِنْكُمْ مُصَلِّيًا بَعْدَ الْجُمُعَةِ فَلْيُصَلِّ أَرْبَعًا» ". ③ رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَفِي أُخْرَى لَهُ، قَالَ: " «إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمُ الْجُمُعَةَ فَلْيُصَلِّ بَعْدَهَا أَرْبَعًا» ".

**ترجمه:** ① ابوهریره رضي الله عنه راوي دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل ② په تاسو کې چې کوم سړي د جمعي (د فرض لمانځه) څخه وروسته مونځ کونکي وي نو هغه ته پکار دي چې هغه څلور رکعاته وکړي، مسلم ③ او د مسلم د یو دویم روایت الفاظ دا دي چې حضور ﷺ وفرمایل هر کله چې په تاسو کې یو سړي د جمعي مونځ وکړي نو هغه ته پکار دي چې د هغې څخه وروسته څلور رکعاته (سنت) هم وکړي.

**تسهیلات:-**

**قوله:** مَنْ كَانَ مِنْكُمْ مُصَلِّيًا بَعْدَ الْجُمُعَةِ:

**دوه اختلافی مسئلې:-** دلته دوه لوئې مسئلې دی اوپه دواړوکښې دَ فقهاؤ اختلاف دې. یومسئله داده چه دَ جمعه دَ مونځ نه وړاندې څوسنت دی اودویمه مسئله دا چه دَدې نه پس دَ سنتو تعداد څومره دې.

### د جمعې د مانځه څخه وړاندې د دوؤ رکعتونو په حکم کښې مذاهب:-

① دَ علامه ابن قیم او اهل ظواهر په نیزدَ جمعه نه وړاندې څلوررکعته کول بدعت دې ابن تیمیه رحمه الله دَدې مسئلې په حمایت کښې ښه قلم استعمال کړې دې.

② څلورواړه ائمه او فقهاء کرام فرمائی چه څنګه سنن بعدالجمعه څلور رکعته ثابت دی دغه شان قبل الجمعه هم څلوررکعته ثابت دی.

**داول فریق دلیل:-**

① دَ رسول الله ﷺ په مبارکه زمانه کښې دَ جمعه دَ پاره یواذان کیدلو اوهغه اذان په هغه

---

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب الجمعة/ باب الصلاة بعد الجمعة (رقم) ۶۷ - (۸۸۱) وابوداود کتاب الصلاة باب الصلاة بعد الجمعة (رقم-۱۱۳۱) والترمذی کتاب الجمعة/باب ما جاء فی الصلاة قبل الجمعة وبعدها (رقم-۵۲۳)

وخت كښې شوې ووچه كله به دَ حضورپاك ﷺ خطبه شروع كوله اودَ خطبه نه وړاندې څلور ركعته سنت كولودَپاره وخت نه وى څنګه به ئې كوى؟ بياچه به كله خطبه ختميدله نوهغه وخت به هم دَ سنتوكولوموقع نه ملاويدله. چه كله دَ څلورو ركعتو دَ كولودَپاره وخت نشته نوكول ثابت نه دى اوچه ثابت نه دى نو بدعت دى.

**دَاول فريق دَ دليل جواب:-** حضورپاك ﷺ به دَ خپل كور نه دَ جمات دَپاره پس دَ زوال نه تشريف راوړلو او بيا به په منبرباندې كيناستوسره دَ خطبې دَپاره اذان كيدلو نوپس دَ زوال دَ كورنه دَوتلو اوپه منبر باندې دَ كيناستلو په مينځ كښې به دومره وقفه ضرور وى په كوم كښې چه څلورركعته اداكړې شى خاص كر صحابه كرام به وختى وختى دَ جمعه دَپاره په جمات كښې جمع كيدلوسره تيار ناست وو. روستو چه كله بيا مشاغل زيات شو نودَحضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه په زمانه كښې دَ جمعه دَپاره يويل اذان شروع شوچه نن صبا ورته اول اذان وائى فقهاء هم دَدې اذان نه پس دَ جمعه په ورځ اخستل اوخرڅول ناجائزګرځولى دى نن صبا غيرمقلدين دې اذان ته هم بدعت وائى الله تعالى دې دوى ته هدايت اوكړى.

**دَ دويم فريق دَلائل:-**

① دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما حديث دَ دوى مستدل دې كوم چه ابن ماجه نقل كړې دې الفاظ دادى: "قال كان النبى صلى الله عليه وسلم يركع قبل الجمعة اربع ركعات لايفصل بينهن بشيئ" دا دواړه روايتونه سنن قبل الجمعه باندې صريح دلالت كوى.

② دَحضرت ابوهريره رضي الله عنه حديث دَ دوى مستدل دې كوم چه امام طحاوى رحمه الله په مشكل الآثار كښې نقل كړې دې دَ كوم الفاظ چه دادى "من كان منكم مصليا فليصل قبلها اربعا وبعدها اربعا".

③ په كومو رواياتوكښې چه قبل الزوال دَڅلور ركعتو كولوذكر دې هغه هم دَ جمهورو دَپاره دليل دې ځكه چه هغه هم سنن قبل الجمعه ته شامل دى.

④ دَ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه اوعمران بن حصين رضي الله عنه نه آثار نقل دى په كوم كښې چه دَڅلورو ركعتو ثبوت دې او په ترمذى شريف كښې دا نقل كړې شوى دى.

⑤ په كومورواياتوكښې چه دَماسپښين دَ مانځه نه وړاندې دَ څلورو ركعتوسنتوذكر دې دې نه هم جمهور استدلال كوى ځكه چه دَ جمعه مونځ دَماسپخين دَ مونځ بدل او دَدې قائمقام دې. كله چه دَماسپخين دَ مونځ نه وړاندې دَ څلورو ركعتو سنتو په واضح توګه ثبوت دې نودَ جمعه نه وړاندې به هم دَ څلورو ركعتو ثبوت ملاؤ شى ځكه چه دَ دواړو وخت هم يو دې

**انصافى خبره:-** په دې مسئله كښې څه اختلافات راغلل دَ څه عموماتونه استدلال كړې شوې دې په دې وجه په دې مسئله كښې څه نرمى راغله اودَغه سنتو په تاكيد كښې څه

فرق راغلولهذا که دَ یوسړی نه دَ جمعه وړاندینی څلور رکعته پاتې شی نودَ جمعه دَ مانځه نه پس دا کول اودَدې راګرځول نشته دې.

**د سنت بعد الجمعه په تعداد کښې مذاهب:-**

① دَامام ابوحنیفه رحمه الله اوامام محمد رحمه الله په نیزدَ جمعه نه پس څلوررکعته سنت دی اودَامام شافعی رحمه الله یوقول هم دغه شان دې.

② دَامام ابویوسف رحمه الله په نیزدَ جمعه دَ مونځ نه پس شپږ رکعته سنت دی دوه په یوسلام او څلور په جدا سلام سره دی.

**داول فریق دلیل:-** زیر بحث حدیث د دوی مستدل دې چه په خپله مدعاباندې واضح تردلیل دې په کوم کښې چه "فلیصل اربعا" الفاظ ښکاره دی هم دَدې حدیث په یویل روایت کښې داسې الفاظ ذکر دی.

"اذاصلی احدکم الجمعة فلیصل بعدها اربعا" (مصنف ابن ابی شیبه ج۲ص۱۳۲)

**د دویم فریق دلائل:-** دَ صحابه کرامو هغه ټول آثارد دوی مستدلات دی په کومو کښې چه دَ شپږو رکعتو ذکرراغلې دې اودَ دغه صحابه کرامو په دې باندې عمل وو ابن ابی شیبه خپل سندونوسره بیان کړې دې او وئیلی دی چه حضرت علی رضی الله عنه حضرت ابن عمر رضی الله عنهما په روایت کښې دَ دوو ذکردې. دَ حضرت ابن مسعود رضی الله عنه په روایت کښې دَ څلورو ذکر دې دَحضرت علی رضی الله عنه په روایت کښې دَ شپږو ذکر دې حضرت عبدالرحمن سلمی دَ سنن بعدالجمعه باره کښې فرمائی "علمنا ابن مسعود ان نصلی بعد الجمعة اربعا فلما قدم علی بن ابی طالب علمنا ستا".

**د دواړه قسمه روایاتو په منځ کښې تطبیق:-** په کومواحادیثوکښې چه بعدالجمعه دَ دوو سنتوذکردې هغه په ادنی سنت باندې محمول دی او په کومو احادیثو کښې چه دَ څلورو سنتوذکردې هغه کمال سنت باندې محمول دی یعنی اول دوه اوبیا څلور نوکمال شپږو ته اورسیدو. مثلاً یوسړی په یوسلام سره دووه سنت اوکړل نوهغه دَ دوو سنتو والا په حدیث باندې عمل اوکړو او بیا هغه څلور اوکړل نو دَ څلورو سنت والا په حدیث ئې عمل اوشو اوچاچه دَ شپږو قول کړې دې نودا مجموعه دَ شپږو هم ده لهذا په احادیثوکښې هم تعارض نشته او دَ احادیثو دَ آثارو سره هم تعارض نشته . دا اعداد دی دا دې هم وی اوهغه دې هم وی په یوکښې دَ بل نفی موجودنه ده.

**معمول به قول:-** بهرحال امام ابوحنیفه رحمه الله اوامام محمد رحمه الله څلوروته ترجیح ورکړې ده اوامام ابویوسف رحمه الله شپږوته ترجیح ورکړې ده. عام مشائخ احناف دَ شپږو رکعتو قول ته ترجیح ورکړې ده او هم دغه دَ احنافو په نیزمعمول به دی لیکن دَ څلورو نه پس دوه سنت زوائد دی.

**په سنت بعد الجمعه کښې د رکعتینو او شپږ رکعتونو په تقدیم او تاخیر کښې مذاهب:-**

① دَاحنافو محققین علماؤ داخیال دې چه دوه دې مقدم کړی

② دَمتقدمینو خیال دې چه څلور دې مقدم کړی. دادَ اولی او غیراولی مسئله ده جائز دواړه دی. امام ابویوسف رحمه الله دَ څلورو مقدم کولو قول راجح گرځولې دې ځکه چه په یو حدیث کښې راغلی دی چه دَ یوفرض مونځ نه پس دَهغې هم شکل مونځ مناسب نه دې دَ حضرت عمر فاروق رضی الله عنه باره کښې دی: "ان عمرکان یکره ان یصلی بعده صلوة الجمعة مثلها". (کذا فی الطحاوی)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۱۱۶۷] د ماپښین د سنتو فضیلت**

۱۱۶۷-()[۹] ① عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ② "«مَنْ حَافَظَ عَلَى أَرْبَعِ رَكَعَاتٍ قَبْلَ الظُّهْرِ وَأَرْبَعٍ بَعْدَهَا؛ ③ حَرَّمَهُ اللَّهُ عَلَى النَّارِ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَه.

**ترجمه:** ① بي بي ام حبيبه رضی الله عنها فرمايي چې ما د نبي كريم ﷺ څخه دا اوريدلي دي ② چې كوم سړي د ماسپخين (د فرض لمانځه) څخه مخكې څلور ركعاته او د هغې څخه وروسته څلور ركعاته په هميشګي سره كوي (يعني په پابندي سره، ناغه يي نكوي) ③ نو الله تعالى جل جلاله په هغه د دوزخ اور حراموي (په دي طور سره چې هغه به مطلقًا په دوزخ كې نه اچوي يا دا چې هغه به په ابدي طور سره د دوزخ څخه ساتي). (احمد، ترمذي، ابوداؤد، نسايي)

**د راوي مختصر تعارف:** نوم رمله كنيت ام حبيبه دَ پلار نوم ابوسفيان دَ مور نوم صفيه بنت العاص وو چه دَحضرت عثمان رضی الله عنه سكه ترور وه. حضرت ام حبيبه رضی الله عنها دَ رسول الله ﷺ دَ بعثت نه ۱۷ كاله وړاندې پيدا شوې. (اصابة ۸۴/۸). ړومبئ نكاح ئې عبدالله بن جحش سره شوې وه ([2]) خپل خاوندسره مسلمانه شوه حبشه طرف ته ئې هجرت اوكړوخاوندئې حبشه ته لاړوعيسائي شو او هم په دې كښې هغه مړ شو.

دويمه نكاح ئې رسول الله ﷺ سره اوشوه نجاشي پخپله نكاح اوكړه اومهر ئې هم پخپله اداكړو هغه وخت دَ دوی عمر ۳۶ يا ۳۷ كاله وو. په حديث باندې به ئې ډير په اهتمام سره عمل كولو اونوروته به ئې هم تاكيد كولو.

**وفات:-** دَخپل رور حضرت اميرمعاويه رضی الله عنه په دور خلافت ۴۴ﻫ كښې وفات شوه او په مدينه كښې خښه شوه. هغه وخت دَ هغې عمر ۷۳ كاله وو. دَ وفات په وخت كښې هغې

[1]) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب الأربع قبل الظهر وبعدها (رقم-۱۲۶۹)والترمذی والنسائی کتاب قیام اللیل وتطوع النهار/الاختلاف علی إسمعیل بن أبی خالد (رقم-۱۸۱۵)

([2]) اصابه. (۲)البخاری فی التهجد باب ماجآء فی التطوع مثنی مثنی ومسلم فی المسافرین باب السنن الراتبة قبل الفرائض وبعدهن).

حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها اوحضرت ام سلمه رضي الله عنها راوغوښتې اوونی فرمائیل چه ما معاف کړنی. حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه ما اوونیل چه معاف نی نو ونیل تازه ډیره خوشحاله کړم الله تعالی دې تاخوشحاله کړی. (اصابه)

**مرویات:**- دَ هغې نه ۶۵ احادیث روایت دی.

**تسهیلات:- قوله: وَأَرْبَعٍ بَعْدَهَا**

دَماسپخین دَ مونځ نه پس عام روایتو کښې دَ دوو رکعتو ذکر دې لیکن دلته په دې روایت کښې دَ څلورو بیان دې. اوس په دې کښې دوه احتمال دی. یو دا چه دا څلور رکعته دَ دې دوو سنتو نه علاوه دی. په ظاهری توګه دَ حدیث نه ثابتیږی چه دا څلور رکعاته دَ دوو سنت مؤکده نه علاوه دی او دا دَ مستحب او نفلو په درجه کښې دی. دویم احتمال دادې چه دَماسپخین نه پس دوه سنت په دغه څلورو رکعتو کښې شامل دی. دَملا علی قاری رحمه الله دَ کلام نه معلومیږی چه په دغه څلورو رکعتو کښې دَماسپښین دوه سنت هم شامل دی دوه نفل او دوه سنت دی.

بهرحال بهتر دادی چه دا څلور رکعته په دوو سلامو سره اداکړې شی.

**[۱۱۶۸] دماسپخین څخه مخکې د څلور رکعته نفلو فضیلت**

۱۱۶۸-()[۱۰][۱] وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«أَرْبَعٌ قَبْلَ الظُّهْرِ لَيْسَ فِيهِنَّ تَسْلِيمٌ [۳] تُفْتَحُ لَهُنَّ أَبْوَابُ السَّمَاءِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:**[۱] ابو ایوب انصاري رضي الله عنه راوي دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل [۲] دماسپخين څخه مخکې هغه څلور رکعاته چې د هغې په مينځ کې سلام نشي ګرځولي (يعني د دې څلور رکعاتو کولو په سلسله کې افضل دا دي چې څلور واړه رکعاتونه پوره کولو سره سلام وګرځول شي) [۳] د هغې د پاره د آسمان دروازي خلاصول کيږی، (ابوداؤد، ابن ماجه)

**حل اللغات:**- ① تَسْلِيمٌ: سلام ګرځول. ② تُفْتَحُ: پرانستلې شی.

**تسهیلات:- قوله: لَيْسَ فِيهِنَّ تَسْلِيمٌ:**

**دماسپخین د مانځه وړاندې په څلور رکعتونو کښې دوه احتمالات:-**

① یعنی دَماسپخین دَ مونځ نه وړاندې څلوررکعته په یوسلام سره دَ کولودومره لوئی فضیلت دې چه دَآسمانونو دروازې اودَ قبولیت اودَرحمت دروازې کولاووهلې شی دلته هم دا احتمال دې چه دې نه سنت مؤکده څلوررکعته مراد وی

② دَ زوال دَ وخت څلوررکعته نوافل مراد وی.

**راجح قول:**- مختارهم دغه دی چه دې نه دَ زوال الشمس دَ وخت څلوررکعته نفل مراد

[1] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب الأربع قبل الظهر وبعدها (رقم-۱۲۷۰)

دي. زوال الشمس په وخت څلورو رکعتو فضيلت د راتلونکي رواياتونه هم ثابت دی لهذا زير بحث روايت هم په دې باندې حمل کول به زيات مناسب وي.

**[۱۱۶۹] د زوال څخه وروسته د نفلو فضيلت**

۱۱۶۹-(۱۱)[۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ السَّائِبِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي أَرْبَعًا بَعْدَ أَنْ تَزُوْلَ الشَّمْسُ قَبْلَ الظُّهْرِ، [۳] وَقَالَ: "إِنَّهَا سَاعَةٌ تُفْتَحُ فِيهَا أَبْوَابُ السَّمَاءِ، [۴] فَأُحِبُّ أَنْ يَصْعَدَ لِي فِيهَا عَمَلٌ صَالِحٌ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] عبدالله ابن سائب رضی الله عنه فرمايي [۲] چې نبي کريم ﷺ به د نمر د زوال کيدو څخه وروسته او د ماسپخين څخه مخکې (د فيء الزوال) څلور رکعاته مونځ کولو [۳] او فرمايل به يې چه دا داسې وخت دې چې په دې کې (د نيک اعمالو د پورته ختلو د پاره) د آسمان دروازې خلاصيږي [۴] نو زه دا محبوب ګڼم چې دا وخت زما نيک اعمال پورته لاړشي (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① تَزُوْلَ الشَّمْسُ: چه د نمر زوال اوشي (يعنې د آسمان د منځ نه د مشرق نه مغرب طرف ته واوړي).

**تسهيلات:-**

**قوله:** يُصَلِّي أَرْبَعًا بَعْدَ أَنْ تَزُوْلَ الشَّمْسُ:

**د څلورو رکعتونو په مصداق کښې دوه اقوال:-**

① دا څلور رکعته وو چې د زوال په کيدو به مستقل طور کولی شول.

② د دې څخه هم ماسپخين څلور رکعته مراد دي.

**[۱۱۷۰] د مازيګر سنت**

۱۱۷۰-(۱۲)[۲] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «رَحِمَ اللّٰهُ امْرَءًا صَلَّى قَبْلَ الْعَصْرِ أَرْبَعًا» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ أَبُوْدَاوُدَ

**ترجمه:** [۱] ابن عمر رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] الله تعالی جل جلاله دي په هغه سړي رحمت نازل کړي چې د مازيګر (د فرض لمانځه) څخه مخکې څلور رکعاته مونځ کوي. (احمد، ترمذي، ابوداؤد)

**تسهيلات:-**

**قوله:** صلی قَبْلَ الْعَصْرِ أَرْبَعًا:

**د څلورو رکعتونو مصداق:-** د مازيګر مونځ څخه وړاندې چې کوم څلور رکعته سنت غيرمؤکده کيږي د دې څلورو رکعتونه هغه مراد دي.

[۱]) اخرج الترمذی کتاب الوتر /باب ما جاء فی الصلاة عند الزوال (رقم-۴۷۸)

[۲]) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب الصلاة قبل العصر (رقم-۱۲۷۱)

[۱۱۷۱] د مازيګر څخه وړاندې څلور رکعته نفل

۱۱۷۱ – (۱) [۱۳] [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي قَبْلَ الْعَصْرِ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ، [۳] يَفْصِلُ بَيْنَهُنَّ بِالتَّسْلِيمِ عَلَى الْمَلَائِكَةِ الْمُقَرَّبِينَ، [۴] وَمَنْ تَبِعَهُمْ مِنَ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُؤْمِنِينَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] امير المؤمنين حضرت علي کرم الله وجهه فرمايي [۲] چې نبي ﷺ به د مازيګر څخه مخکې څلور رکعاته مونځ کولو [۳] او د هغې په مينځ کې به يې جداوالي کولو په سلام ليږلوسره په مقربو فرشتو باندې [۴] او چې کوم مسلمانان او مؤمنان د دوي تابع دي په ټولو باندې [به يې په سلام ليږلوسره جداوالي کولو]. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① الْمُقَرَّبِينَ: بزرګاني او عزتمندي

**تسهيلات:-**

**قوله:** يَفْصِلُ بَيْنَهُنَّ بِالتَّسْلِيمِ عَلَى الْمَلَائِكَةِ:

**د تسليم على الملائكة څخه مراد:-** دَدې سلام نه مراد دَ التحيات او تشهد لوستل دي. مطلب دا چه څلور رکعته به ئې په يو سلام سره کول په مينځ کښې به ئې قعده اولى وه.

**د مازيګر څخه وړاندې په سنن زوائدو کښې دوه قسمه روايات:-**

① دَ مازيګر دَ مونځ نه مخکښې په دغه سنن زوائد کښې دوه قسمه روايات دي. بعضې کښې دَ څلورو رکعتو ذکر دې

② بعضې کښې دَ دوو رکعتو ذکر دې. دواړه جائز دي دَ مونځ خپل سهولت سره دَدې تعلق دې.

[۱۱۷۲] د مازيګر څخه وړاندې دوه رکعته نفل

۱۱۷۲ – (۲) [۱۴] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: [۱] «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ يُصَلِّي قَبْلَ الْعَصْرِ رَكْعَتَيْنِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] امير المؤمنين حضرت علي کرم الله وجهه فرمايي [۱] چې نبي کريم ﷺ به د مازيګر څخه مخکې دوه رکعاته مونځ کولو. (ابوداؤد)

**تسهيلات:-**

**قوله:** يُصَلِّي قَبْلَ الْعَصْرِ رَكْعَتَيْنِ:

**په رواياتو کښې تطبيق:-** مازيګر نه وړاندې د رکعتونو باره کښې مختلف روايات دي. خينې رواياتو کښې دوه رکعته ذکر دي او خينو کښې څلور ذکر دي. د دې روايت تعلق

[۱] اخرجه الترمذی کتاب السفر/باب کیف کان تطوع النبی صلی الله علیه وسلم بالنهار (رقم-۵۹۸) والنسائی کتاب الإمامة/باب الصلاة قبل العصر وذکر اختلاف الناقلین عن أبی إسحاق فی ذلک (رقم-۸۷٤) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها/باب ما جاء فیما یستحب من التطوع بالنهار (رقم-۱۱۶۱)

[۲] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة، باب الصلاة قبل العصر (رقم-۱۲۷۲)

د مونځ آسانتیا سره دي. که څوک غواړي څلور کعته دې کوي او که غواړي نو دوه رکعته دې کوي.

## [۱۱۷۳] د صلوٰة الاوابين فضیلت

١١٧٣-()[١٥] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " ② «مَنْ صَلَّى بَعْدَ الْمَغْرِبِ سِتَّ رَكَعَاتٍ ③ لَمْ يَتَكَلَّمْ فِيمَا بَيْنَهُنَّ بِسُوءٍ ; ④ عُدِلْنَ لَهُ بِعِبَادَةِ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ سَنَةً» ". ⑤ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عُمَرَ ابْنِ أَبِي خَثْعَمٍ ⑥ وَسَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ يَقُولُ: هُوَ مُنْكَرُ الْحَدِيثِ، وَضَعَّفَهُ جِدًّا.[1]

**ترجمه:** ① ابوهریره رضي الله عنه راوي دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل ② کوم سړي چې د ماښام د لمانځه کولو څخه وروسته شپږ رکعاته نفل (داسې) وکړي ③ چې د هغې په مینځ کې څه فحش خبري ونه کړي ④ نو د هغه رکعتونو ثواب د هغه د پاره د دولس کالو د عبادت برابر کیږي، ⑤ امام ترمذي دا حدیث نقل کړي دي او ویلې یې دي چې دا حدیث غریب دي خکه چې مونږ دا حدیث د عمر ابن خثعم د سند څخه علاوه دبل څه سند سره نه پیژنو ⑥ او ما د محمد ابن اسماعیل بخاري رحمه الله څخه واوریدل چې هغه ویل چې دا (عمر ابن خثعم) منکر الحدیث دي او هغه دي حدیث ته ډیر ضعیف ویلي دي.

**حل اللغات:-** ① عُدِلْنَ: مجهول او معلوم دواړه ونیلې شي، أي إِذَا سُوِّينَ: برابرولې شي.

**تسهیلات:-**

**قوله:** عُدِلْنَ لَهُ بِعِبَادَةِ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ سَنَةً:

**د صلاة اوابین فضیلت:-** یعنی کوم سړی چه دَ ماښام مونځ اوکړو اوبیا دې نه پس ئی شپږ رکعته مونځ اوکړو په دې سره به دغه سړی ته دَ دولسو کالو دَعبادت ثواب ملاویږی. مګر دَدې شرط دادې چه دَ فرضو اودې نفلو په مینځ کښې څه فضول خبره اونه کړی. په دې شپږو رکعتو کښې دَ فرض نه پس دوه رکعته سنت مؤکده هم شامل دی.

**د صلاة اوابین درې صورتونه:-**

① اول دې دوه رکعته سنت اوکړی. دې نه پس دې څلور رکعته په دوو سلاموسره یا په یو سلام سره اوکړې شی نودا ثواب به حاصل شی. دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دَ روایت نه معلومیږی چه دَدې مونځ نوم صلوة اوابین دې. دا صورت دَ ټولو نه آسان دې.

② دَ دوو سنتو نه پس شپږ رکعته سنت صلوة اوابین اوکړې شی

③ شل رکعته صلوة اوابین اوکړې شی.

[1] اخرجه الترمذی فی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی فضل التطوع وست رکعات بعد المغرب (رقم-۴۳۵) وابن ماجة باب ما جاء فی الصلاة بین المغرب والعشاء (رقم-۱۳۷۳)

**په حديث كښې كلام او دهغې جواب:**- بهرحال په زير بحث حديث كښې چه دَ كوم ثواب ذكر كړې شوې دې داهم دَدغه شپږو ركعتو فضيلت دې. دا حديث امام ترمذي رحمه الله دير زيات ضعيف ګرځولې دې. ليكن علماء ليكي چه فضائل اعمال كښې ضعيف روايت هم قابل قبول دې په دې شرط چه دَ دې په مقابله كښې څه صحيح حديث نه وي يا دَ شريعت دَ يو قاعدې سره دَ دې تعارض نه وي.

هسې دا حديث ابن خزيمه په خپل صحيح قوي سند سره نقل كړې دې او ابن ماجه هم دا نقل كړې دې او دَ بعضې صحابه كرامو په دې باندې عمل پاتې دې.

**[۱۱۷٤] دَ صلوٰة اوابين زيات تعداد**

۱۱۷۳-(۱)[۱٦] ۱ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "مَنْ صَلَّى بَعْدَ الْمَغْرِبِ عِشْرِينَ رَكْعَةً ۳ بَنَى اللّٰهُ لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ ام المؤمنين بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ كوم سړي چې د ماښام څخه وروسته شل ركعاته (صلٰوة اوابين) كوي ۳ الله تعالى جل جلاله د هغه د پاره په جنت كې كور جوړوي. (ترمذي)

**تسهيلات:**-

**دحديث ضعف او دهغې جواب:**- دا حديث هم سره دَدې چه ضعيف دې مګر په فضائل اعمال كښې مقبول دې. بل دَ سلف صالحين په دې باندې عمل پاتې دې. دَ صلوة اوابين په تعداد كښې مختلف قسم روايات راغلي دي دَ كوم نه چه اندازه كيږي چه دَ اوابين دَ كم نه كم تعداد دوه ركعته دې او اوسطًا شپږ ركعته او آخرى تعداد شل ركعته دې. چا چه څومره اوكړه هم هغه هومره ثواب به ملاويږي.

**[۱۱۷۵] د ماسخوتن سنت**

۱۱۷٤-(۲)[۱۷] ۱ وَعَنْهَا، قَالَتْ: ۲ «مَا صَلَّى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِشَاءَ قَطُّ فَدَخَلَ عَلَيَّ ۳ إِلَّا صَلَّى أَرْبَعَ أَوْ سِتَّ رَكَعَاتٍ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي ۲ چې نبي كريم ﷺ چې كله به په مسجد كې د ماسخوتن (فرض لمونځ) كولو څخه پس ماته راتلو ۳ نو (د سنتو) څلور يا شپږ ركعاته به يې ضرور كول. (ابوداؤد)

---

[۱] اخرج الترمذى فى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى فضل التطوع وست ركعات بعد المغرب (رقم-٤٣٥)وابن ماجة باب ما جاء فى الصلاة بين المغرب والعشاء (رقم-۱۳۷۳)

[۲] اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة،باب الصلاة بعد العشاء (رقم-۱۳۰۳)

**تسهيلات:-**

**قوله: إِلَّاصَلّٰى أَرْبَعَ أَوْسِتَّ رَكَعَاتٍ:**

① دَ ماسخوتن دَ مانځه نه پس دوه رکعته سنت مؤکده دی دَ کوم ذکرچه په مشهورو رواياتو کښې راغلې دې.

② په څه رواياتو کښې دَ څلورو رکعتو ذکر دې

③ په زيربحث روايت کښې دَ شپږو رکعتو ذکر دې.

**په رواياتو کښې تطبيق:-** کوم ځائې چه دَ څلورو ذکر دې نو په هغې کښې دوه سنت مؤکده دی اودوه نفل دی اوچرته چه دَ شپږو ذکر دې نوهلته دوه سنت مؤکده دی او څلور نفل دی. چا چه څومره اوکړه دومره ثواب به ورته ملاويږی. په زيربحث حديث کښې "او" لفظ يادَ شك دَپاره دې اويادَتنويع دَپاره دې.

**[١١٧٦] د صبا او ماښام څخه وړاندې دوه دوه رکعته**

| ١١٧٦-()[١٨] ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ ﴿وَإِدْبَارَ النُّجُومِ﴾ [الطور: ٤٩] الرَّكْعَتَانِ قَبْلَ الْفَجْرِ، ٣ وَ ﴿وَأَدْبَارَ السُّجُودِ﴾ [ق: ٤٠] الرَّكْعَتَانِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. |
|---|

**ترجمه:** ١ ابن عباس رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ د (تسبيح) ادبار النجوم څخه د سحر څخه مخکې دوه رکعاته (يعني د سحر سنت) مراد دي ٣ او د (تسبيح) ادبار السجود څخه د ماښام څخه وروسته دوه رکعاته (يعني د ماښام سنت) مراد دي. (ترمذي)

**تسهيلات:-**

**قوله: وَإِدْبَارَ النُّجُومِ:**

**دادبار النجوم څخه مراد:-** روستو کيدو ته او تلو ته ادبار وائی. قرآن کريم کښې په سورة طور کښې يو آيت دې.[ طور: ۴۹ ] دلته دَ ستورو تلو ذکر دې دا دَ سحر دَ راختو په وخت کښې وی. لهذا ﴿وَإِدْبَارَ النُّجُومِ﴾ دَ ستورو دَ تلو نه پس مونځ نه دَ سحر دوه رکعته سنت مراد دی. دغه شان قرآن کريم کښې سورة "ق" کښې يو آيت دې ﴿وَمِنَ الَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَأَدْبَارَ السُّجُودِ﴾ [سورة ق: ۴۰ ] دې کښې دَ سجود نه مراد فرض مونځ دې. دَدې فرض دَ کولو او دَدې دَ تلو او دې نه پس پاکی بيانولو نه مراد دَماښام دوه رکعته سنت مؤکده دی.

[1] اخرجه الترمذی فی کتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة الطور (رقم-٣٢٧٥)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۱۱۷۷] د ماپښين څخه مخکې د څلور رکعاته مونځ کولو ثواب

۱۱۷۷-()[۱۹] ① عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: «سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ② "أَرْبَعٌ قَبْلَ الظُّهْرِ بَعْدَ الزَّوَالِ ③ تُحْسَبُ بِمِثْلِهِنَّ فِي صَلَاةِ السَّحَرِ، ④ وَمَا مِنْ شَيْءٍ إِلَّا وَهُوَ يُسَبِّحُ اللّٰهَ تِلْكَ السَّاعَةَ" ⑤ ثُمَّ قَرَأَ: ﴿يَتَفَيَّأُ ظِلَالُهُ عَنِ الْيَمِينِ وَالشَّمَائِلِ سُجَّدًا لِلّٰهِ وَهُمْ دَاخِرُونَ﴾ [النحل: ۴۸]» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** ① امیر المؤمنین حضرت عمر فاروق رضی الله عنه فرمايي چې ما د نبي کريم ﷺ څخه اوريدلي دي ② چې د ماسپخين څخه مخکې او د نمر د زوال کيدو څخه وروسته (د ماسپخين سنت يا فئ الزوال) څلور رکعاته مونځ ③ (په ثواب او فضيلت کې) د تهجد د وخت د څلور رکعاته مونځ کولو برابر دي ④ او دا وخت (يعني د ماسپخين څخه مخکې او د نمر د زوال څخه وروسته) ټول څيزونه د الله رب العزت پاکي بيانوي ⑤ بيا حضور ﷺ دا آيت تلاوت کړو يَتَفَيَّأُ ظِلَالُهُ عَنِ الْيَمِينِ وَالشَّمَائِلِ سُجَّدًا لِلّٰهِ وَهُمْ دَاخِرُونَ، د ټولو څيزونو سايه (سورې) د ښي طرف څخه او د ګس طرف څخه د الله جل شانه د پاره سجده کولو سره ښکته کيږي او هغه ټول عاجز وي. (ترمذي، بيهقي)

**حل اللغات:** - ① تُحْسَبُ: حسابولې شي، برابرولې شي، ② يَتَفَيَّأُ: أَيْ: يَتَمَيَّلُ: مائل کيږي، ښکته کيږي ③ دَاخِرُونَ: أَيْ: صَاغِرُونَ: عاجزی کونکی.

**تسهیلات:** -

**قوله: تُحْسَبُ بِمِثْلِهِنَّ فِي صَلَاةِ السَّحَرِ:**

**د صلاة السحر په مصداق کښې دري ۱ قوال:** -

① ددې څخه د تهجدو څلور رکعته مراد دی، يعنی د ماسپخين د څلور رکعتو سنتو ثواب د تهجدو د څلورو رکعتو برابر دي. ځکه چې د تهجدو په وخت کښې د الله تعالی د رحمت دروازې بيرته وی او ټول مخلوق د الله تعالی عبادت کوی.

② علامه طيبی رحمة الله عليه فرمائی چې ددې څخه مراد د سحر دوه سنت او دوه فرض دی. يعنی زوال څخه پس چې کوم څلور رکعته دی، هغه د سحر د دوؤ فرضواو دوؤ سنتو برابر دی. ددې وجه داده چې د زوال څخه پس نمر بصورت هبوط وانحطاط الله تعالی ته په سجده پريوزی. په دې وجه که انسان هم په دې وخت کښې سجده کوی نو هغه ته هم عظيم اجر ملاويږی.

[1] اخرج الترمذي في كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة النحل (رقم-۳۱۲۸)

④ خيني وانې چې نصف النهار ځخه پس او نصف الليل ځخه پس تر دسحر وخت پورې دي دوارو وختونو کښې دالله تعالى خاص رحمت نازلېږي.په دې وجه داسې وخت کښې مونځ کول پکار دي.

**[۱۱۷۸] د مازيګر ځخه وروسته دوه رکعته**

۱۱۷۸-(۱)[۲۰] ① «وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ② مَا تَرَكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ عِنْدِي قَطُّ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ③ وَفِي رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ، قَالَتْ: ④ وَالَّذِي ذَهَبَ بِهِ مَا تَرَكَهُمَا حَتَّى لَقِيَ اللَّهَ.

**ترجمه:** ① بي بي عائشه صديقه ﷞ فرمايي② چې نبي کريم ﷺ هيڅ کله زما په کورکي د مازيګر ځخه وروسته دوه رکعاته مونځ کول نه دي پرېښي، بخاري مسلم، ③ او د بخاري د يو روايت الفاظ دا دي چې بي بي عائشي ﷞ وفرمايل ④ چې قسم دي په هغه پاك ذات چې هغه د رسول الله ﷺ روح مبارك قبض کړې دې حضور ﷺ دا دوه رکعاته هيڅ کله نه دي پرېښي تر دي چې وفات شو.

**تسهيلات:-**

**قوله: بَعْدَ الْعَصْرِ:**

**د مازيګر ځخه روسته دوو رکعتونو کښې د نبي کريم ﷺ خصوصيت:-**

دَ مازيګر نه پس حضورپاك ﷺ دوه رکعته مونځ کړې دې په دې کښې هيڅ شك نشته البته داد حضورپاك ﷺ خصوصيت وو دَ دې کول صرف دَ حضورپاك ﷺ دَ پاره جائز وو دَ بل چا دَ پاره نه دَ دې حکم دې اونه دَ چا دَپاره جائز دی.

**د خصوصيت دليل:-** ځکه چه دَ مازيګرنه پس دَ نفل مونځ کولو په احاديثو کښې ممانعت راغلي دې. حضرات صحابه کرامو ته په دې عمل کښې تردد اوشو چه دَ ممانعت باوجود حضورپاك ﷺ دا دوه رکعته پخپله ولې کول.

چنانچه حضرت ام سلمه ﷞ دَ حضورپاك ﷺ نه هم په دغه انداز کښې سوال اوکړو يا رسول الله ! تاسو په دې وخت کښې دَ نفل مونځ کولو نه منع فرمائيلې ده بيا تاسو ئې ولې کوئې؟

حضورپاك ﷺ په جواب کښې اوفرمائيل يو ځل دَماسپخين دَ مونځ نه پس دوه رکعته په وجه دَ ځه مشغولتيا پاتې شوې وو نوما دَ مازيګر نه پس اوکړه. چونکه حضورپاك ﷺ چه

---

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب مواقيت الصلاة/ باب: ما يصلى بعد العصر من الفوائت ونحوها (رقم-۵۹۱) ومسلم فی صلاة المسافرين/ باب معرفة الركعتين اللتين كان يصليهما النبی صلی الله عليه وسلم بعد العصر(رقم) ۲۹۹ - (۸۳۵)وابوداود فی کتاب الصلاة،باب من رخص فيهما إذا كانت الشمس مرتفعة (رقم-۱۲۷۹) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الصلاة بعد العصر(رقم-۱۸٤) والنسائی کتاب المواقيت/باب الرخصة فی الصلاة بعد العصر (رقم-۵۷٤)

به کله یو عمل په کوم وخت کښې کولو نو حضور پاك ﷺ بـه پـه هغـې بانـدې همیشـه والې کولو په دې وجه به الله تعالی ته هغه عمل خوښیدلو. هم دغـه معاملـه دَ مـازیگر نـه پس دَ دوو نفلو سره اوشوه چه په شروع کښې مې دَ یو ضرورت دَ وجې نه اکړه بیا په اختیار سره کول شروع کړه. دا دَ امت کار نه دې دَ حضورپاك ﷺ خصوصیت وو.

**[۱۱۷۹] دغروب آفتاب څخه روسته اود مابنام څخه وړاندې د نفلو حکم**

**۱۱۷۹–()[۲۱] [۱] وَعَنِ الْمُخْتَارِ بْنِ فُلْفُلٍ، قَالَ: [۲] سَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ التَّطَوُّعِ بَعْدَ الْعَصْرِ، [۳] فَقَالَ: «كَانَ عُمَرُ يَضْرِبُ الْأَيْدِيَ عَلَى صَلَاةٍ بَعْدَ الْعَصْرِ. [۴] وَكُنَّا نُصَلِّي عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ غُرُوبِ الشَّمْسِ فِي صَلَاةِ الْمَغْرِبِ. [۵] فَقُلْتُ لَهُ: أَكَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيهِمَا؟ [۶] قَالَ: كَانَ يَرَانَا نُصَلِّيهِمَا فَلَمْ يَأْمُرْنَا وَلَمْ يَنْهَنَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.**

**ترجمه:** [۱] مختار ابن فلفل فرمایي [۲] چې ما (یوه ورځ) د حضرت انس رضی الله عنه څخه د مازیگر څخه وروسته د نفل لمانځه کولو په باره کښې پوښتنه وکړه [۳] نو هغه وفرمایل (په دې معامله کې) د امیر المؤمنین حضرت عمر فاروق رضی الله عنه (خو دومره سخته رویه وه چې هغه) به د مازیگرڅخه وروسته د نفل مونځ نیت تړونکي په لاس وهلو (یعنې په انتهایي سختي او شدت سره به یې هغه وخت د لمانځه کولو څخه منع کوله) [۴] او مونږ به د نبي کریم ﷺ په مبارکه زمانه کې د نمر ډوبیدو څخه وروسته او د مابنام د لمانځه څخه مخکې دوه رکعاته (نفل لمونځ) کولو [۵] (دې اوریدو سره) ما د حضرت انس رضی الله عنه څخه پوښتنه وکړه چه آیا حضور ﷺ به هم دا دوه رکعاته کول؟ [۶] وې فرمایل حضور ﷺ به مونږ په لمانځه کولو لیدلو لیکن نه به یې مونږ ته د کولو حکم کولو او نه به یې مونږ د دې د کولو څخه منع کولو. (مسلم)

**حل اللغات:**- ① التَّطَوُّع: أَيْ: نَافِلَة: نفل مونځ، ② يَضْرِبُ الْأَيْدِيَ: أَيْ: يَمْنَعُهُمْ مِنْهَا: چاچه به دمازیگر دمونځ نه پس د نفل مونځ نیت تړلې وو هغوی به ئې په لاس سره منع کول. ③ يَرَانَا: مونږ به ئې اولیدلو (چه مونږ به مونځ کولو خونه به ئې منع کولو اونه به ئې راته حکم کولو. دې نه تقریری طور سره اجازت او اختیار معلوم شو).

**تسهیلات:-**

**قوله: رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ غُرُوبِ الشَّمْسِ:**

**دمابنام د مانځه څخه وړاندې د تاخیر په صورت کښې د نفلو حکم:**- که دَمابنام په مونځ کښې تاخیرراځي نودا دوه رکعته کول مناسب نه دی اودَ خلفاء راشدین رضی الله عنهم معمول دَ نه کولو وو اوکه چرته تاخیرنه راځي اودَ علاقې دَ خلقو دَپاره دَ تشویش او التباس سبب نه وی او وخت موجود وی نوبیا کول پکاردی او په احادیثوکښې اختیاردې او په

() اخرجه مسلم فی صلاة المسافرین وقصرها/ باب استحباب رکعتین قبل صلاة المغرب(رقم-۳۰۲-(۸۳۶)

اختیارکښې جبرنشته دې. څوك ئې چه اوكړي ثواب په مومی او څوك چه نه کوی مجرم به نه وی دا مسئله اول په تفصیل سره بیان کړې شوې ده.

**[۱۱۸۰] د ماښام فرض څخه مخکښې دوه رکعته نفل**

۱۱۸۰-(۱)[۲۲]۱ وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: «كُنَّا بِالْمَدِينَةِ،۲ فَإِذَا أَذَّنَ الْمُؤَذِّنُ لِصَلَاةِ الْمَغْرِبِ،۳ ابْتَدَرُوا السَّوَارِيَ، فَرَكَعُوا رَكْعَتَيْنِ،۴ حَتَّى إِنَّ الرَّجُلَ الْغَرِيبَ لَيَدْخُلُ الْمَسْجِدَ،۵ فَيَحْسَبُ أَنَّ الصَّلَاةَ قَدْ صُلِّيَتْ مِنْ كَثْرَةِ مَنْ يُصَلِّيهِمَا.» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**۱ حضرت انس رضی الله عنه وایي چې مونږ په مدینه کې وو۲ (هغه وخت دا حال وو) چې مؤذن به د ماښام اذان وکړو۳ نو (بعضې صحابه به) د مسجد د ستنو طرف ته زغلیدل او دوه رکعاته نفل مونځ به یې کول۴ تر دې چه که څوك مسافر سړې به مسجد ته راغې۵ نو اکثر خلق (تنها تنها) دوه رکعاته مونځ کولو باندې لیدو سره دا ګمان به یې کولو چې مونځ شوې دې او (اوس خلق سنت کوی). (مسلم)

**حل اللغات:**- ① اِبْتَدَرُوا: أَيْ: تَسَابَقُوا: یوبل نه به مخکښې کیدل (بعضې صحابه). ② السَّوَارِيَ: د سَارِيَةٍ جمع ده، ستنو ته وائی (ستنو ته به ځکه اودریدل چه ستره جوړه شی). ③ الْغَرِيبَ: مسافر.

**تسهیلات:**-

**نوټ:**- د رکعتین قبل صلاة المغرب تفصیل په بل ځائې کښې ذکر شوې دې.

**[۱۱۸۱] د ماښام څخه وړاندې د دوو رکعتونو حکم**

۱۱۸۱-(۲)[۲۳]۱ «وَعَنْ مَرْثَدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ:۲ أَتَيْتُ عُقْبَةَ الْجُهَنِيَّ، فَقُلْتُ: أَلَا أُعَجِّبُكَ مِنْ أَبِي تَمِيمٍ؟۳ يَرْكَعُ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ.۴ فَقَالَ عُقْبَةُ: إِنَّا كُنَّا نَفْعَلُهُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.۵ قُلْتُ: فَمَا يَمْنَعُكَ الْآنَ؟ قَالَ: الشُّغْلُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:**۱ مرثد ابن عبدالله وایي۲ چې زه د حضرت عقبه جهني رضی الله عنه په خدمت کې حاضر شوم ورته مې عرض وکړو چې زه تا ته د ابو تمیم (تابعي) یو تعجب وړ فعل ونه ښایم؟۳ (هغه دا چې) ابو تمیم د ماښام د لمانځه څخه مخکې دوه رکعاته (نفل) مونځ کوي۴ حضرت عقبه رضی الله عنه وفرمایل چې دا مونځ خو به (په مونږ کې بعضو صحابه و رضی الله عنهم هم کله کله) د حضور ﷺ په زمانه کې کولو۵ هر کله چې ما پوښتنه وکړه چې بیا د دې لمانځه څخه تاسو کوم شي منع کړي یې؟ وي فرمایل د دنیا مشغولیت، (که مشغولیت زیات شی نو نوافل بل وخت ته پریښودل کیږی). (بخاري)

**حل اللغات:**- ① أَلَا أُعَجِّبُكَ: أَيْ: أَلَا أُوقِعُكَ فِي التَّعَجُّبِ: تعجب کښې اچونکې کار درته اونه ښائم؟. ② الشُّغْلُ: أَيْ: شُغْلُ الدُّنْيَا: مشغولیت د دنیا.

[1] اخرجه مسلم فی صلاة المسافرین وقصرها/ باب استحباب رکعتین قبل صلاة المغرب(رقم-۳۰۲ - (۸۳۶)

[2] اخرجه البخاري فی کتاب الجمعة/ باب الصلاة قبل المغرب (رقم-۱۱۸٤)

**د راوي مختصر تعارف:** نوم مرثد دَ پلار نوم عبدالله، کنیت ابوالخیر یزنی او مصری ورته وائی. په لویوتابعینوکښې دَهغوی شمیرکیږی. په عام توګه دې دَعقبه بن عامر رضي الله عنه ابوایوب انصاری رضي الله عنه عبدالله بن عمر رضي الله عنه او عمرو بن العاص رضي الله عنه نه روایتونه نقل کوی.

**وفات او مرويات:-** ۹۰ھ کښې وفات شوې دَهغه نه صحاح سته ټولو هم یو روایت نقل کړې دې. (تقریب)

**تسهیلات:- قوله:** قَـالَ: الثُّغُلُ:

**د رکعتین قبل المغرب عدم وجوب:-** ددې نه معلومیږی چې صحابه کرامو د ماښام نه وړاندې نوافل کول پریښودی وو. که چا بهٔ کول نو هغه پسې به خبرې کیدلې. که دا واجب یا ضروری وې نو د حضور ﷺ صحابهٔ کرامو به هیڅکله نه وې پریښودې. ددې نه معلومه شوه چې هغه صحابه کرامو دا مباح ګڼړل. ګنی صحابه کرامو به د دنیا دمشغولیت په وجه هیڅ یو سنت نه پریښودو.

**[۱۱۸۲] د نفلو په کورونو کښې د ادا کولو فضیلت**

۱۱۸۲-()[۲۴] ① وَعَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَى مَسْجِدَ بَنِي عَبْدِ الْأَشْهَلِ، فَصَلَّى فِيهِ الْمَغْرِبَ، ③ فَلَمَّا قَضَوْا صَلَاتَهُمْ رَآهُمْ يُسَبِّحُونَ بَعْدَهَا، ④ فَقَالَ: "هَذِهِ صَلَاةُ الْبُيُوتِ» " رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. ⑤ وَفِي رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ وَالنَّسَائِيِّ: قَامَ نَاسٌ يَتَنَفَّلُونَ، ⑥ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " «عَلَيْكُمْ بِهَذِهِ الصَّلَاةِ فِي الْبُيُوتِ» ".

**ترجمه:** ① کعب ابن عجزه رضي الله عنه فرمایي ② چې (یوه ورځ) رسول الله ﷺ (د انصارو د یوې قبیلې) بني عبد الاشهل مسجد ته تشریف راوړو او هلته یي د ماښام (فرض او سنت) مونځ وکړو ③ هر کله چې (بعضو) خلقو خپل فرض مونځ وکړو نو حضور ﷺ ولیدل چې هغوئ د فرض لمانځه د اداء کولو ځخه وروسته نفل مونځ (یعني د ماښام سنت هم هلته) کوي ④ (د دې په لیدو سره) حضور ﷺ ورته وفرمایل دا (یعني د ماښام سنت یا مطلقًا نفل لمونځ) په کورکي د کولو دي. ابوداؤد، ⑤ او د ترمذي او نسایي د یو روایت الفاظ دا دي چې کله خلق (د فرض لمانځه ځخه وروسته) نفل کولو ته ودریدل ⑥ نو حضور ﷺ هغوئ ته وفرمایل په تاسو لازم دي چې دا مونځ (په خپلو خپلو) کورونو کې کوئ.

**حل اللغات:-** ① صَلَاةُ الْبُيُوتِ: أَيِ الْأَفْضَلُ كَوْنُهَـا فِيهَـا: یعنی نوافل او سنت داسې مونځونه دی چه کورونو ته تلو سره کول افضل او اولی دی سره دَدې چه په جمات کښې کول جائز دی.

¹) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب رکعتی المغرب این تصلیان؟ (رقم-۱۳۰۰) والترمذی کتاب السفر/باب ما ذکر فی الصلاة بعد المغرب أنه فی البیت أفضل (رقم-٦٠٤)

**تسهيلات:-**

**قوله:** هَذِهِ صَلَاةُ الْبُيُوتِ:

**په كور كښې د سنتو پاتې كيدو په صورت كښې په جمات كښې د كولو حكم:**- رسول الله ﷺ په جمات كښې دَماښام مونځ اوكړو اوبيائې سنت هم په جمات كښې اداكړه لكه چه راتلونكى حديث نمبر ۲۵ كښې راځي. بعضې علماؤ ليكلى دى كه چرته كورته تلوسره دَ څه مشغوليت دَ وجې نه دَ سنت پاتې كيدو يا هيريدو خطره وى نو بيا هم په جمات كښې كول پكار دي.

**[۱۱۸۳] دماښام په سنتو كښې اوږد قراءت**

۱۱۸۳-()[۲۵] ⓵ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ⓶ «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُطِيلُ الْقِرَاءَةَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ، ⓷ حَتَّى يَتَفَرَّقَ أَهْلُ الْمَسْجِدِ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ⓵ ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي ⓶ چې نبي كريم ﷺ به د ماښام د فرض لمانځه څخه وروسته په دوه ركعاته (سنت كې كله كله) دومره اوږد قراءت كولو ⓷ چې د مسجد خلق به (د خپل خپل لمونځونو څخه فارغيدو سره) لاړل. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① يَتَفَرَّقَ: جدا به شو، خواره واره به شو. ② أَهْلُ الْمَسْجِدِ: دې نه مراد جماعت سره مونځ كونكى دي.

**تسهيلات:-**

**قوله:** حَتَّى يَتَفَرَّقَ أَهْلُ الْمَسْجِدِ:

**دحديث څخه معلومې شوې مسئلې:-**

① دَ حضورپاك ﷺ نه په جمات كښې سنت ادا كيدل ثابت ددى اودا جائزدى. بيا دغه علت لټولو هيڅ ضرورت نشته دې چه حضورپاك ﷺ دَ كومې مجبورئى نه سنت په جمات كښې كړى وو.

② حضورپاك ﷺ به كله كله دَماښام سنتو كښې طويل قراءت كولو او قراءت به دومره اوږدشو چه دَ محلې خلق به دَ جمات نه كورونوته لاړل

**دسنتو څخه روسته په التزام سره په اجتماعى طوره دعا حكم:-** دې نه صفاواضحه كيږى چه دَ سنتونه پس هيئت اجتماعيه سره بالالتزام دعا غوښتل بدعت دې څكه چه دا ناممكن اونامعقول خبره ده چه خلق به دَ اجتماعى دعاغوښتلودَپاره دَ كورونونه بياجمات ته راتلل اودَ سنتونه پس به ئى دعا غوښتله. زيربحث حديث دَ يوحق ويونكي او حق پرست سړى دَپاره كافى هدايت دي.

---

[1]) اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة،باب ركعتى المغرب أين تصليان؟ (رقم-۱۳۰۱)

**[۱۱۸٤] د ماښام څخه وروسته د نفل کولو فضیلت**

۱۱۸۴-()[۳۶] ① وَعَنْ مَكْحُولٍ، يَبْلُغُ بِهِ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: ② "«مَنْ صَلَّى بَعْدَ الْمَغْرِبِ قَبْلَ أَنْ يَتَكَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ ③ وَفِي رِوَايَةٍ: أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ ④ رُفِعَتْ صَلَاتُهُ فِي عِلِّيِّينَ»". مُرْسَلًا.

**ترجمه:** ① مکحول (تابعي) رحمه الله دا روایت رسول الله ﷺ ته رسوي (یعني د حضور ﷺ څخه بطریق ارسال روایت کوي) چې نبي کریم ﷺ وفرمایل ② کوم سړي چې د ماښام (فرض یا سنت مؤکده) مونځ کولو نه پس (د نیاوي) خبرو کولو څخه مخکې دوه رکعاته مونځ اوکړی ③ او په یو روایت کې دي چې څلور رکعاته مونځ وکړي ④ نو د هغه دا مونځ علیین ته رسولې شي.

**حل اللغات:-** ① رُفِعَتْ: كِنَايَةٌ عَنْ غَايَةِ قَبُولِهَا وَعَظِيمِ ثَوَابِهَا: پورته رسولې شي (دا کنایه ده د قبولیت ددې مونځ او اشاره ده دې ته چه په دې کښې ډیر زیات ثواب د ې). ② عِلِّيِّينَ: دا د عِلِّيّ جمع ده، په اووم آسمان کښې یو خاص د عزت ځای دي هلته د مؤمنانو ارواح او نیک عملونه اوړلې شي.

**تسهیلات:-**

**قوله: مَنْ صَلَّى بَعْدَ الْمَغْرِبِ قَبْلَ أَنْ يَتَكَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ:**

**د صلاة اوابین فضیلت:-** یعنی کوم کس چې د خبرو کولوڅخه وړاندې د ماښام مونځ څخه روسته دوه رکعته ادا کړل ،یا څلور رکعته ئې ادا کړل ،یعنی صلاة اوابین ئې ادا کړل نو دده نفلي مونځ او فرائض دواړه علیین ته اوچت کړې شي.دې دا کنایه ده د دې څخه چې دا د قبولیت درجې ته اورسی او دې کښې ډیر ثواب دې.

**قوله: رُفِعَتْ صَلَاتُهُ فِي عِلِّيِّينَ:**

**دعلیین په مصداق کښې درې اقوال:-**

① علیین هغه مقام دې کوم چې د اوؤ آسمانونوڅخه پورته دې،اوهلته د مؤمنانو روحونه ځی.

② دا د فرشتو د دفتر او رجسټر نوم دې.کوم کښې چې مقبول ترین اعمال لیکلې کیږي.

③ ددې څخه مراد الله تعالی قرب دې.ددې مطلب دادې چې ددنیاوی کلام کولونه وړاندې وړاندې دا نوافل ادا کول افضل دی.ددې په برکت سره پورا مونځ علیین ته رسولې شي.

**[۱۱۸۵] دماښام دوه رکعته سنتونو اندې دتعجیل حکم**

۱۱۸۵-()[۳۷] ① وَعَنْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، نَحْوَهُ، ② وَزَادَ: فَكَانَ يَقُولُ: "«عَجِّلُوا الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ ③ فَإِنَّهُمَا تُرْفَعَانِ مَعَ الْمَكْتُوبَةِ»". ④ رَوَاهُمَا رَزِينٌ ⑤ وَرَوَى الْبَيْهَقِيُّ الزِّيَادَةَ عَنْهُ نَحْوَهَا فِي: "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** ① دحذیفه رضي الله عنه څخه (هم) دغسې (یعني پورته حدیث) روایت دي ② لیکن د هغه

[۱]) مصنف ابن أبي شيبة في ثواب الركعتين بعد المغرب (۳/ ۱۴).

[۲]) اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۳۰۶۸

په روايت کې دا الفاظ هم دي چې حضور ﷺ به فرمايل تاسو خلق د ماښام څخه وروسته دوه رکعاته (سنت) زر کوئ۳ ځکه چې هغه دوه رکعاته د فرضو سره پورته (عليين ته) رسولې شي۴ دا دواړه روايتونه رزين نقل کړي دي۵ او بيهقي د حذيفه رضي الله عنه زائد الفاظ دغسې په شعب الايمان کې نقل کړي دي.

**حل اللغات:-** ① عَجِّلُوا: جلتی کوئ، زر کوئ، ② تُرْفَعَانِ: پورته رسولې شي.

**تسهيلات:-**

**د فرضو څخه وروسته د سنتو په کولو کښې د تادي، دوه وجوهات:-**

① دَ زير بحث حديث مطلب هم دغه دې چه کله فرښتې فرائض اوچته وی نو هغې سره سنن اونوافل هم اوچته وی اوری لهذا تاسو دَ فرضونه پس زر سنت کوئی وخت مه لګوئی دې دَپاره چه فرښتې دواړه قسم اعمال اوچت کړی يوسی

② دَ فرائضو دَ تکميل دَپاره سنت کولې شی لهذا دا هغې سره کيدل بهتر دی.

**دفرضواوسنتو په مينځ کښې په اذکارو سره فاصله راوستل:-** احنافو هم دَدې قسم رواياتونه استدلال کولوسره دَ سنتو زر کولو ويناکړې ده . خودې سره عوام الناس دومره تادئی سره کول شروع کړه چه سلام ګرځولوسره اودريږی حالانکه دا ناجائز اومنع دی. دَ حضورپاك ﷺ په وړاندې حضرت عمر رضي الله عنه يوکس کينولو اووئی فرمائيل دادَ اهل کتابو طريقه ده لهذا مسلمانانوله پکاردی چه دَ فرائضونه پس ضروری اذکار لوستلوسره لږشان تاخيرسره سنت اداکړی.

**[۱۱۸٦] د فرضواو نفلو کښې فاصله ساتل**

۱۱۸٦-(¹)[۲۸]١ وَعَنْ عُمَرَ بْنِ عَطَاءٍ، قَالَ:۲ إِنَّ نَافِعَ بْنَ جُبَيْرٍ أَرْسَلَهُ إِلَى السَّائِبِ۳ يَسْأَلُهُ عَنْ شَيْءٍ رَآهُ مِنْهُ مُعَاوِيَةُ فِي الصَّلَاةِ،۴ فَقَالَ: نَعَمْ، صَلَّيْتُ مَعَهُ الْجُمُعَةَ فِي الْمَقْصُورَةِ،۵ فَلَمَّا سَلَّمَ الْإِمَامُ قُمْتُ فِي مَقَامِي، فَصَلَّيْتُ،٦ فَلَمَّا دَخَلَ أَرْسَلَ إِلَيَّ، فَقَالَ: لَا تَعُدْ لِمَا فَعَلْتَ،۷ إِذَا صَلَّيْتَ الْجُمُعَةَ فَلَا تَصِلْهَا بِصَلَاةٍ حَتَّى تَكَلَّمَ أَوْ تَخْرُجَ،۸ «فَإِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَنَا بِذَلِكَ أَنْ لَا نُوصِلَ بِصَلَاةٍ۹ حَتَّى نَتَكَلَّمَ أَوْ نَخْرُجَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**١ د عمرو ابن عطاء (تابعي) رحمه الله په باره کې منقول دي۲ چې هغه (يعني عمرو) لره نافع ابن جبير (تابعي) رحمه الله حضرت سائب (صحابي) رضي الله عنه ته وليږلو۳ چې د هغه څخه هغه څيزو وپوښتي چې امير معاويه رضي الله عنه هغه په لمانځه کې کولو باندې ليدلې وو او د هغه څخه يې هغه منع کړې وو نو عمرو رحمه الله حضرت سائب رضي الله عنه ته ورغي د هغه څخه يې

¹) اخرجه مسلم فی کتاب الجمعة/ باب الصلاة بعد الجمعة (رقم) ۷۳ - (۸۸۳) وابوداود فی کتاب الصلاة،باب الصلاة بعد الجمعة (رقم-۱۱۲۹)

د هغه ځيز تفصيل معلوم کړو ۴ نو هغه ورته وفرمايل هو (يو ځل) ما د امير معاويه رضي الله عنه سره په مقصوره کې د جمعې مونځ وکړو ۵ امام چې سلام وګرځولو نو زه په هغه ځاي (چېرته چې د جمعې فرض مونځ مې کړي وو) ودريدم او (د فرض او سنت هيڅ تميز کولو څخه بغير د جمعې سنت) مونځ مې کولو ۶ کوم وخت چې معاويه رضي الله عنه (د لمانځه د فارغيدو څخه وروسته) خپل مکان ته لاړو نو په ما پسې يې يو سړي راوليږلو چې هغه وخت تا څه کړي دي بيا داسې مه کوه (يعني په کوم ځاي کې چې دي فرض مونځ وکړي په هغه ځاي کې د امتياز پيدا کولو څخه بغير نفل مونځ مه کوه) ۷ هر کله چې ته د جمعې مونځ وکړي نو هغه د جمعې (فرض لمونځ) د يو (بل نفل يا قضاء لمانځه) سره مه يو ځاي کوه تر څو پورې چې ته څه خبرې ونه کړې يا (د مسجد څخه) بهر ونه وځې ۸ ځکه چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم مونږ ته د دې خبرې حکم راکړي دي چې مونږ دې يو مونځ د بل لمانځه سره نه يو ځاي کوو ۹ تر څو پورې چې (په مينځ کې) خبرې ونه کړو يا د مسجد څخه بهر لاړ نه شو. (مسلم)

**حل اللغات:** ① اَلْمَقْصُوْرَةُ: مَوْضِعٌ مُعَيَّنٌ فِي الْجَامِعِ مَقْصُوْرٌ لِلسَّلَاطِيْنِ: په جامع مسجد کښې د بادشاهانو حاکمانو دپاره د مونځ مخصوص ځاي ته وائي. ② لَاتَعُدْ: دَ باب نصر ينصر نه، د عود نه دې واپس راګرځيدو ته وائي أيْ: لَاتَفْعَلْهُ مِثْلَ مَافَعَلْتَهُ ثَانِيًا: يعنى بيا داسې کار مه کوه.

**تسهيلات:-**

**قوله: صَلَّيْتُ مَعَهُ الْجُمُعَةَ فِي الْمَقْصُوْرَةِ:**

**د حديث پس منظر:-** حضرت علي او حضرت عثمان رضي الله عنهما چه کله شهيدان کړې شو او په حضرت معاويه رضي الله عنه باندې دَ قاتلانه حملې خطره زياته شوه نو حضرت معاويه رضي الله عنه په جمات کښې دَ مونځ کولوپه دوران کښې لږ شان احتياط کولو دَهغوى نه پس خلفاء هم احتياط شروع کړو دَدې احتياط صورت به دا وو چه دَ خليفه دَپاره به په جمات کښې يو مخصوص ځائى متعين کولې شوپه کوم کښې چه به عام خلق نه شو راتلې. دَدغه مخصوص ځائى نوم به مقصوره وو لکه چه نن صبا په حرمين شريفين کښې دَ اذان خانه ځائى دې.

**قوله: إِذَاصَلَّيْتَ الْجُمُعَةَ**

**په فرضواوسنتو کښې فاصله ساتل:-** دلته دَ جمعه قيد اتفاقى دې داحکم صرف دَجمعه پورې خاص نه دې بلکه دَهرهغه مونځ دَپاره خاص دې دَ کوم نه پس چه سنت وى. دَ دې حديث نه معلومه شوه چه دَ فرض مونځ او سنت په مينځ کښې مناسب فاصله کول دى بالکل اتصال مناسب نه دې خو چه په انفصال کښې اعتدال وى بالکل متصل هم نه وى بيا دا حکم دَ سنن مؤکده او غيرمؤکده ټولودَپاره دې.

**د فاصلې مختلف صورتونه:-**

① اذکار اوادعيه هم دى ② ځائى بدلول هم دى ③ کورته تلل هم دى

④ خبري کول هم دی ⑤ په صفت کښې وړاندې روستو کیدل هم دی
دې تولو صورتونو ته اشاره "حتی تکلم او تخرج" سره کړې شوې ده.
**وبعض علمائو قول:** - دَ بعض علماؤ وینا ده چه اذکار او ادعیه سره فاصله نه راځی بلکه کلام کول پکاردی یاځائی بدلول پکاردی.

**[۱۱۸۷] د جمعې په سنتو کښې د حضرت ابن عمر معمول**

۱۱۸۷-(۱) [۲۹] ١ وَعَنْ عَطَاءٍ، قَالَ: «كَانَ ابْنُ عُمَرَ إِذَا صَلَّى الْجُمُعَةَ بِمَكَّةَ تَقَدَّمَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ، ٢ ثُمَّ يَتَقَدَّمُ فَيُصَلِّي أَرْبَعًا. ٣ وَإِذَا كَانَ بِالْمَدِينَةِ صَلَّى الْجُمُعَةَ، ٤ ثُمَّ رَجَعَ إِلَى بَيْتِهِ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ، ٥ وَلَمْ يُصَلِّ فِي الْمَسْجِدِ، فَقِيلَ لَهُ، ٦ فَقَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُهُ» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. ٧ وفی روایة الترمذی قال رایت ابن عمر صلی بعد الجمعة رکعتین ثم صلی بعد ذلك اربعاً.

**ترجمه:** ١ عطاء فرمایي چې ابن عمر رضی الله عنه چې به په مکه کې د جمعې مونځ وکړو نو کوم ځای چې به یې فرض مونځ کړي وو د هغه ځای څخه به مخکې کیدو او دوه رکعاته به یې کول ٢ د هغې څخه وروسته به بیا وړاندې کیدو او څلور رکعاته به یې کول ٣ او کله چې به په مدینه کې وو نو (دا یې معمول وو چې) د جمعې فرض مونځ به یې اوکړو ٤ نو خپل مکان ته به یې تشریف راوړو او په کور کې به یې دوه رکعاته مونځ کولو ٥ په مسجد کې (به یې د فرضو څخه علاوه بل مونځ) نه کولو د هغه څخه (چې په کور کې د کولو او په مسجد کې د نه کولو) د سبب پوښتنه وشوه ٦ نو وې فرمایل (څکه چې) نبي کریم ﷺ به داسې کول، ابوداؤد، ٧ او د ترمذي د روایت الفاظ دا دي چې حضرت عطاء اوویل ما حضرت ابن عمر رضی الله عنه لیدلي دي چې هغه به د جمعې څخه وروسته دوه رکعاته کولو نه پس به یې څلور رکعاته کول.

**تسهیلات:** -

**قوله:** فَيُصَلِّي أَرْبَعًا:

**د جمعې د فرضو څخه روسته په سنتو کښې د ابن عمر رضی الله عنهما عمل:** - یعنی حضرت ابن عمر رضی الله عنه چه به کله په مدینه منوره کښې دَ جمعې مونځ کولو نودَ هغې نه پس به کورته تلو او صرف دوه رکعته سنت به ئې کول. لیکن چه کله به په مکه کښې وو نودَ جمعې دَ فرض نه پس دَ صف نه به وړاندې شو او دوه رکعته سنت به ئې کول. اوبیا به خپلې خیمې ته لاړو نو څلور رکعته به ئې نور کول. چا دَ هغوی نه تپوس اوکړو نوهغوی په جواب کښې اوفرمائیل چه دَ حضورپاك ﷺ هم دغه معمول وو.

(۱) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة/کتاب الصلاة،باب الحث علی قیام اللیل رقم الحدیث ۱۱۲۹ والترمذی فی السنن رقم الحدیث ۵۲۲

**د جمعي څخه روسته په شپږو سنتو کښې دامام ابويوسف د قول تائيد:-** علماو دَ حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہما دَ دې عمل باره کښې ليکلی دی چونکه په مدينه منوره کښې دَهغوی کور جمات سره نيزدې وو نوهغوی به کور ته تلل او سنت به ئی کول او په مکه کښې به هغوی مسافر وو نو هم په جمات کښې به ئی نفل کول او چونکه په مکه مکرمه کښې دَ عبادت ډير زيات فضيلت دې په دې وجه به ئی دوو سره څلور نور ملاوول. دې سره دَ جمعې دَ مونځ نه پس شپږ رکعته ثابتيږی اوهم دا دَ امام ابو يوسف رحمہ اللہ مسلك دې اوهم په دې باندې دَ احنافو فتویٰ ده.

# [۳۱/۴۷]بَابُ صَلَاةِ اللَّيْلِ

## د شپې د مونځ يعنی د تهجد و بيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه ثلاثة وعشرون حديثاً مشتملة على احد عشر مسئلة:**

① عدد ركعات صلوة الليل: ۱، ۴، ۵، ۸، ۹، ۱۰۔
② الإضطجاع بعد ركعتى الفجر: ۱، ۲، ۳، ۱۹۔
③ عدد ركعات الوتر: ۱، ۹، ۱۰۔
④ الإبتداء بركعتين خفيفتين في صلاة الليل: ۶، ۷۔
⑤ الذكر بعد الاستيقاظ من النوم: ۸، ۹، ۲۲۔
⑥ حكم الصلوة جالسا: ۱۱۔
⑦ مقدار القراءة فى صلوة الليل: ۱۲، ۱۳، ۱۸۔
⑧ التاكيد على قيام الليل: ۱۴۔
⑨ كيفية القراءة فى صلوة الليل: ۱۵، ۱۶، ۱۷۔
⑩ وقت قيام النبي ﷺ من الليل: ۹، ۲۰، ۲۲، ۲۳۔
⑪ أحوال النبي ﷺ فى صلوة الليل: ۹، ۲۱، ۲۲، ۲۳۔

**د نبی کريم په صلاة الليل کښې مختلف معمولات:-**

① کله حضورپاك ﷺ زيات رکعتونه کړی دی
② کله ئی په کمورکعتونوباندې اکتفاء کړې ده.
③ کله حضورپاك ﷺ ډير اوږد مونځ کړې دې
④ کله ئی مختصر کړې دې

لهذا په دې کښې وسعت دې کوم سړی چه کومه يوه طريقه خپله کړه دَ نبی کريم ﷺ متابعت او ثواب به ورته ملاويږی.

**د ركعاتونو په تعداد كښې مختلف روايات:-**

① حضورپاك ﷺ نهه ركعته كړې دي په دې كښې درې وتر دوه تحيه او څلور تهجد وو.
② حضورپاك ﷺ يوولس ركعته كړې دي په دې كښې درې وتر او اته ركعته تهجد وو. اوكه چرې دوه تحية الوضوء اومنلې شي نوشپږ ركعته به تهجد شي
③ حضورپاك ﷺ ديارلس ركعته كړې دي په دې كښې دوه ركعته صلوة تحيه وو. درې وتروو. او اته تهجد دي
اودا ديارلس ركعته د ټولوڅخه زيات تعداد دې.

**د ركعتونوپه تعداد كښې د كمي زياتي وجوهات:-**

① دَ ضعف اوقوت دَ وجې نه هم شوې دي.
② دَ شپو دَ اوږديدو ياكميدودَ وجې نه كيدې شي
③ دَ ستومانتيااو آرام دَ وجې هم كيدې شي

**د صلاة الليل اطلاقات:-**

① په اصل كښې د تهجد دپاره دا لفظ استعماليږي
② په وترو باندې هم د صلاة الليل اطلاق كيږي.
③ دَ سحر په دوو سنتو باندې هم دَ صلاة الليل اطلاق شوې دې

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۱۱۸۸] د ماسخوتن اوسحر په مينځ كښې يوولس ركعته كول**

۱۱۸۸-()[۱] ① عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ② «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِيمَا بَيْنَ أَنْ يَفْرُغَ مِنْ صَلَاةِ الْعِشَاءِ إِلَى الْفَجْرِ إِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً، ③ يُسَلِّمُ مِنْ كُلِّ رَكْعَتَيْنِ، وَيُوتِرُ بِوَاحِدَةٍ، ④ فَيَسْجُدُ السَّجْدَةَ مِنْ ذٰلِكَ قَدْرَ مَا يَقْرَأُ أَحَدُكُمْ خَمْسِينَ آيَةً ⑤ قَبْلَ أَنْ يَرْفَعَ رَأْسَهُ.

**ترجمه:** ① ام المؤمنين بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي ② چې حضور ﷺ به د ماسخوتن د لمانځه د فارغيدو سره د سحر تر لمانځه پورې (اكثر) يوولس ركعاته مونځ كولو ③ او د هر دوه ركعاته وروسته به يې سلام ګرځولو بيا (په آخر كې) د يو ركعت سره به يې وتر كول ④ او په دې ركعت كې به يې دومره اوږده سجده كوله په څومره وخت كې چې يو سړې پنځوس آياتونه وايي ⑤ د سر پورته كولو څخه مخكې.

① فَإِذَا سَكَتَ الْمُؤَذِّنُ مِنْ صَلَاةِ الْفَجْرِ، ② وَتَبَيَّنَ لَهُ الْفَجْرُ، ③ قَامَ فَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ، ④ ثُمَّ اضْطَجَعَ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ ⑤ حَتَّى يَأْتِيَهُ الْمُؤَذِّنُ لِلْإِقَامَةِ، فَيَخْرُجُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[۱] اخرجه البخاري في كتاب الاذان/ باب ما جاء في الوتر (رقم-۹۹۴) و كتاب الأذان/باب من انتظر الإقامة(رقم-۶۲۶) ومسلم في كتاب صلاة المسافرين وقصرها/ باب صلاة الليل، وعدد ركعات النبي صلى الله عليه وسلم في الليل، وأن الوتر ركعة، وأن الركعة صلاة صحيحة(رقم-۱۲۲ - (۷۳۶)

**ترجمه:**① بيا چې مؤذن به د سحر آذان كولو سره چپ شو② او فجر به طلوع شو [يعنى د سحر رڼا به خوره شوه] ③ نو حضور ﷺ به اودريدلو او د سحر دوه مختصر ركعاته (يعني د فجر سنتونه) به يې وكړل④ (او د هغه څخه وروسته به د لږ ساعت د پاره) په خپل ښي اړخ به يې څنګ (ډډه) واچولو⑤ تر دې چې مؤذن به د تكبير (يعني د تكبيروېلو اجازت حاصلولو د پاره) حضور ﷺ ته راغي نو حضور ﷺ به (مسجد ته) تشريف يوړو، (بخاري،مسلم)

**تسهيلات:-**

**قوله:** وَيُوتِرُ بِوَاحِدَةٍ:

**د احنافو په نيزد يوتر بواحدة مفهوم:**-ايتار دَ طاق جوړولو په معنى كښې دې يعنى جفت شفعه به حضورپاك ﷺ يو ركعت سره طاق جوړولو.دَوترو په ركعتونو كښې اختلاف مخكښې راتلونكې دې. دلته يوركعت وترمراد نه دى بلكه دَ طاق جوړولو په معنى كښې دې.

**قوله:** فَيَسْجُدُ السَّجْدَةَ:

**د سجدو د اوږدوالى په مصداق كښې دوه احتمالات:-**

① يعنى په وتروكښې چه به كله حضورپاك ﷺ سجدې له تلو نودَ دومره وخته پورې به ئې سجده كوله لكه څومره ساعت چه يو سړې په پنځوسو آياتونو ونيلو كښې لګوى. دَ ظاهرى حديث نه هم دغه معلوميږى چه حضورپاك ﷺ به دَ تهجدو په ركعتونو كښې ټولې سجدې هم دغه شان اوږدې كولې.

② دلته دا احتمال هم دې چه دَ سجدو دا اوږدوالې صرف وتر سره خاص وى.

**قوله:** ثُمَّ اضْطَجَعَ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ:

**د اضطجاع معنى اوپس منظر:**-اضطجاع په اړخ باندې سملاستو ته وائى يعنى حضورپاك ﷺ به دَ عائشې بى بى ﵂ په كمره كښې ټوله شپه تهجد كول نو دَ سحر په وخت كښې به ئې مختصر شان دوه ركعته دَ سحر سنت كولونه پس دَ آرام ستوماتيا لرې كولو اوملا نيغولو دَپاره په اړخ باندې سملاستو.

**د اضطجاع په حكم كښې اقوال:-**

① حضرت عبدالله بن عمر ﵄ دې اضطجاع ته بدعت وئيلې دې اوداسې كونكى به ئې په قوت كانړو باندې ويشتلوسره منع كول. (مصنف عبدالرزاق)

حضرت ابن عمر ﵄ دا اضطجاع بدعت ګرځولې ده چه مثلاً يو سړى ټوله شپه دَ تهجدو مونځ هم نه وى كړې ستوماتيا هم نشته بيا دَ سحر سنت هم په كوركښې اونه كړى جمات ته راشى ونى كړى او په كوركښې دَ استراحت په ځائى جمات كښې راتلو سره استراحت كوى نودا په جمات كښې صرف نوم بلا تعب دې حالانكه په دې كښې دا سړې دَ ثواب نيت

هم کوی نو دَدې په بدعت کیدو کښې څه شك دې.

④ غیرمقلدینو حضراتو دې اضطجاع ته سنت وئیلی دی بلکه بعضو واجب وئیلی دی.
غیرمقلدین حضرات په جمات کښې دَ سحر سنت کولو نه پس سملی اودَ حضرت ابوهریره رضي الله عنه دَ حدیث نمبر (۳۰۶) نه استدلال کوی. په کوم کښې چه دَ امر صیغه ده حالانکه علامه ابن تیمیه رحمه الله دا روایت باطل گرځولې دې. (کمافی زادالمعاد ۸۲/۱)

③ بعضې علماؤ دې اضطجاع ته مباح وئیلی دی

④ دا اضطجاع دَ هغه سړی دَپاره ده چه ټوله شپه تهجد کولوسره ستړې شوې وی که هغه چرته دَ آرام دَپاره داسې کوی نو جائز دی.

⑤ صحیح او راجح خبره دا ده چه اضطجاع دَ هغه سړی دَپاره مباح ده چا چه دَ شپې په زیاته حصه کښې دَتهجدو مونځ کړې وی ستړې ستومانه وی او په کور کښې سملی آرام حاصلوی نو دا مباح او جائز دی اوکه چرې دَ حضواکرم دَ متابعت اراده ئې کړې وی نوبیا به ثواب هم ملاویږی.

⑥ دَ احنافو نه حضرت شیخ عبدالحق رحمه الله دې استراحت ته مستحب وئیلې دې لیکن دَ پورتنو شرائطو په رڼا کښې وئیلی دی. [اشعة المعات: ۵۴۳/۱]

[۱۱۸۹] د سحر د فرضو او سنتو په مینځ کښې د خبرو کول

۱۱۸۹-(۱)[۳] ① وَعَنْهَا، قَالَتْ: «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ ② فَإِنْ كُنْتُ مُسْتَيْقِظَةً حَدَّثَنِي، ③ وَإِلَّا اضْطَجَعَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① بي بي عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمایي چې حضور صلی الله علیه وسلم چې به د سحر سنت وکړل نو ② که زه به ویښه ووم نو زما سره به په خبرو اترو کې مشغول شو ③ او که زه به اوده ووم نو حضور صلی الله علیه وسلم به هم پریوتلو (یعني ددې به اولگولو). (مسلم)

**حل اللغات:** - ① مُسْتَيْقِظَةً: ویښه، بیداره.

**تسهیلات:** -

**قوله:** وَإِلَّا اضْطَجَعَ:

یعنی که چرته عائشه صدیقه رضي الله عنها به اوده وه نو حضورپاك صلی الله علیه وسلم به په خپله دَ آرام دَ پاره ارخ لګولو او که چرې عائشه رضي الله عنها به ویښه وه نو حضورپاك صلی الله علیه وسلم به دَ ارخ لګولو په ځائی هغې سره خبرې کولې.

**د سحر سنتو څخه روسته د خبرو د جواز دوه شرطونه:** - دَدې حدیث څخه دا خبره معلومه

---

[1] اخرجه مسلم فی کتاب صلاة المسافرین وقصرها/ باب صلاة اللیل، وعدد رکعات النبی صلی الله علیه وسلم فی اللیل، وأن الوتر رکعة، وأن الرکعة صلاة صحیحة(رقم) ۱۳۳ - (۷۴۳) وابوداود کتاب الصلاة،باب الاضطجاع بعدها (رقم-۱۲۶۳)

شوه چه دَ سحر دَ سنتونه پس خبرې کول جائزدي مګر دَدې دَپاره دوه شرطونه دي
① چه صرف دنياوي خبرې نه وي ځکه چه صرف په دنياوي خبروسره دَ سنتو ثواب ختميږي
② چه دَ خبرې کولو ضرورت وي يعنې کـه څـه دنيـاوي جائزخبره وي دَ کوموضرورت وي نوهغه جائزدي بغير ضرورته دنياوي خبرې کولوسره دَ سنت ثواب ختميږي

**[۱۱۹۰] دسحر د سنتو څخه وروسته استراحت**

۱۱۹۰-(۱)[۳] ① وَعَنْهَا، قَالَتْ: «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ ② اضْطَجَعَ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي چې رسول الله ﷺ به چـه کلـه د سحر دوه رکعاته سنت مونځ وکړو ② نو په خپل ښي اړخ (يعني مخ په قبله به ) پريوتلو. (بخاري)

**تسهيلات:-**

**قوله:** اضْطَجَعَ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ:

**په ښي اړخ ملاسته کيښې حکمت:**-په ښـي اړخ ملاسـته کـښې حکمت دادې چې زړه ګس اړخ ته وي. که په ښې اړخ څملي د غفلت په خوب به اودهٔ شي.او په دې کـښې دسـحر دمونځ د قضا کيدو ويره ده.او په ښې اړخ ملاسته کښې قلب معلق وي.او ددې په وجـه بـه د غفلت خوب نه ورځي.او فرضو دپاره بيداريدل به آسان شي .امت دپاره داشان ملاسته سنت ده.

**دوو خبرو د قياس عدم صحت:-**

① پاتې شوه دا خبره چې نبی کريم ﷺ به خبرې کولې نو د نبی کريم ﷺ خبرې زمونږ د خبرو په شان نه وې.بلکه ددين خبرې به وې.خپلې خبرې دنبی کريم ﷺ په خبرو باندې قياس کول نه دي پکار.

② دغه شان د نبی کريم ﷺ دده وهل(اضطجاع) ناقض للوضوء نه وه ،بل چا دپاره په دې باندې عمل کول جائز نه دي.

**[۱۱۹۱] دشپې ديارلس رکعته تهجد**

۱۱۹۱-(۲)[۴] ① وَعَنْهَا، قَالَتْ: «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً، ② مِنْهَا الْوَتْرُ، وَرَكْعَتَا الْفَجْرِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي چې رسول الله ﷺ د شپې د يـارلس رکعاتـه کول ② په هغې کې به (د وتر درې رکعاته) او د سحر دوه رکعاته (سنت) هم شامل وو. (مسلم)

[۱] اخرجه البخاري في كتاب الجمعة/ باب الضجعة على الشق الأيمن بعد ركعتي الفجر(رقم) ۱۱۶۰ والنسائي في كتاب قيام الليل وتطوع النهار/باب الاضطجاع بعد ركعتي الفجر على الشق الأيمن (رقم-۱۷۶۲)

[۲] اخرجه البخاري في كتاب الجمعة/ باب: كيف كان صلاة النبي صلى الله عليه وسلم؟ وكم كان النبي صلى الله عليه وسلم يصلي من الليل؟(رقم-۱۱٤۰) ومسلم في صحيحه رقم الحديث ۱۲۷/ ۷۳۸

**تسهيلات: - قوله: يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً مِنْهَا الْوَتْرُ:**

**د دیارلسو رکعتونو وضاحت: -** دلته دَ دیارلسو رکعتونو ذکر دي په کوم کښې چه دوه دَ سحر سنت دی او دري وتر دی وتر وسره دلته دَ دريو لفظ موجودنه دي مګر نورو روایاتو کښې دَ ثلاث لفظ موجود دي. دَ مسلم شریف په روایت کښې دی "ثم اوتر بثلاث" شمائل ترمذی کښې دی "ثم يصلي ثلاثاً" لهذا دا حدیث دَ دريو رکعتو وترو دَ ثبوت دپاره کافی دي. هسې هم دَ ټولو علماؤ په نيزدرې وتر افضل دی.

دلته اته رکعته تهجد دی دوه دَ سحر سنت دی او دري رکعته وتر دی نوټول يوولس رکعته شو.

**[۱۱۹۲] دشپې دتهجدو د رکعتونو په تعداد کښې مختلف روايات**

۱۲-()[۵][۱]وَعَنْ مَسْرُوقٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲]«سَأَلْتُ عَائِشَةَ عَنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّيْلِ، [۳]فَقَالَتْ: سَبْعٌ، وَتِسْعٌ، وَإِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً، [۴]سِوَى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] مسروق رحمه الله وايي[۲] چې ما د ام المؤمنین بي بي عائشي صديقي رضي الله عنها څخه د حضور ﷺ د شپې د لمانځه په باره کې پوښتنه وکړه (چې څومره رکعاته به يې کول؟) [۳] وي فرمايل کله خو به يې اوه رکعاته کول کله نهه او کله به يې يوولس کول[۴] علاوه د سحر د سنتو څخه. (بخاري)

**تسهيلات: -**

**قوله: سَبْعٌ، وَتِسْعٌ، وَإِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً:**

**د نبی کریم ﷺ دتهجدو د رکعتونو تعداد: -**

① رسول کريم ﷺ به کله دشپې اووهٔ رکعته کول ،څلور رکعته د تهجدو او دري رکعته د وترو.

② کله کله به ئې نهه رکعته کول،شپږ رکعته د تهجدواو دري د وترو.

③ کله به ئې يوولس رکعته کول ،او اکثر د يوولسو رکعتو وو،اته تهجد او دري وتر.

**په رواياتو کښې دري تطبيقات: -**

①که نبی کريم ﷺ به په سفر کښې وو نو د څلور رکعته تهجد به ئې کول اويا به ئې شپږ رکعته تهجد کول.او کله چې بهٔ نبی کريم ﷺ مقيم وو نو اته رکعته تهجد بهٔ ئې کول.

② چې کوم ځائې کښې به ئې په مونځ کښې تلاوت زيات کولو نو رکعتونو به ئې کم کول او که تلاوت به ئې کم کولو نو رکعتونه به ئې زيات کړل.

③ که طبيعت مبارك به ئې صحيح وو نو زيات رکعتونه به ئې کول او که طبيعت کښې به ئې کمزوري وه نو کم رکعتونه به ئې کول.

[۱]) اخرجه البخاري في كتاب الجمعة/ باب: كيف كان صلاة النبي صلى الله عليه وسلم؟ وكم كان النبي صلى الله عليه وسلم يصلي من الليل؟(رقم-۱۱۳۹)

**[۱۱۹۳] د تهجدو د ابتدائي دوو رکعتو کیفیت**

۱۱۹۳-( )[۶] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ لِيُصَلِّيَ [۳] افْتَتَحَ صَلَاتَهُ بِرَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ»، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ چې به د شپې د تهجد دلمانځه دپاره پاځیدلو [۳] نو دخپل لمانځه ابتداء به يې په مختصر دوه رکعاتـه سره کوله (مسلم)

**حل اللغات:** - ① اَفْتَتَحَ: شروع به ئې کوله، ② خَفِيفَتَيْنِ: دوه رکعته مختصر

**تسهیلات:** - **قوله:** اَفْتَتَحَ صَلَاتَهُ بِرَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ:

**دتهجدو څخه وړاندې دوه مختصر رکعتونه کول:** - یعنی دَ تهجدنه وړاندې حضورپاك ﷺ به دوه مختصر رکعتونه کول. په دې کښې دافائده وی چه سړی دَ خوب دَ اثراتونه پاك شی او چست کیدوسره تهجدکوی. دویمه فائده داده چه دَتحیة الوضوء اوتحیة المسجدحق اداکیږی.

**[۱۱۹۴] د تهجدو اولني دوو رکعتونو کښې اختصار**

۱۱۹۴-( )[۷] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "إِذَا قَامَ أَحَدُكُمْ مِنَ اللَّيْلِ [۳] فَلْيَفْتَتِحِ الصَّلَاةَ بِرَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] هر کله چې په تاسو کې یو سړي په شپه کې (د لمانځه د پاره د خوب څخه) پاځی [۳] نو هغه تـه پکار دي چې د خپل لمانځه ابتدا په دوو مختصرو رکعاتو سره وکړي. (مسلم)

**تسهیلات:** - **نوټ:** - د دې حدیث شرح په حدیث نمبر ۱۱۹۳ کښې تیره شوه.

**[۱۱۹۵] دتهجدو دپاره پاسیدو په وخت کښې د ال عمران آخری رکوع لوستل**

۱۱۹۵-( )[۸] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [۲] «بِتُّ عِنْدَ خَالَتِي مَيْمُونَةَ لَيْلَةً، وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَهَا، [۳] فَتَحَدَّثَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ أَهْلِهِ سَاعَةً، ثُمَّ رَقَدَ، [۴] فَلَمَّا كَانَ ثُلُثُ اللَّيْلِ الْآخِرُ أَوْ بَعْضُهُ قَعَدَ، [۵] فَنَظَرَ إِلَى السَّمَاءِ، فَقَرَأَ: ﴿إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَآيَاتٍ لِأُولِي الْأَلْبَابِ﴾ [آل عمران: ۱۹۰] حَتَّى خَتَمَ السُّورَةَ،

---

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب صلاة المسافرین وقصرها/ باب الدعاء فی صلاة اللیل وقیامه (رقم) ۱۹۷ - (۷۶۷)

[۲] اخرجه مسلم فی کتاب صلاة المسافرین وقصرها/ باب الدعاء فی صلاة اللیل وقیامه (رقم) ۱۹۸ - (۷۶۸)

[۳] اخرجه البخاری فی کتاب الدعوات/ باب الدعاء إذا انتبه باللیل (رقم-۶۳۱۶) و مسلم فی کتاب صلاة المسافرین وقصرها/ باب الدعاء فی صلاة اللیل وقیامه (رقم) ۱۸۱ - (۷۶۳) والترمذی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب منه (رقم-۳۴۱۹) والنسائی کتاب التطبیق /باب الدعاء فی السجود (رقم-۱۱۲۱)

**ترجمه:** ١ ابن عباس رضي الله عنه فرمايي ٢ چې يو ځل ما خپلې خالـه (د مور خور، ترور) ام المؤمنين بي بي ميمونه رضي الله عنها کره شپه تيره کړه حضور ﷺ (هم په هغه شپه) د هغې سره وو (يعني په هغه شپه د بي بي ميموني رضي الله عنها نمبر وو)٣ د شپې تر څه وخته پورې حضور ﷺ د خپلې بي بي ميموني رضي الله عنها سره خبرې کولې بيا اوده شو ٤ هر کله چې دريمه حصه يا د دې څخه هم کمه شپه باقي پاتې شوه نو حضور ﷺ راپاڅيدو ٥ او د آسمان طرف ته کتلو سره دا آيت يې اوويلو إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَآيَاتٍ لِأُولِي الْأَلْبَابِ (د آسمانونو او زمکې په پيدا کولو او د شپې او ورځې په اختلاف (يعني کله تياره، کله رڼا، کله ګرمي، کله يخني، کله درازي، کله کمي) کې بيشکه د عقلمندو د پاره نښانې دي) حضور ﷺ ټول سورت اوويلو

**حل اللغات:**- ① بِتُّ: أَيْ: رَقَدْتُ: د بيتوتت نه دې شپې تيرولو ته وائي. ② رَقَدَ: أَيْ: نَامَ: څملاسته اوده شو.

١ ثُمَّ قَامَ إِلَى الْقِرْبَةِ فَأَطْلَقَ شِنَاقَهَا، ٢ ثُمَّ صَبَّ فِي الْجَفْنَةِ، ٣ ثُمَّ تَوَضَّأَ وُضُوءًا حَسَنًا بَيْنَ الْوُضُوءَيْنِ، ٤ لَمْ يُكْثِرْ وَقَدْ أَبْلَغَ، فَقَامَ فَصَلَّى، ٥ فَقُمْتُ وَتَوَضَّأْتُ، فَقُمْتُ عَنْ يَسَارِهِ، ٦ فَأَخَذَ بِأُذُنِي فَأَدَارَنِي عَنْ يَمِينِهِ، ٧ فَتَتَامَّتْ صَلَاتُهُ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً، ٨ ثُمَّ اضْطَجَعَ فَنَامَ حَتَّى نَفَخَ، ١٠ وَكَانَ إِذَا نَامَ نَفَخَ، فَآذَنَهُ بِلَالٌ بِالصَّلَاةِ،

**ترجمه:** ١ بيا پاڅيدو او مَشک لره ورغلې د هغې خله يې خلاصه کړه ٢ او په پياله کې يې اوبه واچولې ٣ بيا يې ښه درميانه اودس وکړو [يعني نه خو يې دومره زياتې اوبه وبهيولې چې د اسراف حد ته ورسيږي او نه يې دومره کمې چې اعضاء هم لامده نه شي بلکه د درميانه درجې ښه اودس يې وکړو د حديث راوي وايي د درميانه اودس مطلب دا دی] ٤ چې ډيرې زياتې اوبه يې ونه بهيولې [بلکه د کوم اعضاء وينځل چې فرض دي] اوبه يې هغه اعضاء ته ورسولې بيا حضور ﷺ ودريدلو مونځ يې شروع کړو ٥ (دې ليدو سره) زه هم پاڅيدم او څنګه چې حضور ﷺ اودس کړي وو ما هم هغسې اودس وکړو او د حضور ﷺ ګس طرف ته ودريدم ٦ حضور ﷺ زما غوږ نيولو سره د ګس طرف څخه زه راتاؤ کړم او خپل ښي طرف ته ودرولم ٧ کوم وخت چې د حضور ﷺ ديارلس رکعاته مونځ پوره شو ٨ نو پريوتلې (سملاستو) حضور ﷺ به د اوده کيدو په وخت خرهار کولو ١٠ څکه اوده کيدو سره يې خر هارې شروع کړو په دې کې حضرت بلال رضي الله عنه راغې او د لمانځه د وخت شروع کيدو او د جماعت تياريدو اطلاع يې ورکړله

**حل اللغات:**- ③ الْقِرْبَةِ: مشک، ④ فَأَطْلَقَ: أَيْ: حَلَّ: پرانې نستلو، ⑤ شِنَاقَهَا: خَيْطُهَا الَّذِي يُشَدُّ بِهِ فَمُهَا: هغې تار ته وائي کوم سره چه د مشک خوله ترلې شي. ⑥ صَبَّ: أَيْ: أَرَاقَ الْمَاءَ مِنْهَا: يعنې د مشک نه ئې اوبه راوارلې، ⑦ الْجَفْنَةِ: أَيْ: الْقَصْعَةِ، وَهِيَ قَدَحٌ كَبِيرٌ: کاسه يا غټه پيالې، ⑧ لَمْ يُكْثِرْ: وَهُوَ إِيْمَاءٌ إِلَى عَدَمِ الْإِفْرَاطِ: په اودس کښې ئې زياتوالې يعنې افراط اونه کړو. ⑨ قَدْ أَبْلَغَ: أَيْ: أَسْبَغَ الْمَاءَ:

اوبه ئې ښه اورسولې هر اندام ته يعني څه نقص او تفريط ئې هم پکښې اونه کړو. ⑩ فَأَدَارَنِي: أَيْ: أَمَالَنِي، وَصَرَفَنِي: راوئې ګرځولم، راتاؤ ئې کړم (دګس طرف نه ښي طرف ته). ⑪ فَتَتَامَّتْ: أَيْ: تَمَّتْ وَتَكَامَلَتْ: يعني پوره اوکامل ئې کړو. ⑫ اضْطَجَعَ: څملاستلو، ⑬ نَفَخَ: أَيْ: تَنَفَّسَ بِصَوْتٍ: ساه به ئې اخستله چه ورسره به ئې دخولې نه آواز وتلو، خرهار ئې کولو.

[۱] فَصَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ، وَكَانَ فِي دُعَائِهِ: [۲] "اللَّهُمَّ اجْعَلْ فِي قَلْبِي نُورًا [۳] وَفِي بَصَرِي نُورًا، وَفِي سَمْعِي نُورًا، [۴] وَعَنْ يَمِينِي نُورًا، وَعَنْ يَسَارِي نُورًا [۵] وَفَوْقِي نُورًا، وَتَحْتِي نُورًا، [۶] وَأَمَامِي نُورًا وخلفي نورا، وَاجْعَلْ لِي نُورًا»" - [۷] وَزَادَ بَعْضُهُمْ - " «وَفِي لِسَانِي نُورًا» " [۸] وَذَكَرَ: " «وَعَصَبِي وَلَحْمِي وَدَمِي وَشَعْرِي وَبَشَرِي» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [۹] وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا: «وَاجْعَلْ فِي نَفْسِي نُورًا [۱۰] وَأَعْظِمْ لِي نُورًا» ". [۱۱] وَفِي أُخْرَى لِمُسْلِمٍ: " «اللَّهُمَّ أَعْطِنِي نُورًا» ".

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ د اودس کولو نه بغير سنت مونځ وکړو او (د فرض او سنت په مينځ کې يې) دا دعا وکړله: [۲] اللَّهُمَّ اجْعَلْ فِيْ قَلْبِيْ نُوْرًا وَفِيْ بَصَرِيْ نُوْرًا وَفِيْ سَمْعِيْ نُوْرًا وَعَنْ يَمِيْنِيْ نُوْرًا وَعَنْ يَسَارِيْ نُوْرًا وَفَوْقِيْ نُوْرًا وَتَحْتِيْ نُوْرًا وَأَمَامِيْ نُوْرًا وَخَلْفِيْ نُوْرًا وَاجْعَلْ لِيْ نُوْرًا، (ترجمه اې الله زما په زړه کې نور پيدا کړې [۳] زما په سترګو کې او زما په غوږونو کې نور پيدا کړې [۴] زما په ښي او زما په ګس طرف کې نور پيدا کړې [۵] زما پورته او زما لاندې کې نور پيدا کړې [۶] زما مخکې او زما وروسته نور پيدا کړې او زما دپاره نور پيدا کړې. [۷] او بعضې راويانو دا الفاظ هم نقل کړي دي وَفِيْ لِسَانِيْ نُوْرًا (يعني زما په ژبه کې نورپيدا کړې) [۸] بعضو راويانو دا الفاظ ذکر کړي دي وَعَصَبِيْ وَلَحْمِيْ وَدَمِيْ وَشَعْرِيْ وَبَشَرِيْ (يعني زما په په اعصابو (پلو) کښې زما په غوښه کې زما په وينه کې زما په ويښتانو کې او زما په پوست (څرمن) کې نور پيدا کړې) بخاري مسلم، [۹] او د بخاري او د مسلم په يو بل روايت کې دا الفاظ هم دي وَاجْعَلْ فِيْ نَفْسِيْ نُوْرًا وَأَعْظِمْ لِيْ نُوْرًا (يعني اې الله زما په ځان کې نور پيدا کړې [۱۰] او زما د پاره په نور کې لويې راکړې) [۱۱] د مسلم په يو بل روايت کې دا دي اللَّهُمَّ أَعْطِنِيْ نُوْرًا (يعني اې الله ماته نور عطا کړې).

**تسهيلات:-**

**دحضرت ابن عباس ذهانت اوزكاوت:-** حضرت ميمونه رضي الله عنها دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ترور ده. دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما کمال ته اوګورئ چه نابالغ وړوکې هلك دې ليکن دَ حضور پاك حرکات اوسکنات اودَ عبادات داسې نقشه راښکلې ده چه لوئ لوئ عالمان او عاقلان ئې په حيرانتيا کښې اچولې دي. دَ اودس نقشه ئې داسې راښکله چه عقلونه ئې حيران کړل. نه په دغه اودس کښې اسراف وو نه کمې وو نه څه نقص وو او اودس مکمل هم وو چه ټولو اندامونو ته ئې اوبه اورسولې.

قوله: حَتَّى نَفَخَ:

**د نبی کریم ﷺ د خوارو کیفیت:-** طاقتور سړي چه کله اوده کيږي نو مضبوطه ساه اخلي هم دغې ته نفخه وئيلې شوې ده. حضورپاك ﷺ به داسې خريراې نه کولو لکه نن صبا چه خلق کوی په کوم سره چه په کمره کښې څوك حصاريدې نه شی. دَدې نقشې نه پس بيا حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دَ حضورپاك ﷺ دَ دعاګانو مکمل نقشه الفاظو سره وړاندې کړې ده.

**[۱۱۹۶] دوتر د رکعتونو تعداد**

۱۱۹۶ -()[۹] ① وَعَنْهُ أَنَّهُ «رَقَدَ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ② فَاسْتَيْقَظَ، فَتَسَوَّكَ، وَتَوَضَّأَ وَهُوَ يَقُولُ: ③ ﴿إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ [آل عمران: ۱۹۰] حَتَّى خَتَمَ السُّورَةَ، ④ ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ أَطَالَ فِيهِمَا الْقِيَامَ وَالرُّكُوعَ وَالسُّجُودَ ⑤ ثُمَّ انْصَرَفَ فَنَامَ حَتَّى نَفَخَ، ⑥ ثُمَّ فَعَلَ ذٰلِكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ سِتَّ رَكَعَاتٍ، ⑦ كُلَّ ذٰلِكَ يَسْتَاكُ وَيَتَوَضَّأُ وَيَقْرَأُ هٰؤُلَاءِ الْآيَاتِ، ⑧ ثُمَّ أَوْتَرَ بِثَلَاثٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① د ابن عباس رضي الله عنهما په باره کې منقول دي چې هغه يوه شپه د رسول الله ﷺ کره اوده شو ② (د هغه بيان دي چې) حضور ﷺ د شپې بيدار شو نو مسواك او اودس يې وکړو بيا يې دا آيت اووئيلو: ③ إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ تر آخر سورت پورې ④ بيا ودريدلو او دوه رکعاته مونځ يې وکړو چې د هغې قيام رکوع او سجود يې طويل وکړې ⑤ بيا (د دوه رکعاته لمانځه څخه) فارغيدو سره اوده شو او (په خوب کښې) يې خرهاري شروع کړلو ⑥ درې خله حضور ﷺ دغسې وکړل (يعني دوه رکعاته په مذکوره طريقه باندې کولو سره به پريوتلې بيا به پاڅيدلو دوه رکعاته به يې کول بيا به پريوتلې) دغسې حضور ﷺ په درې خله کې شپږ رکعاته وکړل ⑦ او په دې هر خل کې مسواك به يې هم کولې اودس به يې هم کولې او آياتونه به يې هم ويل ⑧ بيا په آخر کې حضور ﷺ د وتر درې رکعاته وکړل، مسلم.

**تسهيلات:-**

قوله: أَنَّهُ «رَقَدَ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**دتعارض اشكال:-** ددې حديث څخه معلوميږي چې اودس څخه پس ئې تلاوت اوکړو او ماقبل حديث څخه معلوميږي چې اودس څخه وړاندې ئې تلاوت اوکړو.

**دتعارض د اشكال دوه جوابونه:-**

① دا اختلاف په مختلفو واقعاتو باندې محمول دې. دې حديث مبارك کښې د رسول کريم ﷺ د اودس ذکر دې. دا د اودس دپاسه اودس وو. ځکه چې دنبی کريم ﷺ خوب اودس دپاره ناقض نه دې.

② يا ئې اودس څه دبل سبب په وجه مات شوې وو. ځکه ئې اودس اوکړو او مسواك ئې اوکړو،

[1]) اخرجه مسلم فی كتاب صلاة المسافرين وقصرها/ باب الدعاء فی صلاة الليل وقيامه (رقم) ۱۹۱ - (۷۶۳)

**قوله: ثُمَّ أَوْتَرَ بِثَلَاثٍ**

**د درې رکعته وترو واضح دليل :** - داحديث ډير واضح دليل دې چه دَ وتر درې رکعته دی. غيرمقلدين حضراتو له سوچ کول پکاردی چه هغوی دَ احاديثونه څومره لرې دی دادَمسلم روايت دې په کوم کښې چه تصريح موجود ده چه "ثم اوتر بثلاث" يعنی حضورپاك ﷺ بيا درې رکعته وتراوکړل. دَ حديث ظاهری الفاظ ښائی چه په مينځ کښې هيڅ سلام نه وو.

**[۱۱۹۷] د نبی علیه السلام د تهجد و کیفیت**

۱۱۹۷-()[۱۰][۱] وَعَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّهُ قَالَ: [۲] «لَأَرْمُقَنَّ صَلَاةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللَّيْلَةَ، [۳] فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ، ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ طَوِيلَتَيْنِ طَوِيلَتَيْنِ طَوِيلَتَيْنِ، [۴] ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ وَهُمَا دُونَ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا، [۵] ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ وَهُمَا دُونَ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا، [۶] ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ وَهُمَا دُونَ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا، [۷] ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ وَهُمَا دُونَ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا، [۸] ثُمَّ أَوْتَرَ، فَذَلِكَ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] زيد بن خالد جهني رضي الله عنه وايي [۲] چې (يو ځل ما اراده وکړه چې) نن شپه د حضور ﷺ مونځ وينم [۳] نو (ما وليدل چې) حضور ﷺ دوه مختصر رکعاته وکړل بيا دوه رکعاته يې اوږده اوږده وکړل [۴] بيا حضور ﷺ دوه رکعاته وکړل چې د هغه دوارو رکعاتونو څخه کم طويل وو کوم چې حضور ﷺ مخکې کړي وو [۵] بيا حضور ﷺ دوه رکعاته وکړل چې د مخکې کړي دوه رکعاتو څخه کم طويل وو [۶] بيا حضور ﷺ دوه رکعاته وکړل چې د مخکې دوه رکعاته څخه کم طويل وو [۷] بيا حضور ﷺ دوه رکعاته وکړل چې مخکې دوه رکعاته څخه کم وو [۸] بيا حضور ﷺ وتر وکړل او دا ټول ديارلس رکعاته شو (مسلم)

[۱] قوله ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ وَهُمَا دُونَ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا أَرْبَعَ مَرَّاتٍ، [۲] هَكَذَا فِي "صَحِيحِ مُسْلِمٍ" وَأَفْرَادِهِ مِنْ كِتَابِ "الْحُمَيْدِيِّ" [۳] وَ"مُوَطَّأِ مَالِكٍ" وَ"سُنَنِ أَبِي دَاوُدَ" وَ"جَامِعِ الْأُصُولِ".

**ترجمه:** [۱] او د زيد دا قول چې بيا دوه رکعاته يي وکړل چې د مخکې دوه رکعاته څخه کم طويل وو [۲] په صحيح مسلم کې او د حميدي په کتاب کې چې په هغې کې هغه فقط د مسلم روايتونه نقل کړي دي [۳] او موطا امام، مالك، سنن ابي داؤد او جامع الاصول په ټولو کې منقول دي.

**حل اللغات:** - ① لَأَرْمُقَنَّ: أَيْ: لَأَنْظُرَنَّ: د نصر ينصر نه انتظار او دَ نګرانۍ په معنی کښې دې چه زه به خامخا ګورم، په غور سره کتلو ته وائی. په دې معنی کښې يولفظ لَأَرْقُبَنَّ دې په حديث (۱۲۰۹) کښې راروان دې.

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب صلاة المسافرين وقصرها/ باب الدعاء فی صلاة الليل وقيامه (رقم) ۱۹۵ - (۷۶۵) وابوداود کتاب الصلاة/باب فی صلاة الليل (رقم-۱۳۶۶) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فی کم يصلی بالليل (رقم-۱۳۶۲)

**تسهیلات:- قوله: ثُمَّ أَوْتَرَ:**

**د وترو د رکعتونو په تثلیث باندې واضح دلیل:-** دا حدیث هم په دې باندې دلالت کوی چه دَ وترو درې رکعته دی ځکه چه په دې حدیث کښې دَ دوو دوو رکعتو پنځه ځل ذکر راغلې دې کوم چه دَ مشکوة په اصل نسخه کښې دې. دا لس رکعته جوړېږی اوبیا دَ وتر ذکر دې په دې کښې سره دَدې چه دَ دریو رکعتو الفاظ نشته دې لیکن په نتیجه کښې چه دَ دیارلسو رکعتو کومه مجموعه جوړېږی دَهغې نه په واضحه توګه سره ثابتېږی چه وتر درې رکعته دی اوهم دغه دَ تولو فقهاؤ په نیزافضل هم دی او په کومونسخوکښې چه دَ رکعتین ذکر شپږ ځل راغلې دې دې سره به دوولس رکعته ثابت شی او یورکعت به دَ وتر وی لیکن احناف په دې صورت کښې "رکعتین خفیفتین" په اصل شمیرکښې نه شمیری لهذا وتر به هم درې رکعته ثابتېږی.

**قوله: طَوِيلَتَيْنِ:**

**د تکرار وجه:-** په دې کښې درې ځل تکرار دَ مبالغه دَپاره دې چه دَ خفیف رکعت نه پس حضورپاک ﷺ ډیر اوږده رکعتونه اوکړل.

**[۱۱۹۸] د نبی علیه السلام په آخری عمرکښې په ناسته نفل کول**

۱۱۹۸—()[۱۱] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] «لَمَّا بَدَّنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَثَقُلَ [۳] كَانَ أَكْثَرُ صَلَاتِهِ جَالِسًا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ام المؤمنين بي بي عائشه صديقه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي[۲] چې حضور ﷺ کله چې آخري عمرته ورسيدو او (د بوډاتوب په وجه) بدن مبارك يي درونند شو [۳] نو نفل مونځ به يي اکثر په ناسته کولو. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:-** ① بَدَّنَ: دا د تَبْدِين نه دې، وَهُوَ الْكِبَرُ وَالضَّعْفُ: زيات عمر، بوډاتوب. ② ثَقُلَ: أَيْ: اشْتَدَّ مَرَضُهُ: درونند شو يعنى بيمارشو او کمزورې شو.

**تسهیلات:-**

**نوټ:-** د ترجمې څخه مطلب واضح دې. د اضافی تسهیل ضرورت نشته.

**[۱۱۹۹] په تهجدوکښې د سورتونولوستل**

۱۱۹۹—()[۱۲] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «لَقَدْ عَرَفْتُ النَّظَائِرَ الَّتِي كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب صلاة المسافرین وقصرها/ باب جواز النافلة قائما وقاعدا، وفعل بعض الرکعة قائما وبعضها قاعدا (رقم) ۱۱۷ - (۷۳۲)

[۲] اخرجه البخاری فی کتاب الاذان/ باب الجمع بین السورتین فی الرکعة (رقم-۷۷۵) ومسلم فی صحیحه رقم الحدیث ۲۷۹/ ۸۱۲ والنسائی کتاب الافتتاح/باب قراءة سورتین فی رکعة (رقم-۱۰۰۴)

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرِنُ بَيْنَهُنَّ، ۳ فَذَكَرَ عِشْرِينَ سُورَةً مِنْ أَوَّلِ الْمُفَصَّلِ، عَلَى تَأْلِيفِ ابْنِ مَسْعُودٍ ۴ سُورَتَيْنِ فِي رَكْعَةٍ آخِرُهُنَّ (حم الدُّخَانُ) وَ(عَمَّ يَتَسَاءَلُونَ)». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي۲ چې کوم سورتونه چې په خپلو کې هم مثل دي او حضور ﷺ به هغه جمع کول زه هغه پيژنم۳ عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه د خپل ترتيب مطابق شل سورتونه چې د مفصل په اول کې دي په شميرلو سره وښودل۴ حضور ﷺ به دا سورتونه داسې جمع کول چې په يو يو رکعت کې به يې دوه دوه سورتونه ويل (او په دې شل سورتونو کې) د آخر دوه سورتونه حٰم الدخان او عم يتساءلون دي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:-** ① النَّظَائِرَ: دا د نَظِيرَة جمع ده، وَهِيَ الْمِثْلُ وَالشَّبَهُ: مثل او مشابه ته وائي يعنى هغه سورتونه چه هغه ديوبل سره په اوږدوالي او اختصار کښې يو شان وى. ② يَقْرِنُ: أَيْ: يَجْمَعُ: چه جمع کول به ئې (په يو رکعت کښې).

**تسهيلات:-**

**قوله:** عَلَى تَأْلِيفِ ابْنِ مَسْعُودٍ:

**دمصحف مسعودى تعارف:-** حضرت ابن مسعود رضي الله عنه چه دَ مصحف کوم ترتيب کيخودې وو دا دَ هغې طرف ته اشاره ده کوم چه دَ مصحف عثمانى دَترتيب نه لږ شان مختلف وو مګر علماؤ ليکلى دى چه قرآن کريم هم په دې ترتيب باندې وئيل لازم دى کوم ترتيب چه حضرت عثمان رضي الله عنه قائم کړې دې.

په مصحف مسعودى کښې د سورتونوترتيب:- دَحضرت ابن مسعود رضي الله عنه په ترتيب کښې دَ شلو سورتونو ترتيب داسې وو کوم چه په ابوداؤد کښې ذکردې. حضورپاك ﷺ به په يو يو رکعت کښې دوه دوه سورتونه داسې يوځائى کولوسره لوستل. مثلاً سورت رحمٰن او سورت نجم په يو رکعت کښې، سورت قمر او سورت الحاقه په يو رکعت کښې، سورت معارج او سورت نازعات په يو رکعت کښې، سورت مطففين او سورت عبس په يو رکعت کښې، سورت نبأ او سورت مرسلات په يو رکعت کښې او سورت دخان او سورت تکوير يو رکعت کښې. په دې مذکوره حديث کښې هم دې ترتيب طرف ته اجمالى اشاره ده.

**مفتى به قول:-** خودَ علماؤ اجماعى فيصله ده چه نن صبا قرآن به په دې ترتيب سره وئيلې شى لکه څنګه چه موجود دې. په ترتيب نزولى او ترتيب مصحفى کښې فرق دې ليکن دا فرق دَ ترتيب، تقديم او تاخير فرق دې. قرآن کښې دکمى زياتى فرق نه دې. قرآن کريم دَ الله تعالى په حفاظت سره محفوظ دې. شيعه شنيعه دا محفوظ نه ګڼړى.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۱۲۰۰] د نبى عليه السلام د تهجد وکيفيت**

۱۲۰۰–(۱)[۱۳] [۱]عَنْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، [۲]«أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ، [۳]وَكَانَ يَقُولُ: "اللّٰهُ أَكْبَرُ" ثَلاثًا "ذُو الْمَلَكُوتِ وَالْجَبَرُوتِ وَالْكِبْرِيَاءِ وَالْعَظَمَةِ"، [۴]ثُمَّ اسْتَفْتَحَ فَقَرَأَ الْبَقَرَةَ. [۵] ثُمَّ رَكَعَ، فَكَانَ رُكُوعُهُ نَحْوًا مِنْ قِيَامِهِ، [۶]فَكَانَ يَقُولُ فِي رُكُوعِهِ: "سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ"، [۷]ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ، [۸] فَكَانَ قِيَامُهُ نَحْوًا مِنْ رُكُوعِهِ،

**ترجمه:** [۱] د حذيفه ﷺ په باره کې منقول دي[۲] چې هغه حضور ﷺ په شپه کې په (تهجد) لمانځه کولو ليدلي دي[۳] (د هغه بيان دی) چې حضور ﷺ دري خله الله اکبر ويلو سره دا اوويل ذُوالْمَلَكُوتِ وَالْجَبَرُوتِ وَالْكِبْرِيَاءِ وَالْعَظَمَةِ (الله تعالی ﷻ د ملك، غلبي، لويي او بزرگي مالك دي)[۴] د دې څخه وروسته حضور ﷺ سبحانك اللهم ويلو سره د سورة بقره قراءت وفرمايلو[۵] او د هغې څخه وروسته يې رکوع وکړله، د حضور ﷺ رکوع (تقريبًا) د قيام برابره وه[۶] په رکوع کښې حضور ﷺ سبحان ربي العظيم ووئيل[۷] بيا يې د رکوع څخه سر مبارك پورته کړو [۷] او د حضور ﷺ ودريدل يعنی قومه (تقريبًا) د حضور ﷺ د رکوع برابره وه.

**حل اللغات:-** ① ذُوالْمَلَكُوتِ: أَيْ: صَاحِبُ الْمُلْكِ: بادشاهت والا ② الْجَبَرُوتِ: هُوَالْعَالِي فَوْقَ خَلْقِهِ: په خپل مخلوق باندې لوئی شان والا ③ الْكِبْرِيَاءِ: مَعْنَاهُ التَّرَفُّعُ عَنْ جَمِيعِ الْخَلْقِ: په ټول مخلوق باندې ځان اوچتول ④ الْعَظَمَةِ: أَيْ نِهَايَةُ الْعَظَمَةِ: ډير لوئې شان والا، ⑤ اسْتَفْتَحَ: أَيْ: قَرَأَ الثَّنَاءَ: ثناء يعنی سبحنک اللهم سره ئې مونځ شروع کړو.

[۱]يَقُولُ: "لِرَبِّيَ الْحَمْدُ". ثُمَّ سَجَدَ، [۲] فَكَانَ سُجُودُهُ نَحْوًا مِنْ قِيَامِهِ، [۳] فَكَانَ يَقُولُ فِي سُجُودِهِ: "سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى". [۴]ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُودِ، [۵]وَكَانَ يَقْعُدُ فِيمَا بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ نَحْوًا مِنْ سُجُودِهِ، [۶]وَكَانَ يَقُولُ: "رَبِّ اغْفِرْ لِي، رَبِّ اغْفِرْ لِي". [۷] فَصَلَّى أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ قَرَأَ فِيهِنَّ (الْبَقَرَةَ) وَ(آلَ عِمْرَانَ) وَ(النِّسَاءَ) وَ(الْمَائِدَةَ) أَوِ (الْأَنْعَامَ)» شَكَّ شُعْبَةُ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او (د رکوع څخه د ودريدو سره د سمع الله لمن حمده ويلو څخه وروسته) حضور ﷺ به ويل لِرَبِّيَ الْحَمْدُ (ټول تعريف زما پروردگار لره دی) بيا يې سجده وکړه[۲] او د حضور ﷺ د سجدې مقدار د حضور ﷺ د قومې برابر وو[۳] او په سجده کې حضور ﷺ ويل سبحان ربي الاعلی [۴] بيا حضور ﷺ د سجدې څخه سر مبارك پورته کړې [۵] او حضور ﷺ د دواړو سجدو په مينځ کې (يعني په جلسه کې) د خپلې سجدې برابر کيناستو[۶] او دا به يې ويل رب اغفرلی رب اغفرلی (اې زما ربه ما وبخښې، اې زما ربه ما وبخښې)[۷] دغسې حضور ﷺ څلور رکعته وکړل او په دې څلور رکعاتونو کې يې سورة بقره، سورة آل

[1] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب ما يقول الرجل فی رکوعه وسجوده(رقم-۸۷٤)

عمران، سورة نساء او سورة مائده یا سورة انعام اوویل (د حدیث راوي) شعبه ته شك واقع شوې دي (چي په حدیث کې د آخري سورة مائده ذکر شوې وو یا د انعام).

**تسهیلات:-**

**قوله: فَكَانَ رُكُوعُهُ نَحْوًا مِنْ قِيَامِهِ:**

**د رکوع د اوږدوالی مطلب:**-درکوع د اوږدوالی مطلب دادې چي حضور ﷺ به څومره په عام مونځونو کښي اوږد قیام کولو دومره به ئې د عام رکوع اوږده رکوع کوله.دې طویل رکوع کښي مبالغه مقصود ده.

**[۱۲۰۱] په تهجدو کښي د زیات قیام فضیلت**

۱۲۰۱-( )[۱۳]① وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:② "«مَنْ قَامَ بِعَشْرِ آيَاتٍ لَمْ يُكْتَبْ مِنَ الْغَافِلِينَ،③ وَمَنْ قَامَ بِمِائَةِ آيَةٍ كُتِبَ مِنَ الْقَانِتِينَ،④ وَمَنْ قَامَ بِأَلْفِ آيَةٍ كُتِبَ مِنَ الْمُقَنْطِرِينَ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:**① عبدالله بن عمرو بن عاص رضی الله عنهما راوي دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل ② کوم سړي چي لس ایتونو ویلو سره قیام وکړي نو هغه په غافلین کې نشي شمیرلي (یعني د هغه نوم د غافلینو په صحیفه کې نه لیکل کیږي)③ او کوم سړي چي سل آیتونو ویلو سره قیام وکړي نو د هغه نوم په فرمانبردارو کي لیکل کیږی ④ او کوم سړي چي زر آیتونو ویلو سره قیام وکړي نو د هغه نوم په ډیر زیات ثواب موندونکو کي لیکل کیږی.(ابوداؤد)

**حل اللغات:**- ① الْغَافِلِينَ: جمع دغافل ده. ② الْقَانِتِينَ: أَيِ الْمُوَاظِبِينَ عَلَى الطَّاعَةِ: چه همیشه فرمانبردار او اطاعت گذار اوسیږی. ③ الْمُقَنْطِرِينَ: دا د قَنَاطِيرِ نه ماخوذ دي، اى مِنَ الْمُكْثِرِينَ مِنَ الْأَجْرِ: ډیر زیات ثواب موندونکی.

**تسهیلات:-**

**قوله: كُتِبَ مِنَ الْقَانِتِينَ:**

**د قانتین په مصداق کښې دوه اقوال:-**

① قانتین څخه مراد همیشه اطاعت اختیارونکی دی،

② دالله تعالی په اطاعت کښي طویل قیام کوونکی ترې مراد دی.

**قوله: كُتِبَ مِنَ الْمُقَنْطِرِينَ:**

**دمقنطرین تعریف:**-او چا چي زر آیتونه تلاوت کړل نو دهغه نوم به په مقنطرینو کښي لیکلې کیږی.یعنی هغه خلق کوم چي ډیر زیات عبادت کوی.مقنطرین اصل کښي د قنطار نه دي،

[1] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب تحزیب القرآن (رقم-۱۳۹۸) والدارمی فی باب: فضل من قرأ عشر آیات

**دمقنطرين په مقدار كښې پنځه اقوال:-**

① څلور زره دينار

② د غونې څرمن چې دسرو زرو نه ډکه کړې

③ ددې تعين نشته

④ قنطار كښې دولس اوقيې وي.او يو اوقيه د زمكې او آسمانه بهتر ده.

⑤ دولس زره ديناره.

بهرحال مقنطرين نې ورته په دې وجه اوونيل چې ددې ثواب د حصول لحاظ سره ډير زيات دې

**[۱۲۰۲] په تهجدو كښې د نبى عليه السلام د قراءت طريقه**

۱۲۰۲-(۱)[۱۵] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] كَانَتْ قِرَاءَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّيْلِ [۳] يَرْفَعُ طَوْرًا وَيَخْفِضُ طَوْرًا. رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] ابوهريره رضی الله عنه فرمايي [۲] چې د شپې په لمانځه كې به د حضور ﷺ قراءت مختلف وو [۳] كله به يې په پورته آواز سره قراءت كولو او كله به يې ښكته آواز سره. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① يَرْفَعُ: أَيْ صَوْتَهُ رَفْعًا مُتَوَسِّطًا: اوچت درميانه آواز، ② طَوْرًا: أَيْ مَرَّةً أَوْحَالَةً: يعنى كله كله، ③ يَخْفِضُ: په ښكته او رو آواز.

**تسهيلات:-**

**نوټ:** د دې تشريح په بل مقام كښې ذكرشوې ده.

**[۱۲۰۳] په تهجدو كښې د تيز او پست په اعتبار سره د قراءت كيفيت**

۱۲۰۳-(۲)[۱۶] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [۲] «كَانَتْ قِرَاءَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى قَدْرِ مَا يَسْمَعُهُ مَنْ فِي الْحُجْرَةِ [۳] وَهُوَ فِي الْبَيْتِ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] ابن عباس رضی الله عنهما فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ به په دومره آواز سره قراءت كولو چې بهر په صحن كې موجود كس به اوريدو [۳] چه حضور عليه السلام به په كور كې دننه قراءت كولو. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① الْحُجْرَةِ: د كوټې اوصحن دواړو دپاره استعماليږى دلته ترې صحن مراد دې يعنى كوټې ته مخامخ ځاى كوم طرف ته چه دكوټې دروازه وي.

**تسهيلات:-**

[۱] اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة/باب فى رفع الصوت بالقراءة فى صلاة الليل (رقم-۱۳۲۸)

[۲] اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة/باب فى رفع الصوت بالقراءة فى صلاة الليل (رقم-۱۳۲۷)

**قوله: فِي الْحُجْرَةِ وَهُوَ فِي الْبَيْتِ:**

**د حجرې او بيت مصداق:** - مرقات كښې دی چې دلته د حجرې نه مراد د كور صحن دی او بيت نه مراد كور دې يعنې د دوئ د تلاوت آواز به درميانه وو. دا د عمومي حالت ذكر دې. كنې كله به كم وو او كله به زيات وو. د دې حديث پاك نه معلومه شوه چې نبی كريم ﷺ به كله په دومره اوچت آواز تلاوت كولو چې په صحن كښې به ناستو خلقو ته معلوميده.

**[۱۲۰٤] د تهجد په قراءت كښې د اواز معتدل ساتل**

۱۲۰۳-()[۱۷][۱] وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ لَيْلَةً فَإِذَا هُوَ بِأَبِي بَكْرٍ يُصَلِّي [۳] يَخْفِضُ مِنْ صَوْتِهِ، [۴] وَمَرَّ بِعُمَرَ وَهُوَ يُصَلِّي رَافِعًا صَوْتَهُ، [۵] قَالَ: فَلَمَّا اجْتَمَعَا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، [٦] قَالَ: "يَا أَبَا بَكْرٍ مَرَرْتُ بِكَ وَأَنْتَ تُصَلِّي تَخْفِضُ صَوْتَكَ"، [۷] قَالَ: قَدْ أَسْمَعْتُ مَنْ نَاجَيْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ.

**ترجمه:** [۱] ابو قتاده رضي الله عنه راوي دي [۲] چې (يو ځل) حضور ﷺ په شپه كې بهر راووتلو او ناڅاپه د حضرت ابوبكر رضي الله عنه سره تير شو چې مونځ يې كولو [۳] په ښكته آواز سره قرآن كريم ويلو [۴] بيا د حضرت عمر رضي الله عنه سره تير شو چې په لمانځه كې يې په پورته آواز سره قرآن شريف ويلو [۵] ابو قتاده رضي الله عنه وايي سحر چې حضرت ابوبكر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه دواړه يو ځاي حاضر شو [٦] نو حضور ﷺ وفرمايل اي ابوبكر رضي الله عنه (نن شپه) زه تا سره تير شوم نو تا په ښكته آواز سره (قران كريم) ويلو [۷] حضرت ابوبكر رضي الله عنه عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ ما چې د چا سره مناجات كول هغه ته مې اورول [يعني زه د خپل پروردگار په مناجات كې مشغول ووم او هغه اوريدو د پاره د پورته آواز محتاج نه دي هغه هر رنګه اوري].

**حل اللغات:-** ① يَخْفِضُ: په ښكته او رو آواز.

[۱] وَقَالَ لِعُمَرَ: "مَرَرْتُ بِكَ وَأَنْتَ تُصَلِّي رَافِعًا صَوْتَكَ". [۲] فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! أُوقِظُ الْوَسْنَانَ، [۳] وَأَطْرُدُ الشَّيْطَانَ. [۴] فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا أَبَا بَكْرٍ ارْفَعْ مِنْ صَوْتِكَ شَيْئًا"، [۵] وَقَالَ لِعُمَرَ: "اخْفِضْ مِنْ صَوْتِكَ شَيْئًا»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ نَحْوَهُ.

**ترجمه:** [۱] بيا حضور ﷺ حضرت عمر رضي الله عنه ته وفرمايل اي عمر رضي الله عنه (نن شپه) زه تا سره (هم) تير شوم نو تا په لمانځه كې په پورته آواز سره (قرآن كريم) ويلې [۲] حضرت عمر رضي الله عنه عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ ما (په اوچت آواز قران كريم ويلو سره دا) اوده خلق بيدارول (كوم چې د عبادت الهي يعني د تهجد په وخت پاڅيدل خو غواړي خو د خوب په وجه ستر ګې نه كولاويږي) [۳] او شيطان مې تښتولو [۴] حضور ﷺ (د دواړو خبري اوريدو

[1] اخرجه ابوداود فی كتاب الصلاة/باب فی رفع الصوت بالقراءة فی صلاة الليل (رقم-۱۳۲۹) والترمذی كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی القراءة بالليل (رقم-٤٤٧)

سره حضرت ابوبکر ﷜ ته) وفرمایل ابوبکره ته خپل آواز لږ نور پورته کړه⑤ او (حضرت عمر ﷜ ته يي وفرمايل چي) عمره ته خپل آواز لږ ښکته کړه يعنی دغسې حضور ﷺ د حد اعتدال طرف ته د دواړو رهنمايي وکړله. (ابوداؤد، ترمذي)

**حل اللغات:** - ② أُوقِظُ: أَيْ أُنَبِّهُ: رابيداروم، راپاځوم. ③ الْوَسْنَانَ: أَيْ: النَّائِمَ الَّذِي لَيْسَ بِمُسْتَغْرِقٍ فِي نَوْمِهِ: چه اوده وی خو دخوب په وجه صرف سترګې نه شی غړولې. ④ أَطْرُدُ: أَيْ: أُبْعِدُ: شړم، تختوم.

**تسهيلات:** -

**قوله:** يَخْفِضُ مِنْ صَوْتِهِ، وَمَرَّ بِعُمَرَ وَهُوَ يُصَلِّي رَافِعًا صَوْتَهُ:

**دشيخينود تلاوت طريقه:** -دې حديث مبارك کښې دی چې حضرتا ابوبکر صديق ﷜ فرمائی چې کوم ذات آورول مقصود وو هغه په که ځوك په رو رو تلاوت کوی نو هم ئې آوری. (فَإِنَّهُ يَعْلَمُ السِّرَّ وَأَخْفَى) په دې وجه ما په زوره د تلاوت کولو ضرورت محسوس نه کړو.او حضرت عمر فاروق ﷜ به فرمائيل چې الله تعالی د آورولو نه علاوه اودهٔ خلق رابيدارول غواړم، چې اودهٔ خلق زما آواز واوری او رابيدار شی.او هغوئ هم تهجد ادا کړی.او شيطان زغلول غواړم چې دهغه دسوسې نه بچ شم.ددې نه معلومه شوه چې شيطان د اذان د قرآن کريم د آواز څخه هم تښتی.

**قوله:** يَا أَبَا بَكْرٍ ارْفَعْ مِنْ صَوْتِكَ شَيْئًا:

**شيخينوته په تعليم ورکولو کښې حکمت:** - نبی کريم ﷺ حضرت ابوبکر صديق ﷜ ته اوفرمائيل چې تاسو خپل آواز اوچت کړئی .او حضرت عمر فاروق ﷜ ته ئې اووئيل چې تاسو خپل آواز رو کړئی.دې دواړو ته فرمائيلو کښې حکمت دادې د حضرت ابوبکر صديق مزاج د توحيدګرم وو چې ماسوی دالله نه هر څهٔ لره سوزونکې وو،په دې وجه ئې اوفرمائيل چې ستا د آواز نه سامعين او مقتديان نصيحت حاصل کړی ،چې تا ته مقام الشهودی حاصل کړې.

اوحضرت عمر ﷜ په رو وئيلو کښې دالله تعالی حکمت دا وو چې په دوئ باندې دبرودهٔ الخلق وکافورية الشيطان والامزاج غالب راشی.

**قوله:** أُوقِظُ الْوَسْنَانَ:

**اشکال:** - که يو ځائې کښې يو کس ملاست وی نو په اوچت آواز سره ذکر نه دی کول پکاراونه قران کريم لوستل پکار دی.حضرت عمر فاروق ﷜ دا څنګه اوفرمائيل چې زه اودهٔ خلق رابيداروم؟

**د اشکال دری جوابونه:** -

① نائم څخه مراد هغه نائم دې چې د عبادت په وخت کښې د غفلت په خوب اودهٔ وی.

② نائم نه مراد هغه نائم دې چې د څه مرض او بيمارئی وغيره په وجه معذور وی.نو اوچت

سره د تلاوت کولو مقصد به داوی چې هغه عبادت ته راغب کړي.

③ شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمة الله علیه فرمائی چې ځینې مشائخو نه مې واؤریدل چې کوم کس همیشه تهجد گذار وی که هغه یوه شپه رابیدار نشی نو هغه راپورته کول پکار دی.لهذا حضرت عمر فار وق ﷺ چې په اوچت آوازسره تلاوت اوکړو نو دهغه زمانې خلق تهجد گزار وو.دهغوئ رابیدارول ئې مقصود وو.

[۱۲۰۵] په يو آيت باندې تولېه شپه تيرول

۱۲۰۵–()[۱۸][۱] وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: «قَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:[۲] حَتَّى أَصْبَحَ بِآيَةٍ وَالْآيَةُ: " ﴿إِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ[۳] وَإِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾ [المائدة:۱۱۸]» رَوَاهُ النَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:**[۱] ابو ذر ﷺ فرمایي چې حضور ﷺ (يوه شپه د تهجد په لمانځه کي) ولاړ وو تر دې چې سحر شو او دا آيت يي ونيلو:[۲] إِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ وَإِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ (که ته دوي ته عذاب ورکړي نو ستا بندگان دي[۳] او که يي وبخښې نو ته ډير غالب، د حکمت خاوند يي). (نسايي،ابن ماجه)

**تسهيلات:** - **قوله:** حَتَّى أَصْبَحَ بِآيَةٍ:

**د تعارض اشکال:** -ددې حديث څخه معلوميږي چې نبی کريم ﷺ به توله شپه هم يو آيت لوستلو.حالانکه حافظ ابن حجر په شمائل کښې يو روايت نقل کړې دې انه عليه السلام ماسهرليلة کلها قط: حضور ﷺ توله شپه کله هم ويخ نه وو پاتې شوې.نو دې دواړو کښې تعارض دې؟

**داشکال دوه جوابونه:** -

① سحره پورې قيام څخه قيام فی الصلوة مراد نه دې کما قال ابن الملك.بلکه دغه شان عبادت ترې مراد دې.

② د تولې دذکر کولو نه مراد دادی چې نبی کريم ﷺ رابيدار شو خو بيا تر سحره پورې اودۀ شوې نه وو.نو په دواړو روايتونو کښې هيڅ تعارض نشته دې.

[۱۲۰٦] د سحر سنتو څخه روسته په ښی اړخ ډده وهل

۱۲۰٦–()[۱۹][۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:[۲] " إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ[۳] فَلْيَضْطَجِعْ عَلَى يَمِينِهِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ.

[۱] اخرجه النسائی فی کتاب الافتتاح/باب ترديد الآية (رقم-۱۰۱۰) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فی القراءة فی صلاة الليل (رقم-۱۳۵۰)

[۲] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب الاضطجاع بعدها (رقم-۱۲۶۱) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الاضطجاع بعد رکعتی الفجر(رقم-۴۲۰)

ترجمه: ① او ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هر كله چې په تاسو كې څوك د سحر دوه ركعاته سنت وكړي ③ نو هغه ته پكار دي چې د جماعت د شروع كيدو پورې په ځپل ښي اړخ باندې پريوځي (يعني ډډه ولګوي). (ترمذي، ابوداؤد)

حل اللغات: - ① فَلْيَضْطَجِعْ: نو څمديلى (دې دپاره چه لږ دمه شي نو فرض مونځ به په توجو سره اوكړى).

تسهيلات: -

نوټ: - د دې حديث تشريح د حديث نمبر ۱۱۸۱ په شرح كښې تيره شوې ده.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۱۲۰۷] رسول الله صلى الله عليه ته د تهجد د مونځ خوشوالي

۱۲۰۷ - (١)[۲۰] ① عَنْ مَسْرُوقٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ، ② «أَيُّ الْعَمَلِ كَانَ أَحَبَّ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ ③ قَالَتْ: الدَّائِمُ، ④ قُلْتُ: فَأَيَّ حِينٍ كَانَ يَقُومُ مِنَ اللَّيْلِ؟ ⑤ قَالَتْ: كَانَ يَقُومُ إِذَا سَمِعَ الصَّارِخَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه: ① مسروق فرمايي چې ما د ام المؤمنين بي بي عائشي صديقي رضي الله عنها څخه پوښتنه وكړه ② چې د حضور ﷺ په نيز د ټولو څخه زيات محبوب كوم عمل وو؟ ③ وي فرمايل مداومت عمل (په عمل هميشگي) ④ ما بيا (دا) پوښتنه وكړه چې د شپې به د تهجد د لمانځه د پاره حضور ﷺ كوم وخت پاڅيدلو؟ ⑤ وي فرمايل حضور ﷺ به هغه وخت پاڅيدلو چې د چرګ اذان به يې واوريدي. (بخاري، مسلم)

حل اللغات: - ① الدَّائِمُ: أَيِ الْعَمَلُ الَّذِي يَدُومُ عَلَيْهِ صَاحِبُهُ: يعنى هغه عمل چه هغه هميشه كيږى. ② الصَّارِخَ: أَيْ: صَوْتَ الدِّيكِ: دې نه مراد دَ سحر دَ چرګ بانګ دې.

تسهيلات: -

قوله: إِذَا سَمِعَ الصَّارِخَ:

**د سحر په وخت د چرګ د اذان درې مرحلې: -**

① دَ شپې په مينځ كښې دَ ده اذان وى

② دَ هغې نه څه ساعت پس وى

③ دَ شپې آخرى حصه كښې وى.

**د چرګ په ځپل وخت باندې اذان كول:** - دَ چرګ معمول هم يو وى، گهړئى وراندې

[1] اخرجه البخارى فى كتاب الجمعة / باب من نام عند السحر (رقم-۱۱۳۲) ومسلم فى كتاب صلاة المسافرين وقصرها / باب صلاة الليل، وعدد ركعات النبى صلى الله عليه وسلم فى الليل، وأن الوتر ركعة، وأن الركعة صلاة صحيحة (رقم) ۱۳۱ - (۷۴۱) و ابوداود فى كتاب الصلاة، باب وقت قيام النبى صلى الله عليه وسلم من الليل (رقم-۱۳۱۷) كتاب قيام الليل وتطوع النهار / باب وقت القيام (رقم-۱۶۱۶)

روستو کیدې شي لیکن دَ سحر دَ چرګ وخت هم یو وی. مګر شرط دادې چه چرګ فارمی نه وی. دَ فارمی چرګ ته هلو معلومه نه ده چه دَ اذان وخت څه وی. نه دَ فارم چرګې له دَ هګئی نه بچې ویستل ورځی. دَدې وجه داده چه مخلوق دَ دې تخلیق کړې دې دَدې په تخلیق کښې بې ځایه مداخلت کړې شوې دې نودا چرګ څکه داسې پاګل او جاهل راؤوتلو.

## [۱۲۰۸] د نبی علیه السلام دشپې معمول

۱۲۰۸—()[۲۱] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «مَا كُنَّا نَشَاءُ أَنْ نَرَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي اللَّيْلِ مُصَلِّيًا إِلَّا رَأَيْنَاهُ، [۳] وَلَا نَشَاءُ أَنْ نَرَاهُ نَائِمًا إِلَّا رَأَيْنَاهُ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] انس رضی الله عنه فرمايي [۲] که مونږ به غوښتل چې حضور ﷺ د شپې په لمانځه کولو ووینو نو حضور ﷺ به مو په لمانځه کولو لیدلو [۳] او که دا به مو غوښتل چې حضور ﷺ اوده ووینو نو اوده به مو لیدلو. (نسايي)

**تسهیلات:** -

**قوله:** وَلَا نَشَاءُ أَنْ نَرَاهُ نَائِمًا إِلَّا رَأَيْنَاهُ

**دنبی کریم په عبادت کښې اعتدال:** -نبی کریم ﷺ به دشپې عبادت هم کولو او آرام به ئې هم کولو. معلومه شوه چې د شپې په عبادت کښې اعتدال وو. حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چې ما داسې کله هم نه وو لیدلی چې ټوله شپه به نبی کریم ﷺ اوده وواو داسې مې هم نه وو لیدلی چې ټوله شپه بهٔ نبی کریم ﷺ په عبادت کښې تیروله. دواړه امور په کښې شامل وو. آرام هم وو او عبادت هم وو.

## [۱۲۰۹] په سفر کښې د نبی علیه السلام د تهجد و کیفیت

۱۲۰۹—()[۲۲] [۱] وَعَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «إِنَّ رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [۲] قُلْتُ وَأَنَا فِي سَفَرٍ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۳] وَاللَّهِ لَأَرْقُبَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلصَّلَاةِ حَتَّى أَرَى فِعْلَهُ، [۴] فَلَمَّا صَلَّى صَلَاةَ الْعِشَاءِ، وَهِيَ الْعَتَمَةُ، [۵] اضْطَجَعَ هَوِيًّا مِنَ اللَّيْلِ، [۶] ثُمَّ اسْتَيْقَظَ فَنَظَرَ فِي الْأُفُقِ، فَقَالَ: [۷] ﴿رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هَذَا بَاطِلًا﴾ [آل عمران: ۱۹۱] حَتَّى بَلَغَ إِلَى: ﴿إِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيعَادَ﴾ [آل عمران: ۱۹۴]،

**ترجمه:** [۱] حمید بن عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنه فرمايي [۲] چې د رسول الله ﷺ یو صحابي بیان وکړو [۲] چې (یو ځل) زه د حضور ﷺ سره په سفر کې ملګري ووم نو (په خپل زړه کې یا بعضې دوستانو ته مي وویل) [۳] قسم په الله چې حضور ﷺ د تهجد د پاره پاځي نو زه

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الجمعة/ باب قیام النبی صلی الله علیه وسلم باللیل من نومه، وما نسخ من قیام اللیل(رقم-۱۱٤۱)والترمذی کتاب الصوم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی سرد الصوم (رقم-۷۶۹)

[۲] اخرجه النسائی فی السنن رقم الحدیث ۱۶۲۶

به یې د لمانځه په وخت وینم چې د حضور ﷺ افعال ووینم (او بیا د هغې مطابق عمل اوکړم)۴ کوم وخت چې حضور ﷺ د ماسخوتن مونځ چې هغې ته عتمه وایي وکړو۵ نو پریوتلي (او تر څه وخت پورې یې آرام وکړو)۶ بیا چې بیدار شو نو د آسمان طرف ته یې نظر پورته کولو سره دآیت اووئیلو: ۷ رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلاً (اې ربه تا دا بې فائدې نه دي پیدا کړي) تر دې چې حضور ﷺ دې آیت ته ورسیدو إِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيعَادَ (بیشکه ته وعده خلافي نه کوې).

**حل اللغات**:- ① لَأَرْقُبَنَّ: أَيْ: لَأَنْظُرَنَّ وَأَحْفَظَنَّ: د نصر ینصر نه انتظار اودَ نګرانۍ په معنی کښې دې چه زه به خامخا ګورم، په غور سره کتلو ته وائی. په دې معنی کښې یولفظ لَأَرْمُقَنَّ دې په حدیث (۱۱۹۷) کښې تیر شوې دې. ② الْعَتَمَةُ: ماسخوتن ته عتمه وائی دَ اسلام نه مخکښې دَ ماسخوتن نوم عتمه وو خو اسلام دَدې نوم ماسخوتن کیخودو اودَ عتمه په لفظ باندې پابندي اولګوله. کیدې شي چه دا دلته کوم استعمال شوې دي دادَ حرمت او ممانعت نه مخکښې وی.
③ هَوِيًّا: أَيْ: حِينًا طَوِيلًا: ډیر ساعت، یعنی ناوخته پورې، ④ الْأُفُقِ: أَيْ: نَوَاحِي السَّمَاءِ: دآسمان اطراف او غاړو ته وائی.

١ ثُمَّ أَهْوَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى فِرَاشِهِ، ٢ فَاسْتَلَّ مِنْهُ سِوَاكًا، ٣ ثُمَّ أَفْرَغَ فِي قَدَحٍ مِنْ إِدَاوَةٍ عِنْدَهُ مَاءً، ٤ فَاسْتَنَّ، ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى، ٥ حَتَّى قُلْتُ: قَدْ صَلَّى قَدْرَ مَا نَامَ، ٦ ثُمَّ اضْطَجَعَ حَتَّى قُلْتُ قَدْ نَامَ قَدْرَ مَا صَلَّى، ٧ ثُمَّ اسْتَيْقَظَ، فَفَعَلَ كَمَا فَعَلَ أَوَّلَ مَرَّةٍ، ٨ وَقَالَ مِثْلَ مَا قَالَ، ٩ فَفَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ قَبْلَ الْفَجْرِ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه**: ١ بیا حضور ﷺ د خپلې بسترې طرف ته متوجه شو ٢ او د هغې څخه یې مسواك راؤښکلو ٣ د هغې څخه وروسته د یو بتکې (چهاګلې) څخه یې چې د حضور ﷺ سره پروت وو (د اودس کولو یا د مسواك لوندولو د پاره) په پیالې کې اوبه راوښکلې ٤ بیا د مسواك کولو څخه وروسته یې (اودس وکړو یا د مخکې کړې اودس سره) د لمانځه د پاره ودریدلو کوم وخت چې حضور ﷺ مونځ وکړو ٥ نو ما په زړه کې اوویل چې څومره وخت حضور ﷺ اوده شوې وو هغومره وخت یې مونځ وکړو ٦ بیا حضور ﷺ پریوتلو او ما (په خپل زړه کې) اوویل چې څومره وخت حضور ﷺ اوده شوې وو هغومره وخت یې آرام وکړو ٧ بیا حضور ﷺ بیدار شو او څه چې یې مخکې کړې وو هغه یې اوس وکړل یعنی مسواك وغیره یې وکړل ٨ او څه چې (یعنې آیت مذکوره) یې مخکې ویلې وو هغومره یې اوس وویلو ٩ حضور ﷺ د سحر د لمانځه څخه مخکې دغسې درې ځله وکړل. (نسایي)

**حل اللغات**:- ⑤ أَهْوَى: أَيْ: قَصَدَ وَمَالَ: مائل کیدل متوجې کیدل لاس وراندې کولوسره یوڅیز اخستل. ⑥ فَاسْتَلَّ: أَيْ: اسْتَخْرَجَ: استلال دَ یوڅیز راویستلو ته وائی دلته مسواك راویستل مراد

دی. ⑦ قَدَح: پیالی، ⑧ إِدَاوَة: دَ څرمن لوښی ته وائی کوم ته چه چهاګل وائی. ⑨ فَاسْتَنَّ: استنان دَ سن نه دې اوسن غاښ ته وائی او استنان هم په دغه غاښونو باندې مسواك كولو ته وائی.

**تسهیلات:** -

**نوټ:** د اضافی قیوداتو ترجمې څخه د حدیث مطلب واضح دې.

**[۱۲۱۰] د نبی علیه السلام د تهجد و د قراءت کیفیت**

۱۲۱۰—()[۲۳] [۱] وَعَنْ يَعْلَى بْنِ مَمْلَكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، [۲] «أَنَّهُ سَأَلَ أُمَّ سَلَمَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قِرَاءَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصَلَاتِهِ؟ [۳] فَقَالَتْ: وَمَا لَكُمْ وَصَلَاتُهُ؟ [۴] كَانَ يُصَلِّي ثُمَّ يَنَامُ قَدْرَ مَا صَلَّى، [۵] ثُمَّ يُصَلِّي قَدْرَ مَا نَامَ، [٦] ثُمَّ يَنَامُ قَدْرَ مَا صَلَّى، حَتَّى يُصْبِحَ، [۷] ثُمَّ نَعَتَتْ قِرَاءَتَهُ، فَإِذَا هِيَ تَنْعَتُ قِرَاءَةً مُفَسَّرَةً حَرْفًا حَرْفًا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] د یعلي بن مملك په باره کې منقول دي [۲] چې هغه (یو ځل) د ام سلمه یعنی د حضور ﷺ د بي بي څخه د حضور ﷺ د قراءت او لمانځه په باره کې پوښتنه وکړه (چې حضور ﷺ به د شپې کول) [۳] هغې ورته وفرمایل چه د حضور ﷺ د لمانځه (او د قراءت د بیان کولو څخه به) تاسو ته څه حاصل شی [په تاسو کې دومره قوت چرته دي چې د حضور ﷺ په شان مونځ وکړي شی او که اوریدل غواړي نو واوره چې] [۴] حضور ﷺ به مونځ کولو بیا څومره چې به یي مونځ کړي وو هغومره به اوده کیدو [۵] بیا به (پاڅیدلو) تر دومره وخته پورې به یي مونځ کولو څومره چې به اوده شوې وو [٦] بیا چې به څومره وخته پورې یې مونځ کړي وو هغومره به اوده کیدو تر دې چې (دا سلسله به جاري وه او) سحر به شو [۷] د دې څخه وروسته ام سلمه رضی الله عنها د حضور ﷺ قراءت بیان کړو تر دې چې هغې ښه واضح او د یو یو حرف د حضور ﷺ د قراءت یې بیان وکړو. (ابوداؤد، ترمذي، نسايي)

**حل اللغات:** - ① نَعَتَتْ: أَيْ: وَصَفَتْ: بیان ئې کړو، ② مُفَسَّرَةً: أَيْ مُبَيَّنَةً: یعنی په تفصیل او وضاحت سره، ③ حَرْفًا حَرْفًا: أَيْ: مُرَتَّلَةً وَمُجَوَّدَةً وَمُمَيَّزَةً غَيْرَ مُخْتَلِطَةٍ: چه په ترتیل او تجوید سره به ئې جدا جدا یو یو لفظ لوستلو.

**تسهیلات:** - **قوله:** ثُمَّ نَعَتَتْ قِرَاءَتَهُ:

**دنبی کریم د قراءت کیفیت:** —نبی کریم ﷺ به کله ویخ وو او کله اوده.او په آخر کښې ام سلمه رضی الله عنها یو یو لفظ واضح کړو او وې فرمائیل چې نبی کریم ﷺ به ډیر په رو رو تلاوت کولو.د قرات طریقه هم داده چې د ژباتو ونیلو په ځائې صحیح اوونیلې شی.

[1]) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب استحباب الترتیل فی القراءة (رقم-۱٤٦٦) والترمذی کتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء کیف کانت قراءة النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۲۹۲۳)

# [۴۸/۳۲]بَابُ مَا يَقُولُ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ]

**په تهجد و کښې د دعا ګانو ويلو بيان**

**خلاصة الباب:-**

**فيه ثمانية احاديث مشتملة على ثلاثة مسائل:**

① التشهد في القعدة: ۱، ۲، ۷، ۸.

② الذكر وقت الإستيقاظ من النوم: ۳، ۴، ۶، ۸.

③ وقت الانتباه وقت الإجابة : ۳، ۵.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۱۲۱۱]په تهجد و کښې د نبی علیه السلام دعا**

۱۲۱۱-()[۱] ① عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ② «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ يَتَهَجَّدُ قَالَ: ③ " اللَّهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ قَيِّمُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَنْ فِيهِنَّ، ④ وَلَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ نُورُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَنْ فِيهِنَّ، ⑤ وَلَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ مَلِكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَنْ فِيهِنَّ، ⑥ وَلَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ الْحَقُّ، وَوَعْدُكَ الْحَقُّ، ⑦ وَلِقَاؤُكَ حَقٌّ، وَقَوْلُكَ حَقٌّ، ⑧ وَالْجَنَّةُ حَقٌّ، وَالنَّارُ حَقٌّ، وَالنَّبِيُّونَ حَقٌّ، ⑨ وَمُحَمَّدٌ حَقٌّ، وَالسَّاعَةُ حَقٌّ، ⑩ اللَّهُمَّ لَكَ أَسْلَمْتُ وَبِكَ آمَنْتُ وَعَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ، ⑪ وَإِلَيْكَ أَنَبْتُ، وَبِكَ خَاصَمْتُ، وَإِلَيْكَ حَاكَمْتُ، ⑫ فَاغْفِرْ لِي مَا قَدَّمْتُ وَمَا أَخَّرْتُ، ⑬ وَمَا أَسْرَرْتُ وَمَا أَعْلَنْتُ، ⑭ وَمَا أَنْتَ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّي، ⑮ أَنْتَ الْمُقَدِّمُ، وَأَنْتَ الْمُؤَخِّرُ، ⑯ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ، وَلَا إِلَهَ غَيْرُكَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي ② چې رسول الله ﷺ چې بـه د شپې تهجد د لمانځـه د پاره ودريدلو نو دا دعا به يې کوله: ③ اللَّهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ قَيِّمُ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَنْ فِيهِنَّ وَلَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ نُورُ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَنْ فِيهِنَّ وَلَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ مَلِكُ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَنْ فِيهِنَّ وَلَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ الْحَقُّ وَوَعْدُكَ الْحَقُّ وَلِقَاؤُكَ حَقٌّ وَقَوْلُكَ حَقٌّ وَالْجَنَّةُ حَقٌّ وَالنَّارُ حَقٌّ وَالنَّبِيُّونَ حَقٌّ وَمُحَمَّدٌ حَقٌّ وَالسَّاعَةُ حَقٌّ اللَّهُمَّ لَكَ أَسْلَمْتُ وَبِكَ آمَنْتُ وَعَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْكَ أَنَبْتُ وَبِكَ خَاصَمْتُ وَإِلَيْكَ حَاكَمْتُ فَاغْفِرْ لِي مَا قَدَّمْتُ وَمَا أَخَّرْتُ وَمَا أَسْرَرْتُ وَمَا أَعْلَنْتُ وَمَا أَنْتَ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّي أَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَأَنْتَ الْمُؤَخِّرُ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ وَلَا إِلٰهَ غَيْرُكَ (اي زما ربه ستا د پاره ټول تعريفونه دي ته د آسمانونو او زمکې قائم ساتونکي يې او د هغه شي چې د دې په مينځ کې دي ④ او ټول تعريفونه تا لره دي ته د زمکې او آسمانونو او څه چې د دې په مينځ کې دي د ټولو روښانه کونکي يې ⑤ او ټول تعريفونه تا لره دي او تـه د زمکې او آسمانونو او څه چې د دې په مينځ کې دي د ټولو بادشاه يې ⑥ او ټول تعريفونه تا

---

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الجمعة/ باب التهجد بالليل وقوله عز وجل: ﴿ومن الليل فتهجد به نافلة لک﴾ [الإسراء: ۷۹](رقم-۱۱۲۰) ومسلم فی صحيحه رقم الحديث.

لره دي ته حق يې ستا وعده حقه ده[۷] ستا ملاقات حق دي ستا کلام حق دي [۸] جنت حق دي دوزخ حق دي ټول نبيان حق دي [۹] محمد ﷺ حق دي او قيامت حق دي [۱۰] اې پروردگاره زه ستا تابعدار يم ما ستا ټول احکامات قبول کړل په تا مې ايمان راوړی دی او په تا مې بهروسه (توکل) وکړو[۱۱] ستا طرف ته مې رجوع وکړه ستا د مدد سره زه د دين د دښمنانو سره جنګيږم او تا ته مې خپل فرياد راوړی دی [۱۲] نو ته زما هغه ګناهونه وبخښې چې ما مخکې کړي دي او هغه ګناهونه هم چې زما څخه وروسته و شي [۱۳] او هغه ګناهونه مې وبخښې چې ما په پټ طريقې سره او په ظاهري طريقې سره کړي دي [۱۴] او څه چې زما خطاګاني دي چې هغه ته بهتر پيژنې (ټولې راته معاف کړې)[۱۵] او ته چې څوك غواړې مخکې کونکي او وروسته کونکي يې [۱۶] ته معبود يې ستا څخه سوا بل معبود نشته (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:**- ① قَيِّمُ: أَيْ: الْقَائِمُ بِأُمُورِهِمَا: ساتونکي او انتظام چلونکي، ② أَنَبْتُ: أَيْ: رَجَعْتُ: رجوع کوم، ③ خَاصَمْتُ: أَيْ: أَعْدَاءَكَ: جنګ کوم ستا ددشمنانو سره، ④ قَدَّمْتُ: أَيْ: مِنَ الذُّنُوبِ: چه مخکښې مې کړی دی کوم ګناهونه. ⑤ أَخَّرْتُ: أَيْ: مِنَ التَّقْصِيرِ فِي الْعِبَادَةِ: يعنی ماپه عبادت کښې سستی اوکړه. ⑥ أَسْرَرْتُ: أَيْ: أَخْفَيْتُ: چه پټ مې کړی دی (کوم ګناهونه). ⑦ أَعْلَنْتُ: چه ښکاره مې کړی دی (کوم ګناهونه که قولی وی اوکه فعلی وی). ⑧ الْمُقَدِّمُ: وړاندې کونکې (ئې بعضې بندګانو لره چه توفيق د عباداتو دې ورکړې دې). ⑨ الْمُؤَخِّرُ: وروسته پاتې کونکې ئې (بعضې بندګانو لره د لويو مرتبونه).

**تسهيلات:**- **قوله:** إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ يَتَهَجَّدُ:

**د دعاګانو په محل کښې دوه احتمالات:-**

① دَ حديث ظاهری الفاظو نه اودَ صاحب مشکوة داسې عنوان ساتلو نه معلوميږی چه دَ راتلونکی احاديث دعاګانې دَ مانځه دننه دعاګانې نه دی بلکه دَ تهجد شروع کولو دَ وخت دعاګانې دی

② دا هم احتمال دې چه په تهجدو کښې حضورپاك ﷺ دا دعاګانې وئيلې وی.

**[۱۲۱۲] په تهجدو کښې د نبی عليه السلام دويمه دعا**

۱۲۱۲—(۱)[۲] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ افْتَتَحَ صَلَاتَهُ فَقَالَ: [۳] " اللَّهُمَّ رَبَّ جِبْرِيلَ وَمِيكَائِيلَ وَإِسْرَافِيلَ، [۴] فَاطِرَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ، [۵] عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ، [۶] أَنْتَ تَحْكُمُ بَيْنَ عِبَادِكَ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ، [۷] اهْدِنِي لِمَا اخْتُلِفَ فِيهِ مِنَ الْحَقِّ بِإِذْنِكَ، [۸] إِنَّكَ تَهْدِي مَنْ تَشَاءُ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] ام المؤمنين بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ چې به د

[1] اخرجه مسلم فی کتاب صلاة المسافرين وقصرها/ باب الدعاء فی صلاة الليل وقيامه (رقم) ۲۰۱ - (۷۷۱)

شپې پاڅيدلو او (د تهجد) مونځ به يې شروع کړو نو دا دعا به يې کوله: [۳] اللّٰهُمَّ رَبَّ جِبْرِيلَ وَمِيكَائِيلَ وَإِسْرَافِيلَ فَاطِرَ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ أَنْتَ تَحْكُمُ بَيْنَ عِبَادِكَ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ اهْدِنِي لِمَا اخْتُلِفَ فِيهِ مِنَ الْحَقِّ بِإِذْنِكَ إِنَّكَ تَهْدِي مَنْ تَشَاءُ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ (اې الله اې پروردګاره د جبرائيل عليه السلام، د ميکائيل عليه السلام او اسرافيل عليه السلام [۴] اې پيدا کونکيه د آسمانونو او د زمکې [۵] او اې پټ او ظاهر باندې پوهيدونکيه [۶] ته به د خپلو بنده ګانو په مينځ کې په هغه شي کې چې په هغې کې هغوي اختلاف کوي فيصله وکړې [۷] اې الله په حق امر کې چې کوم اختلاف شوې دې په هغوي کې زما رهنمايي وکړې [۸] ځکه چې ته چاته غواړې سيده لار ورته ښايي). (مسلم)

**حل اللغات:** - ① فَاطِرَ: أَيْ: مُبْدِعُهُمَا وَمُخْتَرِعُهُمَا: په رومبی خل پيدا کونکې، ② الْغَيْبِ: أَيْ: بِمَا غَابَ عِنْدَ غَيْرِهِ: پټ څيزونه (کوم چه د مخلوق نه پټ دی). ③ الشَّهَادَةِ: أَيْ: بِمَا ظَهَرَ عِنْدَ غَيْرِهِ: ښکاره څيزونه (کوم چه مخلوق ته ښکاره دی). ④ تَحْكُمُ: فيصله به کوې.

**تسهيلات:** -

**قوله:** اللّٰهُمَّ رَبَّ جِبْرِيلَ وَمِيكَائِيلَ وَإِسْرَافِيلَ:

**د فرشتو د ذکر په ترتيب کښې حکمت:** -

① جبريل عليه السلام د آسمانی کتابونو آمين دې. د نبيانو عليهم السلام خادم دې او د ټولو فرشتو څخه افضل دې. يعنی ټولو امور دينی طرف ته د دوئ امانت راجع دې.

② د دې نه پس ئې اسرافيل عليه السلام ځکه ذکر کړو چې دې د لوح محفوظ آمين دې او د صور آمين دې. دا امور امور معاش او امور معاد طرف ته راجع دی.

③ په مينځ کښې ئې د ميائيل عليه السلام ذکر اوکړو، ځکه چې ده به دواړو طرفونو نه مدد کولو. په دې وجه ئې دده ذکر په مينځ کښې اوکړو. لکه د باران او نباتاتو آمين دې. (قاله ابن حجر رحمه الله)

**قوله:** فَاطِرَ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ:

**د آسمان د تقديم وجه:** - د خالق معنی ده پيدا کونکې، او د فاطر معنی ايجاد کوونکی. چونکه آسمان فيض ورکوی او زمکه فيض اخلی، داشان آسمان د کفر، شرك او ګناه نه محفوظ دې. او دا ټول هر څه په زمکه کښې موجود دی. په دې وجه ئې د آسمان د زمکې نه وړاندې اوکړو.

**قوله:** اهْدِنِي:

ای ثبتنی وزدنی فی الهداية: يعنی ماته په دې کښې ثابت قدمی راکړه، او زما رهنمائی اوکړه.

## [۱۲۱۳] د خوب څخه بيداريدو روسته تسبيحات

۱۲۱۳—()[۳] [۱] وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "مَنْ تَعَارَّ مِنَ اللَّيْلِ فَقَالَ: [۳] لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، [۴] لَهُ الْمُلْكُ، وَلَهُ الْحَمْدُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ [۵] وَسُبْحَانَ اللّٰهِ، وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ، [۶] وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ، وَاللّٰهُ أَكْبَرُ [۷] وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ، [۸] ثُمَّ قَالَ: رَبِّ اغْفِرْ لِي"، أَوْقَالَ: "ثُمَّ دَعَا; اسْتُجِيبَ لَهُ، [۹] فَإِنْ تَوَضَّأَ وَصَلَّى قُبِلَتْ صَلَاتُهُ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] عباده بن صامت رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم سړي چې د شپې بيدار شي او دا دعا اووائي: [۳] لَاإِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ وَسُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ، «د الله څخه سوا بل معبود نشته هغه ايكي يو دي هيڅوك د هغه شريك نشته [۴] د هغه د پاره بادشاهت دي او د هغه د پاره ټول تعريفونه دي او هغه په هر شي قادر دي [۵] او پاك دي الله ټول تعريفونه الله لره دي [۶] او د هغه څخه سوا بل معبود نشته او الله ډير لوي دي [۷] او ګناهونو څخه بچ كيدل او د عبادت قوت د الله په مدد سره دي» [۸] او دي څخه وروسته دا اووائي رَبِّ اغْفِرْ لِي «اې زما ربه ما وبخښې» يا وي فرمايل بيا دعا وكړي «يعني راوي ته شك واقع شوي دي چې حضور ﷺ خاص طور سره رَبِّ اغْفِرْ لِي وفرمايل يا دا يې وفرمايل چې كومه دعا غواړي ودي كړي» د هغه دعا به قبوله شي [۹] بيا كه اودس وكړي او مونځ وكړي نو دهغه مونځ به قبول شي. «بخاري»

**حل اللغات:** - ① تَعَارَّ: أَي: انْتَبَهَ مِنَ النَّوْمِ: چه راببدار شي د خوب نه.

**تسهيلات:** - **قوله:** مَنْ تَعَارَّ مِنَ اللَّيْلِ:

**د تعار په معنی كښې درې اقوال:** -

① د خوب نه پاسيدو او بيداريدو ته تعار وائي.

② بعضو ليكلي دي چه اړخ بدلولو ته تعار وائي.

③ ابن ملك ليكلي دي چه دخوب نه كله سړې بيدار شي نو د هغه د خلې نه بې اختياره يو آواز اوځي هم هغې ته تعار وئيلې شوې دې.

**د دعاګانو محل:** - حضورپاك ﷺ دا خبره خوښه كړه چه كله آواز راؤځي نو بهتر داده چه د الله تعالى ذكر سره اوځي او سړې مذكوره دعا اووائي. دا دعا پخپله نيكي، مطلوب او مقصود دې. ليكن كه چا د دې دعا نه پس اودس اوكړو اومونځ ئې اوكړو نود هغه مونځ به قبليږي. د دې ځائي نه معلومه شوه چه دا ټولې دعاګانې د تهجد د مونځ نه وړاندې وړاندې وئيل پكار دي.

[1] اخرجه البخاري في كتاب الجمعة/ باب فضل من تعار من الليل فصلى (رقم-۱۱۵۴) وابوداود في كتاب الأدب/باب ما يقول الرجل إذا تعار من الليل (رقم-۵۰۶۰) والترمذي كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الدعاء إذا انتبه من الليل (رقم-۳۴۱۴) وابن ماجة كتاب الدعاء/باب ما يدعو به إذا انتبه من الليل (رقم-۳۸۷۸)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۱۲۱٤] د بیداریدو په وخت مسنون دعا

۱۲۱۴—()[۴][۱] عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲]«كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اسْتَيْقَظَ مِنَ اللَّيْلِ قَالَ: [۳] "لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ، سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ، [۴] أَسْتَغْفِرُكَ لِذَنْبِي، وَأَسْأَلُكَ رَحْمَتَكَ، [۵] اللّٰهُمَّ زِدْنِي عِلْمًا، [۶] وَلَا تُزِغْ قَلْبِي بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنِي، [۷] وَهَبْ لِي مِنْ لَدُنْكَ رَحْمَةً إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] ام المؤمنين بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ چې به د شپې (د خوب څخه) بيدار شو نو دا دعا به يې كوله: [۳] لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ أَسْتَغْفِرُكَ لِذَنْبِي وَأَسْأَلُكَ رَحْمَتَكَ اللّٰهُمَّ زِدْنِي عِلْمًا وَلَا تُزِغْ قَلْبِي بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنِي وَهَبْ لِي مِنْ لَدُنْكَ رَحْمَةً إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ، (اي الله ستا څخه سوا بل معبود نشته ته پاک يې اي الله زه ستا د تعريف سره ستا تسبيح كوم [۴] د خپلو گناهونو بخښنه غواړم او ستا څخه ستا د رحمت طلبگار يم [۵] اي الله زما علم زيات كړې [۶] او ما د هدايت يافته جوړولو څخه وروسته (د حق څخه باطل طرف ته) زما په زړه كې كجروي پيدا مه كړې [۷] او د خپل طرف څخه زما د پاره (په ايمان او هدايت باندې ثابت قدمي او د دين توفيق) رحمت عطا كړې بيشكه ته بخښونكې يې. (ابوداؤد)

**حل اللغات:**- ① وَلَا تُزِغْ: دا د أَزَاغَ نه دې. أَيْ: لَا تَجْعَلْ قَلْبِي مَائِلًا عَنِ الْحَقِّ إِلَى الْبَاطِلِ: يعنى زما زړه د حق نه باطل ته مه گرځوې.

**تسهيلات:**- **قوله:** اَللّٰهُمَّ زِدْنِي عِلْمًا، وَلَا تُزِغْ قَلْبِي:

**دعلم اهميت:**—اگر چې دا دواړه څيزونه هم په رحمت كښې شامل وو خو ددې د اهميت په وجه ئې دا جدا جدا ذكر كړل. ددې نه معلومه شوه چې د علم انتها نشته دې. په دې وجه دې يو كس په خپل عمل باندې قناعت نه كوي. او هم داشان دې يو كس خپل ځان دشيطان نه محفوظ نه گڼړي. د زړه په بدليدو كښې هيڅ وخت نه لگي.

**درحمت څخه مراد:**—داشان د رحمت نه مراد ايمان او هدايت باندې ثابت قدمي او د نيكو اعمالو توفيق مراد دې.

## [۱۲۱۵] په شپه كښې د بيداريدو څخه وروسته د ذكر الله فضيلت

۱۲۱۵—()[۵][۱] وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَبِيتُ عَلَى ذِكْرٍ طَاهِرًا [۳] فَيَتَعَارُّ مِنَ اللَّيْلِ، يَسْأَلُ اللّٰهَ خَيْرًا [۴] إِلَّا أَعْطَاهُ اللّٰهُ إِيَّاهُ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ.

[1]) اخرجه ابوداود في السنن رقم الحديث ۵۰۶۱

[2]) اخرجه ابوداود في كتاب الأدب/باب في النوم على طهارة (رقم-۵۰۴۲) وابن ماجة كتاب الدعاء/باب ما يدعو به إذا انتبه من الليل (رقم-۳۸۸۱)

**ترجمه:** [۱] معاذ بن جبل رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم مسلمان چې د شپې د پاكۍ په حالت كې (يعني اودس يا تيمم كولو سره) ذكر الله كولو سره اوده شي [۳] بيا د شپې د بيداريدو ځخه وروسته د الله ځخه د خير دعا غواړي [۴] نو الله تعالىٰ جل جلاله هغه ته (په دنيا يا آخرت كې ضرور) خير وركوي. (احمد ،ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① يَبِيتُ: أَيْ: يَرْقُدُ فِي اللَّيْلِ: چه د شپې اوده شي. ② طَاهِرًا: أَيْ: مُتَوَضِّئًا أَوْ مُتَيَمِّمًا: چه پاک وى (اودس ئې كړې وى يا ئې تيمم وهلې وى). ③ فَيَتَعَارُّ: أَيْ: يَنْتَبِهُ وَيَتَحَرَّكُ: چه رابيدار شى د خوب نه.

**تسهيلات:** - **قوله: يَبِيتُ عَلَى ذِكْرٍ طَاهِرًا:**

**د طاهر په مصداق كښې دوه اقوال: -**

① د ددې ځخه ظاهرى پاكوالې مراد دې چې په اودس كښې اوده كيدل پكار دى.

② ددې ځخه د زړه پاكوالې مراد دې يعنى د دهوكې ،ملاوټ ،شيطانى وسوسو، بنودنې او د غيرو دبادشاهۍ وغيره نه زړه پاك وى.

ځوك چې په اودس كښې ځملى نو هغه به د ټولې شپې په عابدانو كښې شميرلې كيږى.

**[۱۲۱٦] د تهجد ځخه مخكې تسبيحات او دعا**

۱۲۱٦ —(^)[٦] [۱] وَعَنْ شَرِيقٍ الْهَوْزَنِيِّ، قَالَ: [۲] «دَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ فَسَأَلْتُهَا: [۳] بِمَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْتَتِحُ إِذَا هَبَّ مِنَ اللَّيْلِ؟ [۴] فَقَالَتْ: سَأَلْتَنِي عَنْ شَيْءٍ مَا سَأَلَنِي عَنْهُ أَحَدٌ قَبْلَكَ، [۵] كَانَ إِذَا هَبَّ مِنَ اللَّيْلِ؟ كَبَّرَ عَشْرًا، [٦] وَحَمِدَ اللهَ عَشْرًا، [۷] وَقَالَ: " سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهِ عَشْرًا "، [۸] وَقَالَ: " سُبْحَانَ الْمَلِكِ الْقُدُّوسِ " عَشْرًا، [۹] وَاسْتَغْفَرَ اللهَ عَشْرًا، [۱۰] وَهَلَّلَ اللهَ عَشْرًا، [۱۱] ثُمَّ قَالَ: " اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ ضِيقِ الدُّنْيَا وَضِيقِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ " عَشْرًا، [۱۲] ثُمَّ يَفْتَتِحُ الصَّلَاةَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] شريق الهوزني فرمايي [۲] چې د بي بي عائشي صديقي رضي الله عنها په خدمت كې زه حاضر شوم او پوښتنه مې ځيني وكړه [۳] چې حضور ﷺ به د شپې بيداريدو ځخه وروسته عبادت په كوم شي سره شروع كولو [۴] بي بي عائشي رضي الله عنها وفرمايل نن تا زما ځخه هغه پوښتنه وكړه چې ستا ځخه مخكې دا پوښتنه راځخه هيچا نه وه كړي [۵] (نو واوره چې) حضور ﷺ به د شپې بيداره شو نو مخكې به يې الله اكبر لس ځله ويل [٦] الحمد لله لس ځله [۷] سبحان الله وبحمده لس ځله [۸] سبحان الملك القدوس لس ځله ويل [۹] لس ځله به يې استغفار كولو [۱۰] لا اله الا الله به يې لس ځله ويل [۱۱] او لس ځله به يې دا كلمات ويل اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ ضِيقِ الدُّنْيَا وَضِيقِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ (اي پروردګاره زه د تا ځخه د دنيا د تنګيو (يعني سختيو) او د آخرت د تنګۍ ځخه پناه غواړم) [۱۲] بيا د دې ځخه وروسته به يې د تهجد مونځ شروع كولو. (ابوداؤد)

[1]) اخرجه ابوداود فى كتاب الأدب/باب ما يقول إذا أصبح (رقم-۵۰۸۵) والنسائى كتاب الاستعاذة/باب الاستعاذة من ضيق المقام يوم القيامة (رقم-۵۵۳۵)

**حل اللغات:-** ① هَبَّ: أَي: اسْتَيقَظَ: چه رابیدرا به شو (دخوب نه). ② القُدُّوس: أَي: المُنَزَّهُ عَنْ كُلِّ عَيْبٍ وَآفَةٍ: چه پاک دي دهر عیب او آفت نه، ③ ضِيقِ الدُّنْيَا: أَي: شَدَائِدِهَا: ددنیا د تنګۍ نه مراد سختۍ او تکالیف دي.

**تسهیلات:-**

**قوله:** إِذَا هَبَّ مِنَ اللَّيْلِ كَبَّرَ عَشْرًا:

**معشرات سبعه:**-دې کلماتو ته د محدثینو په اصطلاح کښې معشرات سبعه وئیلې کیږی. یعنی اووۀ داسې تسبیحات دی چې په هغې هره یوه تسبیح لس لس ځله وئیلې کیږی.

**قوله:** مِنْ ضِيقِ الدُّنْيَا وَضِيقِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ:

**د دنیا او آخرت د تنګستیا څخه مراد:-**

① ددنیا په تنګدستیا کښې د دې مصیبتونه ،بیمارۍ قرضونه وغیره ، شامل دي.

② دقیامت په تنګدستیا کښې ،د قیامت د ورځې ګرمی ،حساب کتاب وغیره شامل دی.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۱۲۱۷] په تهجدو کښې مسنون اذکار**

۱۲۱۷-(۷)[۱] ① عَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ كَبَّرَ ③ ثُمَّ يَقُولُ: "سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ، ④ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ، وَتَعَالَى جَدُّكَ، وَلَا إِلَهَ غَيْرُكَ"، ⑤ ثُمَّ يَقُولُ: "اللَّهُ أَكْبَرُ كَبِيرًا"، ⑥ ثُمَّ يَقُولُ: "أَعُوذُ بِاللَّهِ السَّمِيعِ الْعَلِيمِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ" ⑦ مِنْ هَمْزِهِ وَنَفْخِهِ وَنَفْثِهِ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① ابو سعید ﷺ فرمایي ② چې رسول الله ﷺ چې به د شپې لمانځه ته ودریدلو نو الله اکبر به یې ویلو ③ بیا به یې دا کلمات ویل سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالَى جَدُّكَ وَلَا إِلَهَ غَيْرُكَ (اې الله ته پاك یې مونږ ستا حمد کوو ④ ستا نوم برکتناك دي ستا بزرګي لویه ده او ستا څخه سوا بل معبود نشته) ⑤ بیا به یې اللَّهُ أَكْبَرُ كَبِيرًا (الله ډیر لوي دي) ویل ⑥ او دا دعا به یې کوله: أَعُوذُ بِاللَّهِ السَّمِيعِ الْعَلِيمِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ مِنْ هَمْزِهِ وَنَفْخِهِ وَنَفْثِهِ (زه په الله اوریدونکي، پوهیدونکي پناه غواړم ، د شیطان مردود څخه ⑦ د هغه د وسوسو څخه د هغه د تکبر څخه او د هغه د خراب اشعار بنودلو څخه (پناه غواړم) .(ترمذي،ابوداؤد ،نسایي)

**حل اللغات:-** ① تَعَالَى جَدُّكَ: أَي: ارْتَفَعَ عَظَمَتُكَ: لوړې دې شان ستا . ② هَمْزِهِ: أَي: نَخْزِهِ يَعْنِي وَسْوَسَتَهُ

[1]) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب من رأی الاستفتاح بسبحانک اللهم وبحمدک(رقم-۷۷۵) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما یقول عند افتتاح الصلاة (رقم-۲٤۲)وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة والسنة فیها/باب افتتاح الصلاة (رقم-۸۰٤) والدارمی کتاب الصلاة/باب: ما یقال بعد افتتاح الصلاة

وَإِغْوَاءَهُ: د شيطان تونگي او وسوسې وغيره مراد دي. ③ نَفْخِهِ: أَيْ: كِبْرِهِ وَعُجْبِهِ: د نفخ نه مراد د شيطان كبر اوغرور دي، ④ نَفْثِهِ: سِحْرِهِ أَوْشِعْرِهِ: د نفث نه مراد يا خو جادو او تونگي وغيره دي يا غلط اشعر او لوبې، سندرې وغيره دي.

۱ وَزَادَ أَبُودَاوُدَ بَعْدَ قَوْلِهِ: "غَيْرُكَ"، ۲ ثُمَّ يَقُولُ: "لَاإِلَهَ إِلَّا اللهُ" ثَلَاثًا. وَفِي آخِرِ الْحَدِيثِ: ثُمَّ يَقْرَأُ.

**ترجمه:** ۱ ابوداؤد په خپل روايت کې د حديث الفاظ د ولااله غيرك څخه وروسته دا الفاظ هم نقل کړي دي ۲ چې بيا به حضور ﷺ لااله الاالله درې خله ويل او د آخري حديث الفاظ دا دي چې بيا يې ويل يعنى د اعوذ بالله السميع العليم الخ ويلو څخه وروسته به يې قراءت کولو.

**تسهيلات:- قوله: ثُمَّ يَقُولُ:**

**ددعا فائده:-** مطلب دادې چې په دې تهولو څيزونو باندې دشيطان د طرفه ده ته قدرت حاصل دې. بنده ته پکار دی چې ددې تصرفاتو نه خان اوساتی او دالله تعالی پناه اوغواړی.

**[۱۲۱۸] په صلاة الليل کښې ذکرونه**

۱۲۱۸ - () [۸] ۱ وَعَنْ رَبِيعَةَ بْنِ كَعْبٍ الْأَسْلَمِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: ۲ «كُنْتُ أَبِيتُ عِنْدَ حُجْرَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ۳ فَكُنْتُ أَسْمَعُهُ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ ۴ يَقُولُ: "سُبْحَانَ رَبِّ الْعَالَمِينَ" الْهَوِيَّ، ۵ ثُمَّ يَقُولُ: "سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهِ" الْهَوِيَّ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ. ۶ وَلِلتِّرْمِذِيِّ نَحْوُهُ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** ۱ ربيعه بن کعب اسلمي رضي الله عنه فرمايي ۲ چې ما به د رسول الله ﷺ د حجرې مبارکې نزدې شپه تيروله ۳ ما به د حضور ﷺ آواز اوريدو چې کله به حضور ﷺ د تهجد د لمانځه د پاره پاڅيدلو ۴ نو تر ډير وخته پورې به يې سُبْحَانَ اللهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ (د ټول عالم پروردگار پاك دې) ويل ۵ بيا به يې تر ډير وخته پورې سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهِ (زه د هغه د تعريف سره د هغه پاکي بيانوم) ويل، نسايي، ۶ ترمذي هم دغسې روايت نقل کړي دي او ويلي يې دي چې دا حديث حسن صحيح دي.

**حل اللغات:-** ① أَبِيتُ: مِنَ الْبَيْتُوتَةِ: يعنى شپه مې تيره کړه. ② حُجْرَةِ: د کوټې اوصحن دواړو د پاره استعماليږي دلته ترې صحن مراد دې يعنى کوټې ته مخامخ خای کوم طرف ته چه د کوټې دروازه وی. ③ الْهَوِيَّ: الْحِينُ الطَّوِيلُ مِنَ الزَّمَانِ: د ډير وخته پورې لوستلو او وئيلو په معنی کښې دې.

**تسهيلات:- قوله: كُنْتُ أَبِيتُ عِنْدَ حُجْرَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ**

**د ربيعه بن کعب د شپې تيرولو مقصد:-** ددې نه معلوميږی چې ربيعه بن کعب اسلمی رضی الله عنه به نبی کريم ﷺ سره شپه ولې تيروله، صرف ددې وجې چې د نبی کريم ﷺ د شپې عبادت معلوم کړی.

[1] اخرجه الترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب منه (رقم-۳۴۱۶)

# [۴۹/۳۳]بَابُ التَّحْرِيضِ عَلَى قِيَامِ اللَّيْلِ]

### تهجدو دپاره د ترغيب ورکولو بيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه أحد وعشرون حديثاً مشتملة على خمس مسائل:**

① فضيلة القيام لصلاة الليل: ۱، ۲، ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۴، ۱۷، ۱۸، ۲۰.

② الزجر لمن لا يقوم من الليل: ۳، ۱۵.

③ إيقاظ الأهل لصلاة الليل: ۴، ۱۲، ۱۶، ۱۹، ۲۱.

④ إجابة الدعاء في آخر الليل: ۵، ۶، ۱۱، ۱۳، ۱۶.

⑤ وقت القيام من الليل: ۸،۷، ۱۷، ۲۱.

**د باب مقصود:**

د تحريض معنی ده ترغيب او تيزول او دلچسپي پيدا کول، د باب مطلب دا دې چه په دې باب کښې هغه احاديث ذکرکولې شی کوم چه لوستونکی د شپې دتهجدو اوقيام الليل طرف ته راغب کوی.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۱۲۱۹] د صلاة الليل څخه منع کولو دپاره د شيطان چالونه

۱۲۱۹ -()[۱] [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «يَعْقِدُ الشَّيْطَانُ عَلَى قَافِيَةِ رَأْسِ أَحَدِكُمْ إِذَا هُوَ نَامَ ثَلَاثَ عُقَدٍ، [۳] يَضْرِبُ عَلَى كُلِّ عُقْدَةٍ: عَلَيْكَ لَيْلٌ طَوِيْلٌ فَارْقُدْ، [۴] فَإِنِ اسْتَيْقَظَ فَذَكَرَ اللّٰهَ انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ، [۵] فَإِنْ تَوَضَّأَ انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ، [۶] فَإِنْ صَلَّى انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ، [۷] فَأَصْبَحَ نَشِيْطًا طَيِّبَ النَّفْسِ، [۸] وَإِلَّا أَصْبَحَ خَبِيْثَ النَّفْسِ، كَسْلَانَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هر کله چې په تاسو کې څوک (د شپې) اوده کيږي نو شيطان رټل شوې د هغه د سر د شا په حصه (يعني څټ) باندې درې غوټې لګوي [۳] په هره غوټه باندې دا وايي (يعني د هغه په زړه کې دا خبره اچوي) چې اوس لا شپه ډيره باقي ده اوده شه [۴] که يو سړي [د شيطان په دې مکرکې رانشي او] د عبادت الٰهي د پاره بيدار شي او (په زړه يا په ژبې سره) الله ياد کړي نو (د غفلت او د

---

[۱] اخرجه البخارى فى كتاب الجمعه/ باب عقد الشيطان على قافية الرأس إذا لم يصل بالليل (رقم-۱۱۴۲)ومسلم فى كتاب صلاة المسافرين وقصرها/ باب ما روى فيمن نام الليل أجمع حتى أصبح (رقم)۲۰۷ - (۷۷۶) وابوداود فى كتاب الصلاة،باب قيام الليل (رقم-۱۳۰۶) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فى قيام الليل (رقم-۱۳۲۹) ومالک فى الموطا كتاب قصر الصلاة فى السفر ، باب جامع الترغيب فى الصلاة (رقم-۹۵)

سستئ» یوه غوټه خلاصه شی ⑤ بیا چې هغه اودس وکړي نو «د نجاست» دویمه غوټه خلاصه شی ⑥ او د هغې څخه وروسته چې مونځ شروع کړي نو «د سستئ» دریمه غوټه هم خلاصه شی ⑦ نو داسې سړي خوشحاله او پاك نفس سره صبا کوي ⑧ کینې «کوم سړي چې نه بیداریږي او نه اودس کولو سره مونځ کوي نو هغه» سست او پلیت نفس سره صباکوي. «بخاري، مسلم»

**حل اللغات:-** ① يَعْقِدُ: أَيْ: يَشُدُّ: غوټې لګوی شیطان، ② قَافِيَةِ: أَيْ: قَفَاهُ وَمُؤَخِرِهِ: دَ سر کپړنی او شاته حصې ته قافیه وائی. ③ فَارْقُدْ: اوده شه، ④ انْحَلَّتْ: خلاصه شی، اوسپړدې شی غوټه، ⑤ نَشِيطًا: أَيْ: لِلْعِبَادَةِ: يعنی دَ عبادت دَپاره چست شی لکه چه طیب النفس دَدې تفسر دې. ⑥ طَيِّبَ النَّفْسِ: أَيْ: ذَاتَ فَرَحٍ: نفس یعنی روح ئې خوشحاله وی. ⑦ خَبِيثَ النَّفْسِ: أي مَحْزُونَ الْقَلْبِ: زړه ئې خفه او غمجن وی. ⑧ كَسْلَانَ: سست او ناراسته وی.

**تسهیلات:-** **قوله:** يَعْقِدُ الشَّيْطَانُ عَلَى قَافِيَةِ رَأْسِ:

**په او ده کیدونکی باندې شیطانی منتر:** - شیطان په په څټ کښې درې غوټې لګوی دې دَپاره چه دا سړې غافل کیدوسره دَ سحره پورې اوده پاتې شی اودَ شپې مونځ اونه کړې شی. نه دَ سحر دَ مونځ دَپاره پاسیدې شی، په هره یوه غوټه باندې شیطان یو منتر وائی دکوم الفاظ چه دادی: "عليك ليل طويل فارقد" یعنی اوس لا اوږده شپه باقی ده ته بنه کلك اوده شه.

**قوله:** عَلَيْكَ لَيْلٌ طَوِيلٌ فَارْقُدْ:

**د مذکوره جملې ترکیب:** - دَدې جملې په ترکیب کښې ملاعلی قاری رحمه الله مختلف اقوال ذکر کړی دی. آسان ترکیب داسې دې چه "عليك" خبر مقدم دې او "ليل طويل" مبتدا موخر ده عبارت داسې دې: "ليل طويل باق عليك فارقد"

**قوله:** خَبِيثَ النَّفْسِ:

**دشیطان انسان لره په لولو کولو کښې دوه احتمالات:-**

① دا کلام په حقیقت باندې محمول دې او شیطان خبیث واقعةً انسان سره دا لوبې کوی. په دې وجه هرمسلمان له پکار دی چه هغه دې دَ شیطان دَ پنجې نه بچ کیدو دَپاره دَ پنځو وارو مونځونو پابندی اوکړی دې دَ پاره چه هغه دَ الله تعالی په لاس کښې محفوظ پاتې شی.

② دَ شیطان انسان سره دا لوبې کول په حقیقت باندې محمول نه دی بلکه دا یو تشبیهی کلام دې مراد سست کول او دَ عبادت نه غافل کول دی.

## [۱۲۲۰] د نبي عليه السلام د كثرت عبادت غرض

۱۲۲۰-()[۲][۱]وَعَنِ الْمُغِيرَةِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ:[۲]«قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى تَوَرَّمَتْ قَدَمَاهُ،[۳] فَقِيلَ لَهُ: لِمَ تَصْنَعُ هَذَا وَقَدْ غُفِرَ لَكَ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ؟[۴] قَالَ: "أَفَلَا أَكُونُ عَبْدًا شَكُورًا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] مغيره رضي الله عنه وايي[۲] چې رسول الله ﷺ د شپې د لمانځه د پاره دومره قيام وكړو (يعني تر دومره وخت پورې ولاړ وو) چې پښې مباركې يې وپړسيدې[۳] (دې حال لره ليدوسره) حضور ﷺ ته عرض وشو چې تـه دومره زيات عبادت ولې كوې ستا خو ټول مخكيني روستني ګناهونه بخښلي شوي دي؟[۴] حضور ﷺ وفرمايل آيا زه د الله تعالى جل جلاله شكر اداء كونكي بنده جوړ نشم. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:-** ① تَوَرَّمَتْ: أي: انْتَفَخَتْ: اوبه پړسيدلې، ② شَكُورًا: شكر ادا كونكې، شكر ګذار.

**تسهيلات:-** قوله: تَوَرَّمَتْ قَدَمَاهُ:

**د نبي كريم ﷺ په عبادت كښې كوشش:-** يعنى په كثرت سره دَ قيام الليل دَ وجې نه به ئې خپې پړسيدلې. حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها رسول الله ﷺ ته تذكره اوكړه چه تاسو دومره محنت ولې كوئى حالانكه ستاسو واړه او لوئى ګناهونه دَمخكښې نه معاف دى. حضورپا ارشاد اوفرمائيلو چه آيا زه دَ الله تعالى شكريه اداكولو سره دَ هغه شكر كونكې بنده جوړ نه شم؟

**دعابدانو درې قسمونه:-**

حضرت على رضي الله عنه دَ عبادتګذارو درې قسمونه بيان كړى دى:

① كومو خلقو چه دَ جنت دَ نعمتونو خواهش او طلب كښې عبادت اوكړو دادَ سوداګرو عبادت دې.

② كومو خلقو چه دَ دوزخ دَ ويرې نه عبادت اوكړو دا دَ غلامانو والاعبادت دې.

③ اوكومو خلقو چه دَ الله تعالى دَ وركړې شوى نعمتونو دَ شكر اداكولو دَپاره عبادت اوكړو دا دَ آزادو خلقو عبادت دې اوهم دغه عبادت دَ ټولو نه اعلى او افضل دې.

**قوله: وَقَدْ غُفِرَ لَكَ:**

**اشكال:-** حضورپاك ﷺ طرف تـه دَ "ذنب" نسبت څنګه اوكړې شو حضورپاك ﷺ خو معصوم دې؟

[1]) اخرجه البخارى فى كتاب التفسير القرآن/ باب «ليغفر لك الله ما تقدم من ذنبك وما تأخر، ويتم نعمته عليك ويهديك صراطا مستقيما_ [الفتح: ۲](رقم-۴۸۳۶) والنسائى كتاب قيام الليل وتطوع النهار/باب الاختلاف على عائشة فى إحياء الليل (رقم-۱۶۴۴)

**داشكال جوابونه :-**

① دَ حضورپاك ﷺ نه كوم امور خلاف اولى كيږى هغه مراد دى. هغه سره دَدې چه څه گناه نه وى ليكن دَ حضورپاك ﷺ دَ اوچت شان دَ وجې نه هغې ته گناه اوونيلې شوه ځكه چه "حسنات الابرار سيئات المقربين" يوه معروف ضابطه ده.

② دَ دې ذنب نه مراد زلات او لغزشونه دى كوم چه دَ صغائر په درجه كښې وى.

③ دا فرضى كلام دې چه فرض كړه كه چرته گناه هم اوشى نوهغه هم الله تعالى معاف كړې ده.

**[۱۲۲۱] دصلاة الليل دپاره دنه پاسيدلو نقصان**

۲۲-()[۳] ① وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «ذُكِرَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ، ③ فَقِيلَ لَهُ: مَا زَالَ نَائِمًا حَتَّى أَصْبَحَ، مَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ، ④ قَالَ: " ذَلِكَ رَجُلٌ بَالَ الشَّيْطَانُ فِي أُذُنِهِ " أَوْ قَالَ: "فِي أُذُنَيْهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي ② چي (يو څل) د رسول الله ﷺ په مخكې د يو سړي ذكر راغې ③ حضور ﷺ ته اوويل شو چې هغه سړي تر سحر پوري اوده وي د لمانځه د پاره نه پاڅيږي ④ حضور ﷺ وفرمايل هغه داسې سړي دي چې د هغه په غوږ كې يا حضور ﷺ وفرمايل چې د هغه په دواړو غوږونو كې شيطان متيازي كوي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:-** ① بَالَ: متيازې كوى شيطان.

**تسهيلات:-**

**توله:** مَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ:

**د صلاة په مصداق كښې دوه اقوال :-**

①دَ شپې دَ دې عبادت نه مراد دَ تهجد مونځ هم كيدې شى

② دَ سحرمونځ هم كيدې شى يعنى تهجدخو لرې خبره ده دا سړې دَسحردَ مونځ دَپاره هم پانه سيدو. حضورپاك ﷺ اوفرمائيل چه دَدغه سړى په غوږونو كښې ابليس متيازې اوكړې.

**توله:** بَالَ الشَّيْطَانُ فِي أُذُنِهِ:

**د متيازو كولو په مفهوم كښې دوه اقوال :-**

① اوس دا متيازې په حقيقت كښې هم كيدې شى چه واقعى شيطان راځى او په غوږ كښې ورته متيازې كوى

[۱] اخرجه البخارى فى كتاب الجمعة/ باب إذا نام ولم يصل بال الشيطان فى أذنه (رقم-۱۱۴۴) ومسلم فى كتاب صلاة المسافرين وقصرها/ باب ما روى فيمن نام الليل أجمع حتى أصبح (رقم) ۲۰۵ - (۷۷۴)

④ دا يو تشبيهي كلام دې دكوم نه چه مراد دادې چه شيطان دا سړې ذليل او خوارولو سره پريږدې هم دغه دَ شيطان متيازې دى رومبې معنى واضحه ده.

**[۱۲۲۲] دښځو د پاره د تهجد حکول**

۱۲۲۲—(۱)[۳] ۱ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ۲ «اسْتَيْقَظَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً فَزِعًا، يَقُولُ: ۳ " سُبْحَانَ اللّٰهِ! مَاذَا أُنْزِلَ اللَّيْلَةَ مِنَ الْخَزَائِنِ؟ ! ۴ وَمَاذَا أُنْزِلَ مِنَ الْفِتَنِ؟ ۵ مَنْ يُوقِظُ صَوَاحِبَ الْحُجُرَاتِ " - ۶ يُرِيدُ أَزْوَاجَهُ - " لِكَيْ يُصَلِّينَ؟ ۷ رُبَّ كَاسِيَةٍ فِي الدُّنْيَا عَارِيَةٍ فِي الْآخِرَةِ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ۱ ام المؤمنين بي بي ام سلمه رضي الله عنها فرمايي ۲ چې (يو ځل) د شپې رسول الله ﷺ په بيره (ويرې) سره دې ويلو سره بيدار شو ۳ چې سبحان الله نن شپه څومره خزانې راښکته شوې دي ۴ او څومره فتنې نازلې شوې ۵ شته څوك چې د دې حجرو والا راپورته کړي ۶ د حضور ﷺ مراد بيبيانې مبارکې وې چې هغوي راپاڅي او مونځ دې وکړي (چې رحمت الهي حاصل کړي او د عذاب او فتنو څخه بچ شي ځکه) ۷ چې اکثر ښځې په دنيا کې خوکپړې اغستونکې وې ليکن په آخرت کې به برېنډې (لڅې) وي. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① فَزِعًا: أي: خَائِفًا مُضْطَرِبًا: ويريدونكي، پريشان، ② الْخَزَائِن: د خزانة جمع ده، خزانې ته وائي. ③ صَوَاحِبَ الْحُجُرَاتِ: أي أَزْوَاجَهُ الطَّاهِرَاتِ: يعنى د رسول الله ﷺ بيبيانې مبارک، ④ كَاسِيَةٍ: أي نَفْسٌ لَابِسَةٌ: جامې اغوستونكې، ⑤ عَارِيَةٍ: برېنډې به وى (يعنى محرومه به وى د لباس نه).

**تسهيلات:** - **قوله:** عَارِيَةٍ فِي الْآخِرَةِ:

**دعارية په مفهوم کښې دوه اقوال: -**

① ډيرې زياتې ښځې په دنيا کښې به لباس اغوستونکې يادېږى ليکن هغوى دَ آخرت په اعتبارسره برېنډې دى ځکه چه دَهغوى لباس دومره باريك دې چه هغه دَ لباس په حکم کښې نه دې. بهرحال ښځو له پکار دى چه هغوى دَ دنيا دَ فانى ښکلا ګانوپسې لګيدو سره خپل آخرت خراب نه کړى.

② ډيرې زياتې فيشن کونکې ښځې دَ دنيا په عيش اوعشرت کښې قسم قسم لباسونه اغوستونکى وى ليکن په قيامت کښې به دَهغوى حالت داسې وى چه دَ الله تعالى دَ نافرمانۍ دَ وجې نه به هغوى په آخرت کښې دَ نيکو اعمالو او دَ ښه کردار نه خالى وى. دَ برېنډيدو يومطلب خو هم دغه دې چه دَ نيکو اعمالو نه به خالى لاسونه وى.

[1] اخرجه البخارى فى كتاب التهجد/ باب تحريض النبى صلى الله عليه وسلم على صلاة الليل والنوافل من غير إيجاب (رقم-۱۱۲۶)والترمذى كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء ستكون فتن كقطع الليل المظلم (رقم-۲۱۹۶) ومالک فى الموطا كتاب اللباس/باب ما يكره للنساء لبسه من الثياب (رقم-۸)

**[۱۲۲۲] د رحمت الهی د نزول او د قبولیت دعا وخت**

۱۲۲۲-(۱)[۵] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«يَنْزِلُ رَبُّنَا تَبَارَكَ وَتَعَالَى كُلَّ لَيْلَةٍ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا ③ حِينَ يَبْقَى ثُلُثُ اللَّيْلِ الْآخِرُ، يَقُولُ: ④ مَنْ يَدْعُونِي فَأَسْتَجِيبَ لَهُ؟ ⑤ مَنْ يَسْأَلُنِي فَأُعْطِيَهُ؟ ⑥ مَنْ يَسْتَغْفِرُنِي فَأَغْفِرَ لَهُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② زمونږ بزرگ او برتر پروردگار هره شپه د دنیا آسمان (یعني لاندي آسمان) ته رابښکته کیږي (څنګه چې دهغه دشان سره مناسب دي) د شپې د آخري دریمي حصي په وخت کې او فرمایي ④ څوك شته چې زما څخه دعا وغواړي او زه هغه قبوله کړم؟ ⑤ څوك شته چې زما څخه سوال وکړي او زه د هغه سوال (حاجت) پوره کړم ⑥ څوك شته چې زما څخه د مغفرت طلبګارشی او زه هغه وبخښم (بخاري، مسلم)

① وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: ② "«ثُمَّ يَبْسُطُ يَدَيْهِ وَيَقُولُ ③ مَنْ يُقْرِضُ غَيْرَ عَدُومٍ وَلَا ظَلُومٍ؟ ④ حَتَّى يَنْفَجِرَ الْفَجْرُ»".

**ترجمه:** ① او د مسلم په یو روایت کې دا الفاظ هم دي ② چې بیا الله جل شانه (بلاکیف) خپل دواړه لاسونه وغوړوي او فرمایي ③ چې څوك شته چې داسې چا ته قرض ورکړي چې نه فقیر دي او نه ظلم کونکي دي ④ او تر سحر پورې دغسې فرمایي.

**حل اللغات:-** ① يَبْسُطُ: أَيْ: لُطْفَهُ وَرَحْمَتَهُ: خوروی (د لاسونو خورولو نه مراد لطف او رحمت دالله تعالی دي) ② غَيْرَ عَدُومٍ: یعنی داسې رب ته قرض ورکړئی چه نه فقیر دي اونه عاجز دي ③ لَا ظَلُومٍ: نه دَ چا په حق باندي ظلم کونکي دي. او نه دَ چا حق کمونکي دي. ④ يَنْفَجِرَ الْفَجْرُ: أَيْ: يَظْهَرُ الصُّبْحُ: چه صبا راڅیجي.

**تسهیلات:-**

**قوله:** يَنْزِلُ رَبُّنَا تَبَارَكَ وَتَعَالَى:

**د نزول الرب په مفهوم کښې دری اقوال:-**

① داالفاظ دَ متشابهات دَ قبیل نه دی دَدې آسان مفهوم دادې چه "مايليق بشانه" یعنی دَ الله تعالی دَ شان لائق اومناسب چه څنګه راکوزیږی هم په هغه شان سره الله تعالی راکوزیږی. یعنی دَمتقدمینو په نیز دَ دنیا په آسمان دا نزول یوصفت بلاکیف دي. څنګه هم چه وی زمونږ په دې باندې ایمان دي.

② دا تاویل هم شوي دي چه دَ الله تعالی رحمت راکوزیږی. بهر حال دا تاویل دي او تاویل

[1]) اخرجه مسلم كتاب صلاة/باب الترغيب في الدعاء والذكر في آخر الليل، والإجابة فيه (رقم ) ١٦٨ - (٧٥٨) والترمذي كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في نزول الرب تبارك وتعالى إلى السماء الدنيا كل ليلة (رقم-٤٤٦) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء في أي ساعات الليل أفضل (رقم-١٣٦٦) والدارمي كتاب الصلاة/باب ينزل الله إلى السماء الدنيا

هم تاويل وى. يعنى متأخرينو مضاف مقدر منلې دې اوداسې تاويل ئې كړې دې چه "ينزل رحمة ربنا ويقول بواسطة الملك"

④ متحققين علماء دا نزول دَ "تدلى" په معنى كښې اخلى يعنى چه په مخلوق كښې يو څيز دَ الله تعالى دَ رحمت مظهرجوړشى.

**قوله: غَيْرَعَدُومٍ:**

**د غير عدوم مطلب:**- مطلب دا شو چه كوم سړې په دنيا كښې څه نيك عمل او ښيګړه كوى نو الله تعالى عادل او غنى دې هغه به په آخرت كښې دغه بنده ته كامل او مكمل اجر او ثواب وركوى.

**[۱۲۲٤] په هره شپه كښې د قبوليت ساعت**

۱۲۲۴-()[۶] ⓵ وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ⓶ "«إِنَّ فِي اللَّيْلِ لَسَاعَةً، لَا يُوَافِقُهَا رَجُلٌ مُسْلِمٌ، ⓷ يَسْأَلُ اللَّهَ فِيهَا خَيْرًا مِنْ أَمْرِ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ إِلَّا أَعْطَاهُ إِيَّاهُ، ⓸ وَذَلِكَ كُلَّ لَيْلَةٍ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ⓵ حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي ⓶ چې په هره شپه كې يو ساعت داسې راځي چې كوم مسلمان هغه ومومي ⓷ او په هغې كې د الله جل شانه څخه د دنيا يا آخرت د خير سوال وكړي نو الله تعالى جل جلاله هغه (ضرور) پوره كوي ⓸ او (د قبوليت) دا ساعت په هره شپه كې راځي. (مسلم)

**تسهيلات:**-

**قوله:** إِنَّ فِي اللَّيْلِ لَسَاعَةً:

**د قبوليت د وخت جهالت:**- دا ګهړئى غيرمعين ده دې دَپاره چه هرمسلمان دَ پوره شپې قدر اوكړى. "هرشب شب قدراست اگر قدرى دانى" بعض علماؤ دَ نيمې شپې وخت دَدعادَقبليدو وخت خودلې دې رومبې وجه زياته بهتر ده چه ساعة الجمعة او ليلة القدر په شان دا ګهړئى او ساعت هم پټ ساتلې شوې دې.

**[۱۲۲۵] د حضرت داؤد عليه السلام مونځ او روژې**

۱۲۲۵-()[۷] ⓵ وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ⓶ «أَحَبُّ الصَّلَاةِ إِلَى اللَّهِ صَلَاةُ دَاوُدَ، ⓷ وَأَحَبُّ الصِّيَامِ إِلَى اللَّهِ صِيَامُ دَاوُدَ: ⓸ كَانَ يَنَامُ نِصْفَ اللَّيْلِ وَيَقُومُ ثُلُثَهُ، ⓹ وَيَنَامُ سُدُسَهُ، ⓺ وَيَصُومُ يَوْمًا، وَيُفْطِرُ يَوْمًا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[۱] اخرجه مسلم كتاب صلاة/باب فى الليل ساعة مستجاب فيها الدعاء(رقم) ۱۶۶ - (۷۵۷)

[۲] اخرجه البخارى كتاب الجمعة/باب من نام عند السحر (رقم-۱۱۳۱) والنسائى كتاب قيام الليل وتطوع النهار/باب ذكر صلاة نبى الله داود عليه السلام بالليل (رقم-۱۶۳۰)وابن ماجة كتاب الصيام/باب ما جاء فى صيام داود عليه السلام (رقم-۱۷۱۲)

**ترجمه:** ۱ عبدالله ابن عمرو رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ الله تعالی ته په ټولو لمونځونو کې د حضرت داؤد علیه السلام مونځ زيات خوښ دي ۳ او په ټولو روژو کې د حضرت داؤد علیه السلام روژه زياته خوښه وه ۴ (د هغه د لمانځه به دا کيفيت وو چې) هغه به نيمه شپه اوده کيدلو او دريمه برخه د شپې به يې قيام کولو (يعني مونځ به يې کولو) ۵ بيا به د شپې په شپږمه حصه کې اوده کيدو ۶ او هغه به (روژه داسې نيوله چې) يوه ورځ به يې روژه کوله او يوه ورځ به يې افطار کولو. (بخاري، مسلم)

**تسهيلات:** -

**قوله:** أَحَبُّ الصَّلَاةِ إِلَى اللهِ:

**دحضرت داؤد عليه السلام د روژې او مونځ معمول:** - يعنی دَ حضرت داؤد علیه السلام مونځ او روژې دَالله تعالى په نيز دَمحبوب ترين اعمالو نه وې. په دې وجه هر مسلمان دې هم دغه طريقه خپله کړی هغه آسانه طريقه دا وه چه هغوی به يوه ورځ روژه ساتله او يوه ورځ به ئې کوژه کوله. او په مونځ کښې دا طريقه وه چه دَ نيمې شپې پورې به اوده کيدلو او بيا به ئې دَ دريمې حصې پور مونځ کولو او بيا به په آخری شپږمه حصه کښې اوده کيدلو. دغه شان به بدنی تکليف کم وو اوعبادت به زيات وو.

**[۱۲۲٦] د شپې په عبادت کښې د نبی عليه السلام معمول (طريقه)**

۱۲۲۲—(۱)[۸] ۱ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ۲ «كَانَ - تَعْنِي رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَنَامُ أَوَّلَ اللَّيْلِ، وَيُحْيِي آخِرَهُ، ۳ ثُمَّ إِنْ كَانَتْ لَهُ حَاجَةٌ إِلَى أَهْلِهِ قَضَى حَاجَتَهُ ثُمَّ يَنَامُ، ۴ فَإِنْ كَانَ عِنْدَ النِّدَاءِ الْأَوَّلِ جُنُبًا، ۵ وَثَبَ فَأَفَاضَ عَلَيْهِ الْمَاءَ، ٦ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ جُنُبًا تَوَضَّأَ لِلصَّلَاةِ، ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ ام المؤمنين بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي ۲ چې حضور ﷺ به شپه داسې تيروله چې د شپې په ابتدايي حصه کې به اوده وو او د شپې په آخري حصه کې به يې شوګيره کوله (يعني بيدار به وو او عبادت به يې کولو) ۳ بيا که حضور ﷺ ته به د خپلې بي بي سره (د هم بسترې) ضرورت وو، نو خپل ضرورت به يې پوره کړو او اوده به شو ۴ بيا که حضور ﷺ به د سحر (د اولنې) اذان په وخت د ناپاکې په حالت کې وو ۵ نو ولاړ به شو غسل به يې کړو ٦ او که د ناپاکې په حالت کې به نه وو نو د لمانځه د پاره به يې اودس کړو بيا به يې د سحر دوه رکعاته سنت کول. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ۱ يُحْيِي آخِرَهُ: شپې روڼولو ته شپه ژوندی کول ونيلی شوی دی. ۲ حَاجَةٌ: دې نه

---

[1] اخرجه البخاری كتاب الجمعة /باب من نام أول الليل وأحيا آخره (رقم-١١٤٦) ومسلم كتاب صلاة/باب صلاة الليل، وعدد ركعات النبى صلى الله عليه وسلم فى الليل، وأن الوتر ركعة، وأن الركعة صلاة صحيحة(رقم) ١٢٩ - (٧٣٩) والنسائى كتاب قيام الليل وتطوع النهار /باب الاختلاف على عائشة فى إحياء الليل (رقم-١٦٤٠) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فى أي ساعات الليل أفضل (رقم-١٣٦٥)

جماع مراد ده. ③النِّدَاءِ الأَوَّلِ: د نداء اول نه مراد اذان دي او د نداء ثانی نه مراد اقامت دي. ④وَثَبَ :أَيْ: قَامَ بِسُرْعَةٍ: وَثب اصل کښې توپ وهلو ته وائی دلته دَ غسل دَ پاره په تادئی سره پاسیدل مراد دی. ⑤فَأَفَاضَ :أَيْ: اغْتَسَلَ: اوبه راړولو نه مراد غسل کول دی.

**تسهیلات:-**

**نوټ:** د ترجمې څخه مطلب واضح دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۱۲۲۷] د تهجدو د مانځه کولو تاکید او فضیلت

۱۲۲۷-(')[۹] ① عَنْ أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«عَلَيْكُمْ بِقِيَامِ اللَّيْلِ، ③ فَإِنَّهُ دَأْبُ الصَّالِحِينَ قَبْلَكُمْ، ④ وَهُوَ قُرْبَةٌ لَكُمْ إِلَى رَبِّكُمْ، ⑤ وَمَكْفَرَةٌ لِلسَّيِّئَاتِ، ⑥ وَمَنْهَاةٌ عَنِ الْإِثْمِ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

**ترجمه:** ① ابو امامه رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② قیام لیل (یعني د تهجد مونځ کول) ضروري وګڼئ ③ څکه چې (اول خو) دا طریقه ستاسو څخه د مخکې نیکانو خلقو ده ④ بیا دا چې قیام لیل ستاسو د پاره د پروردګار د نزدیکت ذریعه ده ⑤ او د ګناهونو د لرې کیدو سبب دي ⑥ او دا تاسو لره د ګناهونو څخه منع کونکي دي. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① دَأْبُ الصَّالِحِينَ :أَيْ: عَادَتُهُمْ: دأب طریقې او عادت ته وائی یعنی د نیکانو خلقو طریقه ده. ② مَكْفَرَةٌ: أَيْ: سَاتِرَةٌ لِلذُّنُوبِ وَمَاحِيَةٌ لِلْعُيُوبِ: دګناهونو ختمونکې او لرې کونکې، ③ مَنْهَاةٌ: منع کونکې.

**تسهیلات:-**

**قوله:** فَإِنَّهُ دَأْبُ الصَّالِحِينَ قَبْلَكُمْ:

**دنیکو خلقو نښه:-** ددې نه مراد د سابقه نبیانو او اولیاء کرامو طریقه چې هغوی به د شپې تهجد کولو. نوځکه نبی علیه السلام خپل امت ته ئې ترغیب ورکوی چې تاسولره پکار دی چې په طریق اولی داسې عادت خپل کړئ.

### [۱۲۲۸] د تهجد د مانځه کونکو خوش بختي

۱۲۲۸-(')[۱۰] ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ② «ثَلَاثَةٌ يَضْحَكُ اللَّهُ إِلَيْهِمْ: ③ الرَّجُلُ إِذَا قَامَ بِاللَّيْلِ يُصَلِّي، ④ وَالْقَوْمُ إِذَا صَفُّوا فِي الصَّلَاةِ، ⑤ وَالْقَوْمُ إِذَا صَفُّوا فِي قِتَالِ الْعَدُوِّ» ". رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

---

[1] اخرجه الترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۵٤۹)

[2] اخرجه ابن ماجة فی باب فیما أنكرت الجهمية (رقم-۲۰۰)

**ترجمه:**[۱] ابو سعید خدري رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] دري قسمه خلق داسې دي چې د هغوی طرف ته (کتلو سره) الله تعالی جل جلاله خاندي (یعني د هغوی څخه بې حده خوشحاله لیږي او د هغوی طرف ته د خپل رحمت او عنایت نظر کوي)[۳] ① یو هغه سړي چې د شپې د تهجد د لمانځه د پاره ودرېږي[۴] ② دویم هغه خلق چې د لمانځه کولو د پاره خپل صفونه درست کوي[۵] ③ دریم هغه خلق چې د دښمنانو سره د جنګ کولو د پاره (یعني د جهاد په وخت) صف بندي کوي. (شرح السنه)

**حل اللغات:**- ① يَضْحَكُ اللهُ: أَيْ: يَرْضَى عَنْهُمْ: الله تعالی جل جلاله خاندي (یعني د هغوی څخه بې حده خوشحالیږي او د هغوی طرف ته د خپل رحمت او عنایت نظر لري).

**تسهیلات:**-

**قوله:** ثَلَاثَةٌ يَضْحَكُ اللهُ إِلَيْهِمْ:

**د ثلاثة مصداق:**- امام طیبی رحمة الله علیه فرمائی چې ددې نه درې کسان مراد دی.

① هغه کس کوم چې د شپې قیام کوی ، ددې څخه معلومه شوه چې تهجد خانله او فرائض په جمعي سره کول پکار دی.

② هغه کس کوم چې په مونځ کښې صفونه جوړوی او ددې اهتمام کوی.

③ هغه قوم کوم چې جهاد او قتال دپاره صف بندی کوی.

## [۱۲۲۹] په آخري شپې کښې د ذکر فضیلت

۱۲۲۹-(')[۱۱][۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«أَقْرَبُ مَا يَكُونُ الرَّبُّ مِنَ الْعَبْدِ فِي جَوْفِ اللَّيْلِ الْآخِرِ، [۳] فَإِنِ اسْتَطَعْتَ أَنْ تَكُونَ مِمَّنْ يَذْكُرُ اللهَ فِي تِلْكَ السَّاعَةِ، فَكُنْ» ". [۴] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ إِسْنَادًا.

**ترجمه:**[۱] عمرو بن عبسه رضي الله عنه راوي دي چې حضور ﷺ وفرمایل[۲] پروردګار خپل بنده ته د ټولو څخه زیات نزدې د شپې په آخري حصه کې وي[۳] که تاسو هم په دې وخت کې د الله تعالی جل جلاله په ذکر کونکو کې کیدي شئ نو ضرور شئ [یعني د دې خبري کوشش کوئ چې تاسو هم په هغه خوش نصیبه مسلمانانو کې شمیر شئ چې په دې وخت کې د خپل پروردګار په ذکر کې مشغول وي او د سعادت او خوش بختي خزاني په خپله لمن کې راغونډولو سره د پروردګار رضا حاصلوي] [۴] امام ترمذي دا روایت نقل کړي دي او ویلې یې دی چې دا حدیث حسن صحیح دي او د سند د وجهی غریب دي.

**حل اللغات:**- ① جَوْفِ اللَّيْلِ الْآخِرِ: دشپې آخری حصه، ② اسْتَطَعْتَ: أَيْ: قَدَرْتَ وَوُفِّقْتَ: چه ستا وَس او طاقت وی. ③ فَكُنْ: أَيْ: اجْتَهِدْ: یعنی کوشش او کړه چه ته هم دهغوی نه شې.

[1] اخرجه الترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۵۷۹)

**تسهيلات:-**

**قوله:وَعَنْ عَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ:**

**دعمروبن عبسه د اسلام قبلولو واقعه:**-حضرت عمرو بن عبسه رضى الله عنه هغه شخصيت دې چا چې په څلورم نمبر اسلام قبول کړې وو.دهغوئ د اسلام قبلولو واقعه مشهوره ده.هرکله چې دې په شرك او کفر کښې تنګ شو نو دوئ ته معلومه شوه چې په په مکه معظمه کښې يو کس د نبوت دعوى کړې ده .حضرت عبسه رضى الله عنه کور نه رااوتلو او مکې ته راغلو.هلته ئې خلقو نه تپوسونه اوکړل چې نبى کريم ﷺ به کوم ځائې کښې وى.خلقو ورته اووئيل چې نبى کريم ﷺ به حرم کښې وى.عمرو بن عبسه رضى الله عنه د شپې حرم ته راغلو او تياره کښې ئې نبى کريم ﷺ اوليدو، د نبى کريم ﷺ نورانى مخ مبارك ئې اوليدو ،کله چې دوئ تيارې نه رابهر شو نو نبى کريم ﷺ نه ئې تپوس اوکړو چې ته څوك ئې او دين څه څيز دې؟ نبى کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چې زه د الله تعالى نبى يم او زما دين اسلام دې.دې ډير خوشحاله شو او اسلام کښې داخل شو.

**قوله:أَقْرَبُ مَا يَكُونُ الرَّبُّ مِنَ الْعَبْدِ:**

**د تعارض اشكال:-** ددې ماقبل حديث نه معلوميږى چې سجدې سره دالله تعالى قرب حاصليږى.او دې حديث پاك نه معلوميږى چې د شپې په آخرى حصه کښې دالله تعالى قرب حاصليږى؟

**د اشكال جواب:-** دې حديث کښې قربت اوقات مراددى اود سجدې څخه قربت احوال مراد دى.لهذا کله چې يو کس د شپې په آخرى حصه کښې سجده کوى نو هغه ته به د وخت تقرب هم حاصل شى او د حال تقرب هم.نو په دې کښې هيڅ تعارض نشته

**[۱۲۳۰]ښځه او خاوند دواړه دې په عبادت کښې د يو بل مدد کوي**

۱۲۳۰-()[۱۲][۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:[۲] "«رَحِمَ اللّٰهُ رَجُلًا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ فَصَلَّى،[۳] وَأَيْقَظَ امْرَأَتَهُ فَصَلَّتْ،[۴] فَإِنْ أَبَتْ نَضَحَ فِي وَجْهِهَا الْمَاءَ.[۵] رَحِمَ اللّٰهُ امْرَأَةً قَامَتْ مِنَ اللَّيْلِ فَصَلَّتْ[۶] وَأَيْقَظَتْ زَوْجَهَا فَصَلَّى،[۷] فَإِنْ أَبَى نَضَحَتْ فِي وَجْهِهِ الْمَاءَ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:**[۱] ابوهريره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] الله تعالى جل جلاله دي په هغه سړي خپل رحمت نازل کړي چې د شپې خپله هم (د تهجد) مونځ وکړي[۳] او خپله بي بي هم بيداره کړي چې هغه هم مونځ وکړي[۴] او که بي بي (د خوب د غلبې او سستي په

[1]) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة/كتاب الصلاة،باب الحث على قيام الليل (رقم-۱٤۵۰) والنسائى كتاب قيام الليل وتطوع النهار/باب الترغيب فى قيام الليل (رقم-۱۶۱۰) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فيمن أيقظ أهله من الليل (رقم-۱۳۳۶)

وجه) بيداره نشي (نو د هغې د خوب د ختمولو د پاره) د هغې په مخ د اوبو څاڅکي وکړي ⑤او الله تعالى ﷻ دې په هغه ښځه خپل رحمت نازل کړي چې د شپې پاڅي خپله هم د تهجد مونځ وکړي ⑥او خپل خاوند هم پاڅوي چې هغه هم مونځ وکړي ⑦او كه خاوند (د خوب د غلبې او سستې په وجه) بيدار نشي نو د هغه په مخ د اوبو څاڅکي وکړي (چې راپاڅي او د تهجد مونځ وکړي). (ابوداؤد، نسايي)

**حل اللغات:**- ① أَيْقَظَ: بيداره کړي، ② أَبَتْ: أي: امْتَنَعَتْ: انکار اوکړي (دخوب د غلبې په وجه يا د سستۍ په وجه). ③ نَضَحَ: أي: رَشَّ: اودې شيندی، چړکاؤ دې کړی.

**تسهيلات:**-

**قوله: نَضَحَ فِي وَجْهِهَا الْمَاءَ:**

**يوبل ته د عبادت عملي دعوت ورکول:**-دَ څاڅکو اچولو په معنى کښې دې يعنى څنګه چه ښځه اوخاوند دَ ژوند په نورو شعبو کښې دَ يوبل وفادار او خيرخوا جوړيدو سره امداد کوی هغوی له پکار دی چه هغوی دې دَالله تعالى په عباداتو کښې هم دَ يوبل امداد اوکړی اودَ خوب نه دَ پاسولو هرممکن کوشش اوکړی. دا تعليم دَ مدارسو دَ طلباء دَپاره هم فائده مند او کارآمد دې بل په مختلفو سفرونو کښې چه کوم ملګری وی دَهغوی دَپاره هم ډير مفيد تعليم دې.

**[۱۲۳۱] د دعا د قبليدو وخت**

۱۲۳۱-()[۱۳] ① وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «قِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! أَيُّ الدُّعَاءِ أَسْمَعُ؟ ③ قَالَ: "جَوْفُ اللَّيْلِ الْآخِرِ، ④ وَدُبُرُ الصَّلَوَاتِ الْمَكْتُوبَاتِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① ابو امامه رضي الله عنه فرمايي ② چې (يو څل) د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وشوه چې يا رسول الله ﷺ کوم وخت دعا ډيره زياته قبليږي؟ ③ حضور ﷺ ورته وفرمايل د شپې د آخري حصې په مينځ کې ④ او د فرض لمونځونو څخه وروسته. (ترمذي)

**حل اللغات:**- ① أَسْمَعُ: أي: أَقْرَبُ إِلَى أَنْ يَسْمَعَهُ اللَّهُ: ډيره زياته اوريدونکې (يعنى چه دقبوليت اميد ئې زيات وی)، ② دُبُرُ: أي: عَقِبَهَا وَخَلْفَهَا: يعنى روستو (دمونځونو نه).

**تسهيلات:**-

**قوله: قَالَ: "جَوْفُ اللَّيْلِ الْآخِرِ:**

**ددعا د قبليدو دوه وختونه:**-ددعا د قبليدو ئې دوه وختونه ذکر کړل. د شپې په آخرى شپه کښې دعا قبليږی. او فرض مونځ نه پس دعا قبليږی. ليکن دشرائطو خيال ساتل پکار دی او دعا بدعت جوړل نه دی پکار. بلکه دعا مسنون طريقې سره کول پکار دی.

(¹) اخرجه الترمذي في كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم- ۳۴۹۹)

## [۱۲۳۲] داعمال صالحه ګونګو د پاره زيری

۱۲۳۲—()[۱۳] [۱] وَعَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ رِضَى اللّٰهِ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «إِنَّ فِي الْجَنَّةِ غُرَفًا، [۳] يُرَى ظَاهِرُهَا مِنْ بَاطِنِهَا، [۴] وَبَاطِنُهَا مِنْ ظَاهِرِهَا [۵] أَعَدَّهَا اللّٰهُ لِمَنْ أَلَانَ الْكَلَامَ، [۶] وَأَطْعَمَ الطَّعَامَ، [۷] وَتَابَعَ الصِّيَامَ، [۸] وَصَلَّى بِاللَّيْلِ وَالنَّاسُ نِيَامٌ» ". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** [۱] ابو مالك اشعري ﷺ روايت كوي چه حضور ﷺ وفرمايل [۲] په جنت كې داسې بالاخاني دي [۳] چې د هغې د بهر څيزونه دننه ښكاري [۴] او د دننه څيزونه د بهر څخه ښكاره كيږي [۵] او دا بالاخاني الله تعالى ﷻ د هغه خلقو د پاره تياري كړي دي چې د خلقو سره په نرمي سره خبري كوي [۶] (په غريبو) خلقو باندي طعام خوروي [۷] پرله پسي نفل روژي نيسي [۸] او د شپې په داسې وخت (د تهجد) مونځ كوي چې اكثر خلق اوده وي، دا روايت بيهقي په شعب الايمان كې نقل كړې دي

**حل اللغات:**- ① غُرَفًا: أَيْ: عَلَالِيَ: بالاخاني، ② أَلَانَ: أَيْ: أَطَابَ: دَنرمولو په معنى كښې دي مراد ترې په ښه اخلاقو سره پيش كيدل دى، او خوږې پستې پستې خبري كول دى. ③ تَابَعَ الصِّيَامَ: أَيْ: أَكْثَرَهُ: پرله پسې يعنى ډيرې روژې نيسى.

**تسهيلات:**- قوله: لِمَنْ أَلَانَ الْكَلَامَ:

### دڅلورو اعمالو سره په جنت كښې محل جوړيدل :-

① يعنى نرمې خبرې اترې دې كوی،

② غريبانانو باندې دې خوراك كوی،

③ مسلسل دې روژې ساتى

④ دَخلقو دَ اوده كيدو په وخت دې دَ شپې تهجد كوی

يعنى داسې اخلاق ساتونكو ته به داسې قسم جنت ملاويږى. په دې حديث كښې دَ نيكو اعمالو په ښه كول شوى دى.

## [۱۲۳۳] په بل روايت كې د الفاظو اختلاف

۱۲۳۳—()[۰] [۱] وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ عَنْ عَلِيٍّ نَحْوَهُ، [۲] وَفِي رِوَايَتِهِ: ". «لِمَنْ أَطَابَ الْكَلَامَ»".

**ترجمه:** [۱] او ترمذي هم دغسې روايت د حضرت علي ؓ څخه نقل كړي دي [۲] خو د هغه په روايت كې د (لمن الان الكلام) په ځاي د (لمن اطاب الكلام) الفاظ دي (او د دواړو معني يوه ده.)

**حل اللغات:**- ① أَطَابَ الْكَلَامَ: دَ اطاب او الان يو معنى ده، دا هم د نرمولو په معنى كښې دي مراد ترې په ښه اخلاقو سره پيش كيدل دى، او خوږې پستې پستې خبرې كول دى.

**نوټ:**- د ترجمې څخه د حديث مطلب واضح دې.

---

[۱] اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۳۸۹۲ واحمد فى المسند رقم الحديث ۵/ ۳۴۲

[۲] اخرجه الترمذى فى كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى قول المعروف (رقم-۱۹۸۴)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۱۲۲٤] د تهجد د مانځه د پرېښولو ممانعت

۱۲۲۴ - (۱) [۱۵] ① عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ② «قَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا عَبْدَ اللّٰهِ لَا تَكُنْ مِثْلَ فُلَانٍ، ③ كَانَ يَقُومُ مِنَ اللَّيْلِ فَتَرَكَ قِيَامَ اللَّيْلِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① عبد الله بن عمرو بن عاص رضي الله عنهما فرمايي ② چې رسول الله ﷺ (يو ورځ) ماته وفرمايل (چې ګوره) عبد الله د فلاني سړي په شان مه جوړيږه ③ چې د شپې به يې قيام کولو (يعني د تهجد مونځ به يې کولو) بيا وروسته يې د شپې قيام پرېښودو. (بخاري، مسلم)

**تسهيلات:** -

**دنفلي عبادت شروع کولو څخه روسته د هغې د پرېښودلو حکم:** - دَصحابه کرامو په دورکښې به څوك سړي وی چه اول تهجد ګذاروو بيا هغه تهجد پرېښودل. په دې باندې حضورپاك ﷺ حضرت عمر بن العاص رضي الله عنه ته اوفرمائيل چه ته دَ دغه سړی په شان مه جوړيږه چه اول به ئې تهجد کول په جنت کښې اوچتې درجې ګټلې ليکن بيا هغه تهجد پرېښودل او دَ اوچتوالی نه راغلو راپرېوتلو ته داسې مه کوه.

## [۱۲۲۵] د حضرت داؤد عليه السلام خپل اهل د تهجد د پاره راپيدارول

۱۲۲۵ - (۲) [۱۶] ① وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ② " «كَانَ لِدَاوُدَ - عَلَيْهِ السَّلَامُ - مِنَ اللَّيْلِ سَاعَةٌ يُوقِظُ فِيهَا أَهْلَهُ ③ يَقُولُ: يَا آلَ دَاوُدَ قُومُوا فَصَلُّوا، ④ فَإِنَّ هَذِهِ سَاعَةٌ يَسْتَجِيبُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ فِيهَا الدُّعَاءَ ⑤ إِلَّا لِسَاحِرٍ أَوْ عَشَّارٍ» : رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ① عثمان بن ابي العاص رضي الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي ② چې د حضرت داؤد عليه السلام د پاره د شپې په آخري حصه کې يو وخت مقرر وو چې په هغې کې به يې خپل کور والا ويښول ③ او فرمايل به يې اي ال داؤد پاځئ او مونځ وکړئ ④ ځکه چې دا داسې وخت دي چې په دي کې الله بزرګ وبرتر دعا قبلوي ⑤ سوا د جادوګر او عشار د دعا څخه (يعني د دې دوارو دعا دا وخت هم نه قبليږي). (احمد)

**حل اللغات:** - ① سَاحِرٍ: جادوګر (چه دا د الله تعالى مخالفت کوی). ② عَشَّارٍ: أَيْ: آخِذِ الْعُشْرِ وَهُوَ الْمَكَّاسُ: عُشر او محصول (ټيکس، چونګي) وصولونکي.

**تسهيلات:** - **قوله:** إِلَّا لِسَاحِرٍ:

---

(۱) اخرجه البخاري كتاب الجمعة /باب ما يكره من ترك قيام الليل لمن كان يقومه (رقم-۱۱۵۲) والنسائي كتاب قيام الليل وتطوع النهار /باب ذم من ترك قيام الليل (رقم-۱۷۶۳) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها /باب ما جاء في قيام الليل (رقم-۱۳۳۱)

(۲) اخرجه احمد في المسند ٤/ ۲۲

**دجادوګرد دعا نه قبلیدل:-**

ساحرجادوګرته وائی داهم ډیر بدبخت دي لهذا دي هم دَدې قابل نه دي چه دَ ده مغفرت اوشي بلکه په دغه میاشت دَ رمضان او دَ دعادَ قبلیدو په مبارك ساعت کښې هغه دَخپل ځان دَپاره ښه دعاګانې اوغوښتلې مګر هغه قبولې نه دی بلکه مردود شوې.

**توله:** عَشَّارٍ:

**دعشار څخه مراد:-** دوی په ناجائزطریقه سره خلق تنګه وی اوتکلیف وررسوی او په ظلم سره دَهغوی نه مال اخلی. "عشار" چونکه په عمومی توګه باندې دَ عشر په حصول باندې مقرر وی چه دَ مال لسمه حصه وی په دې وجه هغه ته عشار اووئیلې شو. سره دَدې چه هغه عشر نه اخلی بلکه که دَ دې نه کم یا زیات هم اخلی.

**[۱۲۳۶] دتهجد دمانځه فضیلت**

۱۲۳٦-(۱)[۱۷] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ② "«أَفْضَلُ الصَّلَاةِ بَعْدَ الْمَفْرُوضَةِ صَلَاةٌ فِي جَوْفِ اللَّيْلِ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ① ابوهریره رضی الله عنه فرمايي چې ما د نبي کريم ﷺ څخه اوريدلي دي② چې د فرض لمونځونو څخه وروسته د ټولو څخه افضل مونځ د شپې (يعني د تهجد) مونځ دي. (احمد)

**تسهيلات:-**

**توله:** أَفْضَلُ الصَّلَاةِ بَعْدَ الْمَفْرُوضَةِ:

**د سنن رواتب اوتهجدو په افضيلت کښې دوه اقوال:-**

① دَ بعض علماؤخیال دې چه سنن رواتب نه تهجد غوره دی

② دبعضو خیال دې چه سنن رواتب غوره دی.

**شيخ جنيد بغدادی او د تهجدو فضيلت:-** دَ حضرت جنید بغدادی رحمه الله نه چادَ هغه دَ وفات نه پس په خوب کښې پوښتنه اوکړه چه پروردګار درسره څه معامله اوکړه؟ هغه جواب ورکړو "طاحت العبادات وفنيت الاشارات ومانفعنا الاركعات صلينهافی جوب الليل" یعنی ټول عبادات بې ځايه لاړل اودَ تصوف ټولې اشارې بې فائدې شوې ماته صرف هغه يوڅو رکعاتو فائده راؤرسوله چه ما دَ شپې په مينځ کښې کړې وو.

**[۱۲۳۷] تهجد دګناهونو څخه منع کونکې**

۱۲۳۷-(۲)[۱۸] ① وَعَنْهُ، قَالَ: «جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: ② إِنَّ فُلَانًا يُصَلِّي اللَّيْلَ، فَإِذَا أَصْبَحَ سَرَقَ، ③ فَقَالَ: "إِنَّهُ سَيَنْهَاهُ مَا تَقُولُ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ. وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

---

[1] اخرجه مسلم کتاب الصيام/باب فضل صوم المحرم (رقم-۲۰۲ - (۱۱۶۳) وابوداود کتاب الصوم/باب فی صوم المحرم (رقم-۲٤۲۹)

[2] اخرجه احمد فی المسند ٤٤٧/۲ والبیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۳۲٦۱

**ترجمه:**[۱] ابوهریره رضی الله عنه فرمایي چې یو سړي د حضور ﷺ په خدمت کې حاضرشو او عرض یي وکړو[۲] چې (یا رسول الله ﷺ) فلانې سړي د شپې مونځ کوي خو سحر چې راپاڅي نو غلا کوي [۳] رسول الله ﷺ ورته وفرمایل ډیر نزدې به د هغه مونځ هغه د دې شي څخه منع کړي کوم چې ته وایې. (احمد، بیهقي)

**حل اللغات:**- ① سَرَقَ: غلا کوی، ② سَيَنْهَاهُ: زر ده چه منع به ئې کړی دا مونځ ددغه غلا نه.

**تسهیلات:**-

**د فواحشو څخه منع کول:**- دَ مانځه خاصیت دادې چه انسان دَ بې حیائۍ او بدئی نه منع کوی. هسې هم چه ترکومې انسان په مانځه کښې ولاړوی اوغلط حرکتونه نه کوی نودَ مونځ په حالت کښې چه داسړې ترکومې په مانځه کښې دې دَهرقسم بدئی نه په امن او محفوظ دې.

**[۱۲۳۸] دخپل کوروالا دتهجدو دپاره راپیداروِل**

۱۲۳۸—()[۱۹][۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲]«إِذَا أَيْقَظَ الرَّجُلُ أَهْلَهُ مِنَ اللَّيْلِ، [۳] فَصَلَّيَا أَوْ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ جَمِيعًا، [۴] كُتِبَا فِي الذَّاكِرِينَ وَالذَّاكِرَاتِ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:**[۱] ابو سعید خدري او ابوهریره رضی الله عنهما (دواړه) روایت کوي چې حضور ﷺ وفرمایل[۲] که یو سړي د شپې خپله بي بي وینبه کړي [۳] او هغه دواړه مونځ وکړي یا دا یي وفرمایل چې که په هغوئ کې هر یو دوه رکعاته وکړي [۴] نو هغه دواړه د ذکر کونکو سړو او ذکر کونکو ښځو په ډله کې لیکل کیږي. (ابوداؤد، ابن ماجه)

**تسهیلات:**- **قوله: إِذَا أَيْقَظَ الرَّجُلُ أَهْلَهُ:**

**داهل په مصداق کښې دوه اقوال:**-

① د اهل لفظ څخه مراد صرف بی بی یعنی ښځه اخستې شی.

② ددې نه ښځه، اولاد، غلام او وینځې هم اخستې شی.

**دحدیث مقصد:**- مطلب دادې چې کوم کس دشپې پخپله هم تهجدو دپاره پاسی او د الله تعالی ذکر کښې مشغول وی او خپله بی بی او د کور نور خلق هم راپیداروی او دالله تعالی په عبادت کښې مشغول وی، نو ددې ټولو شمیر به هغه نیکو او نیك بختور سړو او ښځو کښې کیږی د کومو فضیلت چې د قرآن پاک دې آیت ((وَالذّٰكِرِيْنَ اللّٰهَ كَثِيْرًا وَّالذّٰكِرٰتِ اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ مَّغْفِرَةً وَّاَجْرًا عَظِيْمًا)) کښې بیان شوې دې.

[۱] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب قيام الليل (رقم-۱۳۰۹) وابن ماجه كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فيمن أيقظ أهله من الليل (رقم-۱۳۳۵)

**[۱۲۳۹] د حاملین قرآن او تهجد ګذارو فضیلت**

۱۲۳۹-()[۲۰]۞وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "۞«أَشْرَافُ أُمَّتِي حَمَلَةُ الْقُرْآنِ، ۞وَأَصْحَابُ اللَّيْلِ» " رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:**۞ ابن عباس رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل۞ زما د امت اشراف یعنی د اوچتې مرتبې والا خلق قرآن اوچتونکي (یعني د قرآن حافظان) دي۞ او په شپه کې ودریدونکي (تهجد کونکي) دسي. (بیهقي)

**حل اللغات:**- ① أَشْرَافُ: عزت او شرافت والا خلق، ② حَمَلَةُ الْقُرْآنِ: أي مَنْ حَفِظَهُ وَعَمِلَ بِمُقْتَضَاهُ: چه قرآن یاد کړی او عمل پرې اوکړی. ③ أَصْحَابُ اللَّيْلِ: أي: أَصْحَابُ الْعِبَادَةِ: څوک چه دشپې عبادت کوی.

**تسهیلات:- قوله: حَمَلَةُ الْقُرْآنِ:**

**دحملة القرآن مصداق:-** یعنی قرآن پاك په یادو باندې لوستونکی یا په ناظره سره لوستونکی او حفظ تجوید تفسیر او ترتیب قائم کونکی ټول د حملة القرآن په مصداق کښې داخل دی. علماء چه په خپل علم باندې عمل کونکی وی هغوی دَدې حدیث واضح مصداق دی.

**[۱۲۴۰] د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د شپې دعبادت معمول**

۱۲۴۰-()[۲۱]۞وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، ۞أَنَّ أَبَاهُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، كَانَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ مَا شَاءَ اللّٰهُ، ۞حَتَّى إِذَا كَانَ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ أَيْقَظَ أَهْلَهُ لِلصَّلَاةِ، ۞يَقُولُ لَهُمْ: الصَّلَاةَ، ثُمَّ يَتْلُو هَذِهِ الْآيَةَ: ۞﴿وَأْمُرْ أَهْلَكَ بِالصَّلَاةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا ۞لَا نَسْأَلُكَ رِزْقًا نَحْنُ نَرْزُقُكَ وَالْعَاقِبَةُ لِلتَّقْوَى﴾ [طه: ۱۳۲] رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:**۞ د ابن عمر رضي الله عنهما څخه روایت دي۞ چې د هغه پلار بزرګوار حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه د شپې چې به څومره الله تعالی جل جلاله غوښتل مونځ به یې کولو۞ او شپه چې به آخره شوه نو خپله بي بي محترمه به یې د لمانځه کولو د پاره پاخوله۞ او فرمایل به یې چې مونځ وکړئ بیا به یې دا آیت وئیلو: ۞ وَأْمُرْ أَهْلَكَ بِالصَّلَاةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا لَا نَسْأَلُكَ رِزْقًا نَحْنُ نَرْزُقُكَ وَالْعَاقِبَةُ لِلتَّقْوَى (او اي محمد ﷺ خپلو متعلقینو ته هم د لمانځه کولو حکم ورکوه او خپله هم (د دې په مشقتونو) صبر کوه۞ مونږ تا څخه رزق نه غوارو رزق خو مونږ تاته درکوو او د آخرت خیر خو د پرهیزګارو د پاره دي. (مالك)

**حل اللغات:**- ① وَاصْطَبِرْ: اوصبر کوه (په مشقتونو د مونځ باندې). ② الْعَاقِبَةُ: ښه انجام او نتیجه (په دنیا او آخرت کښې). ③ لِلتَّقْوَى: أي: لِأَرْبَابِ التُّقَى: پرهیزګاره خلق (علم او عمل لرونکی او اخلاص کونکی خلق).

**تسهیلات:-**

**نوټ-** ددې حدیث تسهیل په بل ځائې کښې تفصیل سره ذکر دې.

---

[۱] البیهقی فی شعب الإیمان باب تحسین الصلاة والإکثار منها (۴/ ۵۴۰)-

[۲] اخرجه مالک فی الموطا کتاب صلاة اللیل باب ما جاء فی صلاة اللیل (رقم-۵)

# [۵۰/۳۴] بَابُ الْقَصْدِ فِي الْعَمَلِ

**په اعمالو کښې د میانه روئ بیان**

**خلاصة الباب: -**

**فيه ثلاثة عشر حديثاً مشتملة على تسع مسائل:**

① اقتصاد عمل النبي ﷺ: ۱۔

② كون أحب الأعمال إلى الله القليل الدائم: ۲۔

③ العمل حسب الطاقة: ۳، ۴، ۶، ۸۔

④ كراهيم الصلاة وقت النعاس: ۵۔

⑤ قضاء ورد الليل: ۷۔

⑥ التفاوت في الأجر بحسب تفاوت العمل: ۹، ۱۲۔

⑦ فضيلة النوم على الوضوء: ۱۰۔

⑧ فضيلة العمل عند الخوف والرجاء: ۱۱۔

⑨ كون الصلوة راحة للنبي صلى الله عليه وسلم: ۱۳۔

**د قصد لغوی معنی: -** شیخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې لیکلی دی چه "القصد" په اصل کښې په لار نیغ تللوته وائی لکه چه [اشعة المعات: ۲/۵۶۳] ﴿ وَعَلَى اللَّهِ قَصْدُ السَّبِيلِ وَمِنْهَا جَائِرٌ ﴾ [نحل: الایه: ۹]

**د قصد استعمال: -** بیا دا لفظ په ټولو امورو کښې دَ میانه روئی اختیارولو په معنی کښې استعمال کړې شو. هم په دې معنی کښې دا حدیث دې "القصد" یعنی په ټولو امورو کښې میانه روی اختیارکړئی که هغه قول وی که فعل وی او په هره معامله کښې دَافراط اوتفریط نه بچ شئ.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۱۲٤۱] د نبی علیه السلام په ټولو کارونو کښې میانه روی**

۱۲٤۱ - (١)[١] ① عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُفْطِرُ مِنَ الشَّهْرِ ③ حَتَّى يُظَنَّ أَنْ لَا يَصُومَ مِنْهُ، ④ وَيَصُومُ حَتَّى يُظَنَّ أَنْ لَا يُفْطِرَ مِنْهُ شَيْئًا، ⑤ وَكَانَ لَا تَشَاءُ أَنْ تَرَاهُ مِنَ اللَّيْلِ مُصَلِّيًا إِلَّا رَأَيْتَهُ، ⑥ وَلَا نَائِمًا إِلَّا رَأَيْتَهُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

١) اخرجه البخاری کتاب الجمعة /باب قیام النبی صلی الله علیه وسلم باللیل من نومه، وما نسخ من قیام اللیل(رقم-۱۱٤۱)

**ترجمه:**[۱] حضرت انس رضی الله عنه فرمايي[۲] چې رسول الله ﷺ به د مياشتې په اکثرو ورځوکي (نفل) روژې نه نيولې [۳] تر دې چې مونږ به ګمان کولو چې حضور ﷺ به دې مياشته کښې روژې نه نيسي [۴] او حضور ﷺ به (هم ددې يا د دويمې مياشتې په اکثر ورځو کې) روژه نيوله تر دې چې مونږ به ګمان کولو چې اوس به (ددې مياشتې) هيڅ ورځ هم بغير روژه حضور ﷺ نه پريږدي [۵] او که تا د حضور ﷺ د شپې په لمانځه کولو ليدل غوښتې نو په لمانځه کولو به دې هم ليدې [۶] او که حضور ﷺ دې د شپې په خوب کولو باندې ليدل غوښتې نو په خوب کولو به دې هم ليدلې. (بخاري)

**تسهيلات:-**

**نوټ:-** د دې حديث تشريح په بل ځائې کښې تيره شوې ده.

**[۱۲٤۲] په عمل د مداومت فضيلت**

۳۳۲-(۲)[۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«أَحَبُّ الْأَعْمَالِ إِلَى اللهِ أَدْوَمُهَا وَإِنْ قَلَّ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] بي بي عائشه صديقه رضی الله عنها روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] (د بنده ګانو په نيك اعمالو کې) د الله جل جلاله په نيز د ټولو نه محبوب عمل هغه دې چې هميشه کول کيږي اګر که لږ وي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:-** ① أَدْوَمُهَا: چه هميشه وي دغه عمل، ② إِنْ قَلَّ: اګرکه دا عمل لږ وي.

**تسهيلات:- قوله:** أَدْوَمُهَا:

**په عمل د مدوامت فوائد:-**

① دَاعمالو په دفاترو کښې دَ دې سړي دَ دغه عمل دَ وجې نه حاضري لګي.
② عبادت دَ انسان داسې عادت جوړيږي دکوم پريخودل چه په طبعي توګه ناخوښه وي.
③ دَ فرښتو مجلس کښې چه کله دا عمل ځي هغه مقامات په دې عمل باندې ګواه جوړيږي.

**قوله:** وَإِنْ قَلَّ:

**د مداومت علي العمل مثال:-** مطلب دا چه سړه دَدې چه هغه عمل لږ شان وي مګر په دوام سره دَهغې مقام اوچت شو اودَ هغې اثرات تر لرې پورې شي. دَدې مثال تاسو په سيلاب او يو ځاځکي سره اوګنړئ. مثلاً يو مضبوط کاڼړې پروت دې په هغې باندې زور دار سيلاب

[۱] اخرجه البخارى فى كتاب الرقاق/باب القصد والمداومة على العمل (رقم-۶۴۶۲) كتاب صلاة/باب فضيلة العمل الدائم من قيام الليل وغيره (رقم-۲۱۸ - (۷۸۳) والترمذى كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۸۵۶) والنسائى كتاب قيام الليل وتطوع النهار/باب صلاة القاعد فى النافلة، وذكر الاختلاف على أبى إسحق فى ذلك (رقم-۱۶۵۵) ومالک فى الموطا كتاب قصر الصلاة فى السفر، باب جامع الصلاة (رقم-۹۰)

راغلو او لاړو. کله چه اوکتلې شو نوهغه کانړ هم هغه شان صحیح سالم پروت وو. خو که هم په دغه مضبوط کانړی باندې په دوام سره دَ پورته نه یو یو څاڅکې اوبه راڅاڅي نو څه موده پس به په کانړی کښې سورې اوشي. دا دَ دوام عمل نتیجه ده چه یو څاڅکی هغه څه اوکړه چه لوئی سیلاب اونه کړې شو. معلومه شوه چه دائمی عمل ښه اثر او محبوب تر وی.

## [۱۲٤۲] دخپل طاقت مطابق عبادت کول

۳۴۳–()[۳] ۱ وَعَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«خُذُوا مِنَ الْأَعْمَالِ مَا تُطِيقُونَ، ۳ فَإِنَّ اللّٰهَ لَا يَمَلُّ حَتَّى تَمَلُّوا»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ بي بي عائشه رضي الله عنها راويه ده چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ تاسو دومره عمل کوئ څومره چې (هميشه يې) د کولو طاقت لرئ ۳ ځکه چې الله تعالى جل جلاله په ثواب ورکولو کې نه تنګيږي تر څو پورې چې تاسو خپله تنګ نه شئ (يعني په تنګيدو سره عبادت پرې نه ږدئ). (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:**- ① خُذُوا: واخلئ يعنى عمل پرې شروع کړئ، ② تُطِيقُونَ: أي: الْمُدَاوَمَةُ عَلَيْهِ: چه تاسو ئې وس اوطاقت لرلې شئ يعنى هميشه ئې کولې شئ. ③ لَا يَمَلُّ: مَعْنَى الْمَلَالِ مِنَ اللّٰهِ تَرْكُ إِعْطَاءِ الثَّوَابِ: مل يمل دسمع يسمع نه ستومانه کيدو، ستړې کيدو او زړه تنګيدوپه معنى کښې دې، د الله تعالى د ستړى کيدو او تنګيدلو مطلب دا دې چه هغه په ثواب ورکولو نه تنګيږى. ④ تَمَلُّوا: أي: تَتْرُكُوا عِبَادَتَهُ: د بندګانو ستړى کيدل او تنګيدل دادى چه په دغه شروع کړى عبادت ستړى شى او پرې ئې ږدى.

**تسهيلات:- قوله:** لَا يَمَلُّ:

**دحديث مطلب:-** دَحديث مطلب دادې چه تاسو دَخپل ځان دَپاره په نفلى عبادت کښې داسې اندازه سره عمل مقررکړه څومره چه تاسو پوره کولې شئى. داسې نه وى چه نن خو دې سل رکعته نفل اوکړه او صبا دې دوه رکعته هم اونه کړه. کله چه ستړې شې اوستومانه شې اوعمل پريږدې نو الله تعالى هم ثواب ورکول بندوى ځکه چه کله عمل نه وى نو ثواب به دَ کوم ځائى نه راځى.

**د حديث مصداق:-** حاصل دا چه الله تعالى ثواب ورکولو کښې تنګى نه کوى، نه الله تعالى ستړې کيږى تاسو به پخپله ستړې شئى لهذا په اندازه دَ طاقت دومره عمل خپلوئى کوم چه تاسو هميشه سر ته رسولې شئى. ياد لرئى چه دې نه فرائض او واجبات مراد نه دى هغه خو به په هرحال کښې کول وى. دلته دَ نوافل، مستحبات، وردونه او وظائف مراد دى لکه تهجد، تلاوت، نفلى روژې وغيره وغيره دى.

[۱] اخرجه البخارى كتاب الصوم/باب صوم شعبان(رقم–۱۹۷۰) ومسلم كتاب صلاة/باب فضيلة العمل الدائم من قيام الليل وغيره (رقم–۲۱۵ – (۷۸۲) والنسائى كتاب قيام الليل وتطوع النهار/باب الاختلاف على عائشة فى إحياء الليل (رقم–۱٦٤۲) وابن ماجة كتاب الزهد/باب المداومة على العمل (رقم–٤۲۳۸)

## [۱۲٤٤] بغیر ستوما نی د عبادت کول

۱۲۲۴–()[۴] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«لِيُصَلِّ أَحَدُكُمْ نَشَاطَهُ، [۳] وَإِذَا فَتَرَ فَلْيَقْعُدْ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت انس رضي الله عنه راوي چې دي رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] تاسو ته پکار دي چې تر هغه وخته پورې مونځ کوئ تر څو پورې چې خوش دلي وي [۳] او هر کله چې طبیعت سست شي نو کینئ. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① نَشَاطَهُ: أَيْ: وَقْتَ نَشَاطِهِ: چه په تسلئ او د زړه په چستئ سره ئې کوي. ② فَتَرَ: د نصر ينصر نه فتور، سست کيدل او ستړي کيدلو معنی کښې دې. "نشاط" تيزني، تسلئی او سکون په معنی کښې دې. ③ فَلْيَقْعُدْ: کيدينې، (د کيناستلو نه يا دا مطلب چه نور مونځ دې دغه وخت نه کوی چه لږ دمه شی، يا دا مطلب چه باقي مونځ دې په ناسته اوکړی).

**تسهيلات:** - **قوله:** وإذا فتر:

**بدن باندې د بوج په وخت کښې د عبادت نه کول:** - مطلب دا چه تر کومې پورې نفلی عباداتو کښې زړه لګی، فرحت او تازګی به حاصله وی. تسلی او سکون په ځائی وی نو په عبادت کښې لګیا کیدل پکاردی. خو چه کله په طبیعت کښې ملال او دروندوالې راشی په بدن کښې اضمحال راشی نو نفل عبادت پريخودو سره آرام حاصلول پکاردی دې دپاره چه بل وخت کښې دَ دغه عبادت دپاره نور تازه او چست شي.

**په غیر موافق حالت کښې د عبادت نقصانات:** -

① په طبیعت باندې به عبادت بوج جوړشي او عبادت بوج ګڼړل جدا ګناه ده.
② که چرې داسې اونه کړې شو او په سستئی کښې په عبادت کښې لګیا شی نو یو نقصان خو به دا شی چه هغه عبادت به ناقص اداکیږی.
③ راتلونکې وخت کښې په مکمل توګه داسړې عبادت پریږدی. لهذا بهتره داده چه دځه وخت دپاره پريخودو سره بیا شروع کړی نه دا چه بالکل ئی پریږدی.

## [۱۲٤٥] د پرکالی په حالت کښې د مونځ کولو ممانعت

۱۲۲۵–()[۵] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«إِذَا نَعَسَ

---

[1] اخرجه البخاری کتاب الجمعة/باب ما یکره من التشدید فی العبادة(رقم-۱۱۵۰) ومسلم کتاب صلاة/باب أمر من نعس فی صلاته، أو استعجم علیه القرآن، أو الذکر بأن یرقد، أو یقعد حتی یذهب عنه ذلک (رقم) ۲۱۹ - (۷۸٤) وابوداود فی کتاب الصلاة،باب النعاس فی الصلاة (رقم-۱۳۱۲) والنسائی کتاب قیام اللیل وتطوع النهار/باب الاختلاف علی عائشة فی إحیاء اللیل (رقم-۱۶٤۳) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها/باب ما جاء فی المصلی إذا نعس (رقم-۱۳۷۱)

[2] اخرجه مسلم کتاب صلاة/باب أمر من نعس فی صلاته، أو استعجم علیه القرآن، أو الذکر بأن یرقد، أو یقعد حتی یذهب عنه ذلک (رقم) ۲۲۲ - (۷۸۶) وابوداود کتاب الصلاة،باب النعاس فی الصلاة (رقم-۱۳۱۰) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الصلاة عند النعاس (رقم-۳۵۵)

أَحَدُكُمْ وَهُوَ يُصَلِّي فَلْيَرْقُدْ ۞ حَتَّى يَذْهَبَ عَنْهُ النَّوْمُ; ۞ فَإِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا صَلَّى وَهُوَ نَاعِسٌ لَا يَدْرِي ۞ لَعَلَّهُ يَسْتَغْفِرُ فَيَسُبُّ نَفْسَهُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۞ بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها راويه ده (روايت كوي) چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۞ هركله چې په تاسو كې څوك د لمانځه كولو په حالت كې نيم خوابه شي (يعني د خوب جوړه ورته راشي) نو هغه ته پكار دي چې اوده شي ۞ تر دي چې خوب خيني لاړ شي ۞ ځكه چې تاسو كې څوك په نيم خوابي كې مونځ كوي نو د خوب په وجه هغه ته دا پته نه لګيږي چې هغه څه وايي ۞ كيدي شي چې هغه د مغفرت طالب وي خو (په نيم خوابي كې) د خپل د نفس د پاره (د هغه د ژبې څخه) بد ه دعا وخي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:**- ① نَعَسَ: أَوَّلُ النَّوْمِ وَمُقَدِّمَتُهُ: دخوب جوتي، پركالى، د نصر ينصر او فتح يفتح نه دَ خوب ورتلو په معني كښې راځي. اسم فاعل "ناعس" راځي. ② فَلْيَرْقُدْ: نو څمديلى، اوده دې شي. ③ فَيَسُبَّ: كنځلي كولو نه مراد خپل ځان ته بدې ردې وئيل يا خيرې كول مراد دى.

**تسهيلات:**-

**قوله: فَيَسُبَّ نَفْسَهُ:**

**دخوب په حالت كښې د مونځ كولود ممانعت وجه:**- فيسب نفسه" مطلب دادې چه دَ خوب او پركالى په حالت كښې زړه او دماغ حاضر نه وى، ژبه هم په قابو كښې نه وى. لهذا نشه كښې مستغرق سړى دَ ژبې نه هم څه وتلې شى هغه كنځلې هم كيدې شى او هغه بددعا هم كيدې شى مثلاً دَ خوب په حالت كښې يو سړې "اللهم اغفرلي" وئيل پكار دى ليكن دَ هغه دَ ژبې نه بې اختياره "اللهم اعفرلي" اوځى. دَ اول جملې ترجمه داده چه اې الله ما اوبخښې. دَ دويمې جملې ترجمه دا ده چه اې الله ما خاورې كړې.

**[١٢٤٦] د دين اسلام آساني**

١٢٣٦-()[١] ۞ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ۞ «إِنَّ الدِّينَ يُسْرٌ ۞ وَلَنْ يُشَادَّ الدِّينَ أَحَدٌ إِلَّا غَلَبَهُ ۞ فَسَدِّدُوا وَقَارِبُوا، وَأَبْشِرُوا، ۞ وَاسْتَعِينُوا بِالْغَدْوَةِ وَالرَّوْحَةِ وَشَيْءٍ مِنَ الدُّلْجَةِ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ

**ترجمه:** ۞ ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۞ چې بيشكه دين آسان دي ۞ ليكن كوم سړي چې په دين كې سختي كوي دين په هغه غالب راځي ۞ نو (په ديني امورو كې) ميانه روي او د خپل طاقت مطابق عمل اختيار روئ او (د جنت وسلامتي او د الله رب العزت د انعاماتو او اكراماتو) سره خوشحاله اوسئ [ځكه چې الله رب العزت په لږ عمل

[١] اخرجه البخاري باب: الدين يسر وقول النبي صلى الله عليه وسلم: «أحب الدين إلى الله الحنيفية السمحة» (رقم-٣٩) والنسائي كتاب الإيمان وشرائعه/باب الدين يسر (رقم-٥٠٣٤)

چې د همیشګي او د نیت د خلوص سره وي ډیر زیات ثواب ورکوي ⑤ او سحر وخت او مابنام وخت او د شپې په آخري حصه کې هم د الله رب العزت څخه مدد غواړئ. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① يُسْرٌ: یعنی دین آسان مذهب دی. ② لَنْ يُشَادَّ: یشاد په یاء باندې ضمه ده او دال باندې شد دی. مشادده دَ باب مفاعله نه یو بل باندې دَ غالب راتلو په معنی کښې دی. ③ فَسَدِّدُوا: أي: الزَمُوا طَرِيقَ الإِقْتِصَادِ: یعنی په نیغه لار باندې دَ زیاتی او کمی نه پاکیدو سره قائم اوسیږه.
④ الْغَدْوَةِ: د ورځې شروع، ⑤ الرَّوْحَةِ: د ورځې آخره، ⑥ الدُّلْجَةِ: أي آخِرُ اللَّيْلِ: دشپې آخری حصه. (د غدوة، روحة او دلجة حاصل معنی داده چه ټول وختونه تاسو دَ عمل دَ پاره مه ګیروئ بلکه دَ خپلې تازګئ او چستئ په حالت اووختونو کښې دَ الله تعالی نزدیکت حاصلوئ.)

**تسهیلات:** - **قوله:** وَلَنْ يُشَادَّ الدِّينَ أَحَدٌ:

**د حدیث د جملې مفهوم:** - دادَ یشاد فاعل دی او "الدین" دَدې دَپاره مفعول به دې اصل عبارت داسې دی "ولن یشاد احد الدین" یعنی دین دَعمل په ذریعه څوک مغلوب کولې نه شی بلکه دین به په ده باندې په دې مقابله کښې غالب راځی اوهغه سړې به مغلوب کیدو سره دَ دین اعمال پریږدی. لهذا دا خواهش مه کوئی چه سل فیصد به دَ دین په اعمالو باندې عمل کونکې شم. په دې کښې هم په دغه تشدد خوښونکو عناصرو باندې رد دې چه وائی ترکومې پورې چه سل فیصد اعمال در کښې نه وی راغلې جهاد نه شی کیدې.

**دحدیث د بعضې جملو وضاحت:** -

① "وقاربوا" یعنی په صحیح لار باندې قائم پاتې کیدو سره دَ الله تعالی طرف ته دَ وړاندې کیدو او نیزدې کیدو کوشش کوئی.

② "وابشروا" یعنی دا زیرې واورئ اوخوشحال شئ چه الله تعالی ستاسو په لږ عمل باندې تاسو ته ډیر ثواب درکړو.

**[۱۲۴۷] دشپې پاتې شوې وظائف په ورځ کښې پوره کول**

۱۲۴۷–()[۷] ① وَعَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ② "«مَنْ نَامَ عَنْ حِزْبِهِ أَوْعَنْ شَيْءٍ مِنْهُ، ③ فَقَرَأَهُ فِيمَا بَيْنَ صَلَاةِ الْفَجْرِ وَصَلَاةِ الظُّهْرِ، ④ كُتِبَ لَهُ كَأَنَّمَا قَرَأَهُ مِنَ اللَّيْلِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت عمر ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② کوم سړي چې (په شپه کې) د خپلې وظیفې پوره کولو نه بغیر اوده شو یا د وظیفې څه حصه ځینې پاتې شوه ③ بیا هغه د سحر د لمانځه او د ماسپخین د لمانځه په مینځ کې اولوستل ④ نو د هغه د

[۱] اخرجه مسلم کتاب صلاة/باب جامع صلاة اللیل، ومن نام عنه أو مرض (رقم) ۱۴۲ - (۷۴۷) وابوداود کتاب الصلاة/باب من نام عن حزبه (رقم-۱۳۱۳) والترمذی کتاب السفر/باب ما ذکر فیمن فاته حزبه من اللیل فقضاه بالنهار (رقم-۵۸۱) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها/باب ما جاء فیمن نام عن حزبه من اللیل (رقم-۱۳۴۳) ومالک فی الموطا کتاب القرآن باب ما جاء فی تحزیب القرآن (رقم-۳)

پاره داسې ليکل کيږی لکه چې د شپې يې اولوستل. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① حِزْبِهِ: أَيْ: عَنْ وِرْدِهِ: يعنی د خپلې وظيفې پوره کولونه بغير اوده شی.

**تسهيلات:-**

**د پاتې شوی نفلی عبادت تدارک کول:-** مطلب داچه که دَ يوسړی نه دَهغه څه معمول دَ شپې پاتې شی نوهغه دَ ورځې دَ سحردَ مونځ نه واخله دَ زوال پورې اداکولې شی. که په دغه وخت کښې دې سړی خپل دَ شپې وظيفه اولوستله نودا به هم داسې وی لکه چه ده هم دَ شپې اداکړې ده.

دلته دَ شپې ذکرځکه اوکړې شوچه اکثروردونه او وظائف هم دَ شپې کيږی که چانه دَ ورځې وظيفه مثلاً تلاوت يامونځ يا ذکر اذکار پاتې شی نوهغه ئی دَ شپې اداکولې شی ځکه چه شپه او ورځ دَ يوبل قائمقام دی.

**[۱۲٤۸] د معذوردپاره په ناسته اوپه ملاسته د مونځ جواز**

۱۲٤۸-(۸) ① وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«صَلِّ قَائِمًا، فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ فَقَاعِدًا، ③ فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ فَعَلَى جَنْبٍ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① عمران ابن حصين رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② مونځ په ولاړه کوه او که (د څه عذر په وجه په ولاړه په لمانځه کولو باندې) قادر نه شی نو په ناسته يې کوه ③ او که (په ناسته لمانځه کولو باندې) قادر نه شی نو بيا په اړخ يې کوه. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① فَعَلَى جَنْبٍ: أَيْ: فَصَلِّ مُضْطَجِعًا: په اړخ باندې يعنی په ملاسته باندې.

**تسهيلات:- قوله: فَعَلَى جَنْبٍ:**

**د مونځ په ادا کولو کښې د مونځګذار څلور حالتونه:-**

① اول خو به سړې په ولاړه مونځ کوی ځکه چې په فرض مونځ کښې قيام فرض دې.

② که يوسړې په ولاړه باندې فرض مونځ نه شی اداکولې نو په ناسته مونځ کولې شی

③ که په ناسته هم ورته ګران وی نو په ملاسته مونځ کولې شی.

④ فقهاؤ ليکلی دی چه که په سر سره بيمار اشاره نه شی کولې نوبيا دې مونځ روستو کړی الله تعالی کريم ذات دې معاف به ئی کړی. دَ سترګو په اشاره سره مونځ نه کيږی.

**په ملاسته د مونځ کولو په کيفيت کښې مذاهب:-**

① شوافع حضرات فرمائی چه بيمار دې په اړخ سملی مخ دې قبلې طرف ته کړی او په

[۱] اخرجه البخاری كتاب الجمعة/باب إذا لم يطق قاعدا صلى على جنب (رقم-۱۱۱۷) والترمذی كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن صلاة القاعد على النصف من صلاة القائم (رقم-۳۷۲) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء في صلاة المريض (رقم-۱۲۲۳)

اشاره دې مونځ اوکړي.

۲ دَ احنافو په نیز دَ سملاستو طریقه داده چه بیمار دې نیغ سملی خپې دې قبلې طرف ته خورې کړي او دَ اوږو لاندې دې تکیه کیږدی دَ قبلې طرف ته دې په اشاره سره مونځ اوکړي.

**د اول فریق دلیل:-** زیربحث حدیث د دوی مستدل دې ځکه چې په دې کښې دَ اړخ لفظ راغلې دې.

**د دویم فریق اول دلیل:-**

۱ دَدوی مستدل د دارقطنی روایت دې. په کوم کښې چه دَ نیغ سملاستو ثبوت ملاویږی.

**د دویم فریق دویم دلیل:-**

۲ عقلی دلیل دا دې چه نیغ سملاستو سره مخامخ قبله وی ځکه چه قبله دَ آسمان پورې وی او په اړخ باندې سملاستو سره چه کومه اشاره کیږی هغه دَ قبلې په ځائی دَ خپلو خپو طرف ته وی.

**د اول فریق د دلیل دوه جوابونه:-**

۱ کیدې شی چه دلته ځه بل ځه مجبوری وی

۲ دَ جواز دَ بیان دَپاره وی.

**[۱۲۴۹] دقاعد د مونځ د قائم د مونځ په نیمه ثواب**

۱۲۴۹-(۱)[۹] ۱ وَعَنْهُ، أَنَّهُ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَلَاةِ الرَّجُلِ قَاعِدًا، ۲ قَالَ: "إِنْ صَلَّى قَائِمًا فَهُوَ أَفْضَلُ، ۳ وَمَنْ صَلَّى قَاعِدًا فَلَهُ نِصْفُ أَجْرِ الْقَائِمِ، ۴ وَمَنْ صَلَّى نَائِمًا فَلَهُ نِصْفُ أَجْرِ الْقَاعِدِ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ۱ د عمران ابن حصین ﷛ په باره کې روایت دې چې هغه د حضور ﷺ ځخه د هغه سړي په باره کې پوښتنه وکړه چې (په ولاړه د طاقت لرلو باوجود) نفل مونځ په ناسته کوي ۲ حضور ﷺ ورته وفرمایل بهتره خو دا ده چې په ولاړه مونځ وکړي ۳ لیکن کوم سړي چې (نفل) مونځ (بغیر د عذر) ځخه په ناسته کوي نو هغه ته په ولاړه د لمانځه کونکي په نسبت نیم ثواب حاصلیږي ۴ او ځوک چې په ملاسته مونځ کوي هغه ته د ناستې کوونکي په نسبت نیم ثواب حاصلیږي. (بخاري)

**حل اللغات:-** ۱ الْقَائِم: ولاړ، یعنی په ولاړه باندې مونځ کونکې. ۲ الْقَاعِد: ناست، یعنی په ناسته باندې مونځ کونکې.

**تسهیلات:-**

---

[۱] اخرجه البخاری کتاب الجمعة/باب صلاة القاعد بالإیماء (رقم-۱۱۱۶) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله علیه وسلم/باب ما جاء أن صلاة القاعد على النصف من صلاة القائم (رقم-۳۷۱)

**قوله**: فَلَهُ نِصْفُ أَجْرِ الْقَاعِدِ:

**د ناستې اوملاستې په مونځ کښې د اجر کميدل**: - يعنى كه يوسړى په ولاړه باندې مونځ اوکړى نوهغه افضل او اعلى دې. ليكن كه يو سړې بيماردې اوهغه دَ اودريدو په ځائى په ناسته مونځ اوکړو نو هغه ته به دَ ولاړ سړى په مقابله كښې نيم ثواب ملاوېږى اوكه هغه په ملاسته باندې مونځ اوكړو نوهغه ته به دَ كيناستونكى په مقابله كښې نيم ثواب ملاوېږى.

**مشهور اشكال**: - دلته يو مشهور اعتراض دې هغه داسې كه مونځ گذار سړې فرض مونځ كونكې اومنلې شى نو هغه له دَ بيمارئى دَ عذر دَ وجې نه دكيناستو په حالت كښې پوره ثواب ملاوېږى ځكه چه قيام دَ هغه نه ساقط شوې دې. دلته ده ته نيم ثواب ولې وركولې كيږى؟ اوكه چرې دا سړې صحت مند اومنلې شى نو په ناست دَ هغه مونځ جائز نه دې نو څه چه لا هغه ته به نيم ثواب ملاؤشى؟

اوكه چرې مونځ كونكې دا سړې صحت مند متنفل اومنلې شى نودَ حديث دَ شروع حصه خو به صحيح شى ليكن دَدې آخرى حصه به معارض جوړه شى ځكه چه دَمتنفل مونځ خو په ناسته جائز دې ليكن دَ سملاستو په حالت كښې دَ حسن بصرى رحمه الله نه بغير دَ چا په نيز جائز نه دې او دلته دې سملاستونكى سړى ته نيم ثواب وركولې شى اودَ فقهاء كرامو په نيز دَهغه مونځ جائز نه دې؟

**د اشكال جواب**: - شارحين حديث دَدې اعتراض مختلف جوابونه وركوى ليكن دَ ټولو نه ښه او آسان جواب هغه دې كوم چه علامه خطابى رحمه الله او ابن حجر رحمه الله فرمائى. كوم چه حضرت شاه انور شاه كشميرى رحمه الله ډير خوښ كړې دې. هغه حضرات فرمائى چه دَدې حديث مصداق داسې مفترض اومعذور سړې دې چاته چه شريعت په ناسته يا ملاسته دَ مونځ كولو اجازت وركړې دې. ليكن هغه محنت اومشقت زغملو سره په ولاړه مونځ كوى نوهغه دَ خپل مونځ په اعتبارسره به دَ اعلى ثواب مستحق وى ليكن كه هم دغه سړې په ناسته مونځ اوكړى نوهغه ته به دَ خپل قيام والا مونځ په اعتبار نيم ثواب ملاوېږى سره دَدې چه دَ نورو خلقو په اعتبارسره به هغه ته پوره ثواب ملاوېږى ځكه چه هغه معذور دې اوكه چرې هم دغه سړې دومره معذوره وى چه شريعت هغه ته په سملاستو سره دَ مونځ كولو اجازت وركړې دې مگر هغه محنت او مشقت زغملو سره په ناسته مونځ كوى نوهغه ته به اعلى او ښه ثواب ملاوېږى. ليكن كه هغه په ملاسته مونځ اوكړى نوهغه ته به دَ ناستې دَ حالت دَ مونځ نيم ثواب ملاوېږى سره دَدې چه دَ نورو خلقو په اعتبار سره به هغه ته پوره ثواب ملاوېږى.

**د زير بحث حديث مصداق**: - زير بحث حديث دَ حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه معامله دَ سختې مجبورئى او بيمارئى وه اوهغه دَ فرض باره كښې تپوس كولو. لهذا دا حديث دَدې

قسم مفترض باره کنبې دی دَمتنفل باره کنبې نه دي. البته دَ سملاستو دَ صورت نه علاوه احناف او جمهورو فقهاء متنفل باره کنبې هم دغه شان فتویٰ ورکوی. لکه څنګه چه حدیث کنبې دی چه نیم ثواب به ملاویږی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۱۲۵۰] ترخوب راتلو پورې د الله په ذکر کښې مشغول اوسیدل

۱۲۵۰—()[۱۰][۱] عَنْ أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [۲] "«مَنْ أَوَى إِلَى فِرَاشِهِ طَاهِرًا، [۳] وَذَكَرَ اللَّهَ حَتَّى يُدْرِكَهُ النُّعَاسُ، [۴] لَمْ يَتَقَلَّبْ سَاعَةً مِنَ اللَّيْلِ يَسْأَلُ اللَّهَ فِيهَا خَيْرًا مِنْ خَيْرِ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ، [۵] إِلَّا أَعْطَاهُ إِيَّاهُ»". [۶] ذَكَرَهُ النَّوَوِيُّ فِي "كِتَابِ الْأَذْكَارِ" بِرِوَايَةِ ابْنِ السُّنِّيِّ.

**ترجمه:** [۱] ابو امامه رضی الله عنه فرمایي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي [۲] چې کوم سړي (د اوداسه یا د تیمم په ذریعه د نجاستونو څخه یا دا چې د ګناهونو څخه) پاکیدو سره په خپله بستره پریوځي [۳] او د خوب راتلو پورې (په ژبه یا په زړه سره) په ذکر الله کې مشغول وي [۴] نو هغه چې د شپې کله هم په دې حال کې اړخ بدل کړي چې د الله جل شانه څخه د دنیا او آخرت د څه خیر سوال وکړي [۵] نو الله تعالی جل جلاله هغه خیر ضرور ورکوي [۶] دا حدیث نووي رحمه الله په کتاب الاذکار کې د ابن السني په روایت نقل کړي دي.

**حل اللغات:**- ① أَوَى: أَيْ: أَتَاهُ: چه راشی (خپلې بسترې یا دځملاستلو ځای ته). ② فِرَاشِهِ: بستره، ③ النُّعَاسُ: د خوب جوتې، پرکالی، ④ لَمْ يَتَقَلَّبْ: أَيْ: لَمْ يَتَرَدَّدْ: په بستره باندې اړخ بدلول اوړیدل راوړیدل مراد دی.

**تسهیلات:**-

**په اودس کښې د اوده کیدو فضیلت:**- مطلب دادې چه یوسړې دَ شپې په اودس کښې اوده کیږی اوهغه دَ شپې په یوه حصه کښې بیدارشی یا اړخ بدلوی اودَ الله تعالی نه څه دعا غواړی نوالله تعالی دَهغه سوال قبلوی که هغه سوال دَدنیاسره متعلق وی اوکه دَ آخرت سره متعلق وی.

### [۱۲۵۱] د دوه قسمه خلقو څخه د الله تعالی خوشحال کیدل

۱۲۵۱—()[۱۱][۱] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«عَجِبَ رَبُّنَا مِنْ رَجُلَيْنِ: [۳] رَجُلٌ ثَارَ عَنْ وِطَائِهِ وَلِحَافِهِ مِنْ بَيْنِ حِبِّهِ وَأَهْلِهِ إِلَى صَلَاتِهِ، [۴] فَيَقُولُ اللَّهُ لِمَلَائِكَتِهِ: انْظُرُوا إِلَى عَبْدِي، [۵] ثَارَ عَنْ فِرَاشِهِ وَوِطَائِهِ مِنْ بَيْنِ حِبِّهِ وَأَهْلِهِ إِلَى صَلَاتِهِ، [۶] رَغْبَةً فِيمَا عِنْدِي، [۷] وَشَفَقًا مِمَّا عِنْدِي،

[1] اخرجه ابن السنی فی الیوم واللیلة رقم الحدیث ۷۲۲

[2] اخرجه الحمد فی المسند ۱/۴۱۶ والبغوی فی شرح السنة رقم الحدیث ۹۳۰

**ترجمه:** [۱] عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] زمونږ رب د دوو سړو ځخه ډير خوشحاليږي [۳] ① يو خو هغه سړي چې د شپې د خپلې نرمې بسترې او لحاف ځخه او د خپلې محبوبې او ښځې ځخه (د تهجد) لمانځه د پاره پاځي [۴] نو الله تعالی جل جلاله خپلو ملائكو ته فرمايي چې زما د بنده طرف ته وګورئ [۵] چې خپل فرش او نرمه بستره او خپله محبوبه او ښځه پريښودلو سره خپل لمانځه كولو د پاره پاځيدو [٦] زما سره د ځيزونو (يعني د جنت او ثواب) د شوق په وجه [۷] او زما سره د ځيزونو (يعني د دوزخ او عذاب) د ويرې په وجه.

[۱] وَرَجُلٌ غَزَا فِي سَبِيلِ اللهِ فَانْهَزَمَ مَعَ أَصْحَابِهِ، [۲] فَعَلِمَ مَا عَلَيْهِ فِي الإِنْهِزَامِ وَمَا لَهُ فِي الرُّجُوعِ، [۳] فَرَجَعَ حَتَّى هُرِيقَ دَمُهُ، [۴] فَيَقُولُ اللهُ لِمَلَائِكَتِهِ: انْظُرُوا إِلَى عَبْدِي رَجَعَ رَغْبَةً فِيمَا عِنْدِي، [۵] وَشَفَقًا مِمَّا عِنْدِي [٦] حَتَّى هُرِيقَ دَمُهُ». رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** [۱] ② او دويم هغه سړي چې هغه د الله جل جلاله په لار كې جهاد وكړي او (بغير د څه شديد عذر) د خپلو ملګرو سره (ميدان جنګ پريښودلو سره) وتښتيدو [۲] خو كله چې هغه ته (بلا عذر د جهاد د ميدان ځخه) د تښتيدو سزا او بيا جهاد ته د واپس كيدو ثواب ورياد شو [۳] نو (د جنګ ميدان ته) واپس راغې او (د الله جل جلاله د دښمنانو سره) دومره وجنګيدو چې د شهادت جام يې نوش كړو [۴] نو الله تعالی جل جلاله خپلو ملائكو ته فرمايي چې زما د دې بنده طرف ته (د تعجب په نظر) وګورئ چې زما سره د ځيزونو (يعني د جنت او ثواب) په شوق كې واپس راغې [۵] او زما سره د ځيزونو (يعني د دوزخ او عذاب) د خوف ځخه (ميدان جنګ ته) واپس راغې [٦] (او د الله جل جلاله په لار كې) دومره (وجنګيدو) چې خپل سر يې هم وركړو. (شرح السنة)

**حل اللغات:-** ① ثَارَ: أَيْ: قَامَ بِهِمَّةٍ: په خوشحالۍ او تسلۍ سره پاځي، ② وِطَاءِهِ: أَيْ: فِرَاشِهِ اللَّيِّنِ: دخپلې نرمې بسترې نه، ③ لِحَافِهِ: أَيْ: ثَوْبِهِ الَّذِي فَوْقَهُ: دخپلې ګرمې برستنې نه، ④ حِبِّهِ: أَيْ: مَحْبُوبِهِ: دخپلې محبوبې ښځې نه، ⑤ رَغْبَةً: أَيْ: مَيْلًا: دمحبت او شوق په وجه (كوم چه دده دالله تعالی سره دي). ⑥ شَفَقًا: أَيْ: خَوْفًا: ويره (كومه چه دده بنده په زړه كښې ده دخپل الله نه). ⑦ غَزَا: أَيْ: حَارَبَ: جنګ يعني جهاد اوكړي (دالله ددشمنانو سره). ⑧ فَانْهَزَمَ: أَيْ: غُلِبَ وَهَرَبَ: مغلوبه شو او اوتختيدو (بغير د عذرنه). ⑨ هُرِيقَ: أَيْ: صُبَّ: توئې كړې شوه (وينه دده يعني قتل كړې شو).

**تسهيلات:-**

**دالله تعالی په دوه قسمه خلقو باندې فخر كول:-** دَدې حديث خلاصه او مطلب دا دې چه الله تعالی دَدوو كسانونه ډيرزيات خوشحاليږي او الله تعالی ته دا خلق په عجيبه توګه باندې خوښيږي

① هغه تهجد ګذار سړې دې چه دَ شپې دَخپلې نرمې ګرمې بسترې نه تهوپ كړي پاسي او

محبوب بال بچ پریږدی مونځ کول شروع کړی. الله تعالی فرښتوته فرمائی گورئی تاسو وئیلی وو چه انسان ولې پیدا کولې شی نن دې څنګه زما د خوشحالئی اوجنت په طلب کښې اودوزخ دویرې نه پاسی.

۲ هغه غازی اومجاهد دې چه خپلو ملګرو سره ئی جهاد اوکړو بیا اوجنګیدو مګر ماتې اوخوړله ټول ملګری اوتختیدل مګر دې سرې د څه منډې وهلونه پس بیا میدان ته راغلو هغه ته احساس اوشو چه په تیختـه کښې څومره ګناه ده او په کلك اودریدو کښې او جنګیدو کښې څومره ثواب دې. چه دا سرې واپس شو نوشهید شو. الله تعالی فرښتوته فرمائی ګورئی زما بنده زما د خوشحالئی او جنت په طلب کښې اودوزخ د ویرې نه څنګه قربانی ورکړه. (تاسو وئیلی وو چه انسان مه پیدا کوه)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۱۲۵۲] د نبی علیه السلام په ناسته مونځ کول

۱۲۵۲ــ()[۱۲] ۱ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ۲ «حُدِّثْتُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ۳ " صَلَاةُ الرَّجُلِ قَاعِدًا نِصْفُ الصَّلَاةِ "، ۴ قَالَ: فَأَتَيْتُهُ فَوَجَدْتُهُ يُصَلِّي جَالِسًا، ۵ فَوَضَعْتُ يَدِي عَلَى رَأْسِهِ. ۶ فَقَالَ: " مَا لَكَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرٍو؟ ۷ ". قُلْتُ: حُدِّثْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَنَّكَ قُلْتَ: ۸ " صَلَاةُ الرَّجُلِ قَاعِدًا عَلَى نِصْفِ الصَّلَاةِ ". وَأَنْتَ تُصَلِّي قَاعِدًا، ۹ قَالَ: " أَجَلْ، وَلَكِنِّي لَسْتُ كَأَحَدٍ مِنْكُمْ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ عبدالله بن عمرو ﷺ فرمایې ۲ چې ماته دا حدیث بیان شو چې حضور ﷺ وفرمایل ۳ چې (بغیر د څه عذر څخه) په ناسته د (نفل) مونځ کونکي مونځ په ولاړه د لمانځه کونکي په مقابله کښې نیم وي ۴ عبدالله فرمایي چې زه (یو ورځ) د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم (اتفاقاً) حضور ﷺ هغه وخت په ناسته مونځ کولو ۵ (کوم وخت چې د لمانځه څخه فارغ شو) نو ما د حضور ﷺ په سر مبارک لاس کیښودلو ۶ نو حضور ﷺ وفرمایل چې عبد الله بن عمرو څه خبره ده ۷ ما عرض وکړو چې یا رسول الله ﷺ ماته دا وئیل شوي دي چې تا (ﷺ) فرمایلي دي ۸ چې په ناسته د لمانځه کونکي مونځ نیم وي او اوس ته (ﷺ) پخپله په ناسته مونځ کوي ۹ حضور ﷺ وفرمایل هو دغسې ده (یعني تا چې څه اوریدلي دي صحیح دي) لیکن زه خو ستاسو په شان نه یم (بلکه دا خو زما خصوصیت دي). (مسلم)

**حل اللغات:**- ۱ فَوَجَدْتُهُ: ما بیاموندلو هغه (یعنی حضور ﷺ). ۲ فَوَضَعْتُ: نو ما کیخودلو (خپل لاس) ۳ حُدِّثْتُ: أَيْ: حَدَّثَنِي النَّاسُ: ماته بیان کړې شوی دی.

[1] اخرجه البخاری کتاب الجمعة/باب إذا لم یطق قاعدا صلی علی جنب (رقم-۱۱۱۷) ومسلم کتاب صلاة/باب جواز النافلة قائما وقاعدا. وفعل بعض الرکعة قائما وبعضها قاعدا (رقم) ۱۲۰ - (۷۳۵) والنسائی کتاب قیام اللیل وتطوع النهار/باب فضل صلاة القائم علی صلاة القاعد (رقم-۱۶۵۹)

**تسهیلات:-**

**قوله: فَوَضَعْتُ يَدِي عَلَى رَأْسِهِ:**

**د بل په سر باندې د لاس کیښودو فرض:-** دا هل عربو عادت دي چه دَ تعجب اومحبت دَ وجې نه دَ بل په سر هغه وخت لاس ایږدی کله چه دَهغه نه دَحیرانیدو څه خبره اووینی. دَهغوی په نیزدا یوبې تکلفي او محبت وی کوم چه دَ ادب نه بالکل منافی نه دي.

**د عبدالله بن عمرو تعجب وجه:-** حضرت عبدالله بن عمر ﷺ دَرسول الله ﷺ سره هم داسې معامله اوکړه دَهغه حضورپاك ﷺ سره محبت هم وو او په صحابه کراموکښې بې ځایه تکلف هم نه وو چونکه حضورپاك ﷺ ته په دې باندې تعجب پیدا شو چه حضورپاك ﷺ په ناسته باندې مونځ اداکول ناقص ګرځولې وو او په دې باندې ئی دَنیم ثواب حکم لګولې وو نوبیا پخپله حضورپاك ﷺ په دغه ناقص عمل باندې څنګه عمل کوی.

**قوله: وَلَكِنِّي لَسْتُ كَأَحَدٍ مِنْكُمْ:**

**په ناسته مونځ پوره ثواب ملاویدل خصوصیت نبوی:-** یعنی زه ستاسو په شان نه یم ماته په هرحالت کښې پوره ثواب ملاویږی که په ناسته ئی اوکړم که په ولاړه ئی اوکړم. دَدې حدیث نه واضحه شوه چه دا تقسیم دَ نفل مونځ سره متعلق دې که بغیردَعذر نه په ناسته اوکړې شی نونیم ثواب به ملاویږی.

**[۱۲۵۴] په مانځه سره د سکون حاصلول**

۱۲۵۴-(۱)[۱۳] [۱] وَعَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «قَالَ رَجُلٌ مِنْ خُزَاعَةَ: لَيْتَنِي صَلَّيْتُ فَاسْتَرَحْتُ، [۳] فَكَأَنَّهُمْ عَابُوا ذَلِكَ عَلَيْهِ، [۴] فَقَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "أَقِمِ الصَّلَاةَ يَا بِلَالُ، أَرِحْنَا بِهَا"». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] سالم بن ابي الجعد فرمايي [۲] چې (یوه ورځ) د قبیله خزاعه یوسړي اوویل آرمان چې ما مونځ کړي وې او آرام مې موندلي وې [۳] خلقو د هغه دا خبره بده وګڼله [۴] نو هغه اوویل چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چې وي فرمایل (حضرت بلال ﷺ ته چې) اي بلاله (ﷺ) د لمانځه د پاره تکبیر اووایه چې مونږ د هغې په ذریعه راحت حاصل کړو. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① فَاسْتَرَحْتُ: آرام او راحت مې حاصل کړي وې (په عبادت اودعا سره). ② عَابُوا: عیب ئې اوګڼرلو، بده ئې اوګڼرله (د راحت حاصلولو دا خبره). ③ أَرِحْنَا: چه مونږ راحت حاصل کړو (یعنی چه زړه مو په عبادت کښې مشغوله وی نو خوشحاله به وی).

۱) اخرجه ابوداود کتاب الأدب/باب فی صلاة العتمة (رقم-۴۹۸۵)

**تسهیلات:-**

**قوله: لَيْتَنِي صَلَّيْتُ فَاسْتَرَحْتُ:**

**د حدیث پس منظر:-** مطلب دا چه یوخزاعی سړي چه پخپله هم صحابی دي دَ صحابه کرامو په وړاندې اووئیل چه افسوس ما مونځ کولې او راحت مې حاصلولې. صحابه کرامو تابعینو اوحاضرینو دَدغه سړی داخبره ناخوښه کړه ځکه چه دَدې مفهوم داهم اخستې شو چه مونځ یوبوج دې او یوه لویه ذمه واری ده زه ئې زر زر کوم چه ماته دَدې نه راحت ملاؤشی. دا سړې پوهه شو چه دې خلقو دَ دغه مفهوم غلط مطلب واخستو نوهغه دَ حضورپاك ﷺ فرمان دَ سند اودلیل په توګه باندې پیش کړو حضورپاك ﷺ حضرت بلال رضی الله عنه ته اوفرمائیل اې بلال دَ اقامت صلوة دَپاره تکبیر اووایه مونږ ته په دې باندې راحت راؤرسوه.

**د استراحت په مفهوم کښې دوه احتمالات:-**

① مونځ کوو دَ دې مانځه په ذریعه حاصلیږی الله تعالی سره دَ خبروکولو او مناجات شرف حاصلیږی او اطمینان او سکون حاصلیږی دَدې نه بغیر غم اوپریشانی وی. دَدې معنی په اعتبارسره حضوراکرم حضرت بلال ته اوفرمائیل چه تکبیراولوله "ارحنابها" یعنی دَ مونځ په ذریعه مونږ ته راحت راؤرسوه. دَ دغه صحابی خزاعی سړی مطلب هم دغه وه په دې وجه هغه دَ حضورپاك ﷺ دکلام نه استدلال کړې دې. دَ حضورپاك ﷺ دَ دویم حدیث نه داسې تصریح هم ده فرمائی "وجعلت قرة عینی فی الصلوة" زما دَسترګو یخوالې په مونځ کښې کیخودې شوې دې.

② مونځ یوذمه واری اوبوج دې کله چه مونږ اداکړو نودَ سرنه به مو بوج اوذمه واری کوزه شی. په دې مفهوم کښې بې ادبی او دَ مانځه نه دَ بې تعلق کیدو شك دې هم په دې وجه حاضرینو دَدغه سړی دا وینا ناخوښه کړه. نن صبا هم څه لاپرواه خلق په ناخیالئی کښې داقسم خبرې دَ مانځه متعلق کوی.

# [٥١/٣٥] بَابُ الْوَتْرِ

## دوتر مونځ بيان

**خلاصة الباب: -**

**فيه تسعة وثلاثون حديثاً مشتملة على عشر مسائل:**

① عدد ركعات الوتر: ١، ٢، ١٢، ٢٠، ٢٥، ٢٨، ٣، ١١، ٣٤۔
② استحباب ادار الوتر فى آخر الليل: ٢، ٥، ٦، ٧، ٨، ٩، ١٠۔
③ أداء صلاة الوتر فى أول الليل: ٧، ٨، ٩، ١٠۔
④ أداء صلاة الوتر فى وسط الليل: ٨۔
⑤ التاكيد فى الإيتار: ١٣، ١٤، ٢١، ٢٣۔
⑥ قضاء صلاة الوتر: ١٥، ٢٢۔
⑦ القراءة المسنونة فى صلاة الوتر: ١٦، ٢٤۔
⑧ قنوت الوتر: ١٧۔
⑨ الذكر المسنون بعد الوتر: ١٨، ١٩۔
⑩ صلوة الشفع بعد الوتر : ٢٦، ٢٧، ٢٨، ٢٩، ٣٠۔

**دوتر لغوى معنى: -** وتربتروترابالفتح والكسر، جفت دَ طاق كولوپه معنى كښې دې دغـه شـان دَ باب افعال نه ايتار يوځيزدَ طاق جوړولو په معنى كښې دې.

**د وتر اصطلاحى تعريف: -** وترهغه خاص مونځ تـه وئيلى شى چـه دَ ماسـخوتن دَ مانځـه نه پس كولې شى په دې باب كښې هم دَ دغه وتر بيان دې او هم دَدې متعلق احاديث دى.

**په تهجدو او مطلق صلاة الليل باندې د وترو اطلاق: -** هسې دَ وتر اطلاق دَ تهجد پـه مونځ باندې هم كيږى او مطلق صلاةالليل باندې هم دَدې اطلاق كيږى مګردلتـه هم دَهغـه معـروف اصطلاحى وتربيـان دې كوم چه وترالليل يعنى دَ شپې دَ وتر په نوم سره مشـهور دى.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [١٢٥٤] د شپې دوه دوه ركعته

١٢٥٤—()[١] ① عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«صَلَاةُ اللَّيْلِ مَثْنَى مَثْنَى، ③ فَإِذَا خَشِيَ أَحَدُكُمُ الصُّبْحَ، صَلَّى رَكْعَةً وَاحِدَةً، ④ تُوتِرُ لَهُ مَا قَدْ صَلَّى»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

١) اخرجه البخارى كتاب الوتر/باب ما جاء فى الوتر (رقم-٩٩٠) ومسلم كتاب صلاة/باب صلاة الليل مثنى مثنى، والوتر ركعة من آخر الليل (رقم-١٤٥ - (٧٤٩) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن صلاة الليل مثنى مثنى (رقم-٤٣٧) ومالك فى الموطا كتاب صلاة الليل . باب الأمر بالوتر(رقم-١٣)

**ترجمه:** ۱ ابن عمر رضی الله عنه راوي دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل ۲ د شپې مونځ دوه دوه رکعاته دي ۳ او هر کله چې د چا سره د سحر کيدو ويره شي نو يو رکعت دې وکړي ۴ دا (يو رکعت) به مخکې کړل شوي مونځ طاق کړي، بخاري مسلم.

**حل اللغات:-** ۱ مَثْنَى مَثْنَى: دوه دوه رکعته، ۲ خَشِيَ: أي: خَافَ: ويريږي (چه صبا راختونکې دې). ۳ تُوتِرُ: طاق به کړي، ناتکۍ او بې جوړې به کړي.

**تسهيلات:-**

**قوله:** تُوتِرُلَهُ مَاقَدْ صَلَّى:

**د وترو په حکم کښې مذاهب:-**

۱ امام مالك رحمه الله امام شافعي رحمه الله امام احمد بن حنبل رحمه الله او صاحبين فرمائي چه وتر سنت دی واجب نه دی.

۲ امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي چې وتر واجب دی اودَ فرض او سنت په مينځ کښې يوه درجه ده کوم ته چه واجب وائي چه عملاً دَ فرضو په شان دی او اعتقاداً واجب دی.

**داول فريق اول دليل:-**

۱ دَحضرت علی رضی الله عنه فرمان د دوی مستدل دې. دَهغوی نه چا دَ وترو دَ حيثيت باره کښې تپوس اوکړو نو هغوی په جواب کښې اوفرمائيل "الوتر ليس بحتم كصلوتكم المكتوبة ولكن سن رسول الله صلى الله عليه وسلم" (رواه الترمذي: ۱/۱۰۳)

**داول فريق د دليل جواب:-** مونږ هم وايو وتر فرض نه دی اودَدې روايت مطلب هم دغه دې چه وتر فرض نه دی بلکه واجب دی. "حتم" لفظ دَ فرض دَ پاره استعماليږي.

**داول فريق دويم دليل:-**

۲ دَ حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه روايت د دوی مستدل دې کوم چه دَ دې باب حديث نمبر ۲۳ دې دکوم الفاظ چه دا دی: ((عن مالك بلغه ان رجلا سأل ابن عمر عن الوتر واجب هو فقال عبدالله قد اوتر رسول الله صلى الله عليه وسلم واوتر المسلمون)) دلته بار بار دَ سوال په جواب کښې حضرت ابن عمر رضی الله عنه دَ واجب لفظ نه دې استعمال کړې.

**د اول فريق د دويم دليل جواب:-** دَ انصاف تقاضا خو داده چه دا روايت دَ جمهورو دليل نشي جوړيدې ځکه چه سائل بار بار سوال کړې دې چه آيا وتر فرض دی يا واجب دی؟ په جواب کښې حضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه دَ سنت لفظ وئيلو سره جواب ورکړې دې نه ئې فرض وئيلی دی نه ئې واجب وئيلی دی هغه دَ سنت دَ اطلاق نه دَ بچ کيدو کوشش کوی اودَ فرضو اطلاق هم نه کوی اودغه وخته پورې چونکه دَ واجب درجه نه وه ظاهره شوې او هغه وخت څه دليل ظنی الثبوت قطعی الدلالة يا قطعی الثبوت ظنی الدلالة نه وو نودَ واجب درجه نه وه دا درجه روستو ظاهره شوې ده.

**داول فریق دریم دلیل:-**

③ دَحضرت طحلـه بـن عبیـد الله ﷺ حـدیث هـم د دوی مـسـتدل دي پـه کـوم کـښې چـه یو اعرابی دَ حضورپاك ﷺ نه دَ پنځو مونځونونه علاوه دَ بل مونځ تپوس اوکړو چه "هل علي غيرهن؟" دَدې پـه جـواب کـښې رسـول الله ﷺ اوفرمائیـل "لاالاان تطوع" (رواه مسلم) دې نه معلومه شوه چه دَ پنځو فرضو مونځونو نه علاوه مونځ ضروری او واجب نه دې بلکه ټول تطوع او نفل دی.

**د اول فریق د دریم دلیل جواب:-** دَ اعرابی دا واقعه دَ شروع ده کوم وخت چه دَوترو حکم نه وو راغلې پـه دې کـښې خـودَ اختـرونـو دَ مونځونـو ذکـر هـم نشته دې حالانکـه جمهـور دَ عیدین وجوب منی. باقي دَ هغوی دا استدلال چه دَ وتر دَ وخت نشته، اذان او اقامت نشته نودَدې جواب دادې چه دَماسخوتن وخت دَ وترو وخت دې او وتر دَ ماسخوتن دَ مونځ تابع دی لهذا دَ جدا اذان او اقامت هم ضرورت نشته دې اودا هم څه ضروری نه دی چه دکوم مونځ دَاره اذان او اقامت نه وی هغه به سنت وی. دَ اخترونودَپاره چرته اذان او اقامت وی؟ حالانکه هغه واجب دی.

④ عقلی دلیل هم د دوی مستدل دې او ثابته کړې ده چه یو څو علامات داسې دی دکوم نه چه معلومیږی چه وتر سنت دی واجب نه دی مثلاً دَدې دَپاره څه مستقل وخت نشته دې بلکه دَماسخوتن تابع دی. دویم علامت دا چه دَدې دَپاره څه اذان اواقامت نشته دې. دریم علامت دا چه دَدې دَ پاره څه جمع نشته او پـه رمضان کـښې دَ تراویح متابعت کـښې جمع کیږی ګنی نه کیږی. دا ټول علامات پـه دې باندې دلالت کـوی چـه وتـر واجب نـه دی بلکـه سنت دی.

**ددویم فریق دلائل:-**

① دَدې باب د حضرت ابو ایوب ﷺ حدیث نمبر ۱۲ د دوی مستدل دې دکوم الفاظ چه دا دی: ((الوتر حق على كل مسلم الخ)) (ابوداؤد)

② دَحضرت بریده ﷺ حدیث ددوی مستدل دې چه ددې باب حدیث نمبر ۲۱ دې دکـوم الفاظ چه دادی. حضورپاك ﷺ درې ځل اوفرمائیل ((الوتر حق فمن لم يوتر فليس منا الخ)) (رواه ابوداؤد) دلته حق په معنی واجب دې او فلیس منا وعید دَ سخت وجوب دلیل دې.

③ دَدې باب حدیث نمبر ۱۳ د دوی مـسـتدل دې پـه کـوم کـښې چـه ((فـاوتروا يا اهـل القرآن)) الفاظ دی په کوم کښې چه دَامر صیغه ده چه دَ وجوب دلیل دې.

④ دَ حضرت خارجه بن حذافه ﷺ حدیث نمبر ۱۴ د دوی مـسـتدل دې دکـوم یـو څـو الفاظ چه دادی: ((قال خرج علينا رسول الله صلى الله عليه وسلم وقال ان الله امدكم بصلاة هي خير لكم من حمر النعم الوتر)) (ترمذی، ابوداؤد)

**طریقه د استدلال:** – دَ وترو دَ واجب کیدو دپاره دَدې حدیث نه دَ استدلال طرز داسې دې چه دلته "امدکم" الفاظو مطلب دادې چه الله تعالی تاسو ته یو زیاتی مونځ درکړې دې ستاسو نور امداد ئې کړې دې. دَ مزید او مزید علیه قاعده دا وی چه دَ مزید دپاره ضروری دی چه دَ مزید علیه انصرام اوانقطاع اواختتام اوشی ترکومې پورې چه مزید علیه محدود او متعین نه وی اوهغه انتهاء ته نه وی رسیدلې. په دې باندې دَ مزید زیاتی کیدو تصور نه شی کیدې. اوس دا کتل دی چه که چرې مزید علیه دلته سنن او نوافل واخستلې شی نودا به صحیح نه وی ځکه چه دَ نوافل دپاره څه حد نشته دې چه په دې باندې دَ نوافل انقطاع راشی او وتر په هغې باندې ورزیات کړې شی. معلومه شوه چه دَ امدکم لفظ پخپله ښائی چه مزید علیه سنن او نوافل نه دی بلکه فرائض دی او په فرائضو باندې الله تعالی یو مزید مونځ ورکړو کوم چه واجب دې او هم دغه وتر دی. بل په په دې روایت کښې ځنګه چه اهتمام او تاکید سره دَدې مونځ نسبت دَ الله تعالی طرف ته کړې شوې دې هغه هم دَ وجوب طرف ته اشاره ده.

⑤ دَدې باب حدیث نمبر ۱۵ د دوی مستدل دې په کوم کښې چه ((من نام عن وتره فليصل اذا أصبح)) الفاظ دی دکوم نه چه معلومیږی که چرې وتر قضاء شی نودَ دې واپس راګرځول ضروری دی داهم دَ وجوب دلیل دې.

⑥ امام مالک رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله دَ وترو دَ پریخودونکی باره کښې فرمائی: "يعزر تارك الوتر ولا تقبل له شهادته ابدا" دا فتویٰ هم دَدې خبرې دلیل دې چه دَدې حضراتو په نیز هم وتر واجب دی. مګر صرف په نوم کیخودو کښې فرق دې داحضرات دَ واجب په ځائی سنت نوم ایږدی او امام ابوحنیفه رحمه الله واجب نوم ایږدی ګنی په عملی توګه دَ ټولو موقف یو دې.

**قوله: صَلَّى رَكْعَةً وَاحِدَةً:**

**دوترو د رکعتونو تعداد:** – دَ وترو په مسئله کښې دیو لوئی اختلاف دَ دې دَ رکعتونو تعداد دې چه آیا وتر یو رکعت دې یا درې دی یا پنځه دی یا څومره دی؟ په روایاتو کښې دَ څو قسمه اقوالو دَ وجې نه فقهاؤ کښې اختلاف شوې دې.

**د وترو د رکعتونو په شمار کښې مذاهب:-**

① دَ امام مالک رحمه الله په نیز دَوترو درې رکعته دی لیکن په دوو سلامونو سره دی اودا سلام دَ سجده سهو دَ سلام په شان قاطع صلوة نه دې.

② دَ امام احمد رحمه الله په نیز حقیقةً او اصلاً وتر یو رکعت دې لیکن دې نه مخکښې دَ دوو رکعتو شفعه لازم ده یعنی وتر به هله اداکیږی چه دې نه مخکښې دَ دوو رکعتو شفعه وی، دې دپاره چه یو رکعت دَ دې دپاره مُوتر جوړ شی.

③ دَ امام شافعی رحمه الله په نیز وتر یو رکعت هم جائز دی کوم چه ادنٰی درجه ده اودرې هم

جائز دی کوم چه دَافضل په درجه کښې دي او ۵، ۷، ۹، ۱۱، ۱۳ رکعته هم په يو سلام سره جائز دی.

④ دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز صلوة وتر چه يو مخصوص مونځ دي هغه دري رکعته دی. دَ دريو رکعتو نه وتر کم نه دی او نه زيات دی.

خلاصه دا چه دَ امام مالك رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله مسلك دَ مال په اعتبار سره په عملی توګه دَ احنافو دَ مسلك په شان دي. دا اختلاف څه واضحه اختلاف نه دي. اصل اختلاف دَ امام شافعی رحمه الله سره پاتي شوي دي هم دَدې بيان به کولې شی.

**نوټ:**- دلته اصل اختلاف د امام شافعي او امام ابوحنيفه دې چې امام شافعي د يو رکعت وترو قائل دي او امام ابوحنيفه د دري رکعتونو قائل دې.د دې وجې امام شافعي ته اول فريق او امام ابوحنيفه ته دويم فريق عنوان ورکوو.

**د اول فريق اول دليل:-**

① دَ حضرت نافع رضي الله عنه روايت نمبر ۲۵ د دوی مستدل دې په کوم کښې چه "اوتربواحدة" الفاظ راغلی دی.

**د اول فريق د اول دليل جواب:-** د حضرت نافع په روايت کښې او دغه شان چرته چه دَ اوتربواحدة لفظ راغلې دې نو اوتر دَ طاق جوړولو په معنی کښې دې چه شفعه سره يو رکعت ملاؤ کړو وتر ئې جوړکړه دَ يو رکعت ذکر چرته هم نشته يعنی صلی بواحدة الفاظ نشته بلکه دَ اوتربواحدة الفاظ دی.

**داول فريق دويم دليل:-**

② په دې باب کښې د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما روايت نمبر ۲۰ هم د دوی مستدل دې. په هغې کښې دَ حضرت معاويه دَ يو رکعت وتر تذکره چه کله دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په وړاندې اوکړې شوه نوهغوی اوفرمائيل چه هغه صحابی رسول ﷺ هم دې او فقيه هم دې په دې وجه هغه دَ هغه په حال باندې پريږده.

**داول فريق د دويم دليل جواب:-** دَدې روايت څو جواب ورکول ضروری نه دی پخپله حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دَ حضرت معاويه رضي الله عنه عمل ناقابل عمل ګرځولو سره دَ چيرِ چاړ نه خلق منع کړل او پخپله دَ دې معاشرې دَخلقو دَ حضرت معاويه رضي الله عنه عمل ته دَ حيراتيا په نظر سره کتل او سوال کول دَدې خبرې دليل دې چه هغه وخت دَ يو رکعت وتر تصور نه وو. هم دغه وجه ده چه حضرت حسن بصری رحمه الله اوفرمائيل چه په دريو رکعتو وترو باندې دَ صحابه کرامو اجماع شوې ده.

**د اول فريق دريم دليل:-**

③ په دې باب کښې د حضرت ابوايوب انصاری رضي الله عنه حديث نمبر ۱۲ د دوی مستدل دې د

کوم الفاظ چې دا دی. «اَلْوِتْرُ حَقٌّ عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ، فَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُوتِرَ بِخَمْسٍ فَلْيَفْعَلْ، وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُوتِرَ بِثَلَاثٍ فَلْيَفْعَلْ، وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُوتِرَ بِوَاحِدَةٍ فَلْيَفْعَلْ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

**داول فریق څلورم دلیل: -**

④ په دې باب کښې دَ حضرت عبدالله بن ابی قیس رضی الله عنه روایت نمبر ۱۱هم د دوی مستدل دې. دکوم الفاظ چې دا دی. عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي قَيْسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: «سَأَلْتُ عَائِشَةَ: بِكَمْ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ يُوتِرُ؟ قَالَتْ: كَانَ يُوتِرُ بِأَرْبَعٍ وَثَلَاثٍ، وَسِتٍّ وَثَلَاثٍ، وَثَمَانٍ وَثَلَاثٍ، وَعَشْرٍ وَثَلَاثٍ، وَلَمْ يَكُنْ يُوتِرُ بِأَنْقَصَ مِنْ سَبْعٍ، وَلَا بِأَكْثَرَ مِنْ ثَلَاثَ عَشْرَةَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ

**داول فریق د دریم او څلورم دلیل جواب:** - په کومو روایتونو کښې چه دَ ۵، ۷، ۹، ۱۱ او ۱۳ رکعتونوذکر دې نوهلته وتر درې دی باقی دَ تهجد مونځ مراد دې. دَ وتر اطلاق دَ تهجد په مونځ هم کیږی "توترماقدصلی" دَ پورتنی تحقیق دپاره دلیل دې.

**د درې رکعته وترو د قائلینو دلائل: -**

① د مشکوة شریف ص: ۱۰۶ باندې دَ حضرت عائشه رضی الله عنها حدیث د دوی مستدل دې. دکوم الفاظ چه دادی: ((وعنها قالت كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يصلي من الليل ثلث عشر ركعة منها الوتر وركعتا الفجر)) په دې کښې دوه رکعته دَ سحر دی اته رکعته دَ تهجد دی او درې رکعته وتر دی.

② په مشکوة ص ۱۱۳ باندې دَ حضرت علی رضی الله عنه حدیث نمبر ۲۴ هم د دوی مستدل دې دکوم الفاظ چه دادی: ((وعن علي قال كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يوتر بثلاث يقرأ فيهن بتسع سور من المفصل يقرأ في كل ركعة بثلاث سور آخرهن قل هو الله احد)) په دې حدیث کښې بالکل تصریح موجود ده چه وتر درې رکعته دی او په هر رکعت کښې به حضورپاک صلی الله علیه وسلم درې درې سورتونه وئیل په کوم کښې چه به نهه سورتونه مکمل کیدل.

③ دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما روایت هم د دوی مستدل دې دکوم الفاظ چه دادی: ((كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يقرأ في الوتر بسبح اسم ربك الأعلى وقل يا أيها الكافرون وقل هو الله احد)) (ترمذی، نسائی)

④ دَ ابواب الوتر فصل ثانی عبدالعزیز بن جریج رحمه الله حدیث نمبر ۱۶ هم د دوی مستدل دې په کوم کښې چه دَ حضرت عائشې رضی الله عنها نه تپوس اوکړې شو چه حضورپاک صلی الله علیه وسلم به کوم کوم سورتونه په وترو کښې وئیل. حضرت عائشې رضی الله عنها دَ دوام طرف ته اشاره کولو سره اوفرمائیل چه حضورپاک صلی الله علیه وسلم به په اول رکعت کښې سورت اعلی وئیلو. دویم رکعت کښې سورت کافرون او په دریم رکعت کښې سورت اخلاص او معوذتین وئیل. دا واضحه دلیل دې چه وتر درې رکعته په یو سلام سره دی.

⑤ دَ حضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه دارقطنی کښې یو حدیث نقل دې هغوی فرمائی:

((وتر اللیل ثلاث کوتر النهار صلوة المغرب)) دا روایت موقوف هم دي او مرفوع هم دي. که چرې موقوف وی نو موقوف هم دَدې په شان په سمعی مسائلو کښې دَمرفوع په حکم کښې وی.

⑥ علامه ابن همام رحمه الله فتح القدیر کښې دَ حاکم په حواله سره یو روایت نقل کړې دې دَهغې الفاظ دا دی: ((عن عائشة قالت کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یوتر بثلاث لایسلم الافی اخرهن))

⑦ امام محمد رحمه الله په موطاء کښې دَ حضرت ابن مسعود رضی الله عنه دا اثر نقل کړې دې "ماأجزأت رکعة قط" طحاوی کښې دَ ابوخالد رحمه الله دا قول نقل کړې شوې دې هغوی فرمائی چه ما دَ ابوالعالیه رحمه الله نه دَ وترو باره کښې تپوس اوکړو نو هغوی اوفرمائیل چه مونږ ته صحابه خودلی دی او پوهه کړې یو چه وتر دَ مانبام دَ مونځ په شان دی یو دَ ورځې وتر دی او بل دَ شپې وتر دی.

⑧ حافظ ابن عبدالبر رحمه الله تمهید کښې په صحیح سند سره دَحضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه مرفوع حدیث داسې نقل کړې دې: ((ان رسول الله صلی الله علیه وسلم نهی عن البتیراء ان یصلی الرجل واحدة)) (نصب الرایه)

⑨ دَ مشکوة هم په دې صفحه ۱۰۶ باندې دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما روایت هم د دوی مستدل دې. په کوم کښې چه په واضحه توګه دا الفاظ راغلی دی: "ثم اوتر بثلاث" اودا روایت دَمسلم شریف دې.

**د احتیاط تقاضا:** - احتیاط هم په دې کښې دې چه درې رکعته اوکړې شی ځکه چه یو رکعت په دریو کښې دې او درې په یو کښې دی. بل ټولو فقهاؤ درې رکعته وتر افضل ګرځولی دی. نو هم په دغه اتفاق او افضل صورت باندې اتفاق کول پکار دی ځکه چه دا خبره په خپل ځائی باندې ثابته ده چه حضورپاک صلی الله علیه وسلم دَ یو رکعت مونځ کولو نه منع فرمائیلې ده. غیرمقلدینو له پکار دی چه هغوی دَ فقهاؤ دَ متفقه فیصلې احترام کولوسره دَ یو رکعت وتر ضد پرېږدی. لږ شان همت دې اوکړی او وراندې دې شی او درې رکعته وتر دې کوی.

**[۱۲۵۵] دشپې په آخر کښې د وتر کولو فضیلت**

۳۵۵-()[۲] ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «اَلْوِتْرُ رَكْعَةٌ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت ابن عمر رضی الله عنهما راوي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل② د شپې په آخر کې وتر کول افضل دي او یو رکعت دي، مسلم.

**تسهیلات:** - **قوله:** اَلْوِتْرُ رَكْعَةٌ:

**د یو رکعت وترو کښې تاویل:** - دَدې مطلب هم دغه دې چه دوه رکعته اول اداشوی دی کله چه یو رکعت بل ملاؤ کړو نو درې رکعته وترجوړشو. دَ ظاهری الفاظونه یوخواته دَدې تاویل

[1] اخرجه مسلم کتاب صلاة/باب صلاة اللیل مثنی مثنی، والوتر رکعة من آخر اللیل (رقم) ۱۵٤ - (۷۵۲)

ضرورت څکه پیښ شو چه په دې سره په ټولو روایاتو کښې تطبیق پیداشی. څکه چه په روایاتو کښې دَ دریو وترو په واضح توګه ذکرراغلې دې. بهرحال دَ وترو مستحب وخت دَ شپې آخری حصه ده.

## [۱۲۵٦] دپنځه رکعته وترو ثبوت

۱۲۵۱-()[۳] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً، [۳] يُوتِرُ مِنْ ذٰلِكَ بِخَمْسٍ، [۴] لَا يَجْلِسُ فِي شَيْءٍ إِلَّا فِي آخِرِهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ به د شپې (د تهجد په وخت) ديارلس رکعاته کول [۳] چې په هغه کې به پنځو رکعاتو کې به يې وتر کول [۴] او په هغه کې سوا دآخري رکعت څخه به هيڅ يو کې هم (د تشهد د پاره) به نه کيناستل، بخاري مسلم.

**تسهیلات:** -

**قوله:** يُوتِرُ مِنْ ذٰلِكَ بِخَمْسٍ:

**د شوافعو مستدل:** - شوافع حضرات دَدې نيغ په نيغه مطلب دا اخلی چه حضورپاك ﷺ به په آخره کښې پنځه رکعته وتر کول. په هغې کښې به يو سلام او آخری قعده وه بس خبره ختمه، په دې روايت کښې نور ډير تاويلات دی. والله اعلم بحقيقة الحال.

**دحديث الباب څخه د احنافو جواب:** - دَدې جملې مطلب دانه دې چه حضورپاك ﷺ پنځه رکعته وتر اوکړل بلکه دَدې مطلب دادې چه حضورپاك ﷺ ديارلس رکعته په داسې انداز سره اوکړل چه په هره شفعه باندې به تشهد وو بيا به سلام وو او بيا به حضورپاك ﷺ لږ شان آرام او استراحت فرمائيلو. ليکن آخری پنځه رکعته په کوم کښې چه به وتر وو په هغې کښې دَ شفعه کولو نه پس به حضورپاك ﷺ استراحت نه فرمائيلو بلکه دَ سلام ګرځولو نه پس به ئی بغيردَ توقف نه درې رکعته وتر کول او په دغه ټولو پنځو رکعتو کښې به حضورپاك ﷺ استراحت نه فرمائيلو.

**د حديث محمل:** - البته دَ وترو نه پس به ئی دوه رکعته په ناسته کول اوبيا به ئی استراحت فرمائيلو. خلاصه دا چه په دې حديث کښې آخری شفعه کښې دَ تهجد او وترو نقشه اوخودلې شوه اوبيا دې نه پس دوه نفل په ناسته کول او دَاستراحت کولو طرف ته اشاره کړې شوې ده. دا دَدې روايت يو داسې مطلب دې کوم چه دَ احنافو دَمسلك موافق دې څکه چه دَ احنافو په نيز وتر پنځه رکعته نهٔ بلکه درې دی.

---

[۱] اخرجه البخاري باب: كيف كان صلاة النبي صلى الله عليه وسلم؟ وكم كان النبي صلى الله عليه وسلم يصلى من الليل؟(رقم-۱۱٤۰) و مسلم كتاب صلاة/باب صلاة الليل، وعدد ركعات النبي صلى الله عليه وسلم فى الليل، وأن الوتر ركعة، وأن الركعة صلاة صحيحة(رقم) ۱۲۳ - (۷۳۷) وابوداود كتاب الصلاة/باب فى صلاة الليل (رقم-۱۳۳۸) والترمذى كتاب الوتر/باب ما جاء فى الوتر بخمس (رقم-٤٥۹)

**[۱۲۵۷] د نبی علیه السلام تهجد او وتر**

۱۲۵۷—( )[۳] [۱] وَعَنْ سَعْدِ بْنِ هِشَامٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] انْطَلَقْتُ إِلَى عَائِشَةَ، فَقُلْتُ: [۳] يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ أَنْبِئِينِي عَنْ خُلُقِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [۴] قَالَتْ: أَلَسْتَ تَقْرَأُ الْقُرْآنَ؟ قُلْتُ: بَلَى. [۵] قَالَتْ: فَإِنَّ خُلُقَ نَبِيِّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ الْقُرْآنَ. [۶] قُلْتُ: يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ أَنْبِئِينِي عَنْ وِتْرِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [۷] فَقَالَتْ: كُنَّا نُعِدُّ لَهُ سِوَاكَهُ وَطَهُورَهُ،

**ترجمه:** [۱] سعد بن هشام فرمايي [۲] چې زه د ام المؤمنين عائشه صديقه رضي الله عنها په خدمت کې حاضر شوم عرض مي وکړو [۳] چې اي د مؤمنانو مور ماته د حضور ﷺ د اخلاقو په باره کښې وښايه [۴] بي بي عائشي رضي الله عنها وفرمايل آيا تا قرآن نه دي ويلي ما عرض وکړو هو ونيلي م دي [۵] وي فرمايل چې د حضور ﷺ خلق قرآن وو [يعني په قرآن کريم کې چې څومره اخلاق کريمه او اوصاف حميده مذکور دي په حضور ﷺ کښې هغه ټول موجود وو لکه چې د حضور ﷺ اخلاقي ژوند د قرآن کريم عملي نمونه وه] [۶] بيا ما عرض وکړو چې اي د مؤمنانو موري د حضور ﷺ د وتر په باره کې ماته وښايه (چې حضور ﷺ به وتر څه وخت او څومره رکعاته کول) [۷] بي بي عائشي رضي الله عنها وفرمايل ما به (د مخکې څخه) د حضور ﷺ مسواک او اوداسه د پاره د اوبو انتظام کولو.

**حل اللغات:**- ① انْطَلَقْتُ: أَيْ: ذَهَبْتُ: لاړم، ② أَنْبِئِينِي: أَيْ: أَخْبِرِينِي: خبر راکړه ماته، ③ خُلُق: أَيْ أَخْلَاقِهِ وَشَمَائِلِهِ: يعنى اخلاق او صفات (د رسول الله ﷺ) ④ نُعِدُّ: أَيْ نُهَيِّئُ: مونږ به تيارول، ⑤ طَهُورَهُ: أَيْ: مَاءَ وُضُوئِهِ: د اودس اوبه،

[۱] فَيَبْعَثُهُ اللّٰهُ مَا شَاءَ أَنْ يَبْعَثَهُ مِنَ اللَّيْلِ، [۲] فَيَتَسَوَّكُ، وَيَتَوَضَّأُ، وَيُصَلِّي تِسْعَ رَكَعَاتٍ، [۳] لَا يَجْلِسُ فِيهَا إِلَّا فِي الثَّامِنَةِ، [۴] فَيَذْكُرُ اللّٰهَ، وَيَحْمَدُهُ، وَيَدْعُوهُ، [۵] ثُمَّ يَنْهَضُ، وَلَا يُسَلِّمُ، [۶] فَيُصَلِّي التَّاسِعَةَ، ثُمَّ يَقْعُدُ، [۷] فَيَذْكُرُ اللّٰهَ وَيَحْمَدُهُ وَيَدْعُوهُ، [۸] ثُمَّ يُسَلِّمُ تَسْلِيمًا يُسْمِعُنَا، [۹] ثُمَّ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ بَعْدَمَا يُسَلِّمُ وَهُوَ قَاعِدٌ، [۱۰] فَتِلْكَ إِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً يَا بُنَيَّ، [۱۱] فَلَمَّا أَسَنَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَخَذَ اللَّحْمَ،

**ترجمه:** [۱] او کله چې به الله تعالى جل جلاله غوښتل حضور ﷺ به يې راپاڅولو [۲] د بيداريدو څخه وروسته به يې اول مسواک کولو بيا به يې اودس کولو او نهه رکعاته مونځ به يې کولو [۳] او سوا د اتم رکعت څخه په بل يو رکعت کې به نه کيناستل [۴] اتم رکعت چې به يې وکړو نو (په تشهد کې به) کيناستل او د الله جل جلاله ذکر به يې کولو او د هغه تعريف به يې بيانولو او دعا به يې غوښتله (يعني التحيات به يې ويله چې په هغې کې د الله جل جلاله ذکر، حمد او دعا هر څه شته) [۵] بيا سلام ګرځولو نه بغير د نهم رکعت کولو د پاره به ودريدلو [۶] بيا نهم رکعت پوره کولو سره (په تشهد کې به) کيناستل [۷] او د الله جل جلاله ذکر به يې کولو د

[۱] اخرجه مسلم كتاب صلاة/باب جامع صلاة الليل، ومن نام عنه أو مرض (رقم) ۱۳۹ - (۷۴۶)

هغه تعریف به یي بیانولو او د هغه څخه به یي دعا غوښتله (یعني التحیات ویلو نه پس چې کومه دعا کیږي هغه به یي کوله) [۸] بیا مونږ ته اورولو سره (په اوچت آواز به یي) سلام ګرځولو [۹] بیا سلام ګرځولو څخه وروسته په ناسته دوه رکعاته به یي کول، [۱۰] اي زما زویه دا ټول یولس رکعاته شو [۱۱] او کله چې د حضور ﷺ عمر مبارك زیات شو او (د بوډاتوب په وجه) یي په بدن باندې غوښه راغله

**حل اللغات:** - ⑥ فَيَبْعَثُهُ اللّٰهُ: أَيْ: يُوقِظُهُ: رابیدار به کړو هغه لره الله تعالی. ⑦ يَنْهَضُ: أَيْ: يَقُومُ: اودریدلو به، ⑧ أَسَنَّ: أَيْ: كَبِرَ: عمرمبارك ئې زیات شو، بوډا شو. ⑨ أَخَذَ اللَّحْمَ: په بدن ئې غوښه راغله،

[۱] أَوْتَرَ بِسَبْعٍ، وَصَنَعَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ مِثْلَ صَنِيعِهِ فِي الْأُولَى، [۲] فَتِلْكَ تِسْعٌ يَا بُنَيَّ. [۳] وَكَانَ نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى صَلَاةً أَحَبَّ أَنْ يُدَاوِمَ عَلَيْهَا، [۴] وَكَانَ إِذَا غَلَبَهُ نَوْمٌ أَوْ وَجَعٌ عَنْ قِيَامِ اللَّيْلِ، [۵] صَلَّى مِنَ النَّهَارِ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً، [۶] وَلَا أَعْلَمُ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ الْقُرْآنَ كُلَّهُ فِي لَيْلَةٍ، [۷] وَلَا صَلَّى لَيْلَةً إِلَى الصُّبْحِ، [۸] وَلَا صَامَ شَهْرًا كَامِلًا غَيْرَ رَمَضَانَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] نو اوه رکعاته به یي دوترو سره کول او دوه رکعاته به یي د مخکې په شان یعنی په ناسته کول، [۲] اي زما زویه دا ټول نهه رکعاته شو [۳] او حضور ﷺ چې به کله یو مونځ کولو نو دا خبره به یي خوښوله چې هغه همیشه کوي [۴] او کله چې به ورته خوب زیات راغې یا څه تکلیف به پیښ شو چې د هغې په وجه به حضور ﷺ ته په شپه کې پاڅیدل ممکن نه شو [۵] نو د ورځې په اولنې حصه کې (یعني د زوال څخه مخکې) به یي دولس رکعاته کول [۶] او ما ته نه ده معلومه چې حضور ﷺ کله هم په یوه شپه کې پوره قرآن ویلي وي [۷] یا تر سحر پورې (شروع د شپې څخه د شپې تر آخر پورې) یي مونځ کړي وي [۸] اونه حضور ﷺ سوا د رمضان (د روژې میاشت) څخه پوره میاشت روژې نیولې دي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ⑩ يُدَاوِمَ: چه همیشه ئې اوکړی، ⑪ وَجَعٌ: أَيْ: مَرَضٌ أَوْ أَلَمٌ: یعنی بیماری او تکلیف.

**تسهیلات:** -

**قوله:** لَا يَجْلِسُ فِيهَا إِلَّا فِي الثَّامِنَةِ:

**د شوافعو مستدل:** - دا روایت هم دَ سابقه روایت په شان دَ شوافع مستدل دي چه په یوسلام سره اته رکعته کول جائزدی.

**قوله:** ثُمَّ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ مَا يُسَلِّمُ وَهُوَ قَاعِدٌ:

**د وترڅخه روسته د دوو رکعتونو په حکم کښې مذاهب:** -

① امام مالك رحمه الله دَ وترونه پس دوه نفل کولو حدیث نه دې قبول کړې.

② حضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی نه ئې زه پخپله کوم اونه څوك منع کوم.

③ جمهور فقهاء وائی چه دَدې نه انکارنه شی کیدلې ځکه چه دا دوه نفل ثابت دی.

**د وترو څخه روسته د نفلو په حکم کښې تعارض:-** په دې کښې زبردست بحث شوې دې چه وترونه پس دوه نفل کول څنګه دی. په یوحدیث کښې صفاحکم دې چه خپل دَ وترو مونځ دَ شپې آخری مونځ جوړکړئ دې نه معلومیږی چه وترونه پس هیڅ مونځ نشته دې. لیکن دلته په دې حدیث کښې ذکر دی چه حضورپاک ﷺ په ناسته باندې دوه رکعته دَ وترو نه پس کړی دی؟

**د تعارض جوابونه:-**

① دواړه طریقې جائزدی کول ئې هم جائز دی اونه کول ئې هم جائزدی. په حدیث کښې چه کومه دامر صیغه ده دَهغې حکم استحبابی دې وجوبی نه دې لهذا څه تعارض پاتې نه شو.

② هم دَ ماسخوتن په وخت وتر کولې شی نودا دوه رکعته دَ ولاړې په ځائې په ناسته کول پکاردی ګنې نه دې کول پکار. په دې سره به هم تعارض لرې شی.

**خلاصه د بحث:-** خلاصه دا چه داخبره ډیره ښکاره اوواضحه ده چه دَدې دوو نفلو دَ کولوخبره هغه وخت ده کله چه وتر دَ ماسخوتن په وخت کښې کولې شی چه دَ شپې په آخری حصه کښې وتر وی نوبیا به هم وتر آخری مونځ وی دا یوه ګراه مسئله ده حقیقت هم الله تعالی ته معلوم دې.

**قوله:** وَلَا صَامَ شَهْرًا كَامِلًا غَيْرَ رَمَضَانَ:

**اشکال:-** یعنی دَ رمضان نه علاوه ئې دَ بلې یوې میاشتې پوره روژې نه دی ساتلی. دَدې حدیث دَحضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها دَهغه حدیث سره تعارض دې په کوم کښې چه ذکر دی چه حضورپاک ﷺ دَ شعبان مکمل روژې ساتلې.

**د اشکال جواب:-** دَ دې جواب هم دَ حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها په یوروایت سره کیږی چه حضورپاک ﷺ به اکثر او غالب حصه دَ شعبان په روژو سره تیروله نو فللاکثرحکم الکل په رڼاکښې تعارض نه پاتې کیږی.

**[۱۲۵۸] په وترو کښې د تاخیر حکم**

۱۲۵۸ —(¹)[۵]① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: ②" «اجْعَلُوا آخِرَ صَلَاتِكُمْ بِاللَّيْلِ وِتْرًا» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① ابن عمر رضی الله عنهما راوي دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل ② د خپلې شپې د لمانځه آخري مونځ وتر وګرځوئ. (مسلم)

[1] اخرجه البخاری کتاب الجمعة/باب: لیجعل آخر صلاته وترا (رقم۹۹۸) ومسلم کتاب صلاة/باب صلاة اللیل مثنی مثنی، والوتر رکعة من آخر اللیل (رقم) ۱۵۱ - (۷۵۱)

**تسهیلات:-**

**قوله: اجْعَلُوا آخِرَ صَلَاتِكُمْ بِاللَّيْلِ وِتْرًا:**

**دفرضو په اعتبار سره دوترو حکم:-** یعني دفرض مونځ اعتبار سره وتر په آخر کښي کول پکار دی. آخری مونځ د وترو پکار دي. ګني بیا به دوترو څخه روسته د دوؤ رکعتو باره کښي اشکال وی چي آخری مونځ خو دوه رکعته دي وتر نه دی. ددي حدیث په وجه ځیني حضراتو د وترو څخه روسته د دوؤ رکعتو څخه انکار کړي دي.

**[۱۲۵۹] د صبا څخه وړاندي دوترو کولو جواز**

۱۲۵۹-()[۲][۱] وَعَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: [۲] «بَادِرُوا الصُّبْحَ بِالْوَتْرِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] ابن عمر رضي الله عنه راوي دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د سحر (اثار ظاهریدو باندي) په وتر کولو کي تلواري کوئ. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① بَادِرُوا الصُّبْحَ: أَيْ: أَسْرِعُوا: جلتی کوئ.

**تسهیلات:-**

**قوله: بَادِرُوا الصُّبْحَ بِالْوَتْرِ:**

**د نبی علیه السلام دوترو ادا کولو مختلف وختونه:-** نبی کریم ﷺ به وتر په مختلفو وختونو کښي ادا کول. کله به ئي په اوله شپه کښي او کله په نیمه شپه کښي او کله په آخر اللیل کښي تهجدو سره ادا کولو.

**[۱۲۶۰] دوتر وختونه**

۱۲۶۰-()[۷][۱] وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «مَنْ خَافَ أَنْ لَا يَقُومَ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ فَلْيُوتِرْ أَوَّلَهُ، [۳] وَمَنْ طَمِعَ أَنْ يَقُومَ آخِرَهُ فَلْيُوتِرْ آخِرَ اللَّيْلِ، [۴] فَإِنَّ صَلَاةَ آخِرِ اللَّيْلِ مَشْهُودَةٌ، وَذٰلِكَ أَفْضَلُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت جابر رضي الله عنه راوي دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړي ته چي د دي خبري خوف وي چي د شپي په آخر کي به وتر کولو د پاره نشم پاڅیدلي نو هغه ته پکار دي چي هغه د شپي په شروع کي (یعني د ماسخوتن څخه وروسته) وتر وکړي [۳] او د کوم سړي چي په آخري شپه کي د ودریدو امید وي نو هغه دي د شپي په آخر کي وتر وکړي [۴] ځکه چي د شپي آخر مونځ مشهوده دي (یعني دا وخت د رحمت د فرشتو او د انوارو او

[1] اخرجه مسلم کتاب صلاة/باب صلاة اللیل مثنی مثنی، والوتر رکعة من آخر اللیل (رقم) ۱۴۹ - (۷۵۰) والترمذی کتاب الوتر/باب ما جاء فی مبادرة الصبح بالوتر (رقم-۴۶۷)

[2] اخرجه مسلم فی کتاب صلاة/باب من خاف أن لا یقوم من آخر اللیل فلیوتر أوله (رقم-۱۶۲ - (۷۵۵) والترمذی کتاب الوتر/باب ما جاء فی کراهیة النوم قبل الوتر (رقم-۴۵۵) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها/باب ما جاء فی الوتر آخر اللیل (رقم-۱۱۸۷) ومالک فی کتاب صلاة اللیل، باب الأمر بالوتر(رقم-۱۸)

برکاتو نزول کیږي) او دا (یعني د شپې په آخر کې مونځ کول) افضل دي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① طَمِعَ: طمع او اطمينان ئې وی (چه په آخره شپه کښې به راپاسی). ② مَشْهُودَةٌ: أَيْ: مَحْضُورَةٌ تَحْضُرُهَا مَلَائِكَةُ الرَّحْمَةِ: حاضرېږی ورته فرشتې دشپې والاو د ورځې والا.

**تسهيلات:** -

**قوله:** فَلْيُوتِرْ آخِرَ اللَّيْلِ:

**د شپې په آخری حصه کښې د وتر کولو فائدې:** -

① دَ شپې په آخری حصه کښې پاسیدل پخپله یوریاضت اوعبادت دې

② بیاخیته خالی وی نو په عبادت کښې مشکل نه وی بلکه زړه ورسره لګی

③ بیا یوشان والی یعنی یوازې والې وی اودَالله تعالی دَ انواراتو او برکاتو نزول کیږی.

**د دین په کارونو کښې د مشغولو خلقو دپاره د دوؤ رکعتونو حکم:** - په دې وجه ارشاد اوشو که دَ چا په اول شپه کښې یقین وی چه هغه په آخری حصه دَ شپې کښې پاسیدې شی نوهغه له پکاردی چه وتر روستواوکړی دې دَپاره چه دَهغه وخت فضائل حاصل شی. یا که څوک علمی کارکوی طالب علم وی مطالعه اوتکرار کوی او دَ ناوخته پورې په تحریر اوتقریرکښې مشغول وی نوهغه دې ماسخوتن وتراوکړی اوده دې شی. لکه څنګه چه دَ راتلونکی حضرت ابوهریره رضی الله عنه دَ روایت مطلب هم دغه دې. شیخ عبدالحق رحمه الله لیکی چه طالب علم دې دَ ماسخوتن په وخت دوه رکعته نفل اوکړی دا ثوابَ به ورته حاصل شی. [اشعة المعات: ۵۷۲]

**[۱۲۶۱] د نبی علیه السلام وتر**

۱۲۶۱-(۸)[۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲]«مِنْ كُلِّ اللَّيْلِ أَوْتَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، [۳] مِنْ أَوَّلِ اللَّيْلِ وَأَوْسَطِهِ وَآخِرِهِ، [۴] وَانْتَهَى وِتْرُهُ إِلَى السَّحَرِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ام المؤمنین بي بي عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمایي [۲] چې رسول الله ﷺ د شپې په هره حصه کې وتر مونځ کړي دي [۳] یعنی د شپې په ابتدا کې هم (یعني د ماسخوتن د لمانځه څخه سمدستي وروسته) د شپې په مینځني حصه کې هم او د شپې په آخر کې هم [۴] خو په آخر عمر کې حضور ﷺ د وتر د پاره سحر ته نزدې وخت یعنی د شپې شپږمه حصه مقرر کړي وه. (بخاري، مسلم)

---

[۱] اخرجه البخاری کتاب الجمعة/باب ساعات الوتر (رقم-۹۹۶) ومسلم کتاب صلاة/باب صلاة اللیل، وعدد رکعات النبی صلی الله علیه وسلم فی اللیل، وأن الوتر رکعة، وأن الرکعة صلاة صحیحة(رقم) ۱۳۷ - (۷۴۵) والترمذی کتاب الوتر/باب ما جاء فی الوتر من أول اللیل وآخره (رقم-۴۵۶) والنسائی کتاب قیام اللیل وتطوع النهار/باب وقت الوتر (رقم-۱۶۸۱)وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها/باب ما جاء فی الوتر آخر اللیل (رقم-۱۱۸۶)

**تسهيلات:-**

**نوټ:-** د حديث مفهوم د ترجمې څخه واضح او ښکاره دی. تشريح ته ضرورت نشته.

**[۱۲۶۲] ابوهريره ﷺ ته د درې خبرو وصيت**

۱۲۶۲-(۱)[۹][۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲]«أَوْصَانِي خَلِيلِي بِثَلَاثٍ: [۳]صِيَامِ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ، [۴]وَرَكْعَتَيِ الْفَجْرِ، [۵]وَأَنْ أُوتِرَ قَبْلَ أَنْ أَنَامَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابوهريره رضي الله عنه فرمايي [۲] چې زما دوست يعنی رسول الله ﷺ ماته د درېو خبرو وصيت کړې وو [۳] ① اول يو خو په هره مياشت کې د درېو روژو نيولو [۴] ② دويم دوه رکعاته د څاښت لمانځه کولو [۵] ③ دريم دا چې د اوده کېدو څخه مخکې وتر وکړم. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:-** ① أَوْصَانِي: أَيْ: عَهِدَ إِلَيَّ وَأَمَرَنِي أَمْرًا مُؤَكَّدًا: زما نه ئې لوظ اخستې دې يا دا چه په تاکيد سره ئې راته حکم کړې دې. ② خَلِيلِي: يَعْنِي رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: دوست زما يعنی رسول الله ﷺ.

**تسهيلات:- قوله:** أَوْصَانِي خَلِيلِي بِثَلَاثٍ:

**ابوهريره ته درې وصيتونه:-**

① هره مياشت د درېو روژو نه مراد يا خود هرې عشرې په آخر کښې يوه روژه ده. يا د ايام بيض روژې، ديارلسمه، څوارلسمه او پنځلسمه روژې مراد دی. هم دا راجح دی. څکه نبی کريم ﷺ به هم په دې ورځو کښې روژې نيولې.

② د څاښت دوه رکعته مونځ.

③ د اوده کېدو څخه وړاندې وتر کول.

**ابوهريره رضی الله عنه ته د خوب څخه وړاندې د وتر کولو وجه:-** حضرت ابوهريره رضی الله عنه به زيات تر وخت د احاديثو په حفظ کولو کښې تيرولو او ناواخته به اوده کېدل. په دې وجه ئې هغوی ته حکم ورکړو چې هسې نه د خوب د غلبې په وجه اوده پاتې شي او وتر درنه پاتې شي.

**طالبانو دپاره د وتر ادا کولو حکم:-** د دې نه معلومه شوه چې دينی طلباء دپاره دا بهتر ده چې د شپې ناوخته پورې په تعليم کښې مشغول اوسي محنت کوي او د اوده کېدو څخه وړاندې وتر ادا کوي. د هغوی سبق يادول د وترو څخه زيات افضل دی.

[۱] اخرجه البخاري كتاب الجمعة/باب صلاة الضحى فى الحضر قاله عتبان بن مالك. عن النبى صلى الله عليه وسلم (رقم-۱۱۷۸) ومسلم كتاب صلاة/باب استحباب صلاة الضحى. وأن أقلها ركعتان. وأكملها ثمان ركعات. وأوسطها أربع ركعات. أو ست. والحث على المحافظة عليها (رقم-۸۵ - (۷۲۱) وابوداود كتاب الطهارة/باب فى الجنب يؤخر الغسل (رقم- ۲۲۶)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۱۲۶۲] د وترو ادا کولو په وخت کښې د نبی علیه السلام معمول

۱۲۶۳ــ() [۱۰] ① عَنْ غُضَيْفِ بْنِ الْحَارِثِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «قُلْتُ لِعَائِشَةَ: أَرَأَيْتِ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَغْتَسِلُ مِنَ الْجَنَابَةِ فِي أَوَّلِ اللَّيْلِ أَمْ فِي آخِرِهِ؟ ③ قَالَتْ، رُبَّمَا اغْتَسَلَ فِي أَوَّلِ اللَّيْلِ ④ وَرُبَّمَا اغْتَسَلَ فِي آخِرِهِ. ⑤ قُلْتُ: اللّٰهُ أَكْبَرُ، الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي جَعَلَ فِي الْأَمْرِ سَعَةً، ⑥ قُلْتُ: كَانَ يُوتِرُ أَوَّلَ اللَّيْلِ أَمْ فِي آخِرِهِ؟ ⑦ قَالَتْ: رُبَّمَا أَوْتَرَ فِي أَوَّلِ اللَّيْلِ، ⑧ وَرُبَّمَا أَوْتَرَ فِي آخِرِهِ.

**ترجمه:** ① غضیف ابن حارث فرمايي ② چي ما د بي بي عائشي رضی الله عنها څخه پوښتنه وکړه چي حضور ﷺ به د جنابت (لويي بې اودسي) غسل د شپې په شروع کې کولو يا د شپې په آخر کې (یعني حضور ﷺ به د جماع څخه فارغيدو نه پس لامبل يا هغه وخت به اوده کيدو او کله چي به د تهجد د لمانځه د پاره پاڅيدلو نو لامبل به ئې؟ ③ بي بي عائشي رضی الله عنها وفرمايل کله خو به حضور ﷺ د جماع د فارغيدو سره د شپې په شروع کې لامبل ④ او کله به يي په آخر کې غسل کولو ⑤ ما اوويل الله جل جلاله ډير لوي دي ټول تعريفونه د الله جل جلاله د پاره لائق دي چي په ديني امورو کې يي آساني ګرځولي ده ⑥ بيا مې خپلې پوښتنه وکړه چي حضور ﷺ به وتر مونځ د شپې په شروع کې (د ماسخوتن څخه سمدستي وروسته) کولو يا د شپې په آخر کې به يي کولو؟ ⑦ بي بي عائشي رضی الله عنها وفرمايل چي کله به يي د شپې په شروع کې کول ⑧ او کله به يي د شپې په آخر کې کول.

**حل اللغات:-** ① رُبَّمَا: کله کله

① قُلْتُ: اللّٰهُ أَكْبَرُ، الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي جَعَلَ فِي الْأَمْرِ سَعَةً، ② قُلْتُ: كَانَ يَجْهَرُ بِالْقِرَاءَةِ أَمْ يَخْفِتُ؟ ③ قَالَتْ: رُبَّمَا جَهَرَ بِهِ، وَرُبَّمَا خَفَتَ. ④ قُلْتُ: اللّٰهُ أَكْبَرُ، الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي جَعَلَ فِي الْأَمْرِ سَعَةً». رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ، ⑤ وَرَوَى ابْنُ مَاجَةَ الْفَصْلَ الْأَخِيْرَ.

**ترجمه:** ① ما اوويل الله جل جلاله ډير لوي دي ټول تعريفونه د الله جل جلاله د پاره لائق دي چا چي په ديني امورو کې آساني پيدا کړي ده ② بيا مې پوښتنه خپلې وکړه چي حضور ﷺ به د تهجد په لمانځه کې يا مطلقًا په لمانځه کې قراءت په اوچت آواز سره کولو يا په ښکته آواز سره؟ ③ بي بي عائشي رضی الله عنها مبارکي وفرمايل چي کله خو به يي په اوچت آواز سره قراءت کولو او کله په ښکته آواز سره ④ ما اوويل الله جل جلاله ډير لوي دي ټول تعريفونه د الله جل جلاله د پاره مناسب دي چي هغه په ديني امورو کې آساني وګرځوله، ابوداؤد، ⑤ ابن ماجه ددې روايت حرف آخري فقره (چي په هغې کې د قراءت کولو ذکر دي) نقل کړي ده.

[1]) اخرجه ابوداود فی کتاب الطهارة/باب فی الجنب يؤخر الغسل (رقم- ۲۲۶) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فی القراءة فی صلاة الليل (رقم-۱۳۵۴)

**حل اللغات:-** ② سَعَةً: أَيْ وُسْعَةً: فراخي، آسانتيا. ③ أَمْ يَخْفُتُ؟: أَيْ: يُسِرُّبِهَا: يا پټ به ئې ونيلو (قراءت)؟.

**تسهیلات:-**

**قوله:** رُبَّمَا جَهَرَ بِهِ، وَرُبَّمَا خَفَتَ:

**په تهجدو کښې د قرآءت په سراً اوجهراً ئيلو کښې قاعده:-** د رسول کريم ﷺ د شپې په اوله حصه کښې تهجد کول د امت د آسانتيادپاره وو. ددې وجه دا وه چې ګنی حضور ﷺ ته په رابيداريدو بهروسه نه وه. که يو ځائې کښې خلق رابيديدارول وی نو هلته په اوچت آواز سره تلاوت کول پکار دی. او کوم ځائې کښې چې ملاستو خلقو ته تکليف رسولوځخه پرهيزکول وی نو تلاوت دې په کم آواز سره اوکړې شی.

**[۱۲٦٤] د تهجد مونځ او د وترو رکعتونو شمار**

۱۲٦٤-()[۱] ۱ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي قَيْسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ۲ «سَأَلْتُ عَائِشَةَ: بِكَمْ كَانَ رَسُولُ اللهِ يُوتِرُ؟ ۳ قَالَتْ: كَانَ يُوتِرُ بِأَرْبَعٍ وَثَلَاثٍ، وَسِتٍّ وَثَلَاثٍ، ۴ وَثَمَانٍ وَثَلَاثٍ، وَعَشْرٍ وَثَلَاثٍ، ۵ وَلَمْ يَكُنْ يُوتِرُ بِأَنْقَصَ مِنْ سَبْعٍ، ٦ وَلَا بِأَكْثَرَ مِنْ ثَلَاثَ عَشْرَةَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ

**ترجمه:** ۱ عبدالله بن ابي قيس فرمايي ۲ چې ما د بي بي عائشې رضي الله عنها ځخه پوښتنه وکړه چې حضور ﷺ به څورکعاته سره وتر کول؟ ۳ بي بي عائشې رضي الله عنها وفرمايل چې حضور ﷺ به کله د څلور او دريو (يعني اوه)، کله د شپږو او دريو (يعني نهه) رکعاتو سره ۴ کله د اتو او دريو (يعني يولس) رکعاتو سره او کله د لسو او دريو (يعني ديارلس) رکعاتو سره وتر کول ۵ او حضور ﷺ به د اوو ۷ ځخه کم هيڅ کله وتر نه کول ٦ او د ديارلس ۱۳ ځخه زيات رکعاتونو سره به يې هم وتر نه کول. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① أَنْقَصَ: کم،

**تسهیلات:-**

**قوله:** بِأَرْبَعٍ وَثَلَاثٍ:

**د نبی کريم د قيام الليل د رکعتونو په تعداد کښې مختلف کيفيتونه:-**

① حضورپاك ﷺ به څلوررکعته تهجداو درې وتر کول. دَ کوم مجموعه چه اووه رکعته ده.

② کله به ئې شپږ تهجد او درې وتر کول دکوم مجموعه چه نهه رکعته جوړيږی.

③ کله به ئې اته تهجد او درې وتر کول چه يوولس رکعته جوړيږی.

④ کله به ئې لس رکعته تهجد او درې رکعته وتر کول دَ کوم مجموعه چه ديارلس جوړيږی.

---

[۱] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة/باب فی صلاة الليل (رقم-۱۳٦۲)

**په وترو کښې د احنافو مؤید حدیث:** – حضرت عائشه رضي الله عنها چه په کوم اهتمام سره درې وتر جدا ذکر کړی دی دادې خبرې واضح دلیل دې چه وتر هم درې رکعته دی.

**په تهجدو کښې د نبی کریم عام معمول:** – په آخره کښې حضرت عائشه رضي الله عنها دَ حضورپاک ﷺ عام عادت بیان کړې چه په عمومی توګه په حضورپاک ﷺ دَ اووه نه کم او دَ دیارلسونه زیات وتر یعنی تهجداو وتر دواړه نه کول. دلته دَ وتر اطلاق په تهجدباندې هم شوې دې اوداحصر دَعمومی حالاتو په اعتبارسره دې ګنی پنځه رکعته او پنځلس هم ثابت دی مګر هغه معمول کم وو.

## [۱۲٦٥] دوترو وجوب

۱۲٦۵–(۱)[۱۲] [۱] وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «اَلْوِتْرُ حَقٌّ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ، [۳] فَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُوتِرَ بِخَمْسٍ فَلْيَفْعَلْ، [۴] وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُوتِرَ بِثَلَاثٍ فَلْيَفْعَلْ، [۵] وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُوتِرَ بِوَاحِدَةٍ فَلْيَفْعَلْ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] ابو ایوب رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] وتر مونځ په هر مسلمان باندې حق (لازم) دی [۳] کوم سړي چې وتر پنځه رکعاته کول غواړي هغه دي پنځه وکړي [۴] او کوم سړي چې درې رکعاته کول غواړي هغه دي درې وکړي [۵] او کوم سړي چې یو رکعت کول غواړي هغه دي یو وکړي. (ابوداؤد، نسايي، ابن ماجه)

**تسهیلات:** -

**قوله:** اَلْوِتْرُ حَقٌّ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ:

**دوترو د وجوب دلیل:** – په دې حدیث سره دَ وترو واجب کیدل په واضحه توګه ښکاره شوی دی بیا دَ وترو دَ دریو پنځو او یورکعت ذکردې.

چنانچه سفیان ثوری رحمه الله پنځه رکعته اخستی دی دلته شوافع یورکعت اخستې دې اواحنافو درې رکعته اخستې دی دغه شان دَ حضورپاک ﷺ هیڅ یوقول په زمکه غورزیدوته نه دې پریخودې.

## [۱۲٦٦] دوترو فضیلت

۱۲٦٦–(۲)[۱۳] [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «إِنَّ اللّٰهَ وِتْرٌ يُحِبُّ الْوِتْرَ، [۳] فَأَوْتِرُوا يَا أَهْلَ الْقُرْآنِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

---

[۱] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة/باب فی صلاة اللیل (رقم-۱۳٦۲) کتاب الصلاة، باب کم الوتر؟ (رقم-۱٤۲۲)

[۲] اخرجه البخاری کتاب الرقاق/باب: لله مائة اسم غیر واحد (رقم-٦٤۱۰) ومسلم کتاب الذکر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب فی أسماء الله تعالی وفضل من أحصاها (رقم-۵ – ۲٦۷۷) وابوداود کتاب الصلاة، باب استحباب الوتر (رقم-۱٤۱٦) والترمذی کتاب الوتر/باب ما جاء أن الوتر لیس بحتم (رقم-٤۵۳) والنسائی کتاب قیام اللیل وتطوع النهار/باب الأمر بالوتر (رقم-۱٦۷۵) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها/باب ما جاء فی الوتر (رقم-۱۱٦۹)

**ترجمه:**[۱] اميـر المـؤمنين حـضرت علـي كـرم الله وجهـه راوي دي چـې رسـول الله ﷺ وفرمايل[۲] الله تعالى جَلَّ جَلَالُهُ وتر(يكي يو) دي وتر خوښوي[۳] نو اي د قرآن والو وتر كوي، (ترمذي،ابوداؤد،نسايي)

**حل اللغات:**- ① إِنَّ اللّٰهَ وِتْرٌ: أَيْ وَاحِدٌ فِي ذَاتِهٖ: يعنى الله تعالى په خپل ذات كښې او خپلو صفاتو كښې خان له دي د هغه څوك مثل، شريك او نظير نشته.

**تسهيلات:**-

**قوله:** إِنَّ اللّٰهَ وِتْرٌ يُحِبُّ الْوِتْرَ:

**د الله تعالى په حق كښې د وتر مفهوم:**-الله تعالى په خپلو افعالو كښې هم يوازې دې دهغه څوك امدادى نشته. هغه طاق عدد خوښوى او وتر هم طاق دى. په دې وجه الله تعالى وتر خوښوى او د دې اداكونكى ته ډير زيات ثواب وركوى. د اهل قرآن نه مراد توحيد او اهل ايمان مسلمانان دى.

**[۱۲۶۷] د سرو اوښانو څخه د وترو افضليت**

۱۲۶۷-()[۱۳][۱] وَعَنْ خَارِجَةَ بْنِ حُذَافَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ: [۳] "«إِنَّ اللّٰهَ أَمَدَّكُمْ بِصَلَاةٍ هِيَ خَيْرٌ لَكُمْ مِنْ حُمْرِ النَّعَمِ: [۴] الْوِتْرُ جَعَلَهُ اللّٰهُ لَكُمْ فِيمَا بَيْنَ صَلَاةِ الْعِشَاءِ إِلَى أَنْ يَطْلُعَ الْفَجْرُ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:**[۱] خارجه بن حذافه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي[۲] چې (يو ځل) حضور ﷺ مونږ لره تشريف راوړو او وي فرمايل [۳] الله جل شانه په يو (داسي) لمانځه سره ستاسو امداد كړي دي (يعني د پنځه وختـه لمونځونو څخه علاوه يو بل زياتي مونځ يي تاسو ته دركړي دي) چې ستاسو د پاره د سرو اوښانو څخه بهتر دي[۴] او هغه وتر مونځ دي او ستاسو د پاره د دې مونځ وخت د ماسخوتن د لمانځه څخه وروسته تر فجر ختو پورې د مينځ وخت مقرر كړي دي (يعني د دې وخت د دې وختونو په مينځ مينځ كې دي كله چې غواړي وي كړي) (ترمذي،ابوداؤد)

**حل اللغات:**- ① أَمَدَّكُمْ: أَيْ: جَعَلَهَا زِيَادَةً لَكُمْ: امداد كوى يعنى زياتوى ستاسو دپاره. ② حُمْر: د أَحْمَر جمع ده، سور رنګ ته وائى. ③ النَّعَمِ: أَيِ الْإِبِلُ: اوښانو ته وائى.

**تسهيلات:**-

**قوله:** هِيَ خَيْرٌ لَكُمْ مِنْ حُمْرِ النَّعَمِ:

**د سرو اوښانو د ذكر كولو وجه:**-د عربو په نيز سره اوښان ډير خوښولي او ښه ګڼړلي شى. او د عربو په اموالو كښې د ټولو نه زيات قيمتى وى. په دې وجه حضورپاك ﷺ د وترو ترغيب

[1]) اخرجه ابوداود فيكتاب الصلاة،باب استحباب الوتر (رقم-۱۴۱۸) والترمذى كتاب الوتر/باب ما جاء فى فضل الوتر (رقم-۴۵۲) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فى الوتر (رقم-۱۱۶۸)

ورکولوکښې دَ دغه اوښانو ذکر اوفرمائیلو. په دې حدیث کښې دا هم اوخودلې شو چه وتر دَ ماسخوتن دَ مونځ تابع دی. لهذا دَ ماسخوتن دَ مونځ نه مخکښې نه شی اداکیدلې.

**[۱۲۶۸] دوتر د قضاء حکم**

۱۲۶۸ —()[۱۵] [۱] وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «مَنْ نَامَ عَنْ وِتْرِهِ فَلْيُصَلِّ إِذَا أَصْبَحَ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ مُرْسَلًا.

**ترجمه:** [۱] زید بن اسلم رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړي چې د وتر څخه غافل کیدو سره (یعني د وتر کولو څخه بغیر) اوده شی نو هغه ته پکار دي چې کله سحر شی نو ودي کړي دا روایت ترمذي بطریق ارسال نقل کړي دي.

**تسهیلات:** -

**قوله:** فَلْيُصَلِّ إِذَا أَصْبَحَ:

**د وترو د قضاء راوړلو په وخت کښې دوه اقوال:** -

① د دې قضاء به د نمبر خاته څخه وړاندې وړاندې وی،

② د سحر د مونځ نه پس هم کیدې شی.

**[۱۲۶۹] په وترو کښې مسنون قراءت**

۱۲۶۹ —()[۱۶] [۱] وَعَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: [۲] «سَأَلْنَا عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، بِأَيِّ شَيْءٍ كَانَ يُوتِرُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ [۳] قَالَتْ: " كَانَ يَقْرَأُ فِي الْأُولَى بِـ ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى﴾ [الأعلى: ۱] وَفِي الثَّانِيَةِ بِـ ﴿قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ﴾ [الكافرون: ۱] وَفِي الثَّالِثَةِ بِـ ﴿قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ﴾ [الإخلاص: ۱] وَالْمُعَوِّذَتَيْنِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] عبدالعزیز بن جریج رحمه الله فرمایي [۲] چې مونږ د بي بي عائشي رضي الله عنها څخه پوښتنه وکړه چې حضور ﷺ به په وترو کښې کوم کوم سورتونه ویل؟ [۳] بي بي عائشي رضي الله عنها وفرمایل حضور ﷺ به په اولني رکعت کې سبح اسم ربك الاعلی په دویم رکعت کې قل یا ایها الکافرون او په دریم رکعت کې قل هو الله احد، قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس ویل، (ترمذي، ابوداؤد)

**تسهیلات:** - **قوله:** كَانَ يَقْرَأُ فِي الْأُولَى:

**د وترو دری رکعته کیدو دلیل:** - دَ حضرت عائشي رضي الله عنها دَ دې تصریح او وضاحت نه پس په دې خبره کښې یو ذره شك نه پاتې کیږی چه وتر درې رکعته دی. حضرت عائشه رضي الله عنها دَ هر

---

[۱] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة/باب فی الدعاء بعد الوتر (رقم-۱۴۳۱) والترمذی کتاب الوتر/باب ما جاء فی الرجل ينام عن الوتر، أو ينساه (رقم-۴۶۶)

[۲] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب ما يقرأ فی الوتر (رقم-۱۴۲۳) والترمذی کتاب الوتر/باب ما جاء ما يقرأ فی الوتر (رقم-۴۶۳) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فيما يقرأ فی الوتر (رقم-۱۱۷۳)

دریو رکعتو نه جدا جدا دَ یو یو رکعت نوم واخستو او په هر رکعت کښې لوستونکې سورت نوم ئې واخستلو اودغه شان تسلسل سره دَ دریو رکعاتو بیان ئې اوکړو. په کوم سره چه هر اوریدونکې پوهیږي چه وتر درې رکعاته دی او په مینځ کښې هیڅ سلام نشته دې اوهم دغه دَ احنافو مسلك دې.

۱۲۷۰—()[۰]۞وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبْزَى.

**ترجمه:** ۞ او امام نسائی دعبدالرحمن بن ابزی څخه دا روایت نقل کړې دې.

۱۲۷۱—()[۰]۞وَرَوَاهُ أَحْمَدُ عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ.

**ترجمه:** ۞ او دا روایت امام احمد رحمه الله د حضرت ابي بن کعب رضی الله عنه څخه نقل کړې دې.

۱۲۷۲—()[۰]۞وَالدَّارِمِيُّ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا،۞وَلَمْ يَذْكُرَا: "وَالْمُعَوِّذَتَيْنِ".

**ترجمه:** ۞ او امام دارمي رحمه الله د حضرت ابن عباس رضی الله عنه څخه نقل کړي دي ۞ خو امام دارمي رحمه الله په خپل روایت کې د لفظ معوذتین ذکر نه دي کړي یعنی هغه محض دا نقل کړي دي چې حضور صلی الله علیه وسلم به د وترو په دریم رکعت کې یوازي قل هو الله ویلو.

**[۱۲۷۳] دوترو مسنون دعا**

۱۲۷۳—()[۱۷]۞ وَعَنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ:۞ عَلَّمَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَلِمَاتٍ أَقُولُهُنَّ فِي قُنُوتِ الْوِتْرِ: ۞ "«اللّٰهُمَّ اهْدِنِي فِيمَنْ هَدَيْتَ،۞ وَعَافِنِي فِيمَنْ عَافَيْتَ،۞ وَتَوَلَّنِي فِيمَنْ تَوَلَّيْتَ،۞ وَبَارِكْ لِي فِيمَا أَعْطَيْتَ،۞ وَقِنِي شَرَّ مَا قَضَيْتَ،۞ فَإِنَّكَ تَقْضِي وَلَا يُقْضَى عَلَيْكَ،۞ إِنَّهُ لَا يَذِلُّ مَنْ وَالَيْتَ،۞ تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَتَعَالَيْتَ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ

**ترجمه:** ۞ حضرت حسن بن علي رضی الله عنه فرمايي۞ چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ماته څو کلمات ښودلي دي چې زه هغه د وترو په دعاء قنوت کې اووايم۞ [او هغه کلمات د دعا دا دي]:
اللّٰهُمَّ اهْدِنِيْ فِيْمَنْ هَدَيْتَ وَعَافِنِيْ فِيْمَنْ عَافَيْتَ وَتَوَلَّنِيْ فِيْمَنْ تَوَلَّيْتَ وَبَارِكْ لِيْ فِيْمَا أَعْطَيْتَ وَقِنِيْ شَرَّ مَا قَضَيْتَ فَإِنَّكَ تَقْضِيْ وَلَا يُقْضٰى عَلَيْكَ إِنَّهُ لَا يَذِلُّ مَنْ وَّالَيْتَ تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَتَعَالَيْتَ، (اي الله ماته هدايت وكړي د هغه خلقو سره (يعني د انبياء او اولياء سره) چې هغوئ ته تا هدايت وكړو۞ ما د دنيا او د آخرت د مصيبتونو څخه بچ كړي د هغه خلقو سره چې تا هغه بچ كړل۞ او زما سره محبت وكړي د هغه خلقو سره چې د هغه سره تا محبت وكړو۞ او څه چې تا ماته راكړي دي (يعني

---

[1] اخرجه النسائی کتاب قیام اللیل وتطوع النهار/نوع آخر من القراءة فی الوتر (۱۷۳۱) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة والسنة فیها/باب ما جاء فیما یقرأ فی الوتر (رقم-۱۱۷۱)

[2] کتاب الصلاة/باب کم الوتر(رقم-۱۶۲۷)

[3] اخرجه الدارمی کتاب الصلاة/باب کم الوتر(۱۶۲۷)

[4] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب القنوت فی الوتر (رقم-۱۴۲۵) والترمذی کتاب الوتر/باب ما جاء فی القنوت فی الوتر (رقم-۴۶۴) والنسائی کتاب قیام اللیل وتطوع النهار/باب الدعاء فی الوتر (رقم-۱۷۴۵)

عمر، علم، مال او نيك اعمال) په هغه كې بركت عطا كړې[۷] او ما د هغه د بديو (خرابو) څخه بچ كړې چې په مقدر كې دي[۸] بيشكه ته چې څه غواړې هغه حكم كوې او تا ته هيڅوك هم حكم نشي كولې (يعني ته حاكم مطلق يې محكوم نه يې)[۹] او څوك چې ته دوست لرې هغه ذليل كيدې نشي[۱۰] اې زمونږ ربه ته با بركته يې (يعني په دارينو باندې ستا خير محيط دې) او ستا ذات بلند اوبرتر دې. (ترمذي،ابوداؤد،نسايي،ابن ماجه،دارمي)

**حل اللغات**:- ① قُنُوتِ الْوِتْرِ: د وتر مونځ دعا، دعاء قنوت. ② اهْدِنِي: أَيْ: ثَبِّتْنِي عَلَى الْهِدَايَةِ: مضبوط كړې ما په هدايت باندې، يا زيات كړې ما لره اسباب دهدايت، ③ عَافِنِي: أَيْ: مِنْ أَسْوَإِ الْأَدْوَاءِ: عافيت راكړې ماته، بچ كړې ما (د بدو او رذيل اخلاقونه). ④ تَوَلَّنِي: أَيْ تَوَلَّ أَمْرِي: واروې ما، اوګرځوې ما يا كار زما، ⑤ قِنِي: أَيْ: احْفَظْنِي: حفاظت اوكړې زما، ⑥ تَقْضِي: أَيْ: تُقَدِّرُ أَوْ تَحْكُمُ: ته فيصله كوې، حكم كوې، ⑦ لَا يَذِلُّ: أَيْ لَا يَصِيرُ ذَلِيلًا: نه ذليله كيږى، ⑧ تَعَالَيْتَ: أَيْ: ارْتَفَعَ عَظَمَتُكَ: ستا شان ډير لوئې دې. ته ډير لوئې ئې.

**تسهيلات**:-

**قوله**: أَقُولُهُنَّ فِي قُنُوتِ الْوِتْرِ:

### د وخت په اعتبار سره د دعاء قنوت په زمان كښې مذاهب:-

① دَ شوافعو په نيز دَ نصف رمضان نه پس وى او ټول كال كښې دَ سحر په مونځ كښې وى.

② احناف په ټول كال كښې جدا جدا او په رمضان كښې په جمع سره په وترو كښې دعاء قنوت وائى.

### د دعاء قنوت په كلماتو كښې مذاهب:-

① شوافع هم دغه دعا كوى كومه چه پورته په حديث كښې ذكر دې.

② احنافو په وترو كښې دا دعا لولى. "اللهم انا نستعينك ونستغفرك ونؤمن بك ونتوكل عليك ونثنى عليك الخير ونشكرك ولا نكفرك ونخلع ونترك من يفجرك اللهم اياك نعبد ولك نصلي ونسجد واليك نسعى ونحفد ونرجو رحمتك ونخشى عذابك ان عذابك بالكفار ملحق" (رواه ابوداؤد فى مراسيله بتغير يسير)

ابوداؤد دغه پورتنئ دعا قنوت په خپل مراسيل كښې نقل كړې دې دَ يو دوو الفاظو نه علاوه هم دغه دعا هلته موجود ده لهذا دا وينا كول غلط دى چه دا دعا ثابته نه ده. دَحرمين شريفين ائمه كله كله دا دعا هم وائى نو احناف خوشحاليږى.

### ددعاء قنوت په محل كښې مذاهب:-

① د شوافعو په نيز د دعاء قنوت طريقه دا ده چې دَ آخرى ركعت دَ قرأت نه فارغيدو سره په قومه كښې دعا غواړى مګر په اوچت آوازسره ئې غواړى. نن صبا په پوره رمضان كښې دا دعا په اوچت آواز سره غوښتلې شى.

④ د احنافو په نیز دَ وترو آخری رکعت کښې دَ قرأت نه پس رکوع ته دَ تلو نه مخکښې دواړه لاسونو ترغوږونو پورې اوچتولو سره بیا په نوم باندې ترلو سره په مزه دا دعا غواړی.

**[۱۲۷٤] د وترو د سلام څخه وروسته تسبیح ویل**

۱۲۷٤—(۱۸)[۱] وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَلَّمَ فِي الْوِتْرِ قَالَ: [۳] "سُبْحَانَ الْمَلِكِ الْقُدُّوسِ"». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ [۴] وَزَادَ: ثَلَاثَ مَرَّاتٍ يُطِيلُ فِي آخِرِهِنَّ.

**ترجمه:** [۱] ابي بن کعب رضی الله عنه فرمایي [۲] چې رسول الله ﷺ به په وتر لمانځه کې سلام وګرځوي نو دا کلمات به یې ویل: [۳] سُبْحَانَ الْمَلِكِ الْقُدُّوسِ (یعنې پاك دي بادشاه نهایت پاك) ابوداؤد نسایي، [۴] نسایي رحمه الله دا الفاظ هم نقل کړي دي چې حضور ﷺ به دا تسبیح درې خله ویله او په دریم خل به یې په اوچت آواز سره ویله.

**حل اللغات:**- ① سُبْحَانَ: پاک دي (دهر ناقص صفت نه). ② الْمَلِكِ: بادشاه دي، ③ الْقُدُّوسِ: په وزن د فعول د مبالغې صیغه ده، ډیر پاک ذات دې (د هرقسم نقص او عیب نه).

۱۲۷۵—(۲)[۱] وَفِي رِوَايَةٍ لِلنَّسَائِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبْزَى، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: [۲] «كَانَ يَقُولُ إِذَا سَلَّمَ: "سُبْحَانَ الْمَلِكِ الْقُدُّوسِ" ثَلَاثًا، [۳] وَيَرْفَعُ صَوْتَهُ بِالثَّالِثَةِ».

**ترجمه:** [۱] او نسایي رحمه الله یو روایت د عبدالرحمٰن ابن ابزٰي څخه نقل کړي دي چې په هغې کې هغه (عبدالرحمٰن) د خپل پلار بزرګوار څخه نقل کولو سره وایي [۲] چې حضور ﷺ چې به سلام وګرځولو نو درې خله به یې سُبْحَانَ الْمَلِكِ الْقُدُّوسِ ویل [۳] او په دریم خل به یې په اوچت آواز سره ویل.

**تسهیلات:-**

**نوټ:-** د وترو په سلام ګرځولو مذکوره تسبیح ویل سنت دی خو افسوس زمونږ په معاشره کښې دا سنت متروک دې. امامانو او مقتدیانو پریخودې دې. که څوک ئې ژوندې کړی!

**[۱۲۷٦] په وترو کښې مسنون دعا**

۱۲۷٦—(۳)[۱۹][۱] وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ فِي آخِرِ وِتْرِهِ: [۳] "اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِرِضَاكَ مِنْ سَخَطِكَ، [۴] وَبِمُعَافَاتِكَ مِنْ عُقُوبَتِكَ، [۵] وَأَعُوذُ بِكَ مِنْكَ، [۶] لَا أُحْصِي ثَنَاءً عَلَيْكَ، [۷] أَنْتَ كَمَا أَثْنَيْتَ عَلَى نَفْسِكَ"». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

---

[۱]) اخرجه ابوداود فی كتاب الصلاة/باب فی الدعاء بعد الوتر (رقم-۱٤۳۰) والنسائی كتاب قيام الليل وتطوع النهار/التسبيح بعد الفراغ من الوتر وذكر الاختلاف على سفيان فيه (رقم-۱۷۵۱)

[۲]) اخرجه النسائی كتاب قيام الليل وتطوع النهار/نذكر الاختلاف على شعبة فيه (رقم-۱۷۳۳)

[۳]) اخرجه ابوداود فی كتاب الصلاة، باب القنوت فی الوتر (رقم-۱٤۲۷) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فی القنوت فی الوتر (رقم-۱۱۷۹)

**ترجمه:** ① حضرت علي كرم الله وجهه فرمايي ② چې رسول الله ﷺ به دوتر لمانځه په آخر كې دا دعا كوله: ③ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِرِضَاكَ مِنْ سَخَطِكَ وَبِمُعَافَاتِكَ مِنْ عُقُوبَتِكَ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْكَ لَا أُحْصِي ثَنَاءً عَلَيْكَ أَنْتَ كَمَا أَثْنَيْتَ عَلَى نَفْسِكَ، (اي الله زه پناه غوارم ستا د رضا په ذريعه ستا د غضب څخه ④ او ستا د عافيت په ذريعه ستا د عذاب څخه ⑤ او زه پناه غوارم ستا د ذات په ذريعه تا نه (يعني ستا د غضب او غصي څخه) ⑥ (په ما كې طاقت نشته چې ستا تعريف وكړي شم څكه چې) ستا د تعريف شمير نشته ⑦ ته هغسي يې څنګه چې تا خپل تعريف په خپله كړي دي، (ابوداؤد، ترمذي، نسايي، ابن ماجه)

**حل اللغات:**- ① بِرِضَاكَ: ستا د رضا په ذريعه، ② سَخَطِكَ: ستا د غضب او د غصي نه، ③ بِمُعَافَاتِكَ: ستا د عافيت په ذريعه، ④ عُقُوبَتِكَ: ستا دعذاب نه، ⑤ لَا أُحْصِي: أَيْ: لَا أُطِيقُهُ وَلَا أَبْلُغُهُ حَصْرًا وَعَدَدًا: په ما كښې طاقت نشته د شميرلو او راګيرولو، ⑥ ثَنَاءً: د تعريف كولو.

**تسهيلات:**-

### د دعاء قنوت په تخصيص كښې دوه مذاهب:-

① علامه ابن همام رحمه الله فرمائي چه دَ علماؤ يوه طبقه دې طرف ته تلې ده چه په دعاء قنوت كښې څه خاص دعا باندې انحصار نه دى كول پكار. بلكه مختلف دعاګانې وئيل پكار دى دې دَپاره چه په زړه او دماغو باندې دَدعاګانې نوې اثر پريوځى او صرف دَ ژبې خوزولو او دَ زړه غافل كيدو پورې دَ دعا عادت نه دى اچول پكار. لهذا معروف دعاء قنوت خاص معمول نه دى جوړول پكار.

② دَ علماؤ دويمه طبقه دا وائى چه معروف دعاء قنوت معمول جوړول منع نه دى. البته دَدې نه علاوه نورې دعاګانې په خاص توګه معمول جوړول منع دى څكه چه صحابه كرامو هم دغه معروف دعاء قنوت معمول جوړولو سره وئيله بل څه نور ئې خاص معمول نه وو جوړ كړي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۱۲۷۷] د حضرت معاويه رضي الله عنه يو ركعت وتر كول

۱۲۷۷-(۱)[۲۰] ① عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قِيلَ لَهُ: ② هَلْ لَكَ فِي أَمِيرِ الْمُؤْمِنِينَ مُعَاوِيَةَ مَا أَوْتَرَ إِلَّا بِوَاحِدَةٍ؟ ③ قَالَ: أَصَابَ، إِنَّهُ فَقِيهٌ. ④ وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَ ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ: ⑤ أَوْتَرَ مُعَاوِيَةُ بَعْدَ الْعِشَاءِ بِرَكْعَةٍ، ⑥ وَعِنْدَهُ مَوْلًى لِابْنِ عَبَّاسٍ، ⑦ فَأَتَى ابْنَ عَبَّاسٍ فَأَخْبَرَهُ ⑧ فَقَالَ: دَعْهُ فَإِنَّهُ قَدْ صَحِبَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

[۱] اخرجه البخارى كتاب المناقب/باب ذكر معاوية رضى الله عنه (رقم-۳۷۶۵)

**ترجمه:** [۱] د ابن عباس رضي الله عنه په باره کې منقول دي چې د هغه څخه پوښتنه وشوه [۲] چه د امير المؤمنين حضرت امير معاويه رضي الله عنه په باره کې څه وائې چې وتر يو رکعت کوي؟ [۳] ابن عباس رضي الله عنه وفرمايل هغه فقيه (ديني عالم) دي (څه چې کوي) ښه کوي [۴] په يو دويم روايت کښې ابن ابي مليکه فرمايي [۵] چې امير معاويه رضي الله عنه د ماسخوتن د لمانځه څخه وروسته يو رکعت وکړو [۶] د هغه سره د ابن عباس رضي الله عنه آزاد کرده غلام هم موجود وو [۷] (هغه چې دا وليدل نو) هغه د ابن عباس رضي الله عنه په خدمت کې حاضر شو هغه ته يې اووئيل (چې حضرت معاويه رضي الله عنه وتر يو رکعت کړي دي) [۸] ابن عباس رضي الله عنه ورته وفرمايل د هغه په باره کې هيڅ مه وايه هغه ته د رسول الله ﷺ د صحبت شرف حاصل دي (کيدي شي چې د حضور ﷺ څه داسې عمل يې ليدلي وي چې نورو نه وي ليدلي) (بخاري)

**حل اللغات:-** ① أَصَابَ: أَيْ أَدْرَكَ الثَّوَابَ فِي اجْتِهَادِهِ: اورسيده حق ته يعني دخپل اجتهاد ثواب ورته حاصل شو. ② فَقِيهٌ: أَيْ مُجْتَهِدٌ: فقيه دې اجتهاد کولې شي. ③ مَوْلَى: آزاد کړې غلام، ④ دَعْهُ: أَيْ اتْرُكْهُ وَلَا تَعْتَرِضْ عَلَيْهِ: پريږده هغه، په هغه باندې اعتراض مه کوه. ⑤ صَحِبَ: ملګرتيا ئې کړې ده، صحابي دې، صحبت يعني ناسته پاسته ئې کړې ده.

**تسهيلات:- قوله:** فَإِنَّهُ قَدْ صَحِبَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**په صحابؤ د اعتراض څخه د بچ کيدو نصيحت:-** يعنې په حضرت معاويه رضي الله عنه باندې اعتراض مه کوئې دَ حضور اکرم ﷺ صحابي دې. هغه سره به څه وجه وی، څه علمې ثبوت به وی، څه اجتهادی خبره به وی. دَ صحابي عمل غلطيدې نه شي. دَ هغوی نه دَ هغوی رب راضي شوې دې. په هغوی باندې اعتراض مه کوئې.

**[۱۲۷۸] د وتر کولو تاکيد**

۱۲۷۸-(۲۱) [۱] وَعَنْ بُرَيْدَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [۲] "الْوِتْرُ حَقٌّ، فَمَنْ لَمْ يُوتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا، [۳] الْوِتْرُ حَقٌّ، فَمَنْ لَمْ يُوتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا، [۴] الْوِتْرُ حَقٌّ، فَمَنْ لَمْ يُوتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.[1]

**ترجمه:** [۱] حضرت بريده رضي الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي [۲] چې وتر حق (يعني واجب دي) کوم سړي چې وتر نه کوي هغه زمونږ څخه (يعني زمونږ د تابعدارو څخه) نه دي [۳] وتر حق دي کوم سړي چې وتر نه کوي هغه زمونږ څخه نه دي [۴] وتر حق دي کوم سړي چې وتر نه کوي هغه زمونږ څخه نه دي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① الْوِتْرُ حَقٌّ: أَيْ وَاجِبٌ: وتر کول واجب دی. ② فَلَيْسَ مِنَّا: أَيْ مِنْ أَهْلِ طَرِيقَتِنَا: زمونږ نه نه دې، يعنې زمونږ په طريقه نه دې.

[1] اخرجه ابوداود في كتاب الصلاة/باب فيمن لم يوتر (رقم-۱٤۱۹)

**تسهيلات: -**

**قوله:** فَمَنْ لَمْ يُوتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا:

**د فليس منا مطلب: -** د فليس منا مطلب دانه دې چه دا سړې کافرشو بلکه مطلب دادې چه دا سړې په دې خاص مسئله د وترکښې زمونږ په طريقه نه دې باقى په اسلام باندې قائم دې ليکن په دې يوه طريقه کښې دَ مسلمانانو دَ لارې نه اخوا شوې دې.

**[۱۲۷۹] د وترو قضاء راوړل**

۱۲۷۹ -() [۲۲] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «مَنْ نَامَ عَنِ الْوِتْرِ أَوْ نَسِيَهُ فَلْيُصَلِّ إِذَا ذَكَرَ أَوْ إِذَا اسْتَيْقَظَ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] ابو سعيد ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړي چې د وتر کولو څخه بغير اوده شي يا کول ئې هير شي نو هغه ته پکار دي چې کله ورته په ياد شي يا د خوب څخه بيداره شي نو (دَ هغې قضاء دي) وکړي. (ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجه)

**حل اللغات: -** ① نَسِيَهُ: هير ئې شي (وتر کول). ② اسْتَيْقَظَ: چه رابيدرا شي (دخوب نه).

**تسهيلات: -**

**قوله:** فَلْيُصَلِّ إِذَا ذَكَرَ أَوْ إِذَا اسْتَيْقَظَ:

**د وترو قضاء راوړلو وخت: -** د احنافو په نيزکه وتر پاتې شي نو د دې قضاء به د نمر راختلو څخه روسته او د زوال څخه وړاندې راوړي. اوکه صاحب ترتيب وي نوهغه به نې د صبا د مانځه څخه وړاندې قضاء راوړي.

**[۱۲۸۰] عبدالله بن عمر او د وترو حکم**

۱۲۸۰ -() [۲۳] [۱] وَعَنْ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، بَلَغَهُ [۲] «أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ ابْنَ عُمَرَ عَنِ الْوِتْرِ: أَوَاجِبٌ هُوَ؟ [۳] فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ: قَدْ أَوْتَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَوْتَرَ الْمُسْلِمُونَ، [۴] فَجَعَلَ الرَّجُلُ يُرَدِّدُ عَلَيْهِ، وَعَبْدُ اللَّهِ يَقُولُ: [۵] أَوْتَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَوْتَرَ الْمُسْلِمُونَ». رَوَاهُ فِي "الْمُوَطَّأ".

**ترجمه:** [۱] د امام مالك رحمه الله په باره کې منقول دي چې هغه ته دا خبره ورسيده [۲] چې يو سړي د حضرت عبدالله بن عمر ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې آيا وتر مونځ واجب دي که سنت؟ [۳] نو حضرت عبدالله ﷺ ورته (د څه واضحه جواب ورکولو په ځاي دا) وفرمايل چې وتر مونځ حضور ﷺ هم کړي دي او نورو مسلمانانو (صحابه ؤ ﷺ) هم کړي دي [۴] هغه سړي به بار بار دا پوښتنه کوله او ابن عمر ﷺ به ورته دا ويل [۵] چې وتر مونځ حضور

[۱] اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة، باب القنوت فى الوتر (رقم-۱٤۳۱) والترمذى كتاب الوتر/باب ماجاء فى الرجل ينام عن الوتر. أو ينساه (رقم-٤٦٥) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب من نام عن الوتر أو نسيه (رقم-۱۱۸۸)

[۲] اخرجه مالک فى الموطا كتاب صلاة الليل. باب الأمر بالوتر (رقم-۱۷)

ﷺ هم کړي دي او نورو مسلمانانو هم کړي دي، مؤطا.

**حل اللغات:-** ① يُرَدِّدُ: أَيْ يُكَرِّرُ عَلَيْهِ: بار بار به ئې پوښتنه كوله.

**تسهيلات:-**

**قوله:** قَدْ أَوْتَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**د وترو د وجوب دليل:-** ددې حديث حاصل دادې چې يو كس ابن عمر ﷺ څخه د وترو باره كښې سوال اوكړو چې دا واجب دي كه نه؟ نوحضرت ابن عمر ﷺ ددې جواب په داسې طريقه وركړو چې ددې حكم سره سره ورته ددې دليل هم معلوم شي. هغه دا چې هركله نبي كريم ﷺ او مسلمانانو په دې باندې مدوامت اختيار كړيدې نو دا ددې دليل دې چې دا واجب دي.

**[۱۲۸۱] په وترو كښې مسنون قراءت**

۱۲۸۱-(١)[٢٤] ① وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، «قَالَ: ② كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوتِرُ بِثَلَاثٍ، ③ يَقْرَأُ فِيهِنَّ بِتِسْعِ سُوَرٍ مِنَ الْمُفَصَّلِ، ④ يَقْرَأُ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ ثَلَاثَ سُوَرٍ آخِرُهُنَّ ﴿قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ﴾ [الإخلاص:١]» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① امير المؤمنين حضرت علي كرم الله وجهه فرمايي ② چې رسول الله ﷺ به د وتر درې ركعاته كول ③ چې په هغه كې به حضور ﷺ د مفصل نهه سورتونه (داسې) ويل ④ چې په هر ركعت كې به يې درې درې سورتونه ويل او آخري سورت به يې قل هو الله وو، ترمذي.

**حل اللغات:-** ① الْمُفَصَّلِ: د مفصل نه لنډې سورتونه مراد دي.

**تسهيلات:-**

**قوله:** يَقْرَأُ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ:

**په وترو كښې قراءت مسنونه:-** يعني نبي كريم ﷺ به دريو ركعتونه په يو سلام سره ادا كول. هر ركعت كښې به ئې درې سورتونه لوستل. او آخري ركعت كښې به ئې قل هو الله احد لوستو.

**[۱۲۸۲] د وترو باره كښې د حضرت ابن عمر ﷺ واقعه**

۱۲۸۲-(٢)[٢٥] ① وَعَنْ نَافِعٍ، قَالَ: كُنْتُ مَعَ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا بِمَكَّةَ، ② وَالسَّمَاءُ مُغَيِّمَةٌ، ③ فَخَشِيَ الصُّبْحَ، ④ فَأَوْتَرَ بِوَاحِدَةٍ، ⑤ ثُمَّ انْكَشَفَ، فَرَأَى أَنَّ عَلَيْهِ لَيْلًا، فَشَفَعَ بِوَاحِدَةٍ، ⑥ ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ، ⑦ فَلَمَّا خَشِيَ الصُّبْحَ أَوْتَرَ بِوَاحِدَةٍ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** ① نافع رحمه الله فرمايي چې زه د ابن عمر ﷺ سره په مكه معظمه كې وم ② او (هغه

(١) اخرجه الترمذي في كتاب الوتر /باب ما جاء في الوتر بثلاث (رقم-٤٦٠)

(٢) اخرجه مالك في الموطا كتاب صلاة الليل . باب الأمر بالوتر(رقم-١٩)

ورځ په شپه کې) په آسمان باندې وریځ وه [۳] د ابن عمر ﷟ سره د سحر کیدو ویره شوه [۴] نو هغه یو رکعت وتر وکړل [۵] بیا وریځ صفا شوه او هغه ولیدل چې تر اوسه لا شپه باقې ده نو هغه یو رکعت بل کولو سره (اولنی رکعت سره یو ځای کولو سره) هغه یې دوګانه کړل [۶] او د هغه څخه وروسته یې دوه دوه رکعاته (نفل) کول [۷] بیا چې د سحر کیدو ویره شوه نو وتر یې یو رکعت وکړو، مالك

**حل اللغات:-** ① مُغِيمَةٌ: أَيْ مُغَطَّاةٌ بِالْغَيْمِ: وریځ وه (آسمان وریځې پټ کړې وو). ② خَشِيَ: اویریدو (چه چرته صبا نه وی راختلې). ③ انْكَشَفَ: أَيْ: ارْتَفَعَ الْغَيْمُ: لرې شوه وریځ، آسمان صفا شو. ④ لِشَفْعٍ: نو جفت ئې کړو، دوګانه ئې کړو (مونځ).

**تسهیلات:-**

**قوله: خَشِيَ الصُّبْحَ، فَأَوْتَرَ بِوَاحِدَةٍ:**

**اشکال:**-که یو کس وتر ادا کړل او بیا ئې د شپې د تهجدو ادا کولو اراده اوکړه، نو هغه دې وتر ختم کړی او ددې د ختمولو طریقه داده چې هغه دې یو رکعت خانله ادا کړی .او دا دې ړومبې دریو رکعتوسره یوځائې کړی او شفعه (دوه رکعته) دې اوکړی نو هغه به نفل شی.

دلته روایت کښې تعارض دې.ترمذی شریف کښې حدیث دې: لاوتران فی لیلة په یو شپه کښې دوه وتره نه وی .اوس که یو کس وتر ادا کړی اواودهٔ شی او بیا د تهجدو د مونځ دپاره رابیدار شی نو که هغه دا دوباره ادا کول غواړی نوداً د ترمذی والا حدیث خلاف دې.او که نه ئې ادا کوی نو ((اجعل اخر صلوتك وترا))دا ددې خلاف دې؟

**د دې اشکال جوابونه:-**

① دامام اسحاق بن راهویه دا مذهب دې.چې دتهجدو شروع کولو څخه وړاندې دې یو رکعت خانله اوکړی.اود اولنی وترو سره دې ملاؤ کړی.اوبیا دې نفل کوی.او د دې څخه روسته دې وتر اوکړی.چې په ((اجعلوا آخر صلاتکم باللیل وتراً)) حدیث باندې عمل اوشی.

② جمهورعالمان دنقض وتر قائل نه دی.دوی فرمائی چې د شپې په اول کښې ئې کوم وتر کړی دی هغه دې هم دغه شان پریږدی.اوبیا چې ئې څومره زړه غواړی نفل دې اوکړی. ځکه چې د حضرت عائشې رضی الله عنها څخه روایت دې.چې نبی کریم ﷺ به د شپې په مینځ کښې وتر کولو.اوبیا به ئې نفل کولو.

**[۱۲۸۳] په ناسته د مونځ کولو یوه بله طریقه**

۱۲۸۳-(¹)[۲۶] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي جَالِسًا، [۳] فَيَقْرَأُ وَهُوَ جَالِسٌ، [۴] فَإِذَا بَقِيَ مِنْ قِرَاءَتِهِ قَدْرُ مَا يَكُونُ ثَلَاثِينَ أَوْ أَرْبَعِينَ آيَةً، [۵] قَامَ وَقَرَأَ وَهُوَ قَائِمٌ، [۶] ثُمَّ رَكَعَ،

¹) اخرجه مسلم کتاب صلاة/باب جواز النافلة قائما وقاعدا، وفعل بعض الرکعة قائما وبعضها قاعدا (رقم) ۱۱۲ - (۷۳۱)

ثُمَّ سَجَدَ، ثُمَّ يَفْعَلُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ مِثْلَ ذٰلِكَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[۱] ام المؤمنين بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ (به په آخر عمر کې په ورځ يا شپه کې داسې هم) په ناسته مونځ کولو [۳] (چې د طويل قراءت په وجه) به يې په ناسته قراءت کولو [۴] او هر کله چې په قراءت کې به ديرش يا څلويښت آياتونه باقي پاتې شو[۵] نو وبه دريدلو او هغه به يې په ولاړه ولاړه ويل [۶] بيا به يې رکوع کوله او سجدې ته به تلو د غسې په دويم رکعت کې به يې هم کول. (مسلم)

**تسهيلات:-**

**د حديث ه باب سره تعلق:-** اګرچې دلته دَ وتر ذکر نشته دې ليکن دَ دوو رکعتو ذکر دې چه دَ وتردَ پاره مقدمه اوتمهيد دې کيدې شي دَدې وجه نه دا حديث دلته راوړلې شوې دې.

**[۱۲۸٤] د وتر څخه وروسته دوه رکعته نفل کول**

۱۲۸۴ –(۱)[۲۷][۱] وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي بَعْدَ الْوِتْرِ رَكْعَتَيْنِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، [۳] وَزَادَ ابْنُ مَاجَهْ: خَفِيفَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ.

**ترجمه:**[۱] ام المؤمنين بي بي ام سلمه رضي الله عنها فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ به د وترو څخه وروسته دوه رکعاته کول، ترمذي، [۳] ابن ماجه په دې روايت کې خفيفتين وهوجالس الفاظ هم نقل کړي دي يعنی حضور ﷺ به د وترو څخه وروسته مختصر دوه رکعاته په ناسته کول.

**تسهيلات:-**

**نوټ:-** د دې حديث شرح په بل ځائې کښې ذکرشوې ده.

**[۱۲۸۵] د نبی علیه السلام د وترو ادا کولو طريقه**

۱۲۸۵ –(۲)[۲۸][۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوتِرُ بِوَاحِدَةٍ، [۳] ثُمَّ يَرْكَعُ رَكْعَتَيْنِ يَقْرَأُ فِيهِمَا وَهُوَ جَالِسٌ، [۴] فَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَرْكَعَ قَامَ فَرَكَعَ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:**[۱] د مؤمنانو مور بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ به وتر يو رکعت کول [۳] بيا به يې دوه رکعاته نفل کول چې په هغې کې به رسول الله ﷺ په ناسته ناسته قراءت کولو [۴] او کله چې به يې رکوع کوله نو اودريدلو به او رکوع به يې کوله. (ابن ماجه)

**تسهيلات:-**

**توله:** فَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَرْكَعَ قَامَ فَرَكَعَ:

---

[1]) اخرجه الترمذی فی کتاب الوتر/باب ما جاء لا وتران فی ليلة (رقم-٤٧١) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فی الرکعتين بعد الوتر جالسا (رقم-١١٩٦)

[2]) اخرجه ابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فی الرکعتين بعد الوتر جالسا (رقم-١١٩٦)

**د یواشکال دفع کول:** -ددې مطلب دادې چې شفع سره یو رکعت زیات کړی آخری وتر ادا کړی .ابن حجر رحمة الله علیه فرمائی په ظاهره دا روایت د ماقبل روایت منافی دې، کوم کښې چې به نبی کریم ﷺ اودریدل او قراءة به ئې کولواو بیا به ئې رکوع کوله.خوپه دواړو کښې څه تعارض نشته ځکه چې کله کله به هغوئ قائما قراءة کولو.او کله کله به ئې جالسا تلاوت کولو او قائما به ئې رکوع کوله.

**[۱۲۸٦] دوترو څخه وروسته د دوو رکعتو نو فضیلت**

۱۲۸٦-()[۲۹]۱وَعَنْ ثَوْبَانَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، «عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ:۲"إِنَّ هٰذَا السَّهَرَ جُهْدٌ وَثِقَلٌ،۳فَإِذَا أَوْتَرَ أَحَدُكُمْ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ،۴فَإِنْ قَامَ مِنَ اللَّيْلِ،۵وَإِلَّا كَانَتَا لَهُ»". رَوَاهُ الدَّارِمِيّ.

**ترجمه:**۱ حضرت ثوبان رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ (د تهجد د لمانځه د پاره) د شپې بیداریدل مشکل او ګران وي۳ په دې وجه په تاسو کې چې کوم سړي (د شپې په آخري حصه کې د بیداریدو یقین نه لري او د اوده کیدو څخه مخکې یعنی د ماسخوتن د لمانځه څخه وروسته) وتر وکړي نو هغه ته پکار دي چې دوه رکعاته وکړي ۴ که هغه د تهجد د پاره د شپې ولاړ شو نو بهتره ده۵ او که ولاړ نه شو نو بیا دوه رکعاته به کافي وي (یعنې د دې دوه رکعاته کولو په وجه به هغه ته د تهجد د لمانځه ثواب حاصلیږي) ترمذي دارمي

**حل اللغات:**- ۱ السَّهَرَ: د شپې بیداریدل، تهجدو دپاره پاڅیدل ۲ جُهْدٌ:أي مَشَقَّةٌ: مشکل وی، ۳ ثِقَلٌ:أيْ:شَاقٌّ: ډیر ګران دی.

**تسهیلات:** -

**قوله:** وَإِلَّا كَانَتَا لَهُ:

**د خوب څخه وړاندې دوه رکعته کول:** - کله چې د وترو اراده اوکړئی نو دوه رکعته مونځ ادا کړئی، ددې دواړو بیان دجواز په طور دې.که وتر اونه کړی نو دوه رکعته به ادا شي .

**[۱۲۸۷] دوترو څخه وروسته په دوه رکعته نفلو کښې مسنون قراءت**

۱۲۸۷-()[۳۰]۱وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ،۲«أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّيهِمَا بَعْدَ الْوِتْرِ وَهُوَ جَالِسٌ،۳يَقْرَأُ فِيهِمَا ﴿إِذَا زُلْزِلَتِ﴾ [الزلزلة:۱]،و ﴿قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ﴾ [الكافرون:۱]». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:**۱ حضرت ابو امامه رضی الله عنه فرمایي ۲ چې رسول الله ﷺ به د وترو څخه وروسته دوه رکعاته په ناستې کول۳ او په هغې کې به یې اذازلزلت الارض او قل یاایها الکافرون ویل (ترمذي،دارمي)

[1]) مسند الدارمی باب فی الرکعتین بعد الوتر(۲/ ۹۹۳)-

[2]) اخرجه احمد فی المسند ۵/ ۲٦۰

**تسهیلات:-**

**قوله: كَانَ يُصَلِّيهِمَا بَعْدَ الْوِتْرِ:**

**د وترو څخه روسته په ناسته دوه رکعته نفل کول:-** وترو نه پس د دوو رکعتو ثبوت ملاؤ شو چې نبی کریم ﷺ به په ناسته دوه رکعته کول.او په یو رکعت کښې به ئې اذا زلزلت اودویم کښې قل یایها الکافرون لوستل.

## [۵۲/۳۶]بَابُ الْقُنُوتِ

### د قنوت نازله بیان

**خلاصة الباب:-**

**فيه ستة أحاديث مشتملة على أربع مسائل:**

① القنوت بعد الركوع وتركه: ۱، ۲، ۳، ۴، ۶.

② القنوت قبل الركوع: ۲، ۴.

③ حكم القنوت فى الصبح بلا نازلة : ۵

④ القنوت فى النصف الباقى من شهر رمضان:۶،

**د قنوت معانی:-**

① دَ سکوت په معنی کښې کښې استعمال شوې دې.

② دَ طاعت په معنی کښې کښې استعمال شوې دې.

③ دَ طویل قیام په معنی کښې کښې استعمال شوې دې.

④ دا دَ دعا په معنی کښې استعمال شوې دې.

دلته هم په څلورمه معنی کښې استعمال شوې دې. که بنه دعا وی اوکه بده دعا وی.

**د قنوت دوه قسمونه:-**

① قنوت نازله دی. دسحر په مانځه کښې.

② قنوت وتر بعدالعشاء دی.

**د قنوت لوستلو په محل کښې مذاهب:-**

① دَامام مالك رحمه الله اوامام شافعی رحمه الله په نیزقنوت تول کال کښې همیشه دَ سحرپه مونځ کښې وئیل پکاردی او طریقه داده چه دَ آخری رکعت دَ رکوع نه پس په قومه کښې کیدل پکاردی داقنوت وتر دی البته په رمضان کښې دا قنوت دَ رمضان په نصف آخر کښې وی. دغه شان د شوافع په نیز قنوت نازله په تولو مونځونو کښې پس دَ رکوع نه کیدل پکاردی.

② امام احمد رحمه الله اوامام ابوحنیفه رحمه الله قنوت نازله اوقنوت وترکښې فرق کوی. دَهغوی په

نيز قنوت ټول کال هميشه دپاره په وترکښې دَ ماسخوتن دَ مونځ نه پس دَ وتر آخرى رکعت کښې دَ رکوع نه وړاندې لوستل ضرورى دى اوقنوت نازله دَ سحرپه مونځ کښې دَ رکوع نه پس دَ څه حادثه فاجعه دَ ضرورت مطابق دَ محدود وخت دپاره جارى ساتل پکاردى.

**په احاديثو کښې څوره تطبيق:** -احنافو داسې طريقه اختيارکړې ده په کوم سره چه به په ټولو احاديثوکښې په آسانئى سره تطبيق راشى. په احاديث کښې چرته چه دَ قنوت قبل الرکوع ذکر راغلې دې هلته قنوت وتربعدالعشاء مراد دى په کوم چه حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اودَ ابن عمر رضي الله عنهما احاديث دلالت کوى. اوچرته چه دَ قنوت بعدالرکوع ذکر راغلې دې هلته قنوت نازله مراد دى او تعيين دَ فجر په وجه دَ تعامل دې ګنى دَ احنافو په نيز هم قنوت نازله دَ نورو مونځونوپورې عام کولې شى. کله چه دَ حادثه نوعيت سخت شى

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۱۲۸۸] د الله تعالى خپل محبوب لره بعضې قبيلوته د خيرو کولو څخه منع کول**

١٢٨٨—(١)[1] ① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، ② «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَدْعُوَ عَلَى أَحَدٍ، ③ أَوْ يَدْعُوَ لِأَحَدٍ، ④ قَنَتَ بَعْدَ الرُّكُوعِ، ⑤ فَرُبَّمَا قَالَ إِذَا قَالَ: "سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ: ⑥ اللّٰهُمَّ أَنْجِ الْوَلِيدَ بْنَ الْوَلِيدِ، وَسَلَمَةَ بْنَ هِشَامٍ، وَعَيَّاشَ بْنَ أَبِي رَبِيعَةَ، ⑦ اللّٰهُمَّ اشْدُدْ وَطْأَتَكَ عَلَى مُضَرَ، ⑧ وَاجْعَلْهَا سِنِينَ كَسِنِي يُوسُفَ"،

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه فرمايي ② چې رسول الله صلى الله عليه وسلم چې به چا ته بد ه دعا (بنيرې) کولې ③ يا د چا د پاره به يې د دعا کولو اراده کوله ④ نو د رکوع څخه وروسته به يې قنوت ويله ⑤ بعضې وخت چې حضور صلى الله عليه وسلم به سمع الله لمن حمده ربنا لك الحمد ويل نو دا دعا به يې کوله: ⑥ اللّٰهُمَّ أَنْجِ الْوَلِيدَ ابْنَ الْوَلِيدِ وَسَلَمَةَ بْنَ هِشَامٍ وَعَيَّاشَ بْنَ أَبِي رَبِيعَةَ اللّٰهُمَّ اشْدُدْ وَطْأَتَكَ عَلَى مُضَرَ وَاجْعَلْهَا سِنِينَ كَسِنِي يُوسُفَ (اې الله وليد بن وليد سلمه بن هشام او عياش بن ابي ربيعه ته نجات ورکړې ⑦ او اې الله په قوم مضر باندې خپل سخت عذاب نازل کړې ⑧ او هغه عذاب په هغوئ د قحط په صورت کې نازل کړې داسې قحط چې د يوسف عليه السلام د قحط په شان وي، [يعنى په قوم مضر باندې خپل عذاب د هغه قحط په شکل کې مسلط کړې کوم چې د حضرت يوسف عليه السلام په زمانه کښې په قوم مصر باندې مسلط کړل شوې وو].

**حل اللغات:** - ① يَدْعُوَ عَلَى أَحَدٍ: چه دچا دپاره به ئې دعاء خير کوله، ② يَدْعُوَ لِأَحَدٍ: چه چا دپاره به

[1]) اخرجه البخارى فى كتاب الدعوات/باب الدعاء على المشركين (رقم-٦٣٩٣) ومسلم كتاب المساجد/باب استحباب القنوت فى جميع الصلاة إذا نزلت بالمسلمين نازلة (رقم-٢٩٤ - (٦٧٥) وابوداود فى كتاب الصلاة،باب القنوت فى الصلوات (رقم-١٤٤٢) والنسائى كتاب التطبيق/باب القنوت فى صلاة الصبح (رقم-١٠٧٤) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فى القنوت فى صلاة الفجر (رقم-١٢٤٤)

ئې خيرې يعنى بد دعا كوله. ③قَنَتَ: دعاء قنوت بـه ئې وئيله، ④أَنْجِ: أَيْ خَلِّصْ: نجات يعنى خلاصې وركړې، ⑤اشْدُدْ وَطْأَتَكَ: أَيْ: شِدَّتَكَ وَعُقُوبَتَكَ: سخت عذاب، ⑥سِنِينَ كَسِنِي يُوسُفَ: سنين جمع د سنة ده، وَهُوَ الْقَحْطُ: قحط ته وائي. يعنى په قوم مضر باندې د يوسف عليه السلام د زمانې په شان قحط نازل كړې كوم چه اووه كاله مسلسل وو.

١ يَجْهَرُ بِذَلِكَ. وَكَانَ يَقُولُ فِي بَعْضِ صَلَاتِهِ: ٢ "اللَّهُمَّ الْعَنْ فُلَانًا وَفُلَانًا" ٣ لِأَحْيَاءٍ مِنَ الْعَرَبِ، ٤ حَتَّى أَنْزَلَ اللهُ: ﴿لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ﴾ [آل عمران: ١٢٨] الْآيَةَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ دا دعا به حضور ﷺ په اوچت آواز سره كوله او په يو لمانځه كې حضور ﷺ داسې بدده دعا كوله: ٢ اللَّهُمَّ الْعَنْ فُلَانًا وَفُلَانًا (اې الله په فلانې فلانې باندې لعنت وكړې) ٣ د عربو د هغه قبائلو د پاره (چې كافران وو) ٤ بيا الله تعالى جَلَّ جَلَالُهُ دا آيت نازل كړو لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ الاية (په دې معامله كې ستا هيڅ دخل نشته). (بخاري، مسلم)

**قوله:** الْوَلِيدَ بْنَ الْوَلِيدِ:

**د وليد بن وليد مختصر تعارف:-**

دا صحابى دَ حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رور وو دَ چا نوم چه وليد دې. دَ ده دَ پلار نوم هم وليد دې. جنګ بدر كښې دَ مسلمانانو په لاس كښې قيدى شو. فديه وركولو سره چه كله خلاص كړې شو نومكې ته اورسيدو او اسلام ئى قبول كړو. دَمكې كافرانو هغه ګير كړو او په جيل كښې واچولو او په هغه باندې ډير زيات ظلمونه اوكړل. حضورپاك ﷺ ته چه كله دَهغوى دَ مظلوميت پته اولګيده نو حضورپاك ﷺ دَ هغوى دَ راخلاصولودَپاره دعا اوكړه. وليد دَ كافرانو دَ پنجې نه راخلاص شو اودَمدينې منورې طرف ته اوتختيدو.

**تسهيلات:-**

**قوله:** سَلَمَةَ بْنَ هِشَامٍ:

**دسلمه بن هشام تعارف:-** دا پخوانې دَ اسلام صحابى وو دَ ابوجهل سكه رور وو. دَقريشو كافرانو دې په مكه مكرمه كښې قيد ساتلې وو او په هغه باندې ډير زيات ظلمونه كول دې هم دَ كافرانو نه خلاص شو او مدينې منورې ته اورسيدو.

**قوله:** عَيَّاشَ بْنَ أَبِي رَبِيعَةَ:

**د عياش بن ابى ربيعه تعارف:-** دا هم پخوانې دَ اسلام صحابى وو دَ ابوجهل دَ مور دَ طرف نه اخيافى رور وو. په شروع كښې ئى اسلام قبول كړو او حبشې ته ئى هجرت اوكړو. بيائى دَ مدينې طرف ته دويم هجرت اوكړو. ابوجهل هغه سره دا دهوكه اوكړه چې په خپله مدينې ته راغلو او هغه ته ئې اووئيل چې ستا مور قسم خوړلې دې چې ترڅو تا اونه وينى نو په سورې كښې به نه كينم حضرت عياش د مور د محبت په وجه د ابوجهل سره مكې ته

راغلو دلته ابوجهل هغه گرفتارکړو او په جيل کښې بند کړو او خپل ځناورتوب، ظلم او دَ انتقام دَ جذبې لاندې ئې هغه راګير کړو. ليکن دَ حضورپاك ﷺ په دعا سره دې هم دَ کافرانو دَ لاس نه راخلاص شو تختيدو کښې کامياب شو اومدينې ته لاړو.

**د درې صحابؤ دپاره د نبی کريم ﷺ دعا:-** زير بحث حديث کښې حضورپاك ﷺ هم دَ دې دريو خوش نصيبو صحابؤ دَ راخلاصيدو دَپاره مسلسل دعاغوښتله. اوکافرانو ظالمانوته ئې ډيرې زياتې بدعاګانې کولې. الله تعالى حضورپاك ﷺ په نومونو اخستو سره خيرې کولوځنه منع کړو ځکه چه بعضې داسې خلق هم وو دَ چا په قسمت کښې چه ايمان ليکلې شوې وو دَ چا دَپاره چه بد دعا مناسب نه وه.

**[١٢٨٩] د قنوت طريقه**

١٢٨٩-()[٢] ١ «وَعَنْ عَاصِمٍ الْأَحْوَلِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: ٢ سَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنِ الْقُنُوتِ فِي الصَّلَاةِ، كَانَ قَبْلَ الرُّكُوعِ أَوْ بَعْدَهُ؟ ٣ قَالَ: قَبْلَهُ، إِنَّمَا قَنَتَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ الرُّكُوعِ شَهْرًا، ٤ إِنَّهُ كَانَ بَعَثَ أُنَاسًا يُقَالُ لَهُمْ: الْقُرَّاءُ، سَبْعُونَ رَجُلًا، فَأُصِيبُوا، ٥ فَقَنَتَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ الرُّكُوعِ شَهْرًا يَدْعُو عَلَيْهِمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ عاصم احول رحمه الله وايي ٢ چې ما د انس بن مالک رضی الله عنه ځخه د دعاء قنوت په باره کښې پوښتنه کړه چې (د سحر په لمانځه يا په وترو کښې يا د څه حادثې يا د وباء خوريدو په وخت يا په هر فرض) لمانځه کښې هغه د رکوع ځخه مخکښې ويل کيده يا د رکوع ځخه وروسته؟ ٣ حضرت انس رضی الله عنه وفرمايل چې د رکوع ځخه مخکښې (او وي فرمايل چې) حضور ﷺ چې د رکوع ځخه وروسته دعاء قنوت ويلې وه ٤ هغه ځکه چې حضور ﷺ څو صحابه رضی الله عنهم چې هغوئ ته قراء (قاريان) ويل کيده او په تعداد کښې اويا وو (د تبليغ د پاره) ليږلې وو (د هغه ځايي خلقو) هغه شهيدان کړل ٥ په دې وجه حضور ﷺ تر يوې مياشتې پورې د رکوع ځخه وروسته دعاء قنوت ويلو سره قاريانو (قراء) له د شهيد کونکو د پاره بد دعاء وکړله. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:-** ① بَعَثَ: أَيْ: أَرْسَلَ: ليږلې ئې وو، ② أُنَاسًا: أَيْ: جَمَاعَةً: يو جماعت د صحابه کرامو، ③ فَأُصِيبُوا: أَيْ: قُتِلُوا: قتل کړې شو، شهيدان شو. ④ يَدْعُو عَلَيْهِمْ: خيرې او بد دعاء به ئې ورته کوله.

**د راوي مختصر تعارف:-** نوم: عاصم، دپلارنوم: سليمان، کنيت: ابوعبدالرحمان، دوی د بصرې اوسيدونکی دی، ددوی شمير ثقه کښې کيږی، او د درميانه درجې تابعی دی.

---

[١] اخرجه البخاری فی باب غزوة الرجيع، ورعل، وذکوان، وبئر معونة، وحديث عضل، والقارة، وعاصم بن ثابت، وخبيب واصحابه(رقم-٤٠٩٦) ومسلم کتاب المساجد/باب استحباب القنوت فی جميع الصلاة إذا نزلت بالمسلمين نازلة (رقم-٣٠١ - (٦٧٧)وابوداود کتاب الصلاة،باب القنوت فی الصلوات (رقم-١٤٤٤)

**تسهيلات:-**

**قوله: يُقَالُ لَهُمُ: الْقُرَّاءُ،سَبْعُونَ رَجُلًا:**

**داويا قاريانو څخه مراد:-** دا اويا کسان قاريان صحابه کرام په صفه کښې وو داغريبانان طالبعلمان يو طرف ته علم حديث اوعلم التفسير حاصلولو بل طرف ته په يو جهادی مدرسه کښې هروخت دَ جهاد دَپاره دَا نتظار په خانی کښې ناست وو اوچرته چه به ضرورت پيښيدو دوی به هم هلته دَ جهاد دَپاره تلل.

**د اهل نجد غداری:-** اهل نجد دوی په دهوکه دَ معلم په حيثيت سره دَ حضورپاك ﷺ نه اوغوښتل. حضورپاك ﷺ دَ تعليم اوتبليغ دَپاره هغوی روان کړل خو چه کله دا قاريان دَمکې اوعسفان مينځ ته اورسيدل نو رعل او ذکوان قبيلو په دوی باندې ظالمانه حمله اوکړه اودَ يو نه بغيرئی نور ټول شهيدان کړل اوهغه يو هم په زخمی حالت کښې بچ شو. رسول الله ﷺ ته چه کله پته اولګيدله نو سخت خفه شو او دَ يوې مياشتې پورې ئی دَ دې قبيلو دَ تباهئی دَپاره قنوت نازله کښې بد دعاګانې اوکړې. دا واقعه ۴هجری کښې پيښه شوې وه.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۱۲۹۰] د دعاء قنوت دويلو محل

۱۲۹۰-()[۳] [۱] عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ [۲] «قَنَتَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَهْرًا مُتَتَابِعًا [۳] فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ وَالْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ وَصَلَاةِ الصُّبْحِ، [۴] إِذَا قَالَ: سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ مِنَ الرَّكْعَةِ الْأَخِيرَةِ، [۵] يَدْعُو عَلَى أَحْيَاءٍ مِنْ بَنِي سُلَيْمٍ، [۶] عَلَى رِعْلٍ وَذَكْوَانَ وَعُصَيَّةَ، [۷] وَيُؤَمِّنُ مَنْ خَلْفَهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ تر يوي مياشتي پوري مسلسل (يعني هره ورځ) قنوت ويلي دي [۳] د ماسپښين، مازيګر، ماښام، ماسخوتن او د سحر په لمونځونو کي [۴] د سمع الله لمن حمده ويلو څخه وروسته په آخري رکعت کي [۵] چي په هغې کي حضور ﷺ د بني سليم څو قبيلو د پاره بد دعا کوله [۶] د رعل، ذکوان او د عصيه قبيلو د پاره [يې بد دعا کوله] [۷] او وروسته خلقو (يعني مقتديانو) به آمين ويلي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① مُتَتَابِعًا: أَيْ: مُوَالِيًا: پرله پسي، ② رِعْلٍ: د بنوسليم يوه قبيله ده، ③ يُؤَمِّنُ: أَيْ: يَقُولُ: آمِينَ: صحابه کرامو به آمين وئيلو.

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الجمعة /باب القنوت قبل الرکوع وبعده (رقم) ۱۰۰۳ ومسلم کتاب المساجد /باب استحباب القنوت فی جميع الصلاة إذا نزلت بالمسلمين نازلة (رقم) ۲۹۹ - (۶۷۷) والنسائی کتاب التطبيق /باب القنوت بعد الرکوع (رقم-۱۰۷۰)

**تسهیلات:** -

**قوله:** يَدْعُو عَلَى أَحْيَاءٍ مِنْ بَنِي سُلَيْمٍ، عَلَى رِعْلٍ وَذَكْوَانَ وَعُصَيَّةَ:

**په روایاتو کښې تطبیق:** -دې حدیث په پنځو مونځونو کښې د قنوت نازله د وئیلو بیان دې،او ځینې احادیثو کښې د سحر ذکر راغلې دې.او ځینو کښې په جهری مونځونو کښې د قنوت نازله ذکر راغلې دې.نو په دې روایاتو کښې داشان تطبیق کیدې شی چې که مصیبت زیات وی نو په ټولو مونځونو کښې به قنوت نازله وئیلې کیږی.او که کم وی نو صرف په جهری مونځونو کښې به لوستلې کیږی.او که نور هم کم وی نو د سحر په مونځ کښې به لوستلې کیږی.

بهر حال باقی مونځونو کښې قنوت نازله منسوخ شوي ده.د سحر په مونځ کښې دضرورت په وخت کښې جائز دی.

**[۱۲۹۱] یوه میاشتې پورې قنوت وئیل بیا پریښودل**

۱۲۹۱-(')[۴]① وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ② «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَنَتَ شَهْرًا ثُمَّ تَرَكَهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:**① حضرت انس رضی الله عنه فرمايي② چې رسول الله ﷺ تر يوې مياشتې پورې (د رکوع څخه وروسته) دعاء قنوت ويله ده بيا حضور ﷺ (مطلقًا په فرض لمونځونو کې يا دا چې رکوع څخه وروسته) قنوت ويل ترک کړل، (ابوداؤد ،نسايي)

**تسهیلات:** - **قوله:** ثُمَّ تَرَكَهُ:

**د قنوت نازله د عارضی دلیل:** -داحدیث دَ احنافو مضبوط دلیل دې چه قنوت نازله یو وختی څیز دې کوم چه دَ ضرورت په وخت وی اوپس دَ رکوع نه وی او په عامو مونځونو کښې هم وی.

لیکن قنوت وتر مؤقت نه دی بلکه بعدالعشاء دوامًا جاری اوساری دی. شوافع اومالکیه فرمائی چه دَ فجر په مونځ کښې قنوت نازله دَهمیشه دپاره دی او په نورو مونځونوکښې په وخت دَ حادثه نازله مشروع دی.

**[۱۲۹۲] په نورو مونځونو کښې علی الدوام د دعاء قنوت وئیل بدعت کیدل**

۱۲۹۲-(')[۵]① وَعَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ:② قُلْتُ لِأَبِي: يَا أَبَتِ! «إِنَّكَ قَدْ صَلَّيْتَ خَلْفَ

---

[1] اخرجه مسلم كتاب المساجد/باب استحباب القنوت فى جميع الصلاة إذا نزلت بالمسلمين نازلة (رقم) ۲۹۹ - (۶۷۷) والنسائى كتاب التطبيق/باب القنوت بعد الركوع (رقم-۱۰۷۰)

[2] اخرجه الترمذى فى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فى ترک القنوت (رقم-۴۰۲) والنسائى كتاب التطبيق/ترک القنوت (رقم-۱۰۸۰) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فى القنوت فى صلاة الفجر (رقم-۱۲۴۱)

رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ، وَعُثْمَانَ، وَعَلِيٍّ، [۳] هَاهُنَا بِالْكُوفَةِ نَحْوًا مِنْ خَمْسِ سِنِينَ، [۴] أَكَانُوا يَقْنُتُونَ؟ قَالَ: أَيْ بُنَيَّ! مُحْدَثٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] ابو مالک اشجعي فرمايي [۲] ما د خپل پلار بزرگوار څخه پوښتنه وکړه چې باباجانه تاسو په حضور ﷺ پسي اوپه حضرت ابوبکر ﷺ حضرت عمر ﷺ حضرت عثمان ﷺ او په حضرت علي کرم الله وجهه پسي مونځ کړي دي [۳] په دي کوفه کې تقريبًا پنځه کاله [۴] آيا دي حضراتو به دعاء قنوت ويله؟ هغه وفرمايل زما زويه قنوت بدعت دي. (ترمذي، نسايي، ابن ماجه)

**حل اللغات:-** ① نَحْوًا: أَيْ: قَدْرًا: تقريبًا (د اندازې لګولو په معنی استعمال شوي دي). ② مُحْدَثٌ: أَيْ: الْقُنُوتُ بِدْعَةٌ: دا قنوت ويل بدعت دی (دا روستو خلقو يعنی تابعينو شروع کړي دي).

**تسهيلات:-**

**نوټ:-** د ماسخوتن د وترو څخه علاوه په نورو مونځونو کښې د دعاء قنوت په ويلو کښې چې کوم اختلاف دي. د هغې تفصيل په بل ځائې ذکرشوي دي.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۱۲۹۳] د حضرت عمر، ابی بن کعب په شل رکعته تراويح با ندې راجمع کول**

۱۲۹۳ —([۱])[۲] [۱] عَنِ الْحَسَنِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، [۲] أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، جَمَعَ النَّاسَ عَلَى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، [۳] فَكَانَ يُصَلِّي بِهِمْ عِشْرِينَ لَيْلَةً، [۴] وَلَا يَقْنُتُ بِهِمْ إِلَّا فِي النِّصْفِ الْبَاقِي، [۵] فَإِذَا كَانَتِ الْعَشْرُ الْأَوَاخِرُ تَخَلَّفَ فَصَلَّى فِي بَيْتِهِ، [۶] فَكَانُوا يَقُولُونَ: أَبَقَ أُبَيٌّ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] حسن بصري فرمايي [۲] چې امير المؤمنين حضرت عمر بن خطاب ﷺ خلق (د روژې په مياشت کې د تراويح د لمانځه د پاره) جمع کړل او ابي ابن کعب ﷺ يي امام جوړ کړو [۳] ابي ابن کعب ﷺ هغوئ ته تر شلو شپو پورې مونځ ورکړو [۴] او د هغوئ خلقو سره يي دعاء قنوت سوا د آخري نصف رمضان په نورو ورځو کې نه ويله [۵] هر کله چې آخر لس ورځې پاتې شوې نو ابي ابن کعب ﷺ مسجد ته رانغلي بلکه (وتر) مونځ يي په خپل کور کې کول شروع کړل [۶] خلقو اوويل چې ابي ﷺ وتښتيدو. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① تَخَلَّفَ: پاتې شو(په کورکښې يعنی مونځ ته مسجد ته رانغې). ② أَبَقَ أُبَيٌّ: أَيْ: هَرَبَ عَنَّا: اوتختيدو.

---

[۱]) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة، باب القنوت في الوتر (رقم-۱۴۲۹)

**تسهیلات:-**

**قوله:** فَكَانُوايَقُولُونَ: أَبَقَ أُبَيٌّ:

**د ابی بن کعب د تروایح مونځ پریښودو وجه:-** یعنی حضرت ابی بن کعب ﷺ دَ بګورو غلام په شان منډه کړه خلقو دا خکه اووئیل چه هغوی دَ حضرت ابی بن کعب ﷺ غیرحاضری خوښه نه کړه. بل طرف ته کیدې شی جه حضرت ابی بن کعب ﷺ څه مجبوره شان وو چه په شرعی توګه باندې معذوره وو او حضرت کعب ﷺ سیدالقراء ووبه دې وجه هغه حضرت عمر فاروق ﷺ په رمضان کښې دَ تراویح امام جوړکړې وو.

**د حدیث څخه د احنافو او شوافع جدا جدا استدلال:-** داحدیث دَ شوافع مستدل دې چه دَ نصف رمضان نه پس قنوت لوستلې شوی دی اودَ یوجزء په اعتبارسره دا حدیث دَ احنافو دلیل دې خکه چه احناف په ټولو احادیثوکښې دَ تطبیق ورکولوقائل دی او دلته قبل الرکوع او بعدالرکوع دواړه شان عمل په وجودکښې راغلې دې. نو احناف قبل الرکوع قنوت دَماسخوتن په وترباندې حمل کوی او بعدالرکوع قنوت په قنوت نازله باندې حمل کوی.

**۱۲۹٤] قبل الرکوع د قنوت دلیل**

۱۲۹۳-()[٤] [۱] وَسُئِلَ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَنِ الْقُنُوتِ، فَقَالَ: [۲] «قَنَتَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ الرُّكُوعِ. [۳] وَفِي رِوَايَةٍ: قَبْلَ الرُّكُوعِ وَبَعْدَهُ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او د انس بن مالك ﷺ څخه چا د دعاء قنوت په باره کې پوښتنه وکړه (چې د رکوع څخه مخکې اوویل شی یا وروسته؟) نو هغه ورته وفرمایل [۲] چې حضور ﷺ دعاءِ قنوت د رکوع څخه وروسته ویلې ده [۳] په یو بل روایت کې دا دي چې حضور ﷺ دعاء قنوت (کله) د رکوع څخه مخکې او (کله) د رکوع څخه وروسته ویلې ده..

[1] اخرجه ابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها/باب ما جاء فی القنوت قبل الرکوع وبعده (رقم-۱۱۸۳)

# [۵۳/۳۷] بَابُ قِيَامِ شَهْرِ رَمَضَانَ

## د رمضان په میاشت کښې د تراویحو بیان

**خلاصة الباب:-**

**فيه ثلاثة عشر حديثاً مشتملة على ثماني مسائل:**

① ثبوت صلوة التراويح من النبي ﷺ : ۱، ۴.

② الترغيب في صلاة التراويح في البيوت: ۱، ۳، ۶.

③ عدم المداومة على صلاة التراويح خشية الافتراض: ۱.

④ الترغيب في قيام رمضان: ۲.

⑤ فضيلة ليلة النصف من شعبان : ۵، ۱۱، ۱۳، ۱۲ .

⑥ جمع عمر ﷺ الناس على التراويح عشرين ركعة: ۸، ۹.

⑦ تطويل القيام: ۴، ۸، ۱۰ .

**د قیام رمضان څخه مراد:-** دَ قیام رمضان نه مراد دَ تراویح مونځ دي. علامه نووی رحمه الله فرمائی "المراد بقیام رمضان التراویح" علامه کرمانی رحمه الله په اتقان کښې په دې باندې اجماع نقل کړې ده فرمائی:

"اتفقوا على ان المراد بقيام رمضان صلوة التراويح" [فتح الباری ج۴ص۲۱۷]

**د ترویحة تعریف:-** تراویح دَ ترویحه جمع ده او ترویحه دَ راحت په معنی کښې ده چونکه دَ څلورو رکعتونه پس استراحت او آرام کوی په دې وجه دې ته دَ تراویح مونځ اووئیلې شو.

**د قیام اللیل او قیام شهر رمضان جدا جدا کیدو قرائن:-** لکه چه پورته لیکلې شوی دی په دې باندې اتفاق او اجماع ده چه "قیام اللیل" ځان له مونځ دې او "قیام شهر رمضان" ځان له مونځ دې دواړه جدا جدا مونځونه دی او دَ دواړو نومونه هم جدا جدا دی. قیام اللیل دَ تهجد دَپاره وئیلې شی او قیام شهر رمضان دَ تراویح دَپاره خاص توګه باندې استعمالولې شی. لهذا دا مناسب نه دی چه څه خلق دَ تراویح پتولو او دباوولو په غرض دې ته هم تهجد وئیل شروع کړی او بیا وینا کول شروع کړی چه په رمضان او غیر رمضان کښې حضورپاک ﷺ دَ یوولسو رکعتونه دَ شپې زیات مونځ نه دې کړې لهذا دَ اتو رکعتونه زیاتی هیڅ هم ثابت نه دی که دې ته تراویح وائی او که تهجد ورنه وائی داسې ګډوډ کول او اړول راړول مناسب نه دی ډیر زیات قرائن او دلائل موجود دی چه دا جدا مونځونه دی یو څو قرائن اوګورئی:

① تهجد او تراویح کښې دَ فرق دویمه قرینه داده چه دَ دواړو وخت جدا جدا دې تراویح دَ ماسخوتن نه پس دی او تهجد دَ شپې په آخره یا مینځ کښې وی.

② په ډیرو زیاتو احادیثو کښې او دَ فقهاؤ په بې شمیره کلام کښې اودَ محدثینو په بې شمیره عنواناتو کښې دَدې مونځ اضافت په خاص توګه دَ رمضان طرف ته کړې شوې دې لکه قیام شهر رمضان "سننت لکم قیامه" "یرغب فی قیام رمضان من قام ایمانا واحتسابا" وغیره وغیره دا اضافت دَ تخصیص فائده ورکوی لهذا دا عام تهجدنه دی بلکه دَ تراویح مونځ دې. په حرمین شریفین کښې نن صبا دَ تراویح دَپاره داسې اعلان کیږی "صلوة القیام اثابکم الله"

③ تهجد دَ قرآن نه ثابت دی او تراویح دَ سنت رسول الله ﷺ نه ثابت دی لکه چه "وسننت لکم قیامه".

④ دَ صلوة اللیل کله هم جمع نه وی نه دَدې څه ترغیب ورکړې شوې دې خو قیام رمضان په جمع سره وی اودَدې ترغیب ورکولې شی.

⑤ دَامت فقهاء محدثین او دَ دین ماهرین قیام اللیل ته تهجد او قیام رمضان ته تراویح وائی نو په دواړو کښې صفافرق ښکاره دې. دا شپږ وجوهات دی په کوم سره چه تراویح او تهجد کښې فرق راځی.

⑥ دَ تراویح کیدونه پس دَ تهجد مونځ صحابه کرامو په اهتمام سره کړې دې که چرې دا یوځیز وې نو؛ تهجد اهتمام به جدا ولې کیدو؟

**د تراویحو د سنتیت دلائل:**- دَ احنافو په نیزدَ تراویح مونځ سنت مؤکده دې اودَ حنابله هم دغه مسلك دې. (کذا فی المغنی لابن قدامه ج۲ ص۱۶۶) دَ تراویح په سنت مؤکده کیدو باندې ډیرزیات دلائل دی:

① حضورپاك ﷺ درې شپې دَ تروایح مونځ په جمع سره ورکړو چه خلق زیات شو نو حضورپاك ﷺ پریخودلو اودا وجه ئې بیان کړه چه ماته ویره پیداشوه چه دامونځ په تاسو باندې فرض نه کړې شی کوم چه تاسوپوره نه کړې شئی. دې نه معلومه شوه چه تروایح سنت مؤکده دی.

② حضورپاك ﷺ اوفرمائیل "وسننت لکم قیامه" یعنی قیام رمضان فرض نه دې بلکه الله تعالی روژې فرض کړی دی او تراویح زما سنت دی.

③ حضورپاك ﷺ دَ تراویح بنیاد قائم کړو او دَعذردَ وجې نه ئې په دې باندې عملی مواظبت اونه کړو لیکن دَ حضورپاك ﷺ نه پس صحابه کرامو خلفاء راشدین ﷺ اودَ امت فقهاؤ په دې باندې مواظبت کړې دې کوم چه دَ سنت مؤکده واضح دلیل دې.

**د تراویحو په جمع او ځانله کولو کښې اقوال:**-

① دَ جمهورو فقهاؤ رائې ده چه تراویح په جمع سره یوځائی کول غوره اوبهتردی.

② دَ بعض علماء اوفقهاء رائې ده چه تراویح ځان له په کور کښې کول بهتردی. دَامام مالك

رحمه الله او امام ابو یوسف رحمه الله یو یو روایت داسې هم دی.

**په مذهبینو کښې محاکمه:**- دې علماو بیا محاکمه کړې ده که په جمع کښې دَ نه شریکیدو دَ وجې دَ مونځ گذار دَپاره په تراویح کښې سستی کولو خطره وی او دَ هغه جمات ته په نه راتلو کښې جمع ته دَ نقصان رسیدو هم څه خطره نه وی نو دې سړی له جمات ته راتلل یا په کور کښې کول دواړه برابر دی. خو که یو سړی ته خطره ده که جمات ته رانغلو نو تراویح به ترې پاتې شی سستی به پیداشی یا دَ ده دَ وجې نه به جمع ته نقصان اورسی نو بیا دَ ده دَپاره جمع کښې حاضریدل افضل او اولی دی. بهر حال دَ اکثر احنافو په نیز دَ تراویح دَپاره په جمع کښې شاملیدل سنت دی.

**تراویح سنت علی الکفایه دی:**- بیا دَ احنافو جمهور علماء دَ تراویح جمع ته سنت علی الکفایه وائی مطلب دا که دَ پوره محلې والونه دَ تراویح جمع پاتې شی نو ټول به گناهگاروی او که بعض جمع اوکړه نو دَ باقی دَ ذمه نه به ذمه واری ساقط شی. بهر حال حضور پاك درې شپې جمع قائم کړې بیائی پریخوده. دَ صدیق اکبر رضي الله عنه په دور کښې داخلی او خارجی فتنې راوچتې شوې نو هغوی هم دَ جمع دَ ترتیب دَپاره فارغ نه شو. بیا حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په یو امام سره ټول مسلمانان په جمع سره یو ځائی کړل او دَ هغه وخت نه ترننه پورې هغه سلسله قائم او دائم ده . حضرت عمر رضي الله عنه اول خلق په اتو رکعتو باندې راجمع کړل بیائی په دوولس رکعته باندې جمع کړل او بیائی په شلو باندې ټول یو ځائی کړل او ترننه پورې هم دغه طریقه روانه ده.

**د تراویح په شمار کښې مذاهب:-**

① دَ امام مالك رحمه الله نه په دې باره کښې مختلف اقوال نقل دی. دَ یو قول مطابق دَ هغوی په نیز تراویح شل رکعته دی دویم قول کښې شپږ دیرش رکعته دی او یو قول دَ ۴۱ رکعتو هم دې. علامه عینی رحمه الله فرمائی دَ امام مالك رحمه الله نه دَ شپږ دیرشو رکعاتو والاقول مشهور او معتمد دې. داخیره دَ یاد ساتلو قابل ده چه دَ امام مالك رحمه الله په نیز اصل تراویح شل رکعته دی دَ شلو رکعتونه چه کوم دَ زیاتی ذکر راغلې دې دا ټول نوافل دی. هغه وخت په مکه مکرمه کښې دَ څلورو رکعتو ترویحه په دوران به خلقو دَ بیت الله طواف کولو. تراویح شل رکعته وې لیکن په مدینه کښې دَ ترویحه په وخت دَ طواف امکان نه وو نو خلق به اودریدل او څلور رکعته به ئې نور اوکړل. لهذا په څلورو ترویحاتو کښې به شپاړلس رکعته نفل کیدل هم دغه په ترویحه کښې شامل کړې شو نو دَ شپږ دیرش رکعتو قول ئې اوکړو گنی اصل تراویح دَ شلو رکعتونه زیاتې نه دی.

② دَ امام ابوحنیفه رحمه الله امام شافعی رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله او نورو دیرو فقهاؤ مسلك دې چه تراویح شل رکعته دی او درې وتر دَ دې نه علاوه دی.

**په شل رکعته تروایحو باندې داجماع انعقاد:** – په شل رکعته تراویح باندې اجماع منعقد شوې ده. دَحضرت عمر فاروق رضي الله عنه باره کښې تصور هم نه شی کیدلې چه هغوی دَ شلو رکعتو تراویح حکم دَخپل طرف نه جاری کړې وی یا العیاذ بالله هغوی دَ څه بدعت ارتکاب یا ایجاد کړې دې. بیا چه کله هغوی دَ شلو رکعتو عام اعلان په جمات کښې اوکړو او په عملی توګه باندې په شل رکعته باندې عمل کول شروع شو نو یو صحابی دَدې نه انکار اونه کړو اونه ازواج مطهرات چه دَ حضورپاك ﷺ دَ هر راهر اوپټ عمل نه خبروې په هغوی کښې چا هم څه نکیر اونه کړو. په دې سره دا خبره واضح کیږی چه صحابه کرام په دې خبره باندې پوهیدل چه دَ حضرت عمر رضي الله عنه دا اقدام دَ حضورپاك ﷺ دَ منشاء عین مطابق دې او حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ضرور څه اشاره دَ دربار نبوی نه دَ شل رکعته تراویح لیدلې وه. لیکن دَ دې باوجود غیرمقلدین شل رکعته تراویح بدعت ګرځوی. دا ډیره دَ افسوس خبره ده. اوس دَ طرفین دلائل اوګورئی.

**د اول فریق اول دلیل:** –

① دَهغوی دَ ټولو نه زیات مشهور دلیل دَحضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها حدیث دې دَ کوم تخریج چه بخاری وغیره کړې دې. حضرت عائشه رضي الله عنها دَ یوسائل په جواب کښې اوفرمائیل "ماکان رسول الله صلی الله علیه وسلم یزید فی رمضان ولا فی غیره علی احدی عشرة رکعة" معلومه شوه چه حضورپاك ﷺ په رمضان کښې دَ اتو رکعتو نه زیاتی تراویح نه دی کړی.

**داول فریق د اول دلیل جواب:** – دَدې حدیث تعلق دَتهجد سره دې تراویح سره بالکل نه دې. دَ حضرت عائشه رضي الله عنها په حدیث کښې "ولافی غیره" الفاظ په اوچت آواز سره وائی چه دا دَ تراویح خبره نه ده بلکه دَتهجد خبره ده ګنی دَ رمضان نه علاوه وختونو کښې دَ تراویح څه تصور کیدې شی. بل که چرې دَحضرت عائشه رضي الله عنها په نیز دَ تراویح مونځ صرف اته رکعته وو نو بیا هغې په شل رکعته باندې اعتراض ولې اونه کړو حالانکه په مدینه منوره کښې حضرت عائشه رضي الله عنها دَ عام صحابه دَپاره مرجع وه معلومه شوه دا دَ تهجد خبره وه دَ تراویح خبره نه وه.

**داول فریق دویم دلیل:** –

② دَحضرت جابر رضي الله عنه روایت د دوی مستدل دې الفاظ ئې دا دی: "عن جابر بن عبدالله انه علیه السلام قام بهم فی رمضان فصلی ثمان رکعات واوتر" [رواه ابن حبان فی صحیحه] دې نه معلومه شوه چه حضورپاك ﷺ اته رکعته تراویح په جمع سره کړی دی.

**د اول فریق د دویم دلیل جواب:** – حضرت جابر رضي الله عنه دَ تراویح دَ رکعتونو دَ بیانولو اراده نه کړې بلکه دَ حضورپاك ﷺ دَ جمع والا دَ رکعتونو ذکر ئې کړې دې چه دَ حضورپاك ﷺ جمع دَ اتو رکعتو وه دَدې نه علاوه رکعتونه دَ څه دَ وجې نه حضورپاك ﷺ بغیر دَ جمع ادا

کړی. حضرت جابر رضی الله عنه دَ اتور کعتونه علاوه رکعتونه دَ بحث موضوع نه دی جوړ کړی اونه ئی څه حصر یانفی کړې ده. دا تاویل اودا جواب په ظاهری توګه سره ډیر کمزوري دي لیکن دا جواب په دې وجه باندې مضبوط جوړیږی که دَ تراویح رکعتونه اته وې نو ټول صحابه به په دې باندې متفق وې اوپه شل رکعته به کله هم اتفاق نه جوړیدو حالانکه صحابه بغیر دَ څه کمی زیاتی شل رکعته قبول کړل اودائی معمول جوړ کړو اودَ صحابه کرامو نه زیات دَ حضورپاك صلی الله علیه وسلم دَ سنتو پیژندونکی منونکی نور څوك نه شی کیدې.

**دا اول فریق دریم دلیل :-**

③ په موطا مالك کښې سائب بن یزید رضی الله عنه روایت داسې دې: "مالك عن محمد یوسف عن السائب بن یزید انه قال امر عمر بن خطاب ابی ابن کعب وتمیم الداري ان یقوما للناس باحدي عشرة رکعة"

**د اول فریق د دریم دلیل جواب:-** ډیره ممکن ده چه دا دَهغه زمانې خبره وی چه کوم وخت دَ شلو رکعتو استقرار نه وو راغلې دَجمهورو په کلام کښې هم داخبره ملاویږی چه دَ حضرت عمر رضی الله عنه نه دَ اتور کعتو حکم هم ملاویږی دَ دوولسو هم ملاویږی. لیکن اقرار او استقرار په شلو رکعتو راغلې دې. صحابه کرامو شل رکعته خپل کړی دی اوامت شل رکعته قبول کړی دی ترننه پورې په حرمین شریفین کښې په شلو رکعتو باندې عمل جاری دې لهذا دا روایت به په هغه زمانه باندې حمل کوی وی کله چه په تراویح کښې انضباط نه وو راغلې. بل په دې روایت کښې ډیر زیات اضطراب دې دَ سائب بن یزید رضی الله عنه نه صرف محمدبن یوسف رحمه الله داسې نقل کوی دَ سائب نور ټول شاګردان دَ یوولسو په ځائی شل رکعته نقل کوی.

**د دویم فریق دلائل:-** جمهورو سره دَ شلو رکعتو په تراویح باندې ډیرزیات دلائل دی دَ دغه دلائلو وړاندې کولونه په دې خبره باندې ځان پوهه کول پکاردی چه په دومره خبره باندې خو دَ ټول امت اتفاق دې چه حضورپاك صلی الله علیه وسلم دَ تراویح مونځ کړې دې په دې باندې هم اتفاق دې چه په عهدنوی کښې صحابه کرامو هم تراویح کولې. داخبره هم ثابته ده چه حضورپاك صلی الله علیه وسلم درې ورځې په جمع سره تراویح کړی دی اوداهم اتفاق دې چه دَ حضورپاك صلی الله علیه وسلم عام معمول په کور کښې دَ تراویح کولو وو.

① دَ شلو رکعتو دَتراویح په ثبوت باندې دَ جمهورو دویم دلیل موطامالك کښې دَ یزیدبن رومان روایت دې. "مالك عن یزیدبن رومان انه قال کان الناس یقومون فی زمن عمربن الخطاب فی رمضان بثلاث وعشرین رکعة" (موطامالك) دا حدیث دَ بلاغات مالك نه دې کوم چه سره دَدې مرسل دې مګردَ موصولات په حکم کښې دې هسې مرسل هم دَ جمهورو په نیزحجت دې.

② عن ابن عباس ان رسول الله صلی الله علیه وسلم کان یصلی فی رمضان عشرین رکعة فی غیر جماعة والوتر" (رواه البیهقی فی سننه وابن ابی شیبه فی مصنفه والطبرانی والبغوي (زجاجة المصابیح ج ۱ ص ۳۴۶)) دَدې روایت

ټول راويان ثقه دی صرف په ابراهيم بن عثمان باندې کلام دې ليکن تضعيف سره سره ډيرو زياتو محدثينو دَ دوی توثيق هم کړې ده يحيى بن معين دهغوی باره کښې فرمائی "شيخ ثقة كبير"

④ دَجمهورو څلورم دليل دَمصنف ابن ابی شيبه روايت دې. "عن يحيى بن سعيد ان عمر بن الخطاب امر رجلا يصلي بهم عشرين ركعة" (ج۲ص۳۹۳)

④ دَجمهورو دريم دليل دَحضرت سائب بن يزيد رضي الله عنه روايت دې. "عن يزيد بن خصيفة عن السائب بن يزيد قال كانوا يقومون على عهد عمر بن الخطاب رضى الله عنه فى شهر رمضان بعشرين ركعة وكانوا يقرؤن بالمئين وكانوا يتوكئون على عصيهم فى عهد عثمان من شدة القيام" (سنن الكبرىٰ بيهقى ج۲ص۴۹۶) دا روايت بالكل صحيح الاسناد دې.

⑤ "وعن عمر انه جمع الناس على ابى بن كعب وكان يصلي بهم عشرين ركعة" (بيهقى وابن ابى شيبه زجاجه ج۱ص۳۶۶)

⑥ "وعن شيرمة وكان من اصحاب على انه كان يؤمهم فى رمضان فيصلي خمس ترويحات" (بيهقى زجاجه ج۱ص۳۶۶)

⑦ "وعن السائب بن يزيد قال كنا نقوم فى عهد عمر بعشرين ركعة والوتر وفى رواية وعلى عهد عثمان وعلى مثله قال النووي اسناده صحيح" (زجاجة المصابيح ج۱ص۳۶۶)

⑧ "وعن ابن ابى عبد الرحمن السلمى ان عليا دعا القراء فى رمضان فامر رجلا ان يصلي بالناس عشرين ركعة وكان على يوتر بهم" (رواه البيهقى وزجاجة المصابيح ج۱ص۳۶۶)

قال عطاء ادركت الناس وهم يصلون ثلاثة وعشرين ركعة بالوتر. مشهور تابعی حضرت نافع رحمه الله فرمائی: "لم ادرك الناس الا وهم يصلون تسعا وثلاثين ويوترون منها بثلاث" (فتح الباری ج۴ص۲۵۴) امام مالك رحمه الله فرمائی "وعلى هذا العمل منذ بضع ومائة سنة" (حواله بالا). امام شافعی رحمه الله فرمائی: "رأيت الناس يقومون بالمدينة بتسع وثلاثين ركعة وبمكة بثلاث وعشرين"

**د ناصحانه خبره:**— په دومره لويه پيمانه باندې دَامت دَ فقهاؤ اقوال اودَ پوره امت اعمال اوافعال که دَچادَ پاره دليل نه شی جوړيدې نودَې مطلب دادې چه هغه سړې هډو تراويح کول نه غواړی که دَهغوی اراده دَ کولو وه نوهغه به دَ امت دَ اجماع څه خيال ساتلې. په اتو رکعتوباندې دَ جمات نه تختيدونکی دَ ختم قرآن نه محروم پاتې کيږی دَ مسلمانانو دَدعاګانونه محروم پاتې کيږی دَ رمضان دَمبارکو وختونونه محروم پاتې کيږی دَ جمات دَ ماحول نه محروم پاتې کيږی دَ خان خوښئی ښکار کيږی په مسلمانانو باندې دَ بدګمانئی مرتکب کيږی اودَ پوره امت طرف ته دَ غلطئی نسبت مرتکيب کيږی دَ شلو په ځائی دَ اتو رکعتو ثواب حاصلوی حالانکه که چرې هغه شل رکعته کولې نو اته به په کښې خامخا

حاصلیدلي. په آخره کښې دَ تراویح دپاره دا خبره فیصله کونکې دلیل دې چه حضور پاك ﷺ فرمائیلي "علیکم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدین" دا مضبوط او محکم دلیل دې لیکن دَ بد قسمتئ نه غیر مقلدین دَ صحابه کرامو تقلید هم نه کوي نو چه کوم امور دَ صحابه کرامو نه ثابت دی دا حضرات دَهغې نه انکار کوي.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۱۲۹۵] په جمعې سره د تراویحو کولو مسنونیت

۱۲۹۵—()[۱] ۞۱ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، ۞۲ «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتَّخَذَ حُجْرَةً فِي الْمَسْجِدِ مِنْ حَصِيرٍ، ۞۳ فَصَلَّى فِيهَا لَيَالِيَ، حَتَّى اجْتَمَعَ عَلَيْهِ نَاسٌ، ۞۴ ثُمَّ فَقَدُوا صَوْتَهُ لَيْلَةً، وَظَنُّوا أَنَّهُ قَدْ نَامَ، ۞۵ فَجَعَلَ بَعْضُهُمْ يَتَنَحْنَحُ لِيَخْرُجَ إِلَيْهِمْ، ۞۶ فَقَالَ: "مَا زَالَ بِكُمُ الَّذِي رَأَيْتُ مِنْ صَنِيعِكُمْ، ۞۷ حَتَّى خَشِيتُ أَنْ يُكْتَبَ عَلَيْكُمْ، ۞۸ وَلَوْ كُتِبَ عَلَيْكُمْ مَا قُمْتُمْ بِهِ، ۞۹ فَصَلُّوا أَيُّهَا النَّاسُ فِي بُيُوتِكُمْ، ۞۱۰ فَإِنَّ أَفْضَلَ صَلَاةِ الْمَرْءِ فِي بَيْتِهِ إِلَّا الصَّلَاةَ الْمَكْتُوبَةَ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۞۱ زید ابن ثابت رضی الله عنه فرمایي ۞۲ چې رسول الله ﷺ (په رمضان کې) په مسجد کې د بوریا (ټاټ، چټایي) یوه حجره جوړه کړه ۞۳ او څو شپې یې په هغې کې (د تراویح) مونځ وکړو (کوم وخت چې خلق په جمع شو نو حضور ﷺ به د حجرې څخه بهر تشریف راوړو او فرائض او تراویح به یې د جماعت سره کول) تر دې چې (یو څل ډیر زیات) خلق جمع شو [حضور ﷺ فرض مونځ کولو سره حجرې ته تشریف وړې وو او څنګه چې یې معمول وو څه وخت وروسته یې بهر تشریف رانه وړو] ۞۴ خلقو د حضور ﷺ څه کشارې محسوس نه کړو نو هغوئ دا وګڼله چې حضور ﷺ اوده شوي دي ۞۵ خلقو دغاړې تازه کول شروع کړل چې حضور ﷺ (بیداره شي او د تراویح د لمانځه د پاره) بهر تشریف راوړي (څنګه چې حضور ﷺ تیرو شپو کې تشریف راوړو) ۞۶ حضور ﷺ (د حجرې څخه بهر راوتو سره یا د دننه څخه) وفرمایل دا ستاسو کار چې زه وینم برابر دې جاري وي (یعنې د جماعت سره د تراویح کولو شوق او د عبادت په معامله کې ستاسو دا جذبه دې همیشه وي او بیا یې وفرمایل) ۞۷ لیکن زما سره دا ویره شوه چې دا مونځ په تاسو باندې فرض نشي (یعني که ما همیشه د تراویح مونځ د جماعت سره کولي نو دا مونځ به په تاسو فرض شوې وو) ۞۸ او که دا په تاسو مونځ فرض شوې وې نو تاسو به د دې د کولو څخه قاصر

---

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب صلاة الجماعة والإمامة/باب صلاة اللیل (رقم-۷۳۱) ومسلم کتاب صلاة/باب استحباب صلاة النافلة فی بیته، وجوازها فی المسجد (رقم) ۲۱۳ - (۷۸۱) وابوداود کتاب الصلاة،/باب فی فضل التطوع فی البیت (رقم-۱۴۴۷) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی فضل صلاة التطوع فی البیت (رقم-۴۵۰) والنسائی کتاب قیام اللیل وتطوع النهار/باب الحث علی الصلاة فی البیوت والفضل فی ذلک (رقم-۱۵۹۹) ومالک فی الموطا کتاب صلاة الجماعة، باب فضل صلاة الجماعة علی صلاة الفذ (رقم-۴)

شوي وي ⑨ نو اي خلقو تاسو په خپلو کورونو کې مونځ کوئ ⑩ ځکه چې د انسان بهترین مونځ هغه دی چې هغه په خپل کور کې کړي وي سوا د فرض لمانځه څخه (چې هغه په مسجد کې د جماعت سره کول افضل دي) (بخاري، مسلم)

**حل الالفاظ:-** ① اتَّخَذَ: جوړه ئې کړه، ② حُجْرَةً: کوټه (د پوزکی نه). ③ حَصِيرٍ: پوزکې (کوم چه د میزرو نه جوړشوې وی). ④ فَقَدُوا صَوْتَهُ: أَيْ: حِسَّهُ: یعنی آواز، کشارئې وانه و ریدلو. ⑤ يَتَنَحْنَحُ: غارې ئې تازه کولې.

**تسهیلات:-**

**قوله:** اتَّخَذَ حُجْرَةً فِي الْمَسْجِدِ مِنْ حَصِيرٍ:

**داعتکاف دپاره د ځائې خاص کولو جواز:**—نبی کریم ﷺ د رمضان په میاشت کښې داسې اوکړل چې د مسجد په یوګوټ کښې ئې ځان نه ګیرچاپیره یو پوزې راتاو کړو چې په خلوت کښې خاص عبادتونه اوکړی.ددې څخه معلومه شوه چې معتکف ځان دپاره په جمات کښې ځائې مخصوص کولې شی .خودومره زیات ځایې به نه راګیروی چې مونځګذارو ته په دې تکلیف اورسی .

**قوله:** حَتَّى خَشِيتُ أَنْ يُكْتَبَ عَلَيْكُمْ:

**اشکال:**—د نبی کریم ﷺ په زمانه کښې دشپې د مونځ دفرضیت اندیښنه څنګه کیدیشی حالانکه فرضیت خو په دلیل قطعی سره کیږی؟

**داشکال دوه جوابونه:**— کیدې شی چې الله تعالی نبی کریم ﷺ ته وحی کړې وی که تاسو هغوئ سره قیام کوئی نو مونږ به په هغوئ باندې دا فرض کړو. د صحابه کرامو د تراویح سره د شوق او رغبت په وجه.

② کیدې شی چې په دې فعل باندې د مداومت خیال د نبی کریم ﷺ په زړه کښې پیدا شوې وی.

**اشکال:**— معراج کښې نبی کریم ﷺ ته پنځه مونځونه ورکړې شوې وو، او په دې کښې د تغیراوتبدل نه نفی اوکړې شوه ،چې اوس به په دې کمی بیشی نه کیږی.نو ځائې کښې د صلوة د فرضیت احتمال څنګه کیدې شی؟

**د اشکال جواب:**— هلته د کمې ذکر دې د زیاتی نه دې ،په دې وجه ورسره ویره پیدا شوه.

**[۱۲۹۶] په رمضان کښې د شپې د عبادت ترغیب**

۱۲۹۶—(¹)[۲] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرَغِّبُ فِي قِيَامِ رَمَضَانَ ③ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَأْمُرَهُمْ فِيهِ بِعَزِيمَةٍ فَيَقُولُ: ④ "مَنْ قَامَ رَمَضَانَ، إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا، ⑤ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ

[1] اخرجه مسلم فی کتاب صلاة/باب الترغیب فی قیام رمضان، وهو التراویح (رقم-۱۷٤ - (۷۵۹)

ذَنْبِهِ "، ۶ فَتُوُفِّيَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْأَمْرُ عَلَى ذٰلِكَ، ۷ ثُمَّ كَانَ الْأَمْرُ عَلَى ذٰلِكَ فِي خِلَافَةِ أَبِي بَكْرٍ، ۸ وَصَدْرًا مِنْ خِلَافَةِ عُمَرَ عَلَى ذٰلِكَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوهريره رضی الله عنه فرمايي ۲ چې رسول الله ﷺ به د قيام رمضان (يعني د تراويح د لمانځه) ترغيب ورکولو ۳ ليکن په تاکيد سره به يي صحابه و ﷺ ته هيڅ حکم نه ورکولو حضور ﷺ به فرمايل ۴ کوم سړي چې په صحيح اعتقاد سره او د ثواب حاصلولو د پاره (يعني د ريا او نمائش په جذبي سره نه بلکه محض د الله جل شانه د رضا د پاره) په رمضان کې قيام کوي ۵ د هغه مخکيني (صغيره) ګناهونه بخښل کيږي ۶ نوحضور ﷺ وفات شو او د قيام رمضان معامله دغسې پاتې شوه (يعني د تراويح د لمانځه د پاره جماعت مقرر نه وو بلکه چا چې به غوښتل د حصول ثواب د پاره به يي کول) ۷ بيا د حضرت ابوبکر رضی الله عنه په خلافت کې هم دغسې صورت وو ۸ او بيا د حضرت عمر رضی الله عنه د خلافت په ابتدايي زمانه کښې هم دغه معمول وو (او بيا حضرت عمر رضی الله عنه د تراويح د لمانځه د پاره د جماعت حکم وکړو او ددې التزام يي وکړو). (مسلم)

**حل اللغات:-** ① يُرَغِّبُ: د ترغيب ورکولو په معنى کښې دې. ② بِعَزِيمَةٍ: أَيْ: بِعَزِيمَةٍ: يعنى په تاکيد سره (به ئې حکم نه کولو). ③ إِيمَانًا: أَيْ: مُؤْمِنًا بِاللّٰهِ: چه په الله تعالى ئې ايمان وی. ④ وَاحْتِسَابًا: أَيْ: مُحْتَسِبًا بِمَا فَعَلَهُ عِنْدَ اللّٰهِ أَجْرًا: او د الله تعالى نه ئې د ثواب اميد وی. ⑤ وَالْأَمْرُ عَلَى ذٰلِكَ: هم هغه معمول جارى وو کوم چه د نبى کريم ﷺ په زمانه کښې وو يعنى خان خانله به ئې د تراويح مونځ کولو، جماعت سره به ئې نه کول.

**تسهيلات:- قوله: إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا:**

**دايمان او احتساب په مفهوم کښې دوه اقوال:-**

① د دې جملې مطلب دادې چې د رمضان په مقدسو او برکتنانو شپو کښې دالله تعالى عبادت کول او شپې شوګيره کول.

② ددې نه مراد داهم دی چې کوم کس صحيح عقيدې سره د تراويح مونځ ادا کړی يعنى دالله تعالى په ذات او صفاتو باندې عقيده لرى ،او دا خبره ورته صحيح معلوميږى چې د رمضان په شپو کښې د الله تعالى عبادت کول ،دالله تعالى درضا او دقرب ذريعه ده.نو د هغه شخه چې کوم صغيره ګناهونه شوى وى هغه ورته معاف کيږى.

**قوله: غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ:**

**دګناهونو په معاف کيدو کښې اقوال:-**

① د حديث مبارك د ظاهر نه معلوميږى چې څوك د تراويح پابندى کوى نو ددې برکت سره به ئې صغائر او کبائر معاف کيږى.

②امام نووى رحمة الله عليه فرمائى چې نيکو عملونو سره صرف صغائر معاف

کيږي. ځکه چې کبائر توبې سره او حقوق العباد د صاحب حق په معاف کولو سره معاف کيږي او هم دا قول د اهل سنت دې.

③ صغائر به معاف کيږي. او په کبائرو کښې به تخفيف کولې شي.

**[۱۲۹۷] د نوافلو په کورونو کښې د کولو فضيلت**

۱۲۹۷–(۱)[۳] ① وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«إِذَا قَضَى أَحَدُكُمُ الصَّلَاةَ فِي مَسْجِدِهِ ③ فَلْيَجْعَلْ لِبَيْتِهِ نَصِيبًا; ④ فَإِنَّ اللّٰهَ جَاعِلٌ فِي بَيْتِهِ مِنْ صَلَاتِهِ خَيْرًا»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت جابر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل په تاسو کې چې کوم سړي خپل (فرض) مونځ په مسجد کې وکړي نو هغه ته پکار دي چې د خپل لمانځه څه حصه د خپل کور د پاره هم وساتي (يعني سنت او نوافل بلکه قضاء دي هم په کورکي کوي) ځکه چې الله تعالى جل جلاله د هغه د لمانځه په سبب د هغه په کورکي خير پيدا کوي. (مسلم)

**حل اللغات:**- ① نَصِيبًا: أَيْ: حِصَّةً وَحَظًّا: حصه، برخه.

**تسهيلات:**- **قوله:** فَلْيَجْعَلْ لِبَيْتِهِ نَصِيبًا:

**په کورونو کښې د سنتو ادا کولو فضيلت:**- دې حديث مبارك کښې په کورونو کښې د سنتو ادا کولو فضيلت او ددې سنتو ادا کولو په وجه چې کوم اثرات پيدا کيږي هغه بيانيږي. فرمائى چې کوم کس فرض مونځ په جمات کښې او سنت او نوافل په کور کښې کوى نو ددې مونځ په برکت سره الله تعالى دهغه په کور کښې خير راولى. يعنى کور والو ته د نيکى توفيق ملاويږى. او د استوګنو په رزق او عمر کښې برکت پيدا کيږى.

**دتراويح د مونځ استثناء:**- تراويح په دې حکم کښې نه دى شاملې. ځکه چې بالاتفاق دا ثابت دى چې حضور ﷺ به تراويح په جمات کښې کولې. او په دې د صحابه کرامو اجماع هم وه..

**باب سره مناسبت:**- په ظاهره ددې حديث دې باب سره تعلق نشته، ليکن په دې باب کښې د نقل کول مقصد دادې چې رمضان کښې دې څه مونځونه په کور کښې هم ادا کړې شي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۱۲۹۸] په آخرى عشره کښې د نبى عليه السلام درې شپې تراويح کول**

۱۲۹۸–(۲)[۳] ① عَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «صُمْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمْ يَقُمْ بِنَا

[1] اخرجه مسلم فى كتاب صلاة/باب استحباب صلاة النافلة فى بيته، وجوازها فى المسجد (رقم) ۲۱۰ - (۷۷۸) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فى التطوع فى البيت (رقم-۱۳۷۶)

[2] اخرجه الترمذى فى كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى قيام شهر رمضان (رقم-۸۰۶) والنسائى كتاب السهو/باب ثواب من صلى مع الإمام حتى ينصرف (رقم-۱۳۶٤) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فى قيام شهر رمضان (رقم-۱۳۲۷)

شَيْئًا مِنَ الشَّهْرِ حَتَّى بَقِيَ سَبْعٌ، ۳ فَقَامَ بِنَا حَتَّى ذَهَبَ ثُلُثُ اللَّيْلِ، ۴ فَلَمَّا كَانَتِ السَّادِسَةُ لَمْ يَقُمْ بِنَا، ۵ فَلَمَّا كَانَتِ الْخَامِسَةُ قَامَ بِنَا، حَتَّى ذَهَبَ شَطْرُ اللَّيْلِ، ٦ فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ! لَوْ نَفَّلْتَنَا قِيَامَ هَذِهِ اللَّيْلَةِ؟ ۷ فَقَالَ: " إِنَّ الرَّجُلَ إِذَا صَلَّى مَعَ الْإِمَامِ حَتَّى يَنْصَرِفَ حُسِبَ لَهُ قِيَامُ لَيْلَةٍ "،

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوذر ﷛ فرمايي ۲ چې مونږ (په رمضان کې) د حضور ﷺ سره روژې ونيولې حضور ﷺ د مياشتې په اکثرو شپو کې زمونږ سره قيام ونه کړو (يعني حضور ﷺ د رمضان په شپو کې زمونږ سره د فرض څخه علاوه بل څه مونځ ونه کړو) تر دې چې اوه شپې باقي پاتې شوې ۳ نو حضور ﷺ زمونږ سره د شپې تر دريمې پورې قيام وکړو (يعني مونږ ته يې د تراويح مونځ راکې) ۴ هر کله چې شپږ شپې پاتې شوې (يعني څلرويشتمه شپه راغله نو) حضور ﷺ قيام ونه کړ ۵ بيا چې پنځه شپې باقي پاتې شوې (يعني پنځويشتمه شپه راغله) نو حضور ﷺ زمونږ سره تر نيمې شپې پورې قيام وکړو ٦ ما عرض وکړو يا رسول الله ﷺ ارمان (کاش) چې نن شپه مو قيام نور زيات کړې وې (يعني که حضور ﷺ د نيمې شپې څخه هم تر زياته پورې مونږ ته مونځ راکړې وې نو بهتره به وه) ۷ حضور ﷺ وفرمايل هر کله چې يو سړې (فرض) مونځ د امام سره وکړي او د هغې څخه فارغيدو نه واپس ځي نو د هغه د پاره د پوره شپې د عبادت ثواب ليکل کيږي (يعني د ماسخوتن او د سحر مونځ په جماعت سره د کولو په وجه هغه ته د پوره شپې د عبادت ثواب حاصليږي بله دا چې نوافل هغه وخت پورې کول مناسب او بهتر دي څو پورې چې زړه لګيږي)

**حل اللغات:-** ① شَطْرُ اللَّيْلِ: أَيْ: نِصْفُهُ: نيمه شپه ② حُسِبَ: أَيْ: اعْتُبِرَ: حسابولې به شي، ګڼرلې به شي.

۱ فَلَمَّا كَانَتِ الرَّابِعَةُ لَمْ يَقُمْ بِنَا حَتَّى بَقِيَ ثُلُثُ اللَّيْلِ، ۲ فَلَمَّا كَانَتِ الثَّالِثَةُ، جَمَعَ أَهْلَهُ وَنِسَاءَهُ وَالنَّاسَ، ۳ فَقَامَ بِنَا حَتَّى خَشِينَا أَنْ يَفُوتَنَا الْفَلَاحُ، ۴ قُلْتُ: وَمَا الْفَلَاحُ؟ قَالَ: السُّحُورُ. ۵ ثُمَّ لَمْ يَقُمْ بِنَا بَقِيَّةَ الشَّهْرِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، ٦ وَرَوَى ابْنُ مَاجَهْ نَحْوَهُ؛ ۷ إِلَّا أَنَّ التِّرْمِذِيَّ لَمْ يَذْكُرْ: ثُمَّ لَمْ يَقُمْ بِنَا بَقِيَّةَ الشَّهْرِ.

**ترجمه:** ۱ هر کله چې څلور شپې باقي پاتې شوې (يعني شپږويشتمه شپه راغله) نو زمونږ سره يې قيام ونه کړو تر دې چې دريمه د شپې باقي پاتې شوه (او مونږ په دې انتظار کې وو چې حضور ﷺ تشريف راوړي او مونږ ته مونځ راکړي) ۲ هر کله چې درې شپې باقي پاتې شوې (يعني اوويشتمه شپه راغله) نو حضور ﷺ خپل کوروالا، خپلې بيبياني او ټول خلق راجمع کړل ۳ او زمونږ سره يې قيام وکړو (يعني ټوله شپه يې مونځ کولو) تر دې چې زمونږ سره دا ويره شوه چې چرته فلاح راڅخه فوت نشي ۴ راوي وايي چې ما پوښتنه وکړه چې فلاح څه شي دي؟ حضرت ابوذر ﷛ وفرمايل چې (د فلاح څخه مراد) پيشمني کول (دي) ۵ بيا حضور ﷺ زمونږ سره د مياشتې په پاتې شپو کې (يعني په اته ويشتمه او يو کم ديرشمه شپه کې) قيام ونه کړو، ابوداؤد، ترمذي، نسايي، ٦ ابن ماجه هم دغسې

روايت نقل كړي دي[۷] او ترمذي په خپل روايت كې ثم لم يقم بنا بقية الشهر (يعني بيا حضور ﷺ زمونږ سره د مياشتې په پاتې شپو كې قيام ونه كړو) الفاظ نه دي ذكر كړي.

**حل اللغات:** -[۳] الفَلَاحُ: أي الفَوْزُ: كاميابۍ ته وائي، پيشمنى ته فلاح ځكه اووئيلې شو چه دا د روژې د پوره والي سبب دي.[۴] السُّحُورُ: پيشمنې.

**تسهيلات:** -

**قوله:** فَلَمَّا كَانَتِ السَّادِسَةُ:

**دمياشتې اخرى شپو باره كښې د عربو اصطلاح:** -عربو كښې دا خبره ده چې د مياشتې آخره نيمه شى نو بيا د آخر نه شمير كوى.لكه (ديرشتمې ته سابعه ،شپږيشتمې ته سادسه ،پنځويشتمې ته خامسه ،اوويشتمې ته ثالثه وغيره).د حديث حاصل دادې چې نبى كريم ﷺ په ديرشتمه شپه مونځ وركړو ،په څلريشتمه شپه ئې مونځ وركړو، په شپږشتمه شپه ئې مونځ ورنه كړو، بيا ئې په اوويشتمه شپه مونځ وركړو، او بيا ئې دومره اوږد مونځ وركړو چې صحابه كرام وائى چې مونږ ته ويريدوشوه چې هسې زمونږ ځخه د پشمنى وخت تير شى.

**[۱۲۹۹] د شب برائت فضيلت**

۱۲۹۹—()[۵][۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ:[۲]«فَقَدْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً،[۳] فَإِذَا هُوَ بِالْبَقِيعِ، فَقَالَ:[۴]"أَكُنْتِ تَخَافِينَ أَنْ يَحِيفَ اللّٰهُ عَلَيْكِ وَرَسُولُهُ؟[۵]"، قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! إِنِّي ظَنَنْتُ أَنَّكَ أَتَيْتَ بَعْضَ نِسَائِكَ.[۶] فَقَالَ: "إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى يَنْزِلُ لَيْلَةَ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا،[۷] فَيَغْفِرُ لِأَكْثَرَ مِنْ عَدَدِ شَعْرِ غَنَمِ كَلْبٍ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:**[۱] زمونږ د مؤمنانو مور بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي[۲] چې (يو ځل په خپل نمبر كې) ما رسول الله ﷺ په بستره باندې ونه موندلو[۳] (چې ما تلاش كړو نو) ناڅاپه ګورم چې حضور ﷺ په بقيع كښې موجود دي (زما ليدو سره) حضور ﷺ وفرمايل[۴] چې آيا تا سره د دې خبري خوف وو چې الله جل جلاله او د هغه رسول (ﷺ) به په تا ظلم اوكړي؟ [۵] ما عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ ما ته خيال شوې وو چې ګيني تا ﷺ خپلې يوې بلې بي بي ته تشريف وړې دې[۶] حضور ﷺ وفرمايل الله تعالى جل جلاله د نيم شعبان په شپه (يعني د شعبان په پنځلسمه شپه) كښې د دنيا آسمان (يعني اولنې اسمان) ته نزول فرمايي[۷] او د قبيله بنو كلب (د بزو) د رمو د ويښتانو ځخه هم په زيات تعداد كې ګناه

---

[۱]) اخرجه الترمذى فى كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى قيام شهر رمضان (رقم-۸۰۶) والنسائى كتاب السهو/باب ثواب من صلى مع الإمام حتى ينصرف (رقم-۱۳۶۴) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فى قيام شهر رمضان (رقم-۱۳۲۷) اخرجه الترمذى فى كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى ليلة النصف من شعبان (رقم-۷۳۹) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فى ليلة النصف من شعبان (رقم-۱۳۸۹)

بخښي، (ترمذي، ابن ماجه)

**حل اللغات:-** ① فَقَدْتُ: أَيْ: طَلَبْتُهُ فَمَا وَجَدْتُهُ: اومې نه موندلو. ② بِالْبَقِيعِ: دَ مدينې منورې دَ مشهور قبرستان نوم جنت البقيع هم دې او بقيع غرقد هم دې او دې ته البقيع هم وائي. ③ أَنْ يَحِيفَ: أَيْ: يَجُوْرَ وَيَظْلِمَ: چه ظلم او زياتې به اوكړي، ④ شَعْر: ويښته، ⑤ غَنَم: بيزې، چيلې، ⑥ كَلْب: أَيْ: قَبِيلَةِ بَنِي كَلْب: د بنو كلب قبيله.

[۱] وَزَادَ رَزِينٌ: "مِمَّنِ اسْتَحَقَّ النَّارَ"، [۲] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: سَمِعْتُ مُحَمَّدًا - يَعْنِي الْبُخَارِيَّ - يُضَعِّفُ هَذَا الْحَدِيثَ.

**ترجمه:** [۱] او رزين دا الفاظ هم نقل كړي دي چې (د مؤمنانو څخه چې كوم خلق د دوزخ مستحق شوې وي هغه بخښي، [۲] امام ترمذي رحمه الله فرمايي چه ما د محمد يعنى امام بخاري څخه دا اوريدلي دي چې دا حديث ضعيف دي.

**تسهيلات:-**

**قوله:** فَإِذَا هُوَ بِالْبَقِيعِ:

**دجنت البيع تعارف:-** دَحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها خيال وو چه حضورپاك ﷺ دَ هغوى په نمبر كښې چرته دَ بلې ام المؤمنين كور ته تشريف اوړلې دې. خوچه كله ئې حضورپاك ﷺ په جنت البقيع كښې اوليدلو نو زر زر كور ته واپس راغله بيائي حضورپاك ﷺ سره خبرې اترې اوكړې. بنو كلب دَ عربو يوه مشهوره قبيله وه هغوى سره به ډيرې زياتې چيلئې وې.

**د شعبان د پنځلسمې شپې فضيلت:-**

دَ شعبان دَ مياشتې پنځلسمې شپې ته شب برأت هم وائي يعنى دَ گناهونو ته دَ خلاصې شپه. دَ شب برأت متعلق په دې ځان پوهه كړئى چه عاموانسانانو په دې شپه كښې دَ شرعي حدودو نه تجاوز كړې چه چراغونه او نور منكرات او بدعات، حلويات دَ خوراك څښاك او مطعوماتو په صورت كښې ښكاره كيږي. دې ته په كتلو سره

**د شب براءت په فضيلت كښې اختلاف:-**

① بعضې علماء حق چې كله د خلقو په شب براءت كښې بدعات اوخرافات اوليدل نو هغوى د دې د فضيلت رد اوكړو.

② بعضې عالمانو دَ رد سره سره دَدې شپې دَهر فضيلت نه انكاراوكړو

**انصافي خبره:-** دَ شب برأت فضيلت دَ احاديثو نه ثابت دې. لسو صحابه كرامو دَدې دَ احاديثو تخريج كړې دې. سره دَدې چه په فنى لحاظ سره په احاديثو كښې ضعف شته ليكن دَدې مطلب دانه دې چه دا احاديث ناقابلِ عمل دى. ځكه چه دا احاديث دَ يو بل دَمضمون تائيد كوى.

**په فضائلو كښې په ضعيف روايت عمل:-** بل فضائلِ اعمال كښې دَدې قسم احاديث

اخستل معروف او مشهور دی. دَ امام احمد بن حنبل رحمه الله قول دي چه کله مونږ دَ احکامو احادیث اخلو نو "تشددا" مونږ سختی کوو او کله چه دَ فضائلو احادیث اخلو "تسهلنا" مونږ نرمی کوو. دَدې شپې متعلق سره دَ دې چه څه خاص عبادت مقرر نه دې او دَ خپل طرفه تحدید او تعیین هم جائز نه دې

**د پنځلسم شعبان د روژې حکم:-** دَ شب برأت نه پس دَ ورځې دَ روژې ذکر په دې حدیث کښې دې سره دَدې چه دا روایت ضعیف دې لیکن پخپله دَ شعبان دَ روژو ذکر احادیثو کښې شته. بیا دَ ایام بیض دیر ترغیب دې. نو دَ شب برأت دَ وجې نه دا روژه نه سهی په ایام بیض کښې پنځلسم شعبان پخپله مامور به دې او مرغوب فیه دې دَدې وجې نه دې دا روژه اوساتلې شی. دَ دوارو ثواب به ان شاء الله ملاویږی او دَ پنځلسم تاریخ دَ خصوصیت نه به بچ شی.

**په شب براءت کښې قبرستان ته د تلو حکم:-** دَدې خبرې نه انکار نه شی کیدې چه حضورپاک صلی الله علیه وسلم په شب برأت کښې قبرستان ته تشریف اوړلې دې لیکن دَدې مطلب دا نه دې چه مونږ دې دا همیشه معمول جوړ کړو او هرکال قبرستان ته دَ تلو شپه په ډېر ډونګ سره اهتمام کوو. حضورپاک صلی الله علیه وسلم په ټول عمر کښې صرف یو ځل تشریف اوړلې دې بیا کله هم نه دې تلې. نوکه نن هم یو سړې داسې کوی نو څه قباحت نشته دې. لیکن هرکال شب برأت مناوول، قبرستان ته تلل، دَدې اهتمام کول، دَدې التزام کول او دَ شب برأت حصه ګڼړل دَ شرعی حد نه تجاوز دې کوم چه ناجائز دې.

نن صبا دَ عبادت هغه اړخ خو غیب دې او دَ عادت اړخ غالب دې. اوس خو حال دا دې چه خلق دَ عبادت اهتمام دومره نه کوی څومره چه دَ خوراك پخولو او بیا دَ خوړلو دې. دَ حلواګانو اهتمام او انتظام دې عبادت خو صرف هسې دَنوم دې.

**[۱۳۰۰] د جمات په نسبت د نفلو په کور کښې د کولو افضلیت**

> ۱۳۰۰—()[۲۱]① وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:② "«صَلَاةُ الْمَرْءِ فِي بَيْتِهِ أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهِ فِي مَسْجِدِي هَذَا،③ إِلَّا الْمَكْتُوبَةَ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:**① زید ابن ثابت رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل② د سړي په خپل کور کې کړي مونځ د هغه لمانځه څخه بهتر دي چې زما په دي مسجد (یعني مسجد نبوي صلی الله علیه وسلم) کې یې وکړي③ علاوه د فرض څخه (چې فرض په مسجد کښې کول بهتر دي).
(ابوداؤد، ترمذي)

[1] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب صلاة الرجل التطوع فی بیته (رقم-۱۰٤٤) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی فضل صلاة التطوع فی البیت (رقم-٤۵۰)

**تسهيلات:-** په کور کښې دَ نفل مونځ کولو فضيلت دَ کور دَ وجې نه دې په مسجد کښې دَ ممانعت دَ وجې نه نه دې. لهذا که څوك سنت او نوافل په جمات کښې کول غواړی نو بغير دَ څه کراهت جائز دی البته په کور کښې کول افضل دی.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۱۳۰۱] د حضرت عمر رضي الله عنه د تراويح د مانځه د پاره جماعت مقررول

۱۳۰۱–()[۷][۱] عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدٍ الْقَارِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [۲] خَرَجْتُ مَعَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ لَيْلَةً إِلَى الْمَسْجِدِ، [۳] فَإِذَا النَّاسُ أَوْزَاعٌ مُتَفَرِّقُونَ، [۴] يُصَلِّي الرَّجُلُ لِنَفْسِهِ، [۵] وَيُصَلِّي الرَّجُلُ فَيُصَلِّي بِصَلَاتِهِ الرَّهْطُ، [۶] فَقَالَ عُمَرُ: إِنِّي لَوْ جَمَعْتُ هَؤُلَاءِ عَلَى قَارِئٍ وَاحِدٍ لَكَانَ أَمْثَلَ، [۷] ثُمَّ عَزَمَ، فَجَمَعَهُمْ عَلَى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، [۸] قَالَ: ثُمَّ خَرَجْتُ مَعَهُ لَيْلَةً أُخْرَى،

**ترجمه:** [۱] عبدالرحمٰن ابن عبد القاري فرمايي [۲] چې (يو ځل د رمضان) په شپه کې زه د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه سره مسجد ته لاړم [۳] هلته مونږ وليدل چې خلق متفرق او تس نس شوي وو [۴] يعني چا د ماسخوتن د لمانځه ځخه وروسته ځان له نفل مونځ کولو [۵] او چا داسې کول چې څو سړي به نور هم د هغه سره وو (لکه چې څه خلقو خو جدا جدا تراويح کولي او څه خلقو د جماعت سره کولي دې صورت حال لره ليدو سره) [۶] حضرت عمر فاروق وفرمايل که زه دا خلق په يو قاري پسې جمع کړم نو بهتره به وي [۷] نو هغه دا اراده وکړه او ټول خلق يې په حضرت ابي بن کعب رضي الله عنه پسې جمع کړل (يعني هغه يې د تراويح د لمانځه د پاره د خلقو امام مقرر کړو) عبدالرحمٰن فرمايي (بيا دې ځخه وروسته) زه يوه شپه د حضرت عمر رضي الله عنه سره مسجد ته لاړم

**حل اللغات:-** ① أَوْزَاعٌ: أَيْ فِرَقٌ مُتَفَرِّقُونَ: جدا جدا ډلې، يعنې خلق په ځان ځانله ټولو او ټکړو کښې تقسيم شوي وو چا به نفل کول چا به سنت کول او چا به تراويح کولې. بيا چا تراويح هم په جمع سره کولې څه خلقو ځانله جمع سره کولې. ② الرَّهْطُ: قَوْمُ الرَّجُلِ وَقَبِيلَتُهُ: د يو څو سړو جماعت ته رهط وائي. ③ أَمْثَلَ: أَيْ: أَفْضَلَ: بهتره به وی، ډير ثواب به ملاويږی. ④ عَزَمَ: أَيْ: صَمَّمَ عَلَيْهِ: پخه اراده ئې اوکړه.

[۱] وَالنَّاسُ يُصَلُّونَ بِصَلَاةِ قَارِئِهِمْ. [۲] قَالَ عُمَرُ: نِعْمَتِ الْبِدْعَةُ هَذِهِ، [۳] وَالَّتِي تَنَامُونَ عَنْهَا أَفْضَلُ مِنَ الَّتِي تَقُومُونَ - يُرِيدُ آخِرَ اللَّيْلِ - [۴] وَكَانَ النَّاسُ يَقُومُونَ أَوَّلَهُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] هلته ټولو خلقو خپل امام ابي ابن کعب رضي الله عنه پسې مونځ کولو (دې ليدو سره) [۲] حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل چې دا ښه بدعت دې [۳] او (د تراويح) د هغه وخت مونځ هر کله

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب صلاة التراويح/باب فضل من قام رمضان (رقم-۲۰۱۰)

چې تاسو اوده کیږئ ددې وخت د لمانځه څخه بهتر دې د دې څخه مراد د حضرت عمر رضي الله عنه آخري شپه وه (یعني د حضرت عمر رضي الله عنه د دې ارشاد دا مطلب وو چې د تراویح مونځ د شپې په آخري حصه کې کول د شپې په اول وخت کې د کولو څخه بهتر دي ځکه چې[۴] هغه وخت به خلقو د تراویح مونځ په اول وخت کې کولو. (بخاري)

**حل اللغات:** - ⑤نِعْمَتِ الْبِدْعَةُ: په لغت کښې بدعت نوی ایجاد شوې معنی کښې دې. دلته بدعت دَ خپل اصطلاحی مفهوم کښې نه دې بلکه دلته په لغوی معنی کښې مستعمل دې.

**تسهیلات:** -

**قوله:** نِعْمَتِ الْبِدْعَةُ هَذِهِ

**د بدعت څخه لغوی بدعت مراد کیدل:** - دَ حضرت عمر فاروق رضي الله عنه مقصد دادې چه په جمع سره ټول خلق په تراویح باندې یو ځائی کول اودَ شلو رکعتو پابندئی سره په یو ځائی کول بهتر نورې طرز او نوې انتظام دې.

حضرت عمر رضي الله عنه دې نوی انتظام او نوی مقرر کولوته جدید وائی دَ تراویح اصل جمع نه نوې ایجاد نه وائی ځکه چه اصل جمع خو نبی کریم ﷺ پخپله شروع کړې وه.

**نوټ:** -د بدعت پوره تفصیل به باب الاعتصام بالکتاب والسنة په شروع کښې بدعت سره متعلق تفصیل لیکلې شوې دې هلته اوګورئی.

**قوله:** وَالَّتِي تَنَامُونَ عَنْهَا أَفْضَلُ مِنَ الَّتِي تَقُومُونَ الخ:

**د عبارت په موصوف محذوف کښې دوه احتمالات:** - په دې عبارت کښې دوو ځایونو کښې "التی" لفظ راغلې دې اودواړو ځایونو کښې موصول دې چه خپلې صلې سره ملاویدو کښې صفت دې اودَدې موصوف محذوف دې. اوس دَدې محذوف موصوف څه څیز دې په دې کښې دوه احتماله دی.

① دلته موصوف "الساعة" دې یعنی هغه وخت کوم کښې چه تاسو پاسئی مونځ او تراویح کوئی دَ دغه وخت نه هغه وخت افضل دې په کوم کښې چه تاسو مونځ نه کوئی بلکه اوده کیږئی. حضرت عمر رضي الله عنه دَ شپې دَ روستوئی حصې فضیلت بنائی اودَ تهجد دَپاره دَ پاسیدو ترغیب ورکوی. حضرت ګنګوهی رحمه الله دَدې صورت مطلب داسې بیانوی. چونکه خلق تراویح کولو سره اوده کیدل اودَ تهجد دَپاره نه پاسیدل نو حضرت عمر رضي الله عنه هغوی ته ترغیب ورکړو چه افضل نه دی ترك کول پکار. لهذا په اول وخت کښې تراویح کوئی او په آخر وخت کښې تهجد کوئی.

② دَدې موصوف صلوة دې یعنی "الصلوة التی تنامون عنها" مطلب دادې چه کوم مونځ تاسو خلق دَ اوده کیدو دَ وجې نه پریږدئی هغه مونځ دَدې مونځ نه افضل دې کوم چه تاسو کوئی. په دې صورت کښې حضرت عمر رضي الله عنه داخودل غواړی دَ تهجد مونځ کوئی په هغې

کښې دَ خوب دَ وجې نه سستی مه کوئی. ستاسو دَ تراویح نه افضل دی. دَ حضرت عمر رضي الله عنه په دې فرمان سره دامسئله هم حل شوه چه تراویح او تهجد یو څیز نه دې بلکه دواړه جدا جدا مونځونه دی.

**[۱۳۰۲] د تراویح د رکعتونو تعداد**

۱۳۰۲–()[۸] ① وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② أَمَرَ عُمَرُ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ، وَتَمِيمًا الدَّارِيَّ ③ أَنْ يَقُومَا لِلنَّاسِ فِي رَمَضَانَ بِإِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً، ④ فَكَانَ الْقَارِئُ يَقْرَأُ بِالْمِئِينَ، ⑤ حَتَّى كُنَّا نَعْتَمِدُ عَلَى الْعَصَا مِنْ طُولِ الْقِيَامِ، ⑥ فَمَا كُنَّا نَنْصَرِفُ إِلَّا فِي فُرُوعِ الْفَجْرِ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** ① سائب ابن یزید فرمایي ② چې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه حضرت ابي ابن کعب رضي الله عنه او حضرت تمیم داري رضي الله عنه ته حکم وکړو ③ چې د رمضان په شپو کي خلقو ته یوولس رکعاته تراویح مونځ ورکوي ④ او هغه وخت به امام په تراویح کې هغه سورتونه ویل چې په هغې کې په هر یو کې د سلو څخه زیات آیاتونه دي ⑤ دقیام دطویل کیدو په وجه مونږ به د خپلي همسا (لکړي) په مدد ودریدلو ⑥ او سحر ته نږدې به د لمانځه څخه فارغیدو، (مالك)

**حل اللغات:-** ① يَقُومَا لِلنَّاسِ: دواړه به امامت کوی، تراویح به ورکوی خلقوته (یعنی کله به یوکس امامت کوی کله بل). ② الْمِئِينَ: دا د مائة جمع ده، هغه سورتونه په کومو کښې چه دسلو آیاتونو نه زیات وی. ③ نَعْتَمِدُ: مونږ به ډډه لګوله، سهاره به مو اخستله (دا صرف په نوافلو کښې جائز دی). ④ فُرُوعِ الْفَجْرِ: أَيْ: أَوَائِلِهِ: سحر ته نږدې یا د سحر په شروع کښې.

**تسهیلات:-**

**دحدیث څخه د غیرمقلدینو استدلال:-** دَدې حدیث نه معلومیږی چه حضرت عمر رضي الله عنه دَ اتو رکعتودَ تراویح حکم ورکړې وو دَدې نه غیرمقلدین استدلال کوی.

**داستدلال څخه جواب:-** دادَ شروع دَ وخت یو نقشه او یوه مرحله ده. حضرت عمر رضي الله عنه تردغه وخته پورې دَ شلو رکعتو اعلان نه ووکړې روستو هرڅه مخې ته شو اودَصحابه کرامو او پوره امت په دې باندې اجماع اوشوه. اوس صرف هغه خلق دَ اتو رکعتوخبره کوی چه دَ ناراستنی دَ وجې نه شل رکعته نه شی کولې.

**[۱۳۰۳] په رمضان کښې په کافرانو لعنت لیږل**

۱۳۰۳–()[۹] ① وَعَنِ الْأَعْرَجِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② مَا أَدْرَكْنَا النَّاسَ إِلَّا وَهُمْ يَلْعَنُونَ الْكَفَرَةَ فِي رَمَضَانَ ③ قَالَ: وَكَانَ الْقَارِئُ يَقْرَأُ سُورَةَ الْبَقَرَةِ فِي ثَمَانِ رَكَعَاتٍ، ④ وَإِذَا قَامَ بِهَا فِي ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً ⑤ رَأَى النَّاسُ أَنَّهُ قَدْ خَفَّفَ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

[1] اخرجه مالک فی الموطا کتاب الصلاة فی رمضان باب ما جاء فی قیام رمضان (رقم-٤)
[2] اخرجه مالک فی الموطا کتاب الصلاة فی رمضان باب ما جاء فی قیام رمضان (رقم-٦)

**ترجمه:**[۱] اعرج (تابعي رحمه الله) فرمايي[۲] چې مونږ هميشه خلق وليدل چې هغوئ به د رمضان په مياشت کې په کفارو لعنت ليږلو[۳] او (په هغه زمانه کې به) قاري (يعني د تراويح د لمانځه امام) سورة بقره په اتو رکعاتو کې ويله[۴] او کله چې به يې سورة بقره په دولس رکعاته کې اوويله[۵] نو خلقو به ګڼله چې مونځ يې مختصر اوکړو. (مالك)

**حل اللغات:-** ① مَا أَدْرَكْنَا النَّاسَ: أَيْ: الصَّحَابَةَ وَكُبَرَاءَ التَّابِعِينَ: ددې نه مراد صحابه کرام يا مشران تابعين دی. ② يَلْعَنُونَ الْكَفَرَةَ: يعنی په وترو کښې به ئې دعاء قنوت وئيلو. ③ خَفَّفَ: آسانتيا اوکړه.

**تسهيلات:-**

**قوله:** وَهُمْ يَلْعَنُونَ الْكَفَرَةَ فِي رَمَضَانَ:

**په کافرو لعنت ليږلو وجه:-** په کافرو به ئې لعنت ليږلو. دې کښې دا تصريح نشته دې چې ټول رمضان به ئې داسې کول يا څو ورځې. داشان به احاديثو کښې تعارض پاتې نه شي، ځکه چې ځينې رواياتو کښې دی چې کله نيم شعبان تير شی نو په کفارو باندې لعنت ليږل پکار دی. د لعنت ليږلو وجه داده چې کافرانو ددې مياشتې تعظيم اونه کړو. بلکه په دې کښې ئې په ښکاره خوراك څکاك کولو. او کوم کس چې د ضد په وجه روژه او نه ساتي نو هغه زيات مجرم دې. ځکه چې هغه الله تعالى سره کومه وعده کړې وه هغه ئې ماته کړه. والله اعلم.

**[۱۳۰٤] د تراويحو آخري وخت**

۱۳۰۴ ـ (۱۰)[۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ:[۲] سَمِعْتُ أَبِيَّا يَقُولُ: كُنَّا نَنْصَرِفُ فِي رَمَضَانَ مِنَ الْقِيَامِ[۳] فَنَسْتَعْجِلُ الْخَدَمَ بِالطَّعَامِ مَخَافَةَ فَوْتِ السَّحُورِ.[۴] وَفِي أُخْرَى: مَخَافَةَ الْفَجْرِ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:**[۱] عبدالله ابن ابي بکر رضی الله عنه فرمايي[۲] چې ما د حضرت ابي رضی الله عنه څخه اوريدلي دي چې مونږ به په رمضان مبارك کې هر کله چې قيام (يعني د تراويح د لمانځه) څخه فارغ شو[۳] نو خادمانو ته به مو د دې خوف څخه چې چېرته د پيشمني وخت ختم نشي زر د طعام د پاره ويل[۴] په يو بل روايت کې دا الفاظ دي چې د سحر کيدو د خوف څخه به مونږ خادمانو ته زر د طعام د پاره ويل. (مالك)

**حل اللغات:-** ① نَنْصَرِفُ: چه فارغ به شو، واپس کيدو به. ② فَوْتِ السَّحُورِ: د پيشمنی وخت ختميدل

**تسهيلات:-**

**قوله:** فَنَسْتَعْجِلُ الْخَدَمَ بِالطَّعَامِ مَخَافَةَ فَوْتِ السَّحُورِ:

**دوه فوائد:-** ① دا حديث هم د پيشمنی په مسنونيت باندې دلالت کوی

② دغه شان په دې حديث کښې پيشمنې ترسحر پورې روستو کول ثابت دي.

[۱] اخرجه مالک فی الموطا کتاب الصلاة فی رمضان باب ما جاء فی قيام رمضان (رقم ۷-)

## [۱۳۰۵] په شب برات کښې د ټول کال ريکارډ فرشتو ته حواله کيدل

۱۳۰۵- (۱)[۱۱] ۱ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: ۲ «هَلْ تَدْرِينَ مَا فِي هٰذِهِ اللَّيْلَةِ؟» يَعْنِي لَيْلَةَ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ، ۳ قَالَتْ: مَا فِيهَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ؟ ۴ فَقَالَ: «فِيهَا أَنْ يُكْتَبَ كُلُّ مَوْلُودٍ مِنْ بَنِي آدَمَ فِي هٰذِهِ السَّنَةِ، ۵ وَفِيهَا أَنْ يُكْتَبَ كُلُّ هَالِكٍ مِنْ بَنِي آدَمَ فِي هٰذِهِ السَّنَةِ، ۶ وَفِيهَا تُرْفَعُ أَعْمَالُهُمْ، ۷ وَفِيهَا تَنْزِلُ أَرْزَاقُهُمْ».

**ترجمه:** ۱ ام المؤمنين بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها روايت کوي چې رسول الله ﷺ ماته وفرمايل ۲ آيا تاته معلومه ده چې په دي شپه (يعني د پنځلسم شعبان په شپه) کې څه کيږي؟ ۳ ما عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ (ماته خو معلومه نه ده ته يي راته اووايه چې) څه کيږي؟ ۴ حضور ﷺ وفرمايل چې په بني آدم کې هر هغه سړي چې په دي کال کې پيدا کيږي په دي شپه کې ليکل کيږي ۵ او په بني آدم کې هر هغه سړي چې په دي کال کې مړکيدونکي وي په دي شپه کې لکيل کيږي ۶ په دي شپه کې د بنده ګانو اعمال پورته اوچتيږي او په دي شپه کې د بنده ګانو رزق رانښکته کيږي.

**حل اللغات:** ۱ مَوْلُودٍ: چه پيدا کيږي به، ۲ هَالِكٍ: أَيْ: مَيِّتٌ: چه مړ کيږي به،

۱ فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! مَا مِنْ أَحَدٍ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ إِلَّا بِرَحْمَةِ اللّٰهِ تَعَالَى؟ ۲ فَقَالَ: «مَا مِنْ أَحَدٍ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ إِلَّا بِرَحْمَةِ اللّٰهِ تَعَالَى ثَلَاثًا. ۳ قُلْتُ: وَلَا أَنْتَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ! ۴ فَوَضَعَ يَدَهُ عَلَى هَامَتِهِ، ۵ فَقَالَ: «وَلَا أَنَا، إِلَّا أَنْ يَتَغَمَّدَنِيَ اللّٰهُ مِنْهُ بِرَحْمَتِهِ» ۶ يَقُولُهَا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي «الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ».

**ترجمه:** ۱ بي بي عائشي رضي الله عنها عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ هيڅ سړي به د الله تعالى جل جلاله د رحمت څخه بغير په جنت کې نه داخليږي؟ ۲ حضور ﷺ وفرمايل (هو) هيڅوك د الله تعالى جل جلاله د رحمت څخه بغير په جنت کې نشي داخليدي، حضور ﷺ دا الفاظ دري ځله وفرمايل ۳ ما عرض وکړو او نه تاسو يا رسول الله ﷺ (يعني ته هم د الله تعالى جل جلاله د رحمت څخه بغير په جنت کې نشي داخليدي)؟ ۴ حضور ﷺ خپل لاس مبارك په خپل سر مبارك باندي کيښودلو ۵ او وي فرمايل چې هو، نه زه (يعني زه هم د الله تعالى جل جلاله د رحمت څخه بغير په جنت کې نشم داخليدي) خو دا چې الله جل جلاله د خپل فضل او کرم له مخه ما د خپل رحمت په سايه (سورې) کې واخلي ۶ دا الفاظ هم رسول الله ﷺ دري ځله وفرمايل، بيهقي دا روايت په دعوات کبير کې نقل کړي دي.

**حل اللغات:** ۴ هَامَتِهِ: أَيْ: رَأْسِهِ: په خپل سر مبارک، ۵ أَنْ يَتَغَمَّدَنِيَ اللّٰهُ: أَيْ: إِلَّا وَقْتَ أَنْ يَسْتُرَنِي: خو دا چې الله جل جلاله د خپل فضل او کرم له مخه ما د خپل رحمت په سايه (سورې) کې واخلي.

---

(۱) اخرجه البيهقي في شعب الايمان

**تسهیلات:-**

**قوله:** أَنْ يُكْتَبَ كُلُّ مَوْلُودٍ:

**د شعبان په پنځلسه د پوره کال ریکارډ فرشتو ته حواله کیدل:-** الله تعالی دَ کائنات دَ تخلیق نه وړاندې هرڅه په تقدیر کښې لیکلی دی اوهغه په لوح محفوظ کښې محفوظ دی لیکن په پنځلسم شعبان دَهغې تجدید کیږی اودَ پوره کال لوئی واقعات جدا کولوسره لیکلې کیږی. په دې کښې دَ انسانانو پیدائش او د مرګونومعاملات لیکلې کیږی. دَ چارزق زیاتولې او دَ چا کمولې شی. دَ حاجیانو صاحبانو نومونه دَ حج په فهرست کښې لیکلې کیږی. دَ انسان نیک اعمال اول لیکلې کیږی بیا دَ اعمالوکولونه پس دَ قبلیدودپاره آسمانونوته اوچتولې شی.

**قوله:** مَا مِنْ أَحَدٍ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ إِلَّا بِرَحْمَةِ اللهِ تَعَالَى:

**جنت ته دهر کس داخلیدل د الله تعالی په رحمت:-** حضرت عائشه رضی الله عنها چه کله دا واوریده چه اعمال اوچتولې شی نو دَهغوی دا خیال شو چه اعمال خودَ دخول جنت دپاره علت اصلیه نه دی.بل دَ یوانسان اعمال کولونه وړاندې دَهغه دپاره دغه اعمال په تقدیرکښې لیکلې کیږی چه دغه خلق به دا اعمال کوی. نو حضرت عائشه رضی الله عنها په دې سره اوګنړل چه دخول جنت صرف تقدیرالهی سره تړلې شوی دی دَاعمالودلته هیڅ دخل نشته دې. دَدې مسئلې دَ ثابتولودپاره دَ حضورپاک ﷺ نه دَ استفهام په توګه پوښتنه اوکړه یارسول الله! آیا معامله داسې نه ده چه هرسړې به صرف دَالله تعالی په رحمت باندې جنت ته داخلیږی؟ په جواب کښې حضورپاک ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه معامله هم داشان ده چه هیڅ یوسړې دَ الله تعالی دَ رحمت نه بغیرجنت کښې په خپل عمل سره نه شی داخلیدې. دړې خل حضورپاک ﷺ اوفرمائیل مطلب دا چه دَ جنت دَ داخلیدودپاره اعمال دَ سبب په درجه کښې ضرور دی لیکن دَ علت په درجه کښې نه دی.

**قوله:** وَلَا أَنَا، إِلَّا أَنْ يَتَغَمَّدَنِي اللهُ مِنْهُ بِرَحْمَتِهِ:

**دالله تعالی په رحمت سره د نبی علیه السلام جنت ته داخلیدل:-** په دې باندې حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها دَ نورو معلومات دپاره پوښتنه اوکړه چه یارسول الله! دا معامله صرف امت سره ده یا تاسو سره هم ده. حضورپاک ﷺ دَ تواضع او عاجزئی په توګه په خپل ځان باندې دَ الله تعالی دَ عام رحمت احاطه کولوطرف ته اشاره کولو سره اوفرمائیل چه زما معامله هم دغه شان ده لیکن الله تعالی به ما دَ خپل رحمت په لمن کښې واخلی مطلب دا چه زما معامله یقینی ده او رحمت دَالله تعالی شامل حال دې لهذا په جنت کښې زما معامله یقینی ده دړې خل حضورپاک ﷺ دا کلام ارشاد اوفرمائیلو.

## [۱۳۰۶] ددوه قسمه خلقو په شب برات کښې د مغفرت څخه محرومتيا

۱۳۰۶-(۱)[۱۲][۱] وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: [۲] "«إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى لَيَطَّلِعُ فِي لَيْلَةِ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ، [۳] فَيَغْفِرُ لِجَمِيعِ خَلْقِهِ إِلَّا لِمُشْرِكٍ أَوْ مُشَاحِنٍ»". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوموسی اشعري رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] الله تعالی جل جلاله د نصف شعبان په شپه کې (يعني په شب برات کې) د دنيا والاطرف ته متوجه کيږي [۳] او د مشرك او كينه لرونکي څخه علاوه د خپل ټول مخلوق بخشش فرمايي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:-** ① لَيَطَّلِعُ: أَيْ يَتَجَلَّى عَلَى خَلْقِهِ: يعنی په خپل مخلوق باندې د خپل عام رحمت جلوه کوی او متوجه کيږی. اطلاع نظاره کتلو ته وائی دَدې نه مراد هم دَ دنيا په آسمان باندې نزول دې دَ کوم تذکره چه په نورو احاديثو کښې کړې شوې ده. ② مُشَاحِنٍ: أَيْ: مُبَاغِضٍ: کينه ګر، دَ باب مفاعله نه مشاحن کينه کونکې بغض او حسد او عداوت کونکی ته وائی او دَ باب سمع نه هم دَ کينه کونکی په معنی کښې دې.

**تسهيلات:- قوله:** ان الله لَيَطَّلِعُ:

**دالله تعالی په باره کښې د ليطلع مفهوم:-** اطلاع الهی او نزول ربانی نه مراد "مايليق بشانه" دې. بعض علماؤ دَ تجلی دا انوارات ربانی او رحمت خداوندی مراد اخستې دې کوم چه تاويل دې "لمشرك" دَالله تعالی ذات او دَهغه صفات کښې څوك شريك ګنړل شرك جلی دې او شرك خفی دَ رياکارئی نوم دې.

**قوله:** أَوْمُشَاحِنٍ:

**په ينځلسم شعبان دکينه ګر عدم مغفرت:-** په ناجائزه توګه بغير دَ شرعی جواز يو مسلمان سره کينه او عداوت لرلو هم دغه سزا ده. دَمسلمان نه علاوه يو کافر سره کينه ساتل مرادنه دی ځکه چه هغه منع نه ده او نه په شرعی جواز سره دَ شريعت مطابق کينه ساتل مراد دی. په زيربحث حديث کښې صرف دَ دغه دوو قسم خلقو بيان دې ليکن بعض نورو رواياتو کښې تعلق نه ساتونکې هم په دې کښې شامل دې. دَمسبل ازار ذکر هم راغلې دې دَ والدين نه دعاق سړی ذکر هم دې او دَ مسلسل شراب څکونکې سړې هم په دې کښې داخل دې. [اشعة المعات: ۱/۵۸۸]

**په ينځلسم شعبان د ټولو خلقو مغفرت:-** شيخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې ليکی چه دَنوف بکالی نه روايت دې چه يوه ورځ حضرت علی رضی الله عنه دَ نصف شعبان په شپه دَ کورنه په داسې حالت کښې بهرشو چه هغوی يوشان آسمان ته کتل بيا هغوی رضی الله عنه اوفرمائيل يوځل حضرت داؤد علیه السلام بهر راغلو او آسمان طرف ته ئی اوکتل وئی فرمائيل دا هغه ساعت دې چه په دې

(۱) اخرجه ابن ماجه فی کتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فی ليلة النصف من شعبان (رقم-۱۳۹۰)

کښې کوم يو سرې هم دَالله تعالی نه دعا او غوارې الله تعالی ئې قبلوي. څوك چه استغفار کوي الله تعالی هغه معاف کوي

**د مغفرت څخه بعضې محروم خلق:** - په دې شرط چه هغه سړې جادوګر نه وي ټيکس وصول کونکې عشار نه وي کاهن نه وي يا دَ قوم چوهدري اوليډر نه وي يا پوليس والا نه وي يا هارميونيم او شپيلئې او ډهول سرنا غږونکې نه وي. [اشعة المعات: ۱/۵۸۸ ]

۱۳۰۷—(۱)[۱۰] ۱ وَرَوَاهُ أَحْمَدُ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، ۲ وَفِي رِوَايَةٍ: "إِلَّا اثْنَيْنِ: مُشَاحِنٌ وَقَاتِلُ نَفْسٍ.

**ترجمه:** ۱ امام احمد دا روايت د عبدالله ابن عمرو بن العاص رضي الله عنه څخه نقل کړې دې ۲ او د هغه په يو روايت کې دا الفاظ دي چې د کينه لرونکي او (په ناحقه) چا لره قتلونکي څخه علاوه (الله تعالی ﷻ په دې شپه کې ټول مخلوک بخښې).

**حل اللغات:** - ① مُشَاحِنٌ: أَيْ: مُبَاغِضٍ: کينه ګر، دَ باب مفاعله نه مشاحن کينه کونکې بغض او حسد او عداوت کونکی ته وائي اودَ باب سمع نه هم دَ کينه کونکی په معنی کښې دې.

## [۱۳۰۸] د پنځلسم شعبان د روژې او د شب براءت د عبادت حکم

۱۳۰۸—(۲)[۱۱] ۱ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«إِذَا كَانَتْ لَيْلَةُ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ، ۳ فَقُومُوا لَيْلَهَا، وَصُومُوا يَوْمَهَا، ۴ فَإِنَّ اللهَ تَعَالَى يَنْزِلُ فِيهَا لِغُرُوبِ الشَّمْسِ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا، ۵ فَيَقُولُ: أَلَا مِنْ مُسْتَغْفِرٍ فَأَغْفِرَ لَهُ؟ ۶ أَلَا مُسْتَرْزِقٌ فَأَرْزُقَهُ؟ ۷ أَلَا مُبْتَلًى فَأُعَافِيَهُ؟ ۸ أَلَا كَذَا أَلَا كَذَا؟ حَتَّى يَطْلُعَ الْفَجْرُ»". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ حضرت علي کرم الله وجهه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ هر کله چې د نصف شعبان شپه وي (يعني شب برات) ۳ نو په دې شپه کې مونځ کوئ او د دې په ورځ کې (يعني په پنځلسم) روژه نيسئ ۴ ځکه چې الله جل شانه په دې شپه کې د نمر ډوبيدو په وخت د دنيا آسمان (يعني لاندې آسمان) ته نزول فرمايي (يعني په خپل رحمت عام سره متوجه کيږي) ۵ او (دنيا والو ته) فرمايي اګاه شئ ايا نشته څوك بخښنه غوښتونکي چې زه يې وبخښم ۶ ايا شته څوك رزق غوښتونکي چې زه رزق ورکړم، ۷ ايا داسې څوك شته چې په مصيبت کښې متبلا وی او زه ورته عافيت ورکړم ۸ خبردار، آيا شته څوک داسې؟ آيا شته څوک داسې؟ [مَثَلاً فرمايي شته څوك غوښتنکي چې زه ورته عطا کړم؟ شته څوك غمجن چې زه ورته د خوشحالي خزاني وبخښم وغيره وغيره] تر دې چې فجر طلوع شي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① مُسْتَغْفِرٍ: أَيْ يَسْتَغْفِرُ: چه بخښنه غواړی، ② مُسْتَرْزِقٌ: چه رزق غواړی، ③ مُبْتَلًى: چه په غم اوتکليف کښې اخته وی او عافيت غواړی، ④ فَأُعَافِيَهُ: چه عافيت ورکړم، د غم اوتکليف نه ئې خلاص کړم.

---

[1]) اخرجه احمد فی المسند ۱۷۶/۲

[2]) اخرجه ابن ماجه فی کتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فی ليلة النصف من شعبان (رقم-۱۳۸۸)

**تسهیلات:-** قوله: إِذَا كَانَتْ لَيْلَةُ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ

**اشکال:-** داحدیث هم د شعبان د پنځلسمې شپې د فضیلت باره کښې دې چې الله تعالی آسمانی دنیا ته تشریف راوړی.حالانکه یو روایت کښې دی چې الله تعالی هره شپه د تهجدو په وخت کښې آسمانی دنیا ته تشریف راوړی.او دا آواز کوی: هل من مستغفر غفرله هل من مسترزق استرزق له؟

**داشکال دوه جوابونه:-**

① نزول په شب قدر کښې خصوصی توجو سره وی او عامو ورځو کښې عمومی توجو سره وی.

② نزول یا شب قدر کښې ټولو دپاره رحمت وی او عامو ورځو کښې هغه حضراتو دپاره رحمت وی کوم چې د صبح صادق په وخت کښې تهجد کوی.

## [۵۴/۳۸]بَابُ صَلَاةِ الضُّحٰى]

### د څاښت د مونځ بیان

**خلاصة الباب:-**

**فيه اثنا عشر حديثاً مشتملة على أربع مسائل:**

① عدد ركعات صلوة الضحى: ۱، ۲، ۳، ۵، ۶، ۷، ۸، ۹، ۱۰

② وقت صلوة الضحى: ۳۱، ۴.

③ ثواب صلوة الضحى: ۳، ۵، ۷، ۸، ۹.

④ علم مواظبة النبي صلى الله عليه وسلم على صلاة الضحى: ۱۱، ۱۲.

**د صلاة الضحى وخت:-** دَ ضحی وخت دَ نمر دَ راختلونه شروع کیږی اودَ زوال پورې وی.

**د څاښت او اشراق د مونځ په ترادف اوافتراق کښې اختلاف:-**

① اکثر محدثین اوفقهاء فرمائی اشراق او څاښت دواړه یومونځ دې فرق اعتباری دې چاچه بالکل په شروع کښې دَ څاښت یعنی ساختی مونځ اوکړو هغې ته به اشراق وئیلې شی اوچاچه دَدغې نه پس اوکړو هغه به دَ ساختی مونځ یادولې شی.

② بله ډله دا فرمائی لکه علامه سیوطی امام دارمی عام صوفیاء کرام فرمائی چه دا څان څانله دوه مونځونه دی. دیوځو احادیثوځخه دَدې تائید هم کیږی. دغه شان ابن جریر طبری رحمه الله او ائمه اربعه دَ څاښت په مونځ باندې متفق دی.

**د څاښت د مونځ حکم:-**

① داکثرشوافع په نیز دَ څاښت مونځ سنت دې.

② دَ احنافو مالکیه اوحنابله اکثر علماؤ په نیز دَ څاښت مونځ مندوب او مستحب دې.

**د ابن عمر رضی الله عنهما د څاښت مونځ ته د بدعت وئیلو وجه:** - کله چه حضرت ابن عمر رضی الله عنهما د څاښت په مانځه کښې د خلقو غلو اوکتله چه د حد نه زیات د دې التزام او اهتمام کوی او د دې د پاره ئی را یوځائی کیدل اوکتل او په مساجدا و عام مقاماتو کښې د خودنې د پاره جمع کیدل اوکتل نو د دې عوارض د وجې نه هغوی دې ته بدعت اووئیل.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۱۲۰۹] د څاښت د اته رکعتونو ثبوت

۱۲۰۹ - (۱)[۱] ① عَنْ أُمِّ هَانِئٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ② «إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ بَيْتَهَا يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ، ③ فَاغْتَسَلَ، وَصَلَّى ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ، ④ فَلَمْ أَرَ صَلَاةً قَطُّ أَخَفَّ مِنْهَا، ⑤ غَيْرَ أَنَّهُ يُتِمُّ الرُّكُوعَ وَالسُّجُودَ. وَقَالَتْ فِي رِوَايَةٍ أُخْرَى: وَذَلِكَ ضُحًى». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① بي بي ام هاني رضی الله عنها فرمايي ② چې رسول الله ﷺ د مکې د فتح په ورځ زما کور ته راغی ③ مخکې يې غسل وکړو او د هغې څخه وروسته يې اته رکعاته مونځ وکړو ④ ما د دې څخه مخکې د حضور ﷺ دومره مختصر مونځ هيڅ کله نه وو ليدلی ⑤ ليکن حضور ﷺ به رکوع او سجده پوره کوله په يو بل روايت کې هغې وفرمايل چې دا د څاښت مونځ وو. (بخاري، مسلم)

**تسهیلات:** -

**قوله:** أُمِّ هَانِئٍ:

**دام هانئ اصل نوم:** - د دې نوم آخری حرف همزه دې صرف یاء نه ده دا د هغې کنیت دې د هغې اصل نوم "فاخته" ده دا د حضرت علی رضی الله عنه خور ده.

**قوله:** يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ:

**د یوې علاقې فتح کولو باندې صلاة شکر ادا کول:** - حضورپاك ﷺ د فتح مکه په ورځ د څاښت په وخت د حضرت ام هانی رضی الله عنها کورته ئی تشریف راوړو او هلته ئی غسل اوکړو بیائی زر زر اته رکعته اوکړه. دا اته رکعته ئی په څلورو سلامونو سره اوکړه اوکیدې شی په دوو سلامو سره ئی کړی وی دې ته صلوة الفتح وائی او دا مستحب دی چه مجاهدین یوه علاقه فتح کړی نو هلته د شکرانې په توګه اته رکعته اوکړی. حضورپاك ﷺ د فتح مکه د معروضی احوالو په رڼا کښې د حکمت لاندې اته رکعته لنډ اوکړل ځکه چه حضورپاك

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الصلاة/باب الصلاة فی الثوب الواحد ملتحفا به (رقم-۳۵۷) ومسلم کتاب صلاة/باب استحباب صلاة الضحی، وأن أقلها رکعتان، وأکملها ثمان رکعات، وأوسطها أربع رکعات، أو ست، والحث علی المحافظة علیها (رقم) (رقم-۳۵۷) والترمذی کتاب الوتر/باب ما جاء فی صلاة الضحی (رقم-۴۷۴) والنسائی کتاب الغسل والتیمم/باب الاغتسال فی قصعة فیها أثر العجین (رقم-۴۱۵)

ﷺ له دَ مکې انتظام سنبالول وو. بیا هم حضورپاك ﷺ دَ نورو ارکانو نه علاوه رکوع اوسجده په مکمل توګه په تسلئی سره اداکړه. په دې سره دَتعدیل ارکان دَ اهمیت طرف ته اشاره کیږي.

**قوله: وَذٰلِكَ ضُحًى:**

**د ضحي په مصداق کښې دوه اقوال:-** دې کښې دوه احتماله دی

① یعنی دا دَ څاښت مونځ وو

② یا دَ څاښت په وخت کښې بل څه مونځ وو.

**[۱۳۱۰] د نبی علیه السلام د څاښت په مانځه کښې د رکعتونو تعداد**

۱۳۱۰-()[۲] وَعَنْ مُعَاذَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲]«سَأَلْتُ عَائِشَةَ: كَمْ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي صَلَاةَ الضُّحَى؟[۳]قَالَتْ: أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ وَيَزِيدُ مَا شَاءَ اللّٰهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[۱] بي بي معاذه فرمايي [۲] چې ما د ام المؤمنين بي بي عائشي صديقي رضي الله عنها څخه پوښتنه وکړه چې حضور ﷺ به د ضحي (څاښت) مونځ څو رکعاته کولو؟[۳] وي فرمايل څلور رکعاته به يې کول او د دې څخه زيات هم څومره چې به الله جل جلاله غوښتل کول به يې. (مسلم).

**تسهیلات:-**

**قوله: وَيَزِيدُ مَا شَاءَ اللّٰهُ:**

**د څاښت د مونځ په رکعتونو کښې عدم حصر:-** ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه دَ څاښت مونځ دَ دوولسو رکعتونه زيات نقل دې. دَ حدیث دَ ظاهری الفاظو نه هم دغه معلومیږی چه په دې کښې څه حصرنشته دې. سعیدبن منصور یوروایت نقل کړې دې چه چا دَ شیخ اسودنه پوښتنه اوکړه چه زه دَ څاښت څورکعته اوکړم؟ هغوی جواب ورکړو چه څومره غواړې، ته څومره غواړې. دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دی چه هغه به سل رکعته دَ څاښت کول.

**[۱۳۱۱] د څاښت د مونځ فضیلت**

۱۳۱۱-()[۳] [۱] وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲]" «يُصْبِحُ عَلَى كُلِّ سُلَامَى مِنْ أَحَدِكُمْ صَدَقَةٌ، [۳] فَكُلُّ تَسْبِيحَةٍ صَدَقَةٌ، [۴] وَكُلُّ تَحْمِيدَةٍ صَدَقَةٌ، [۵] وَكُلُّ تَهْلِيلَةٍ صَدَقَةٌ، [۶] وَكُلُّ تَكْبِيرَةٍ صَدَقَةٌ [۷] وَأَمْرٌ بِالْمَعْرُوفِ صَدَقَةٌ، [۸] وَنَهْيٌ عَنِ الْمُنْكَرِ صَدَقَةٌ، [۹] وَيُجْزِئُ مِنْ ذٰلِكَ رَكْعَتَانِ يَرْكَعُهُمَا مِنَ الضُّحَى» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

[۱] اخرجه مسلم فی كتاب صلاة/باب استحباب صلاة الضحى، وان اقلها ركعتان، واكملها ثمان ركعات، واوسطها اربع ركعات، او ست، والحث على المحافظة عليها (رقم) ۷۹ - (۷۱۹)

[۲] اخرجه مسلم فی كتاب صلاة/باب استحباب صلاة الضحى، وان اقلها ركعتان، واكملها ثمان ركعات، واوسطها اربع ركعات، او ست، والحث على المحافظة عليها (رقم) ۸٤ - (۷۲۰)

**ترجمه:** ۱ ابوذر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ د سحر كيدو سره ستاسو په هر هډوكي او هر جوړ باندې صدقه لازميږي ۳ نو هر تسبيح يعنى سبحان الله ويل صدقه ده ۴ هر تحميد يعنى الحمد لله ويل صدقه ده ۵ هر تهليل يعنى لااله الاالله ويل صدقه ده ۶ هر تكبير يعنى الله اكبر ويل صدقه ده ۷ دنيكۍ حكم كول صدقه ده ۸ د بدۍ څخه منع كول صدقه ده ۹ او د دې ټولو په بدله كې د ضحٰى دوه ركعاته كول كافي كيږي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① سُلَامَى: اَلْمُرَادُ بِهَا الْعِظَامُ كُلُّهَا: د بدن جوړونه مراد دى. ② تَهْلِيلَةٍ: لااله الاالله ويل. ③ الضُّحَى: د څاخت وخت يعنى دڅاخت مونځ.

**تسهيلات:** -

**قوله: يُصْبِحُ عَلَى كُلِّ سُلَامَى:**

**د سلامى لغوى تحقيق:** - سلامى په سين باندې پيش دې اوميم باندې فتحه ده دې نه پس الف مقصوره دې سلامىٰ پخپله مفرددې ددې جمع سلاميات ده د ګوتو هډوكو او جوړونوته وائى. مګرپه دې حديث كښې مطلقًا په هډو باندې د دې اطلاق شوې دې. علامه نووى رحمه الله فرمائى چه سلامىٰ اندامونوته وئيلې شى بل په ګوتو باندې هم ددې اطلاق كيږى اوهر هغه هډوكى ته هم وائى په كوم كښې چه جوړموجود وى اوهرهغه هډوكى ته هم وائى په كوم چه سړې د ضرورت په وخت ډډه لګوى. بهرحال د انسانى بدن په هډوكو او جوړونو دپاره دا لفظ دلته استعمال شوې دې.

**قوله: يُصْبِحُ عَلَى كُلِّ سُلَامَى مِنْ أَحَدِكُمْ صَدَقَةٌ:**

**د مذكوره جملې تركيب:** - ددې جملې تركيب باندې پوهيدل هم ضرورى دى علامه طيبى رحمه الله فرمائى په دې جمله كښې "صدقة" لفظ د يصبح اسم دې اوعلى كل سلامى ددې خبردې اصل عبارت داسې دې. "يصبح اي يصير صدقة على كل سلامى من احدكم" يعنى تاسونه دهريوسړې د بدن په جوړ جوړ باندې هره ورځ صدقه لازم ده. اوس هره ورځ صدقه وركول خوګران كاروو په دې وجه په اسلام كښې د دې رومبنى نرمى دا راغله چه دانسان هره نيكى كه هغه معمولى ولې نه وى د دغه صدقه بدل جوړيږى. دې نه پس دالله تعالى د طرف نه د نورې نرمئى معامله اوشوه چه كه د دغه ټولو نيكو په ځائى كه يوسړې د څاښت دووه ركعته مونځ اوكړى نود ټولو هډوكو او جوړونو د طرف نه دا دوه ركعته به د صدقې بدل جوړشى.

**[۱۲۱۲] د څاښت د مونځ دپاره غوره وخت**

۱۳۱۲ -(۱)[۳] ۱ «وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، ۲ أَنَّهُ رَأَى قَوْمًا يُصَلُّونَ مِنَ الضُّحَى) : فَقَالَ: ۳ لَقَدْ عَلِمُوا أَنَّ الصَّلَاةَ فِي غَيْرِ هَذِهِ السَّاعَةِ أَفْضَلُ: ۴ إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ۵ "صَلَاةُ الْأَوَّابِينَ حِينَ تَرْمَضُ الْفِصَالُ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

[۱] اخرجه مسلم فى كتاب صلاة/باب صلاة الأوابين حين ترمض الفصال (رقم) ۱۴۳ - (۷۴۸)

**ترجمه:**[۱] د زيد بن ارقم رضي الله عنه په باره کې منقول دي[۲] چې هغه يو جماعت د ضحٰي په وخت (د چاښت) په لمانځه کولو باندې وليدلو نو وي فرمايل[۳] چې دا خلق (د احاديثو په ذريعه) پوهيږي چې د دې وخت څخه علاوه په بل وخت کې مونځ کول بهتر دي(يعني په هغه وخت کښې زيات ثواب حاصليږي)[۴] رسول الله ﷺ فرمايلي دي[۵] چې د الله جل شانه طرف ته د کامل توجه لرونکو د لمانځه وخت هغه دي هر کله چې د اوښانو بچي (يعني د هغوئ پښې) ګرميدل شروع شي. (مسلم)

**حل اللغات:**- ① الأَوَّابِينَ: دادَ اوب نه دي دَدې معنى رجوع کول اودَ توبه کولوده يعنى دَالله تعالى طرف ته رجوع کول او توبه کونکو دَ مونځ وخت. ② تَرْمَضُ: أَيْ: تَحْتَرِقُ: دَ سوزيدلو په معنى کښې دي. ③ الفِصَالُ: أَى وَلَدُ النَّاقَةِ: فصال د فصيل جمع ده، دَ اوښانو بچوته وائى.

**تسهيلات:- قوله: راى قَوْمًا:**

**د څاښت او اشراق په مينځ کښې ترتيب:-** حضرت زيد بن ارقم رضي الله عنه چه کوم خلق دَ څاښت په مونځ کولو اوليدل چه هغه خلقو دَ څاښت مونځ په بهتروخت کښې نه کولو بلکه دَهغې نه وړاندې ئى کولو. هغوى تنبيه اوفرمائيله چه دې خلقو ته معلومه ده چه دا وخت بهترنه دې بلکه دَ څاښت دَدې نه بهتر وخت لږساعت پس هغه وخت دې کله چه نمر ګرم شى اودَ هغې دَ وجې نه شګې ګرمې شى او په دغه شګوباندې دَ اوښانودَ بچو خپې اوسوزيږى اوهغوى دَ دغه سوزيدودَ وجې نه سورو ته په منډو وهلوباندې مجبورشى. بهرحال په څاښت اواشراق کښې دا ترتيب دې چه دَ اشراق مونځ دَ نمردَ راختلو نه لږ ساعت پس وخت کښې دَ جواز وى اودَ څاښت مونځ هغه وخت وى کله چه نمرګرم شى

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۱۳۱۳] د څاښت په مانځه د ورځې د کارونو کفايت

۱۳۱۳-(۱)[۵][۱] عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، وَأَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَا: [۲]«قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "عَنِ اللهِ تَبَارَكَ وَتَعَالَى أَنَّهُ قَالَ: [۳]يَا ابْنَ آدَمَ ارْكَعْ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ مِنْ أَوَّلِ النَّهَارِ، أَكْفِكَ آخِرَهُ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:**[۱] ابودرداء او ابوذر رضي الله عنهما دواړه روايت کوي[۲] چې حضور ﷺ وفرمايل چه الله جل شانه فرمايي چې [۳] اي بني آدمه ته د ورځي په شروع کې څلور رکعاته مونځ په خالص طور سره زما د پاره (يعني د نمائش او د ريا د جذبي څخه پاك) وکړه زه به په هغه ورځ تر مابنامه پورې ستا کفايت کوم. (ترمذي)

**حل اللغات:**- ① أَكْفِكَ: زه به کافى شم، پوره به شم (ستا د حاجتونو او ضرورياتو دپاره). ② آخِرَهُ: أَيْ: إِلَى آخِرِ النَّهَارِ: يعنى د ورځې تر آخره پورې (به ستا ټول ضرورتونه پوره کړم.

[۱]) اخرجه الترمذى فى كتاب الوتر /باب ما جاء فى صلاة الضحى (رقم-۴۷۵)

**تسهيلات:-**

**قوله:** ارْكَعْ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ:

**د څاښت په څلورو رکعتونو د ټولې ورځې حاجتونه پوره کېدل:-** يعنى اى زمابنده ته دَ ورځې دَ شروع حصه کښې څاښت يا اشراق څلور رکعته زما دَ رضا دَپاره اوکړه زه به پوره ورځ تر آخره پورې ستا ضرورتونه او ستا حاجتونه پوره کوم. ستا پريشانى او سختى به لرې کوم بس شرط دادې چه ته زما په عبادت کښې لګيا شه بيا به زه ستا کار جوړوم.

۱۳۱۴-()[۰][۱]وَرَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ، عَنْ نُعَيْمِ بْنِ هَمَّازٍ الْغَطَفَانِيِّ، وَأَحْمَدُ عَنْهُمْ.

**ترجمه:**[۱] او ابوداؤد دارمي، د نعيم ابن هماز غطفاني څخه او امام احمد د دې ټولو څخه دا روايت نقل کړي دي.

**[۱۳۱۵] د اشراق د مانځه فضيلت**

۱۳۱۵-()[۲][۱] وَعَنْ بُرَيْدَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [۲] "«فِي الْإِنْسَانِ ثَلَاثُمِائَةٍ وَسِتُّونَ مَفْصِلًا، [۳] فَعَلَيْهِ أَنْ يَتَصَدَّقَ عَنْ كُلِّ مَفْصِلٍ مِنْهُ بِصَدَقَةٍ" [۴] قَالُوا: وَمَنْ يُطِيقُ ذَلِكَ يَا نَبِيَّ اللَّهِ؟ [۵] قَالَ: "النُّخَاعَةُ فِي الْمَسْجِدِ تَدْفِنُهَا، [۶] وَالشَّيْءُ تُنَحِّيهِ عَنِ الطَّرِيقِ، [۷] فَإِنْ لَمْ تَجِدْ، فَرَكْعَتَا الضُّحَى تُجْزِئُكَ»". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:**[۱] حضرت بريده رضي الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي [۲] چې د انسان په بدن کې درې سوه شپېته جوړونه دي [۳] نو هر انسان باندې لازم دي چې هغه د خپل جسم د هر جوړ په بدله کې صدقه ورکړي [۴] صحابه و ﷺ عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ څوك دا طاقت لري (چې د خپل بدن د هر جوړ په بدله کې صدقه ورکړي؟) [۵] حضور ﷺ وفرمايل په مسجد کې پرتې لاړې پټول (صدقه ورکول دي) [۶] د لارې څخه څه تکليف رسونکي شي (مثلا نجاست، ازغي، کاڼي) لرې کول (هم يوه صدقه ده) [۷] که تا (د درې سوه شپېته جوړونو له طرف څخه صدقه ورکونکي څه شي) نه شو موندلي نو د ضحي (يعني د اشراق) دوه رکعاته مونځ کول ستا د پاره کافي دي (د دې څخه ورسته د بلې صدقې ورکولو ضرورت نشته). (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① مَفْصِلًا: جوړونه ② يُطِيقُ: طاقت او قدرت ته وائي. ③ النُّخَاعَةُ: توکانړې ګرينګ او بلغم ته نخاعه وائي په کتاب الوضوء کښې دَ دې تفصيل تيرشوې دې. ④ تَدْفِنُهَا: ازاله کول مقصود دى که هغه په دفن کولو سره وى يا په وينځلوسره وى يا په ګرولووغيره سره وى. ⑤ تُنَحِّيهِ: أَيْ: تُبْعِدُهُ: چه ته ئې لرې کړې، اوئې غورځوې.

[۱] اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة،باب صلاة الضحى (رقم-۱۲۸۹) والدارمى كتاب الصلاة/باب فى أربع ركعات فى أول النهار (رقم-۱۴۹۲)

[۲] اخرجه ابوداود فى كتاب الأدب/باب فى إماطة الأذى عن الطريق (رقم-۵۲۴۲)

**تسهیلات:- قوله: مُفَصِّلًا:**

**دهر جوړ په بدله کښې صدقه ادا کول:-** یعنی دَ انسان په بدن کښې دري سوه شپیته جوړونه دی او په هرجوړباندې دَ سحرپه وخت صدقه لازم ده ځکه چه الله تعالی په انسان باندې ځومره احسان کړې دې چه ټول جوړونه ئې ورله په کارلګولې دی او صحت سره ټول جوړونه کارکوی. نو شرعًا اوعرفًا په دغه انسان باندې لازم دی چه هغه دې دَهرجوړدَ طرف نه صدقه اداکړی اوکه چرې دا مشکل کیږی نودَ څاښت یا اشراق دوه رکعته دې اداکړی دَ دغه صدقې حق به اداشی.

**[۱۳۱۶] دڅاښت دولس رکعتونه**

۱۳۱۶—(۱)[۷] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "مَنْ صَلَّى الضُّحٰى ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً ; [۳] بَنَى اللّٰهُ لَهُ قَصْرًا مِنْ ذَهَبٍ فِي الْجَنَّةِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، [۴] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هٰذَا الْوَجْهِ.

**ترجمه:** [۱] انس رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړي چې د ضحٰي دولس رکعاته کوي [۳] الله تعالٰی جل جلاله د هغه د پاره په جنت کې د سروزرو (سوني) محل جوړوي، ترمذي، ابن ماجه [۴] او امام ترمذي رحمه الله فرمايي چې دا حديث غريب دي ځکه چې مونږ بغير د دې سند څخه (یعني چې ترمذي په خپل کتاب کې نقل کړي دي) په بل څه سند سره دا نه پيژنو.

**حل اللغات:-** ① قَصْرًا: محل. مانړۍ (بنګله).

**تسهیلات:- قوله:** بَنَى اللّٰهُ لَهُ قَصْرًا مِنْ ذَهَبٍ فِي الْجَنَّةِ

**په دولس رکعتونو په جنت کښې د سروزرو کور جوړيدل:** په دې حديث کښې د څاښت دولس رکعته مونځ باندې په جنت کښې د سرو زرو د محل جوړيدوزيري دې. زمونږ په دنيا کښې مشاهده ده چې په یو معمولی کور جوړولو باندې ځومره دولت اووخت لږی اوځومره محتاجی اوسنړې والي وی. خوبل طرف ته هغه جنت چې د هغې د یوې کروړې (چابک) په مقدارځائي د دنیآ ومـا فيهـا څخـه غـوره دې. صـرف دڅاښـت د دولـسو رکعتونوپـه ادا کولوسره په هغې کښې د سرو زرو محل جوړيږی. دا ځومره دګټې سودا ده. الله دې مونږ ته توفيق راکړی.

**[۱۳۱۷] دصبا د مانځه روسته په عبادت کښې مصروف کيدو سره مغفرت**

۱۳۱۷—(۲)[۸] [۱] وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ الْجُهَنِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] مَنْ قَعَدَ فِي مُصَلَّاهُ حِينَ يَنْصَرِفُ مِنْ صَلَاةِ الصُّبْحِ، [۳] حَتّٰى يُسَبِّحَ رَكْعَتَيِ الضُّحٰى، لَا يَقُولُ إِلَّا خَيْرًا، [۴] غُفِرَ لَهُ

[۱] اخرجه الترمذی فی کتاب الوتر /باب ما جاء فی صلاة الضحی (رقم-۴۷۳)
[۲] اخرجه ابوداؤد فی کتاب الصلاة، باب صلاة الضحی (رقم-۱۲۸۷)

خَطَايَاهُ وَإِنْ كَانَتْ أَكْثَرَمِنْ زَبَدِ الْبَحْرِ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:**[۱] معاذ بن انس جهني رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] كوم سړي چې د سحر د لمانځه كولو نه پس هم په هغه ځاى (برابر) ناست وي[۳] تر دې چې (د نمر د اوچتيدو څخه وروسته) د ضحى دوه ركعاته وكړي او د هغه دواړو (يعني د سحر مونځ او د ضحى مونځ په مينځ كې) د نيك كلام څخه علاوه بله څه خبره ونه كړي[۴] نو د هغه ټول گناهونه بخښل كيږي اگر كه هغه د درياب د ځگ برابروي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:**- ① مُصَلَّاهُ: د مونځ ځاى (كه په جماعت كښې وى اوكه په كور كښې وى). ② يَنْصَرِفُ: أي: يُسَلِّمُ: راوگرځي د مونځ نه يعنى دمونځ سلام واړوى. ③ زَبَدِالْبَحْرِ: د سمندر زگ ته وائى (كوم چه د سمندر د چپو په وخت د ابو دپاسه جمع كيږي).

**تسهيلات:**- **قوله:** مَنْ قَعَدَفِي مُصَلَّاهُ:

**د فى المصلى په مفهوم كښې دوه اقوال:-**

① شيخ عبدالحق رحمه الله محدث دهلوى دَدې ثواب دَ گټلو اوحاصلولودَپاره داشرط لگولې دې چه سړې دَ سحردَ مونځ نه پس په خپل ځائى په جمات كښې كينى اوبيا دَ اشراق په وخت دوه ركعته اوكړى. په دې حديث كښې عام علماء فرمائى چه دې دوو ركعتونه دَا شراق دوه ركعته مراددى دَچاشت دوه ركعته مراد نه دى. [اشعة المعات:۱/۵۹۲]

② په دې كښې چې دَ كيناستو كوم ذكردې دا دَ تمثيل په توگه دې. اصل مقصوددادې چه دَ فجردَ مونځ نه پس سړې په دنياوى كاركښې مشغول نه وى بلكه په دينى كاركښې دې مشغول وى اوبيا دوه ركعته اوكړى څه فضول كلام اونه كړى. دَالله تعالى په ذكركښې لگياوى كه په كوركښې وى اوكه په بازاركښې وى ياهم په دغه جمات كښې وى چرته چه ئى مونځ كړې دې. خلاصه دا چه ملاعلى قارى رحمه الله دَ ثواب دَ حاصلولو دَپاره يومجلس كښې كيناستل ضرورى نه گڼرى.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۱۳۱۸] د ځاښت د مونځ دوه ركعته**

۱۳۱۸-()[۹] [۱]عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:[۲] "مَنْ حَافَظَ عَلَى شُفْعَةِ الضُّحَى: غُفِرَتْ لَهُ ذُنُوبُهُ[۳] وَإِنْ كَانَتْ مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:**[۱] ابوهريره رضي الله عنه فرمايي چه رسول الله ﷺ وفرمايل : [۲] چې كوم سړي چې د ضحى دوه ركعاته هميشه كوي د هغه ټول (صغيره) گناهونه بخښل كيږي[۳] اگر كه هغه د درياب د ځگ برابر وي. (احمد ،ترمذي، ابن ماجه)

[1] اخرجه الترمذى كتاب الوتر /باب ما جاء فى صلاة الضحى (رقم-۴۷۶)

**حل اللغات:-** ① حَافَظَ: أَيْ: وَاظَبَ وَدَاوَمَ: حفاظت نه مراد هميشوالي دي. ② شُفْعَةِ الضُّحَى: أَيْ: رَكْعَتَي الضُّحَى: شفع په معنى د زوج سره دي، ددې نه مراد دوه ركعته مونځ دې.

**تسهيلات:- قوله: ذُنُوبُهُ**

**په څاښت باندې د ګناهونو په معاف کيدو کښې دوه اقوال:-**

① ضابطه او قاعده داده چه دې ګناهونو نه مراد صغائر دی د کبائر د پاره ضروری ده چه سرې توبه اوکړی.

② بعضې علماء فرمائی چه دا فضيلت د صغائر سره سره کبائر ته هم شامل دې. او په حديث کښې هم څه قيد نشته دې ليکن که د څاښت هم څوك دوه ركعته اوكړی او دې سره د كبائر نه هم توبه اوكړی نو بيا خو هډو شك نشته چه كبائر به هم معاف شي.

**[۱۳۱۹] بي بي عائشه رضي الله عنها او د څاښت مونځ**

۱۳۱۹-()[۱۰] ① وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، ② أَنَّهَا كَانَتْ تُصَلِّي الضُّحَى ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ، ③ ثُمَّ تَقُولُ: لَوْ نُشِرَ لِي أَبَوَايَ مَا تَرَكْتُهَا. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** ① زمونږ د مؤمنانو مور بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها په باره کې روايت دي ② چې هغې به د ضحې مونځ اته ركعاته كولو ③ او فرمايل به يې كه زما د پاره زما مور پلار هم ژوندي كړل شي نو هم زه دا مونځ نه پريږدم. (امام مالك)

**حل اللغات:-** ① نُشِرَ: أَيْ: أُحْيِيَ: راژوندی کړې شي.

**تسهيلات:- قوله: نُشِرَ لِي أَبَوَايَ:**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:-**

① يعنې فرض كړه كه زما والدين راژوندی شي او ماته په دې باندې ډيره سخته خوشحالي حاصله شي نوزه به د دغه خوشحالئ په وخت هم د څاښت د مونځ دوه ركعته نه پريږدم.

② كه چرته ماته خبر راكړې شي چه ستا والدين راژوندې كړې شو تادی اوكړه هغوی سره ملاقات اوكړه اود څاښت دوه ركعته نن پريږده نوزه به په دغه موقع هم د چاشت مونځ نه پريږدم.

**[۱۳۲۰] د څاښت په ما لخه کښې د نبی علیه السلام معمول**

۱۳۲۰-()[۱۱] ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الضُّحَى حَتَّى نَقُولَ: ③ لَا يَدَعُهَا، وَيَدَعُهَا حَتَّى نَقُولَ: لَا يُصَلِّيهَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

[1] اخرجه مالک فی الموطا کتاب قصر الصلاة فی السفر، باب صلاة الضحی (رقم-۳۰)
[2] اخرجه الترمذی کتاب الوتر/باب ما جاء فی صلاة الضحی (رقم-۴۷۶)

**ترجمه:**[۱] ابو سعید ﷺ فرمایي [۲] چې رسول الله ﷺ چې به کله د ضحٰي مونځ کولو نو مونږ به ویل [۳] چې اوس به دا مونځ هیڅ کله نه پریږدي او کله چې به یي پریښودو نو مونږ به ویل چې اوس به دا مونځ هیڅ کله نه کوي. (ترمذي)

**تسهیلات:- قوله:** حَتَّى نَقُولَ: لَا يَدَعُهَا:

**دڅاښت مونځ او نبی کریم صلی الله علیه وسلم:**- یعنی چه کله به حضورپاك ﷺ دَ څاښت دَمونځ کولودَپاره متوجه کیدو نو بیا به داسې ښکاریده لکه چه دا مونځ به هډو پرینږدي او چه کله به په ترك کولوراتلو نوداسې به معلومیده لکه چه چرته نی هډو کړې نه دي.

**د څاښت د مونځ حکم:**- دَ څاښت دَمونځ شرعی حیثیت مستحب دې لهذا کله حضورپاك ﷺ کړې دې اوکله نی پریخې دې. دې دَ پاره چه دَ التزام دَ وجې په امت باندې فرض نه شی. لیکن اوس خو مسلمانانو له پکار دی چه دَ څاښت دَ مونځ اهتمام اوکړی دې دَپاره چه دَ الله تعالی خوشحالی حاصله شی. او نن صبا خودَ فرض کیدو خطره هم باقی پاتې نه ده څکه چه دَ حضورپاك ﷺ په ژوند کښې دَنوې وحی راتلو او دَ یوحکم دَ بدلیدو امکان وو اوس خونشته دې. اوس دا مستحب دې اوهم دَ قیامته پورې به مستحب وی لیکن دَ مستحب خو دا مطلب نه دې چه دا بالکل هیر کړی.

**[۱۳۲۱] د څاښت د مانځه په باره کښې د عبدالله بن عمر رائې**

| ۱۳۲۱—()[۱۲][۱] وَعَنْ مُوَرِّقٍ الْعِجْلِيِّ، قَالَ: [۲] قُلْتُ لِابْنِ عُمَرَ: تُصَلِّي الضُّحَى؟ قَالَ: لَا، [۳] قُلْتُ: فَعُمَرُ؟ قَالَ: لَا، [۴] قُلْتُ: فَأَبُو بَكْرٍ؟ قَالَ: لَا، [۵] قُلْتُ: فَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: لَا إِخَالُهُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |
|---|

**ترجمه:**[۱] حضرت مورِّق عجلي فرمایي [۲] چې ما د حضرت ابن عمر ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې آیا تاسو د ضحٰي مونځ کوي ؟ وي فرمایل چې نه،[۳] ما څیني پوښتنه وکړه چې حضرت عمر ﷺ ؟ وي فرمایل چې نه،[۴] ما عرض وکړو چې ابوبکر ﷺ ؟ وي فرمایل چه هغه به هم نه کول [۵] بیا ما څیني پوښتنه وکړه چې حضور ﷺ ؟ وي فرمایل زما خیال دي چې حضور ﷺ به هم نه کول. (بخاري)

**حل اللغات:**- ①لَا إِخَالُهُ: أَيْ: لَا أَظُنُّهُ: زه دا گمان نه کوم. (یعنی زما خیال دې چه هغوی به هم نه کول.

**تسهیلات:- قوله:** قَالَ لَا:

**د څاښت د مونځ څخه دا بن عمر انکار:**- یعنی تپوس کونکی چه کله دَ حضرت ابن عمر ﷺ نه تپوس اوکړو چه تاسو دَ څاښت مونځ کوئی؟ نوهغوی جواب ورکړو چه زه ئی نه کوم اوحضرت ابوبکر ﷺ اوحضرت عمر ﷺ به هم نه کولو بلکه زما خیال دې چه حضورپاك ﷺ به هم نه کولو.

[۱] اخرجه البخاری فی باب صلاة الضحی فی السفر (رقم-۱۱۷۵)

**اشکال:-** حضورپاك ﷺ دَ څاښت مونځ پخپله هم کړې دې او صحابه کرامو ته ئې بنه ترغیب ورکولو سره دَنیکو اعمالو کوشش هم کړې دې نوحضرت ابن عمر رضي الله عنه ولې فرمائي چه دَ څاښت مونځ چا نه دې کړې؟

**د اشکال جواب:-** حضرت ابن عمر رضي الله عنه دَ اصل څاښت نفي نه کوي بلکه هغوی دَدې غلو او حد اعتدال نه دَ بهر وتلو نفي کوي چه دا خلق دَ څاښت مونځ په جمات کښې ډیر تاخیر سره کوي لیکن حضورپاك ﷺ به داسې تاخیر نه فرمائیلو. تاسو خلق دا په جمات کښې کوئي او تاسو دواز او التزام کوئي یا حضورپاك ﷺ تداعی سره نه دې کړې تاسو ئې تداعی سره کوئي.

**دابن عمر د قول جواب:-** بهرحال دَحضرت ابن عمر رضي الله عنه اودَ هغوی په قول کښې دا ټول احتمالات موجود دی. دَدې نه دَ بعضې صوفیاکرام مریدانو باندې تنبیه هم کیدې شي څوك چه دَ څاښت مونځ ته دَ فرض درجه ورکولوسره التزام کوي.

# [۵۵/۳۹]بَابُ صلوة التَّطَوُّعِ]

## دَنفل مونځ بیان

**خلاصة الباب:-**

**فيه تسعة أحاديث مشتملة على سبع مسائل:**

① صلوة تحية الوضوء: ۱، ۵۔

②صلوة الاسخارة: ۲۔

③ صلوة الاستغفار: ۳۔

④ الصلوة لرفع المصائب: ۴۔

⑤ صلوة الحاجة: ۶۔

⑥ صلوة التسبيح: ۷۔

⑦ فضل صلوة النافلة: ۸، ۹۔

**دتطوع لغوی معنی:-** تطوع، د طوع نه اخستلې شوې دې په معنی د انقیاد او فرمانبردارئ

**دتطوع دوه قسمونه:-** بیا دې واضحه وی چه تطوع په مجموعی حیثیت سره په دوه قسمه دې.

① هغه چه د هغې دپاره جماعت مسنون دې لکه صلاة العيدين، صلاة الجنازة، صلاة الكسوف، صلاة الاستسقاء او تراويح.

② دویم کوم چه انفرادی طور ادا کولې شي.

**د دویم قسم دوه قسمونه:** - بیا هغه نوافل کوم چه انفرادی ادا کولي شی هغه په دوه قسمه دي.

① **سنة معینه:** - هغه چې د شریعت د طرفه د هغې دپاره وخت مقررشوی وی.لکه د پنځو وارو مونځونو سره سنت مؤکده، د اشراق مونځ د اوابین مونځ، تحیة الوضوء ،تحیة المسجد، صلاة الحاجة وغیره.

② **نافله مطلقه:** - د حکم دا دي چې توله شپه د دې وخت دې او د ورځې هم سوا د اوقات منهیه نه د دې وخت دې.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۱۳۲۲]دتحیة الوضوء فضیلت

۱۳۲۲-()[۱]١عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ٢«قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِبِلَالٍ عِنْدَ صَلَاةِ الْفَجْرِ: ٣"يَا بِلَالُ! حَدِّثْنِي بِأَرْجَى عَمَلٍ عَمِلْتَهُ فِي الْإِسْلَامِ؟ ٤فَإِنِّي سَمِعْتُ دَفَّ نَعْلَيْكَ بَيْنَ يَدَيَّ فِي الْجَنَّةِ"، ٥قَالَ: مَا عَمِلْتُ عَمَلًا أَرْجَى عِنْدِي ٦أَنِّي لَمْ أَتَطَهَّرْ طُهُورًا فِي سَاعَةٍ مِنْ لَيْلٍ وَلَا نَهَارٍ ٧إِلَّا صَلَّيْتُ بِذٰلِكَ الطُّهُورِ مَا كُتِبَ لِي أَنْ أُصَلِّيَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمایي ٢ چې (یو ځل) رسول الله ﷺ د سحر د لمانځه په وخت بلال رضی الله عنه ته وفرمایل ٣ چې بلاله رضی الله عنه ! ماته دا اووایه چې تا د اسلام په حالت کې کوم عمل کړي دي چې د هغې څخه تا ته د ثواب ډیر زیات امید دي؟ ٤ ځکه چې ما په جنت کې خپلې مخې ته ستا د چپلو آواز اوریدلي دي ٥ بلال رضی الله عنه عرض وکړو چې یا رسول الله ﷺ ما د داسې زیات امید څه عمل نه دي کړي ٦ سوا د دې څخه چې په شپه او ورځ کې چې کله هم زه پاکي حاصله کړم ٧ نو په هغه پاکۍ سره څومره چې زما په مقدر کې وي زه مونځ ضرور کوم. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① أَرْجَى: د اسم تفضیل صیغه ده، ډیر د امید والا، ② دَفَّ: أَيْ: صَوْتُهُمَا عِنْدَ مَشْيِكَ فِيهِمَا: د ګرځیدو په وخت د چپلو آواز. ③ نَعْلَ: چپلې، پیزار.

**تسهیلات:** -

**قوله: فَإِنِّي سَمِعْتُ دَفَّ نَعْلَيْكَ بَيْنَ يَدَيَّ فِي الْجَنَّةِ:**

**په جنت کښې د بلال د خپو کشار اوریدل:** - په دې حدیث پاک کښې د حضرت بلال رضی الله عنه د یوعمل اجر طرفته اشاره ده.هغه دا چې نبی کریم ﷺ په جنت کښې دبلال رضی الله عنه د قدمونو آواز واوریدو نو نبی کریم ﷺ حضرت بلال رضی الله عنه نه ددې عمل باره کښې تپوس اوکړو، حضرت بلال رضی الله عنه جواب کښې اوفرمائیل چې کله هم څه اودس کوم نو دوه رکعته تحیة

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب الجمعة /باب فضل الطهور باللیل والنهار، وفضل الصلاة بعد الوضوء باللیل والنهار (رقم-۱۱۴۹) ومسلم کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل بلال رضی الله عنه (رقم-۱۰۸ - (۲۴۵۸)

الوضوء كوم. دا تحية الوضوء كول د اوقات مكروهه نه علاوه باندې محمول دی. حضرت بلال ﷺ ته دا فضيلت په د ې وجه حاصل شو چې اسلام قبلولو كښې ئې سبقت اوكړو او دويم دا چې د اسلام په خاطر او دالله ﷻ درضا په خاطر ئې ډير زيات تكاليف برداشت كړی وو.

**د واقعه په پس منظر كښې اقوال:** - دا واقعه د نبی كريم ﷺ سره په كوم ځائې كښې اوشوه ، دې باره كښې مختلف اقوال دی.

① ليلة المعراج كښې داواقعه پيښه شوې وه ،

② په حالت د خوب كښې ورته پيښه شوې وه.

③ د نوم او ديقظت د حالت په مينځ كښې پيښه شوې وه.

**د نبی عليه السلام څخه د بلال د وړاندې تلو حيثيت:** - په جنت كښې د حضرت بلال ﷺ د نبی كريم ﷺ نه وړاندې تلل د خادم په حيثيت سره وو. اودا پخپله يو عظيمه درجه ده او ډير لوې فضيلت دې. په دې وجه نبی كريم ﷺ د هغه نه تپوس اوكړو چې ته داسې كوم يوعمل كوې چې دهغې په وجه تاته د خدمت خاص دا عظيمه مرتبه حاصله شوه ؟ د حديث حقيقی معنی هم د اده . ددې ظاهری معنی او مفهوم مراد اخستل او په غلط فهمۍ كښې اخته كيدل نه دی پكار چې ددې حديث مبارك نه دا ثابتيږي چې نعوذ بالله حضرت بلال ﷺ ته په حضرت رسول كريم ﷺ باندې فضيلت حاصل وو چې هغه د رسول كريم ﷺ نه اول جنت ته داخل شو. ځكه چې دا مرتبه خوبه يو نبی او پيغمبرته هم نه حاصله نشی چې هغه د رسول كريم ﷺ نه وړاندې جنت ته داخل شی . نو دا لاڅنګه كيديشی چې درسول كريم ﷺ د امت يو كس ته دا امتياز حاصل شی چې ددې دوؤ څيزونو يعنی هميشه په اودس كښې اوسيدلو او دتحية الوضوء مونځ كولو په وجه د رسول كريم ﷺ نه وړاندې جنت داخل شی . چه نسبت خاك را باعالم پاك.

**د الله تعالى د محبوب جوړيدو نسخه:** - څوك چې په طهارت باندې دوام ساتی نو هغه الله ﷻ ته محبوب دې. لقوله تعالى: ﴿إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ التَّوَّابِينَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِينَ﴾، كوم كس چې دا غواړی چې د الله ﷻ محبوب جوړ شی نو هغه دې په طهارت باندې دوام

**[۱۲۲۲] دَاستخارې مونځ اودعا**

۱۳۲۳—([1]) [۲] ۱ وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ۲ «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَلِّمُنَا الِاسْتِخَارَةَ فِي الْأُمُورِ، ۳ كَمَا يُعَلِّمُنَا السُّورَةَ مِنَ الْقُرْآنِ، ۴ يَقُولُ: "إِذَا هَمَّ أَحَدُكُمْ بِالْأَمْرِ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ مِنْ غَيْرِ الْفَرِيضَةِ، ۵ ثُمَّ لِيَقُلْ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْتَخِيرُكَ بِعِلْمِكَ، ۶ وَأَسْتَقْدِرُكَ بِقُدْرَتِكَ، ۷ وَأَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ الْعَظِيمِ، ۸ فَإِنَّكَ

[1]) اخرجه البخاری فی كتاب الدعوات/باب الدعاء عند الاستخارة (رقم-۶۳۸۲) والترمذی كتاب الوتر/باب ما جاء فی صلاة الاستخارة (رقم-۴۸۰) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة. والسنة فيها/باب ما جاء فی صلاة الاستخارة (رقم-۱۳۸۳)

تَقْدِرُ وَلَا أَقْدِرُ ⑨ وَتَعْلَمُ وَلَا أَعْلَمُ ⑩ وَأَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوبِ،

**ترجمه:** ① حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي ② چې رسول الله ﷺ به مونږ ته د ټولو کارونو د پاره د استخاري دعا داسې ښودله ③ څنګه چې د قرآن کريم يو سورت به يې ښودلو (يعنی حضور ﷺ به د دې دعا د تعليم ډير اهتمام کولو) ④ حضور ﷺ به فرمايل هر کله چې په تاسو کې يو سړي د څه کار اراده وکړي نو هغه ته پکار دي چې د فرض لمانځه څخه علاوه دوه رکعاته نفل مونځ وکړي ⑤ بيا دا دعا وکړي (چې پورته په متن حديث کښې ده، ترجمه يې دا ده) اې الله زه ستا د علم په ذريعه ستا څخه خير غواړم ⑥ او ستا د قدرت په واسطه (د نيک عمل کولو) ستا څخه قدرت غواړم ⑦ او زه ستا څخه ستا فضل غواړم ⑧ ځکه چې ته (په هر شي) قادر يې زه (ستا د مرضي څخه بغير په هيڅ شي) قادر نه يم ⑨ او ته په (ټولو څيزونو ښه) پوهيږې زه په هيڅ نه پوهيږم ⑩ او ته په پټو خبرو هم ښه پوهيږې.

**حل اللغات:** - ① الإِسْتِخَارَةَ: طلب الخير من الله في شئ: د الله تعالى نه په څه کار کښې خير طلب کول.

② هَمَّ: اراده، قصد،

① اللّٰهُمَّ إِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هٰذَا الْأَمْرَ خَيْرٌ لِي ② فِي دِينِي، وَمَعَاشِي، وَعَاقِبَةِ أَمْرِي ③ أَوْ قَالَ: فِي عَاجِلِ أَمْرِي وَآجِلِهِ - ④ فَاقْدُرْهُ لِي، وَيَسِّرْهُ لِي، ⑤ ثُمَّ بَارِكْ لِي فِيهِ، ⑥ وَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هٰذَا الْأَمْرَ شَرٌّ لِي ⑦ فِي دِينِي، وَمَعَاشِي، وَعَاقِبَةِ أَمْرِي ⑧ أَوْ قَالَ: فِي عَاجِلِ أَمْرِي وَآجِلِهِ ⑨ فَاصْرِفْهُ عَنِّي، وَاصْرِفْنِي عَنْهُ، ⑩ وَاقْدُرْ لِيَ الْخَيْرَ حَيْثُ كَانَ، ⑪ ثُمَّ أَرْضِنِي بِهِ" ، ⑫ قَالَ: "وَيُسَمِّي حَاجَتَهُ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① اې الله که ته پوهيږې چې دا کار (يعني مقصد) زما دپاره بهتر وی ② زما په دين او په ژوند او د نتيجې په اعتبار سره [بهتر وی] ③ او يا نبي کريم ﷺ داسې اوفرمائل چې په دې جهان (يعني په دنيا) کې او هغه جهان (يعني په آخرت) کې بهتر دي ④ نو دا زما د پاره مقدر کړې او دا زما د پاره اسان کړې ⑤ بيا په دې کې زما د پاره برکت واچوې ⑥ او که ته دا امر (يعني زما مقصد او زما مراد) زما دپاره بد ګڼې ⑦ زما په دين زما په ژوند او زما په آخرت کې ⑧ يا وي فرمايل دې جهان کې او په هغه جهان کښې يې بد ګڼې ⑨ نو دا زما څخه او ما د دې څخه وګرځوې ⑩ او زما د پاره چې چرته خير وي هغه مهيًا کړې ⑪ بيا په هغې ما راضي کړې، بخاري، ⑫ راوي وايي چې د لفظ هٰذا الامر په ځای دې د خپل حاجت نوم واخلي. (بخاري)

**حل اللغات:** - ③ عَاجِل: جلتی، سره يعنی دنيا کښې ④ آجِلِهِ: روستنی وخت کښې يعنی آخرت کښې،

**قوله:** - يُعَلِّمُنَا الإِسْتِخَارَةَ:

**په غشو باندې قسمت معلومول:** - په زمانه د جاهليت کښې دخلقو عادت وو چه کله به دوی ته دسفر وغيره څه حاجت يا دنکاح اوبيع څه معامله کول وو يا د خپل قسمت يا راتلونکی فائده اونقصان معلومول به وو نو داسې ټولو صورتونو کښې به ئې داستقسام

بالازلام نه کار اخستو او ددوی په خیال کښې به په دې کښې دوی ته دکوم کار خیر معلوم شو نوهغه به ئې کولو او چه کوم به ورته مضر ښکاره شو نو هغه به ئې ترك کولو.

**په غشو د قسمت معلومولو طريقه:-** ازلام د زلم جمعه ده هغه غشي چه په زمانه د جاهلیت کښې به ددې قسمت معلومیدو.اودا به اووه غشي وو چه په هغې کښې په بو باندې نعم او په بل لا لیکلې شوی وو.اودا غشي به دبیت الله شریف دخادم سره وو.اوچه کله به یو کس ته دخپل څه کار مفید یا مضر کیدل معلومول وو نو دکعبې مبارکې خادم ته به راغلو اوده ته به ئې څه نذرانه ورکړه.اوده به غشي یو یو دترکش نه راویستو که دنعم والا غشي به راووتلو نو دا به ئې خیال وو چه دا کار مفید دې او که د لا والا غشي به راووتلو نو دا به ئې خیال وو چه دا نه دی کول پکار.د استقسام بالازلام نور صورتونه هم شته.نو قران پاك دا په خپلو متبعینو باندې دا کار کول بند کړل.(۱)

**د استخارې تعلیم ورکول:-** داستقسام بالازلام دممانعت نه پس شریعت دابند هم کړلو او ددې په بدل کښې ئې داستخاره تعلیم ورکړو.(۲) او وې خودل چه څه خاص اواهم کار درته پیښ شي نو دوه رکعته مونځ اوکړئې په نیت د نفلو او دالله ﷻ نه رهنمائی طلب کړئې او دخیر طلب دې اوکړئې اودعاء د استخارې اوکړئې.

**په استخاره کښې فائده:-** ظاهر دی چه بنده کله دخپلې عاجزئې او د بې علمئ اعتراف اوکړی او د تعلیم او د قادر مطلق رهنمائی اومدد طلب کړی چه کوم دده په نزد بهتر وی هغه دې اوکړی نوداډیره بعیده اور لرئې ده چه الله ﷻ به دخپل بنده رهنمائی اومدد نه کوی.حدیث کښې دې ته څه اشاره نشته دې

**داستخارې طريقې:-**چه دا رهنمائی اومدد به څنګه وی

① نودالله ﷻ دبندګانو تجربه ده چه دا رهنمائی ډیر ځل دخوب وغیره کښې داشارې په ذریعه حاصلیږی.

② او کله داسې هم کیږی چه په خپله ددې کار کولو جذبه دده په زړه کښې مضبوطه شي یا ددې په عکس زړه ددې نه واوړی.داسې صورت کښې دواړه کیفتیونه دالله ﷻ د طرفه اوددعاء نتجیه ګڼړل پکار دی.اوکه د استخارې نه پس دتذبذب کیفت وی نو بیا بیا دې استخاره اوکړی اوچه ترکومې یو طرته دده توجه نه وی برابره شوې نو اقدام دې نه کوی.(۳)

**دکومو کارونو دپاره استخاره کولې شي:-** واضح دې وی چه داوجب اومندوب دکولو اود حرام او مکروه دپریښودو دپاره استخاره نشته دې ځکه چه اول کول او اخری متعین

(۱) معارف القران (ج/ ۳، ص/ ۳۱) سوره مائده، مرتب عفی عنه-(
(۲) كما قال الشيخ ولى الله الدهلوى فى حجة الله البالغة (ج/ ۲، ص/ ۱۹) النوافل وحكمة تشريعها)-
(۳) معارف الحديث (ج/ ۳، ص/۳۶۵ تا ۳۶۸) -

کول او استخاره کول صرف د امر مباح کولو یا نه کولو کښې دیو دترجیح دپاره وی یا یو واجب غیر موقت کښې دوخت متعین دپاره (۱) وی.والله اعلم.

**قوله:- فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ مِنْ غَيْرِ الْفَرِيضَةِ:**

**داستخارې په موقع کښې مسنون قراءت:-** دَ استخارې طريقه په دغه حديث کښې پخپله ذکر ده چه سرې دې اودس اوکړی او دوه رکعته نفل کولوسره دې دَ سلام ګرځولونه پس دغه ذکرشوې دعا اووائی. په دوو نفلوکښې په اول رکعت کښې قل یاایهاالکافرون او دویم کښې قل هوالله احد اووائی نو زیاته بهتره ده ګڼی هریو سورت وئیلې شی. دې نه پس که ذکرشوې دعا یاده وی نو په یادودې اووائی ګنی په کتاب کښې کتلوسره دې اووائی.

**قوله: أَوْقَالَ: فِي عَاجِلِ:**

راوی ته شك اوشو چه حضورپاك ﷺ کوم الفاظ استعمال کړې وو. علماؤ ليکلی دی چه که دواړه الفاظ اووئيلې شی نو بیاهم بهتره ده.

**قوله: أَنَّ هٰذَا الْأَمْرَ:**

**دهذا الامر مفهوم:-** يعنی په دې حديث کښې په ذکرشوې دعاکښې "هذاالامر" کښې دَ عام الفاظو نه دَمقصودطرف ته اشاره کړې شوې ده. حضوراکرم ﷺ فرمائيلی دی چه په دې موقع دې دَ استخارې کونکې دَخپل مقصود اومطلوب په صريح الفاظوکښې نوم اخستو سره بيان اوکړی مثلاً دَ "هذاالامر" په ځائی "هذاالسفرالزواج وهذه الوظيفة" اووائی. اوداهم صحيح دی چه دَ "هذاالامر" وئيلونه پس دَخپل مطلوب نوم اخستو سره ذکر اوکړی. حضرت انس رضی الله عنه فرمائی ماته حضوراکرم ﷺ اوفرمائيل چه دَ استخارې کولونه پس ستا په زړه کښې چه کومه خبره شرح صدر او په تسلئی سره راغله کيناسته هم په هغې باندې عمل کوه هم هغه ستا دَپاره بهتره ده.

**مختصره استخاره:-** په احاديثوکښې دَ يوې بلې استخارې هم ذکر راغلې دې کومه چه زياته مختصره ده او په هرحالت کښې دَ هغې کول ممکن دی. مثلاً په چا تادی ده او زر خپله بنيګړه معلومول غواړی نوکه هغه په کوم يو حالت کښې هم وی دَ استخارې دَپاره دې دا الفاظ بار بار وائی "اَللّٰهُمَّ خِرْلِیْ وَاخْتَرْلِیْ وَلَاتَكِلْنِیْ اِلٰی اِخْتِيَارِیْ" ای الله زما دَپاره چه کوم بهتر دی هغه راکړې اوما زما اختيار ته مه حواله کوه. علماؤ ليکلی دی چه که په استخاره کښې په يوځل باندې اشاره ملاؤ نه شی نو په دويم ځل دې اوکړی په دريم ځل دې اوکړی ترديې چه اووه ورځې دې اوکړی اوبيا دې دَخپل زړه په ميلان باندې عمل اوکړی. استخاره پخپله هم سړې کولې شی او په بل چاباندې هم کولې شی.

---

(۱) معارف السنن (ج/ ٤ . ص/ ۲۷۸ )مرتب عفی عنه

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [١٣٢٤] د توبې د مونځ بيان

١٣٢٣ –()[٣][١] عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُوبَكْرٍ - وَصَدَقَ أَبُوبَكْرٍ - قَالَ: [٢] سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [٣] "مَا مِنْ رَجُلٍ يُذْنِبُ ذَنْبًا، [٤] ثُمَّ يَقُومُ فَيَتَطَهَّرُ، ثُمَّ يُصَلِّي، [٥] ثُمَّ يَسْتَغْفِرُ اللهَ، إِلَّا غَفَرَ اللهُ لَهُ، [٦] ثُمَّ قَرَأَ: ﴿وَالَّذِينَ إِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً [٧] أَوْ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ [٨] ذَكَرُوا اللهَ فَاسْتَغْفَرُوا لِذُنُوبِهِمْ﴾ [آل عمران: ١٣٥]. [٩] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ; إِلَّا أَنَّ ابْنَ مَاجَهْ لَمْ يَذْكُرِ الْآيَةَ.

**ترجمه:** [١] امير المؤمنين حضرت علي كرم الله وجهه فرمايي چې حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه ماته وفرمايل او بالكل رښتيا يې وفرمايل [٢] چې ما د رسول الله ﷺ څخه ارشاد گرامي اوريدلي دي [٣] چې كوم سړي گناه وكړي [٤] او په گناه باندې د ندامت كولو په وجه پاڅي او اودس وكړي او مونځ وكړي [٥] او د پروردگار څخه د خپلې گناه مغفرت غواړي نو الله تعالى جل جلاله د هغه گناه معاف كوي [٦] بيا رسول الله ﷺ دا آيت اووئيلو (ترجمه: او داسې خلق چې هر كله څه داسې كار وكړي چې په هغې كې زياتي وي [٧] يا په خپل ذات باندې ظلم وكړي [٨] نو الله تعالى جل جلاله (يعني د هغه عذاب) يادوي بيا د خپلو گناهونو معافي غواړي، [٩] دا روايت ترمذي او ابن ماجه راويت كړي دي خو ابن ماجه آيت نه دي ذكر كړي.

**حل اللغات:** - ① فَاحِشَةً: بدعملي، بدكاري،

**تسهيلات:** -

**قوله: وَصَدَقَ أَبُوبَكْرٍ**

**د حديث په قبلولو كښې د حضرت على احتياط:** - داجمله معترضه ده. حضرت على رضي الله عنه د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه عظمت او بزرگى ښكاره كولو سره اوفرمائيل چه صديق رښتيا اوفرمائيل. د حضرت على رضي الله عنه باره كښې نقل دى چه د هغوى عادت وو چه د حديث بيانونكى راوى نه به ئې قسم اخستلو چه ته رښتيا وايې كه نه. كله چه به هغه قسم اوخوړلو نو بيا به هغوى رضي الله عنه د هغه حديث قبلولو. دلته پخپله فرمائى چه ابوبكر رضي الله عنه رښتيا اوفرمائيل هغه رښتوني وو. واقعى صديق رښتوني وو هغه صديق وو، صديق صديق وى.

**د حديث مفهوم:** - د پورتنى حديث مطلب دادې چه كه چرې يو سړې د گناه عمل كوى اوبيا غواړى چه د دغه گناه د ختمولو د پاره توبه اوكړى نو اول دې اودس اوكړى بيا دې دوه ركعته نفل اوكړى او بيا دې د الله تعالى نه استغفار اوكړى الله تعالى به ئې معاف كړى دا

(١) اخرجه الترمذى فى كتاب الصلوة / باب ما جا فى الصلوة عند التوبة... رقم الحديث ٤٠٨

دَ توبې مونځ دې او دَ توبې دَ پاره يو شرط دا دې چه خپيمانتيا سره په تيره شوې ګناه باندې خپيمانتيا سره په رښتونی زړه سره توبه اوکړی. دويم شرط دادې چه دَبيا دَپاره به پخه اراده وی چه بيا به ګناه ته نه نيزدې کيږی. دريم شرط دا چه که دَ يوانسان حق وی نواول دې دَهغه نه معافی اوغواړی بيا دې دَ الله تعالی نه استغفار اوکړی. څکه چه په حقوق العباد کښې دَ توبې هم دغه صورت دې. حضورپاك ﷺ په آخره کښې په توګه دَ دليل دَ قرآن پاك دوه آياتونه تلاوت کړل چه کوم څه ما وئيلی دی دَ الله تعالی په نيزهم دَ توبې کولو او استغفار هم دغه طريقه ده.

**[۱۳۲۵] دَمصيبت په وخت د نفل مونځ کول**

١٣٢٥-()[٣] [١] وَعَنْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [٢] «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا حَزَبَهُ أَمْرٌ صَلَّى». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] حضرت حذيفه رضی الله عنه فرمايي [٢] چې رسول الله ﷺ ته چې به څه مصيبت پيښ شو نو نفل مونځ به يې کولو. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① حَزَبَهُ أَمْرٌ: أي اشتدعليه: څه سخت کار به ورته پيښ شو.

**تسهيلات:-** **قوله:** إِذَا حَزَبَهُ أَمْرٌ:

**د پريشانۍ په وخت مونځ ته متوجه کيدل او د هغې وجه:-** يعنی کله چه به په نبی کريم ﷺ باندې غم مصيبت راغلو نو حضورپاك ﷺ به دَنفل مونځ طرف ته متوجه کيدو څکه چه دَالله تعالی ارشاد دې ﴿ وَاسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ ﴾

په مانځه کښې دَسړی توجهات او افکار په مکمل توګه باندې دَعالم بالا اوعالم ربوبيت طرف ته متوجه کيږی اودَعالم دنيانه سړې اوځی نودَعالم مصائب مصيبتونه اودردونه د ذهن نه لرې کيږی اوسړی ته تسلی حاصليږی. په دې وجه دَمصيبت په وخت په مانځه کښې دَمشغول ليدلو حکم ورکړې شوې دې.

**[۱۳۲٦] د تحية الوضوء فضيلت**

١٣٢٦-()[٥] [١] وَعَنْ بُرَيْدَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [٢] «أَصْبَحَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَدَعَا بِلَالًا، فَقَالَ: [٣] "بِمَ سَبَقْتَنِي إِلَى الْجَنَّةِ؟ [٤] مَا دَخَلْتُ الْجَنَّةَ قَطُّ إِلَّا سَمِعْتُ خَشْخَشَتَكَ أَمَامِي". [٥] قَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! مَا أَذَّنْتُ قَطُّ إِلَّا صَلَّيْتُ رَكْعَتَيْنِ، [٦] وَمَا أَصَابَنِي حَدَثٌ قَطُّ إِلَّا تَوَضَّأْتُ عِنْدَهُ [٧] وَرَأَيْتُ أَنَّ لِلّٰهِ عَلَيَّ رَكْعَتَيْنِ، [٨] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "بِهِمَا"». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] حضرت بريده رضی الله عنه فرمايي [٢] چې (يو ځل) رسول الله ﷺ د سحر وخت (د سحر

---

[1] ) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب وقت قيام النبی صلی الله عليه وسلم من الليل (رقم-۱۳۱۹)

[2] ) اخرجه الترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۶۸۹)

د لمانځه ځخه وروسته) بلال ﷺ طلب کړو کوم وخت چې هغه په خدمت اقدس کې حاضر شو نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل [۳] د کوم عمل په وجه دي زما ځخه په جنت کې پيش روي اختيار کړي ده؟ [۴] (ځکه چې) زه کله هم په جنت کې داخل شوم نو خپل مخکې مخکې ستا د چپلو آواز اورم؟ [۵] هغه عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ ما چې کله هم اذان کړي دي نو د هغې ځخه وروسته مي دوه رکعاته مونځ ضرور کړي دي [۶] او کله چې هم زما اودس مات شي نو ما هغه وخت اودس کړي دي [۷] او ما د الله ﷻ د پاره دوه رکعاته مونځ کول ضروري گڼلي دي (يعني د هر اودس ځخه وروسته په پابندي سره دوه رکعاته مونځ کول ما په خپل ځان لازم گرځولي دي) [۸] حضور ﷺ (د دي په اوريدو سره) وفرمايل بس هم د دې په وجه دي (عظيمې) درجې ته رسيدلي يې. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① قَطُّ: داسم ظرف صيغه ده، راځي دپاره د تاکيد دنفي په زمانه ماضي کښې، معنی ئې ده هيڅ کله هم، ② خَشْخَشَةً: مصدر دې د رباعي مجرد نه، د توري د خوزولو په وخت دهغې آواز ته وائي خو دلته تردې دګرځيدلو په وخت د چپلو آواز مراد دې، ③ حَدَثٌ: بې اودسي.

**تسهيلات:** -

**تحية الوضوء جنت ته د تللو سبب:** -تحية الوضوء د دې حديث ځخه معلومه شوه چې حضرت بلال په جنت کښې ځکه نبي کريم صلى الله عليه اوليدل چې هغوى به دوه اعمال کولو يو په هغې کښې تحية الوضوء وو.

## [۱۳۲۷] د صلوة الحاجة مسنونيت

١٣٢٧–()[١] [١] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " [٢] «مَنْ كَانَتْ لَهُ حَاجَةٌ إِلَى اللّٰهِ أَوْ إِلَى أَحَدٍ مِنْ بَنِي آدَمَ فَلْيَتَوَضَّأْ [٣] فَلْيُحْسِنِ الْوُضُوءَ ثُمَّ لِيُصَلِّ رَكْعَتَيْنِ، [٤] ثُمَّ لِيُثْنِ عَلَى اللّٰهِ تَعَالَى، وَلْيُصَلِّ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ،

**ترجمه:** [١] عبدالله ابن ابي اوفي ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] د کوم سړي چې الله تعالى ﷻ ته يا يو چا ته ځه حاجت وي (يعني که ديني وي او که دنيوي حاجت وي) نو هغه ته پکار دي چې (مخکې) دې [٣] په ښه شان (يعني پوره د آدابو د رعايت سره) اودس وکړي او دوه رکعاته مونځ وکړي [۴] بيا دې د الله تعالى ﷻ لوېي بيان کړي او په حضور ﷺ دې دورد اووائي او دا دعا دې وکړي

**حل اللغات:** - ① يُثْنِ: ثنا اوصفت دې بيان کړي.

[١] ثُمَّ لِيَقُلْ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ الْحَلِيمُ الْكَرِيمُ، [٢] سُبْحَانَ اللّٰهِ رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ، [٣] وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ، [۴] أَسْأَلُكَ مُوجِبَاتِ رَحْمَتِكَ، [۵] وَعَزَائِمَ مَغْفِرَتِكَ، [٦] وَالْغَنِيمَةَ مِنْ كُلِّ بِرٍّ، [٧] وَالسَّلَامَةَ مِنْ كُلِّ إِثْمٍ، [٨] لَا تَدَعْ لِي

[1] ) اخرجه الترمذی فی کتاب الوتر/باب ما جاء فی صلاة الحاجة (رقم-٤٧٩) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فی صلاة الحاجة (رقم-١٣٨٤)

ذَنْبًا إِلَّا غَفَرْتَهُ، ۹ وَلَا هَمًّا إِلَّا فَرَّجْتَهُ، ۱۰ وَلَا حَاجَةً هِيَ لَكَ رِضًى إِلَّا قَضَيْتَهَا يَا أَرْحَمَ الرَّاحِمِينَ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، ۱۱ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ۱ - لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ الْحَلِيمُ الْكَرِيمُ سُبْحَانَ اللهِ رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ أَسْأَلُكَ مُوجِبَاتِ رَحْمَتِكَ وَعَزَائِمَ مَغْفِرَتِكَ وَالْغَنِيمَةَ مِنْ كُلِّ بِرٍّ وَالسَّلَامَةَ مِنْ كُلِّ إِثْمٍ لَا تَدَعْ لِيْ ذَنْبًا إِلَّا غَفَرْتَهُ وَلَا هَمًّا إِلَّا فَرَّجْتَهُ وَلَا حَاجَةً هِيَ لَكَ رِضًا إِلَّا قَضَيْتَهَا يَا أَرْحَمَ الرَّاحِمِينَ (ترجمه: نشته بل معبود سوا د الله څخه چې چشم پوشي او بخشش کونکي دي ۲ پاك دي الله چې د عرش عظيم مالك دي ۳ او ټول تعريفونه الله لره دي چې د ټول جهان پروردګار دي ۴ اي الله زه ستا څخه هغه څيزونه غوارم چې د رحمت سبب وي ۵ او چې ستا د بخشش سبب وي ۶ او د هري نيکي څخه خپله حصه غوارم ۷ او د هري ګناه څخه بچ کيدل غوارم ۸ اي الله زما هيڅ ګناه بغير د بخښي او ۹ هيڅ غم بې لرې کولو ۱۰ او هيڅ حاجت چې ستا په نيز خوښ وي بې پوره کولو پرې نه ږدي اي درحم کونکو څخه ډير رحم کونکيه، ۱۱ امام ترمذي رحمه الله فرمايي چې دا حديث غريب دي.

**حل اللغات:** -۲ هَمًّا: غم، تکليف

**د راوي مختصر تعارف:** - د حديث د راوی نوم علقمه اوعبدالله رضي الله عنه کنيت ئې ابومعاويه او د ابن ابی اوفی په نوم سره مشهور وو.

**اسلام:** - د صلح حديبيه نه وړاندې مسلمان شوې وو په حديبيه کښې د نبی کريم ﷺ سره په سورلئ کښې شريک وو. په غزوه خيبر کښې هم شريک شوې وو (۲) په اسلامی غزاګانو کښې ورته په اووه کښې د شرکت سعادت حاصل شوې دې

**استوګنه:** - په مدنيه کښې اوسيدو خو چه کله کوفه آباده شوه نو هلته منتقل شو د حضرت علی رضي الله عنه په زمانه کښې چه کله خارجيانو سر پورته کړو نو د هغوی د مقابلې دپاره تلې وو (۳) د دوی پلار ته نبی کريم ﷺ دعا کړې وه چه الله تعالی دې په ابواوفی باندې رحمت نازل کړی (۴)

**وفات:** - د بنو اميه دور پورې ژوندې وو دوی آخری صحابی دې چه په کوفه کښې وفات شوې وو (۵)

**روايات:** - د دوی د رواياتو تعداد په کتابونو دحديثو کښې ۹۵ دې په دې کښې ۱۰ متفق عليه دی اوپه ۵ کښې بخاری اوپه يو کښې مسلم منفرد دی.

**تسهيلات:** -

**قوله:** مَنْ كَانَتْ لَهُ حَاجَةٌ:

**صلاة الحاجة د هر قسم حاجت دپاره:** - کله چه يوسړی ته څه حاجت پيښ شی که هغه حاجت بلاواسطه دَ الله تعالی سره متعلق وی يا بالواسطه يو بنده سره متعلق وی مثلاً

یوخانی کښې دَ نوکرئی مسئله وی، دَ داخلې مسئله وی، دَ مقدمې څه صورت وی نودغه سړی له پکاردی چه په ښه شان سره اودس اوکړی بیا دوه رکعته دَ حاجت مونځ اوکړی یعنی دَحاجت پوره کیدو په نیت سره ئی اوکړی اوبیا دَ سلام نه پس مذکوره دعا اووائی او بیا دې دَخپل حاجت پوره کولودعا اوغواړی نوالله تعالی به دَ ده ضرورت پوره کړی.

**د خالی په ورځ د صلاة الحاجت استحباب:**-دَ دې امت په خواصو اوعوامو کښې مشهوره ده اودا ډیر مجرب ده. ملاعلی قاری رحمه الله لیکلی دی چه علامه ابن حجر رحمه الله فرمائی چه صلوة الحاجة په یوم السبت یعنی دَ هفتې په ورځ کول پکاردی ځکه چه په یوحدیث کښې راغلی دی چه څوك دَ هفتې په ورځ سحر دَ الله تعالی نه خپل حلال او جائز حاجت غواړی نو حضورپاك ﷺ فرمائی چه زه دَهغه دَ حاجت پوره کیدو ذمه دار یم.

بهرحال یومسلمان لـه دَدې فتنـو نـه ډك وخت کـښې دا دعاگـانې اودا مونځونـه یولـوئی نعمت اوعظیم دولت دې. مسلمانانو لـه پکـاردی چـه مادیـاتو پسـې منـډې وهلوسره دَ خواریدو په ځائی دَدې روحانیات نه فائده واخلی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**نوټ:**-ددریم فصل عدم وجود ته شارحینوڅه تعارض نه دې کړې داسې معلومیږی چې د صاحب مشکاة د اصولومطابق به دوی ته د فصل ثالث احادیث نه وی ملاؤ شوې ځکه چې فصل ثالث نه دې منعقد کړې.

## [۵۶/۴۰]بَابُ صَلاَةِ التَّسْبِيحِ]

### دَتسبیح دَمونځ بیان

**خلاصة الباب:**-

**فيه ثلاثة أحاديث مشتملة على خسمة مسائل.**

① فضل صلاة التسبيح :۱
② كون الصلاة أول ما يحاسب بها يوم القيامة:۲،
③ كون النوافل مكملات للفرائض :۲
④ عظمة الصلاة في العبادات :۳
⑤ تقرب العبد إلى الله تعالى بالقرآن الكريم:۳

**د صلاة تسبیح حکم:**- صلوة تسبیح مستحب دې خودَدې ثواب بې حده او ډیر زیات دې. دَدې څلور رکعته دی او په شپه ورځ کښې هرجائز وخت کښې کولې شی.

**د صلاة تسبیح وجه تسمیه:**-دې ته صلوة تسبیح ځکه وائی چه دَدې په هر رکعت کښې ۷۵ ځل سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اکبر لوستلې کیږی.

**د صلاة تسبیح په روایت د ضعف اعتراض:** - په بذل المجهود ج۲ ص۲۷۰ کښې درجات مرقاة الصعود په حوالې سره نقل کړې شوې دی چه ابن الجوزی رحمه الله حدیث د صلاة التسبیح په موضوعات کښې ذکر کړې دې. او د موسی بن عبدالعزیز د وجې نه ئې دې حدیث ته معلول وئیلې دې ځکه چه موسی مجهول دې.

**د ضعف د اعتراض جواب:** - خو حافظ ابن حجر رحمه الله په کتاب الخصال المکفرة کښې وئیلی دی چه د ابن الجوزی رحمه الله د دې حدیث په موضوعات کښې شمار کول صحیح نه دی. او د ابن الجوزی رحمه الله دا قول چه موسی بن عبدالعزیز مجهول دې دا هم صحیح نه دې، ځکه چه یحیی بن معین رحمه الله او امام نسائی رحمه الله موسی ته ثقة وئیلې دې.

هم دغه شان د ډیرو ائمه کرامو د اقوالو نه ثابت دی چه د صلاة التسبیح حدیث صحیح او قابل عمل دې.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۱۳۲۸] د صلوة تسبیح فضیلت او طریقه

۱۳۲۸ – ()[۱] ① عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - أَنَّ «النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِلْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ: ② "يَا عَبَّاسُ! يَا عَمَّاهُ! أَلَا أُعْطِيكَ؟ ③ أَلَا أَمْنَحُكَ؟ ④ أَلَا أَحْبُوكَ؟ ⑤ أَلَا أَفْعَلُ بِكَ؟ عَشْرَ خِصَالٍ ⑥ إِذَا أَنْتَ فَعَلْتَ ذٰلِكَ، ⑦ غَفَرَ اللّٰهُ لَكَ ذَنْبَكَ أَوَّلَهُ وَآخِرَهُ، ⑧ قَدِيمَهُ وَحَدِيثَهُ، ⑨ خَطَأَهُ وَعَمْدَهُ، ⑩ صَغِيرَهُ وَكَبِيرَهُ، ⑪ سِرَّهُ وَعَلَانِيَتَهُ:

**ترجمه:** ① حضرت ابن عباس رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ حضرت عباس رضي الله عنه ابن عبدالمطلب ته وفرمایل ② چې ای عباس ای زما تره (اکا) آیا زه تاته درنه کړم ③ آیا زه تاته هدیه نه کړم ④ آیا زه تاته ونه بنایم ⑤ آیا تا د لسو خصلتونو مالك جوړ نه کړم ⑥ که ته هغه اختیار کړي ⑦ نو الله تعالی جل جلاله به ستا مخکني وروستني ټول گناهونه وبخښي ⑧ زاړه او نوي ⑨ قصداً او سهواً ⑩ واړه او لوي ⑪ پټ او ښکاره ټول گناهونه به وبخښي (نو واوره چې)

**حل اللغات:** - ① أَمْنَحُكَ: د مضارع متکلم صیغه ده، عطیه، هدیه ورکولو ته وائی، ② خِصَالٍ: خصلتونه، خوبیانې.

① أَنْ تُصَلِّيَ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ، ② تَقْرَأُ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ وَسُورَةً، ③ فَإِذَا فَرَغْتَ مِنَ الْقِرَاءَةِ فِي أَوَّلِ رَكْعَةٍ وَأَنْتَ قَائِمٌ، ④ قُلْتَ: سُبْحَانَ اللّٰهِ، وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ، وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ، وَاللّٰهُ أَكْبَرُ، ⑤ خَمْسَ عَشْرَةَ مَرَّةً، ⑥ ثُمَّ تَرْكَعُ، فَتَقُولُهَا وَأَنْتَ رَاكِعٌ عَشْرًا، ⑦ ثُمَّ تَرْفَعُ رَأْسَكَ مِنَ الرُّكُوعِ، فَتَقُولُهَا عَشْرًا، ⑧ ثُمَّ تَهْوِي سَاجِدًا، فَتَقُولُهَا وَأَنْتَ سَاجِدٌ عَشْرًا، ⑨ ثُمَّ تَرْفَعُ رَأْسَكَ مِنَ السُّجُودِ فَتَقُولُهَا عَشْرًا، ⑩ ثُمَّ تَسْجُدُ فَتَقُولُهَا عَشْرًا، ⑪ ثُمَّ تَرْفَعُ رَأْسَكَ فَتَقُولُهَا عَشْرًا،

**ترجمه:** ① ته څلور رکعاته داسې کوه ② چې په هر رکعت کې سورة فاتحه او څه دویم سورت اووایې ③ کوم وخت چې په اولنې رکعت کې د قراءت څخه فارغ شې نو په ولاړه ولاړه ④ دا تسبیح وایه سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ ⑤ پنځلس ځله ⑥ بیا چه

[۱] ) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب صلاة التسبیح(رقم-۱۲۹۷) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها/باب ما جاء فی صلاة التسبیح (رقم-۱۳۸۶)

رکوع ته لاړ شې او د رکوع د تسبیح (سبحان ربي العظیم) ویلو څخه وروسته په رکوع کې دا تسبیح لس ځله وایه [۷] بیا د رکوع څخه سر پورته کړه او د سمع الله لمن حمده ویلو څخه وروسته دا تسبیح لس ځله اوونیلو [۸] بیا سجدې ته لاړ شه او د سبحان ربي الاعلی څخه وروسته دا تسبیح لس ځله اووایه [۹] بیا د سجدې څخه سر پورته کړه او دا تسبیح لس ځله اووایه [۱۰] بیا دویمې سجدې ته لاړ شه او د سجدې تسبیح ویلو څخه وروسته دا تسبیح لس ځله اووایه [۱۱] بیا خپل سر د سجدې څخه پورته کړه او دا تسبیح لس ځله اووایه

[۱] فَذٰلِكَ خَمْسٌ وَسَبْعُونَ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ، [۲] تَفْعَلُ ذٰلِكَ فِي أَرْبَعِ رَكَعَاتٍ، [۳] إِنِ اسْتَطَعْتَ أَنْ تُصَلِّيَهَا فِي كُلِّ يَوْمٍ مَرَّةً فَافْعَلْ، [۴] فَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ، [۵] فَفِي كُلِّ جُمُعَةٍ مَرَّةً، [۶] فَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَفِي كُلِّ شَهْرٍ مَرَّةً، [۷] فَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَفِي كُلِّ سَنَةٍ مَرَّةً، [۸] فَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَفِي عُمُرِكَ مَرَّةً». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ".

**ترجمه:** [۱] دا ټول پنځه اویا تسبحات شو په هر رکعت کې [۲] دغسې په څلورو رکعاتونو کې وکړه (یعني په مذکوره طریقې سره دا تسبیح پنځه اویا ځله په هر رکعت کې وایه) [۳] که ته روزانه په دې لمانځه کولو باندې قدرت لرې نو روزانه یې کوه [۴] که روزانه یې نه شې کولې [۵] نو په هفته کې یې یو ځل کوه [۶] که په هفته کې یې نه شې کولې نو په میاشت کې یې یو ځل کوه [۷] که په میاشت کې یې نه شې کولې نو په کال کې یې یو ځل کوه [۸] او که په کال کښې یې هم نه شې کولې نو (د کم څخه کم) په ټول عمر کې یې یو ځل ضرور وکړه، ابوداؤد ابن ماجه بیهقي في دعوات الکبیر

۱۳۲۹—( )[۰] [۱] وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ عَنْ أَبِي رَافِعٍ نَحْوَهُ.

**ترجمه:** [۱] امام ترمذي دغسې روایت د حضرت ابورافع څخه نقل کړي دي.

**تسهیلات:-**

**قوله:** قُلْتَ: سُبْحَانَ اللهِ:

**د صلوٰة تسبیح دوه طریقې:-**

① صلوٰة التسبیح څلور رکعته دي. هر رکعت کښې پنځه اویا (۷۵) ځل دریمه کلمه وئیل دی خومره چې په حدیث مبارك کښې مذکور ده هغه وئیلې کیږي، په هر رکعت کښې د دې د شمیر پورا کولو دوه طریقې دي. یودا چې کومه د حدیث پاك د ترجمې نه واضحه ده.

② دویمه طریقه داده چې امام ترمذی رحمه الله باب ماجاء فی صلوة التسبیح کښې حدیث راوړې دې چې ددې آسانه طریقه داده چې د ثناء نه پس دې پنځلس ځل تسبیح اووائی، بیا قرأت نه پس لس ځل، بیا په رکوع کښې لس ځل، رکوع نه د پورته کیدو نه پس لس ځل، بیا لس ځل په سجده کښې، بیا د سجدې نه پورته کیدو نه پس لس ځل بیا په دویمه سجده کښې لس ځل، دا ټول پنځه اویا ځل شو. امام ترمذی رحمه الله یو حدیث پاك کښې دا طریقه ذکر کړې ده. احنافو هم دا خوښه کړې ده. او بل روایت کښې لږ شان بدلون سره دا طریقه راغلې ده. چې د ثناء نه پس تسبیح نشته دې، بلکه د دویمې سجدې نه پس تسبیح ده. دا

[1]) اخرجه الترمذی فی کتاب الوتر/باب ما جاء فی صلاة التسبیح (رقم-۴۸۲)

طريقه د عبدالله بن مبارك رحمه الله ده. ځيني احنافو دې ته ترجيح ورکړې ده. حضرت انور شاه کشميري رحمه الله اولې طريقې ته ترجيح ورکړې ده. ځکه چې ددې مونځ ددې طريقې شان د دې بلې طريقې نه مختلف دې. لهذا هغوئ اولې طريقې ته ترجيح ورکړې ده. باقي د دويمې سجدې نه پس دتسبيح په جلسه استراحت په نفلو کښې د جواز ګنجائش ثابتيږي.

**قوله :عشر خصال:**

**د لسو خصلتونو په مصداق کښې اقوال:-**

① دلسو خصلتونو نه مراد هر رکن کښې لس ځل تسبيح وئيل دي.

② دخصال نه مراد دادې چې څوك دا اختيار کړي هر تسبيح سره به ددې لس ګناهونه معاف کيږي.

③ امام طيبي رحمه الله فرمائي چې دسياق حديث نه لس خصال دا لاندې ذکر شوي معلوميږي:

① څلور رکعاته کول.

② هر رکعت کښې سورة فاتحه وئيل.

③ سجده ثاني کښې لس ځل وئيل.

④ قيام کښې لس ځل تسبيح وئيل

⑤ رکوع کښې لس ځل

⑥قومه کښې لس ځل وئيل

⑦ اوله سجده کښې لس ځل وئيل.

⑧سورة فاتحې سره بل سورة يو ځائې کول

⑨ په جلسه د استراحت کښې وئيل.

⑩ ددوارو سجدو په مينځ کښې وئيل.

**قوله: خطأه وعمده:**

**اشکال:-** په خطاء کښې خو ګناه نشته لقوله عليه السلام رفع عن أمتي الخطأ والنسيان ، نودا په ګناه کښې څنګه شمار کړې شو؟

**داشکال دوه جوابونه:-**

① دلته د ذنب نه مراد نقص دې.

② يا ددې نه مراد هغه خطاء ده چې په هغې باندې مغفرت مرتب کيږي. (مرقاة ج/۳ص/۲۱۴).

**[۱۲۳۰] دقيامت په ورځ اوله پښتنه د مونځ**

| ۱۲۳۰-(۱)[۴] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ ②: "«إِنَّ |

[1] ) اخرجه ابوداود في كتاب الصلاة،باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: «كل صلاة لا يتمها صاحبها تتم من تطوعه» (رقم-۸۶۴) والترمذي كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن أول ما يحاسب به العبد يوم القيامة الصلاة (رقم-۴۱۳) والنسائي كتاب الصلاة/باب المحاسبة على الصلاة (رقم-۴۶۵) وابن ماجة باب ما جاء في أول ما يحاسب به العبد الصلاة (رقم-۱۴۲۵)

أَوَّلَ مَا يُحَاسَبُ بِهِ الْعَبْدُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ عَمَلِهِ صَلَاتُهُ [۳] فَإِنْ صَلُحَتْ فَقَدْ أَفْلَحَ وَأَنْجَحَ [۴] وَإِنْ فَسَدَتْ فَقَدْ خَابَ وَخَسِرَ،

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي [۲] چې د قيامت په ورځ به د بنده په اعمالو کې د ټولو څخه مخکې چې د کوم عمل په باره کې محاسبه کيږي هغه به د هغه مونځ وي [۳] که مونځ يي درست شو (يعني که هغه مونځ صحيح اداء کړي وي يا د هغه مونځ قبول شوې وي) نو هغه به کاميابي ترلاسه کړي [۴] او که مونځ يي فاسد وي (يعني مونځ يي اداء کړي نه وي يا غير صحيح او غير مقبول يي ادا کړي وي) نو هغه به د ثواب څخه نا اميده وي او (په عذاب کې د مبتلا کيدو په وجه) به په خساره کې وي

**حل اللغات:** - ① أَفْلَحَ: کامياب شو، ② أَنْجَحَ: خلاصې نې بياموندو، ③ خَابَ: لم ينل ما طلب: نامراده کيدل، نااُميده کيدل، ④ خَسِرَ: نقصان اوچتول، تاواني کيدل.

[۱] فَإِنِ انْتَقَصَ مِنْ فَرِيضَتِهِ شَيْءٌ، [۲] قَالَ الرَّبُّ تَبَارَكَ وَتَعَالَى: انْظُرُوا هَلْ لِعَبْدِي مِنْ تَطَوُّعٍ؟ [۳] فَيُكَمَّلَ بِهَا مَا انْتَقَصَ مِنَ الْفَرِيضَةِ، [۴] ثُمَّ يَكُونُ سَائِرُ عَمَلِهِ عَلَى ذَلِكَ». [۵] وَفِي رِوَايَةٍ: "ثُمَّ الزَّكَاةُ مِثْلَ ذَلِكَ، [۶] ثُمَّ تُؤْخَذُ الْأَعْمَالُ عَلَى حَسَبِ ذَلِكَ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] که د چا په فرض لمونځونو کې څه کمي راغلي وي (يعني د لمانځه د فرض، واجب او سنت مؤکده په ارکانو کې څه رکن پاتې شوې وي نو د لمانځه د مکمل کيدو د پاره) [۲] الله بزرگ وبرتر به فرشتو ته فرمايي وګورئ زما بنده سره (د هغه په نامه اعمال کې) که سنت او نفل مونځ وي [۳] نو د هغې په ذريعه به د هغه د فرض لمانځه کمي پوره کړي شي [۴] بيا دغسې به د بنده د نورو اعمالو حساب وي، [۵] په يو بل روايت کې آخري الفاظ داسې دي بيا دغسې به دزکوة حساب وي [۶] او بيا به د بقيه اعمالو محاسبه کول کيږي دا روايت ابوداؤد نقل کړي دي

۱۳۳۱—()[۰][۱] وَرَوَاهُ أَحْمَدُ عَنْ رَجُلٍ.

**ترجمه:** [۱] او امام احمد دا روايت د يو بل سړي څخه نقل کړي دي.

**تسهيلات:** - **قوله:** أَوَّلَ مَا يُحَاسَبُ:

**د قيامت په ورځ اولنې تپوس:** - دقيامت په ورځ به دټولونه اول سوال اوحساب د مانځه کيږي او په عوامو کښې هم دغه مشهوره ده

**اشکال:** - دلته داشکال پيدا کيږي چه دې حديث کښې مذکوردی چه دقيامت په ورځ به دټولونه اول حساب دمانځه کيږي خو په يوبل روايت کښې مذکور دی چه په قيامت کښې به د ټولونه وړاندې حساب د وينې کيږي داتعارض دې؟

**جواب:** - ددې اشکال جواب علماؤ داورکړې دې حقوق الله کښې به رومبې حساب دمانځه کيږي او حقوق العباد کښې به رومبې حساب د ناحق تونې شوې وينې کيږي. ددې نور تفصيل د تسهيلات په څلورم جلد کښې ليکلې شوې دې.

[۱]) اخرجه احمد في المسند ۷۲/۵

**قوله: فَيُكَمَّلُ:**

**د فرض تكميل په نوافلو سره:** - يعني كه دَ مونځ روژې حج زكوة په فريضو كښې چرته څه نقص پاتې وِي نو دَقيامت په ورځ به دَدې تكميل په نوافل سره كولې شي. داحديث زمونږ دَ عربورونږودپاره يودعبرت خبره ده چه سنت او نوافل هيره وي. صرف په مكروه وخت كښې دَنفل كولوپابندى كوى. سنن مؤكده پريخودل څومره دَمحرومتياخبره ده. علماؤ ليكلى دى چه پوره فريضه كه چرته چا پريخوده نو په نوافل سره دَدې تكميل نه شى كيدې دا قاعده صرف دَ اداشوى ناقص فريضه دَتكميل دپاره ده. (التعليق الفصيح)

**[١٣٢٢] د مانځه او مونځ كونكي عظمت او فضيلت**

١٣٢٢-(١)[٣] ① وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②«مَا أَذِنَ اللَّهُ لِعَبْدٍ فِي شَيْءٍ أَفْضَلَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ يُصَلِّيهِمَا، ③وَإِنَّ الْبِرَّ لَيُذَرُّ عَلَى رَأْسِ الْعَبْدِ مَا دَامَ فِي صَلَاتِهِ، ④وَمَا تَقَرَّبَ الْعِبَادُ إِلَى اللَّهِ بِمِثْلِ مَا خَرَجَ مِنْهُ" يَعْنِي الْقُرْآنَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① ابو امامه رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② الله جل شانه د بنده په هيڅ عمل په خپل رحمت سره دومره زيات نه متوجه كيږي څومره چې د هغه دوه ركعاته لمانځه باندې متوجه كيږي چونكه (په ټولو اعمالو كې مونځ د ټولو څخه زيات افضل دي څكه په بنده باندې د هغه د نورو اعمالو په نسبت د لمانځه كولو په وجه د الله تعالى عنايت (پيرزوينه) ډيره زياته وي) ③ او بنده چې تر څو پورې په لمانځه كې مشغول وي نو د هغه په سر نيكي او خير راوريږي (يعني د هغه د پاسه د رحمت او ثواب چې د نيكي نتيجه ده نزول كيږي) ④ او بنده د الله جل جلاله په تقرب حاصلولو كې څومره چې د هغه نه د راوتلي سرچشمې د هدايت يعني د قرآن كريم څخه فائده پورته كوي هغومره د بل هيڅ شي څخه نه پورته كوي (يعني د الله جل جلاله قرب چې څومره زيات په قرآن كريم ويلو سره حاصليږي دومره بل هيڅ شي سره نه حاصليږي) (احمد، ترمذي)

**حل اللغات:** - ①يُذَرُّ: دَ نصر ينصر نه دَ مجهول صيغه ده دَ چركاؤ كولو او راخورولو په معنى كښې دي. ②أَذِنَ: دلته دَ اذان اوريدو په معنى كښې دى يعني الله تعالى دا قبلوى دَ هغه نه راضى كيږى دَ هغه طرف ته متوجه كيږى.

**تسهيلات:** - **قوله: "مَا خَرَجَ مِنْهُ":**

**دخرج منه وضاحت:** - دَ مجرور دا ضمير دَالله تعالى طرف ته هم راګرځى نومطلب به داشى چه دَ الله تعالى دَعلم نه كوم څه وتلي دي يا دَ الله تعالى دَ لوح محفوظ نه كوم څه وتلى دي دَ هغې نه مراد قرآن عظيم دي، دَ مجرور دا ضمير دَ عبد طرف ته هم راګرځيدې شى. مطلب به داشي چه كوم څيز دَبنده دَ خلې او ژبې نه راوځى دې نه هم قرآن عظيم مراد دې. خلاصه دا چه دَ قرآن عظيم تلاوت او په دې باندې عمل سره چه انسان كوم دَ الله تعالى قرب حاصلولې شى دغه شان په بل يوعبادت سره نه شى حاصلولې.

[الحمد لله ! دريم جلد ختم شو]

[1] اخرجه الترمذي في كتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب (رقم-٢٩١١)